# مظاهر حق جدید

د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

دریم جلد

۳

تالیف

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

تزئین اوترتیب

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

ځانګړتیاوي

۱: حدیثونه د اعراب سره.

۲: تحت لفظي ترجمه.

۳: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل.

مباحث

کتاب الصلوة

کتاب الجنائز

کتاب الزکوة

کتاب الصوم

صداقت کتب خانه

بسم الله الرحمن الرحیم

(د مشکٰوة المصابیح پښتو شرحه)

# مظاهر حق

تالیف: نواب محمدقطب الدين خان دهلوي رحمه الله

ترتیب او تزئین: مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دیوبند)


خپرندوی: صداقت خپرندویه ټولنه

پښتو ژباړه: محمد رسول سعید

تصحیح کوونکي: بسم الله رحیمي، مولوي عبدالکریم کریمي، مولوي عبدالجبار

لومړی چاپ: ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

پنځم چاپ :۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

د خپرونو لړ: ۱۸۳

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د تر لاسه کولو ځایونه:

**صداقت خپرندویه ټولنه-کندهار**

اوله ناحیه، نوی سړک- کریم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

کندهار: صداقت خپرندویه ټولنه- ارگ بازار- قلم او کتاب مارکېټ ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴ .

کابل: صداقت خپرندویه ټولنه،کوټه سنگي مینه یار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی**. **هلمند** :تاج منور خپرندویه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندویه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتیکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# د مظاهر حق دریم جلد فهرست

# بَابُ صَلٰوۃِ السَّفَرِ

## د سفر د لمانځه بیان

مسافر چي کله د خپل کلي یا ښار د ابادۍ څخه ووځي نو پر هغه باندي قصر واجب دی یعني پوره څلور رکعته فرض لمونځ دوه رکعته کول پر واجب دی، که یو سړی د سفر په حالت کي چي پر هغه قصر واجب دی پوره څلور رکعته وکړي نو گنهاه کار به وي او د دوو واجبو پرېښودونکی به وي یعني یو واجب خو د قصر ترک سي او دوهم د دوهمي قعدې وروسته سمدستي سلام گرځول ځکه چي د مسافر په حق کي اوله قعده اخیره وي د دې وروسته هغه ته سمدستي سلام گرځول پکار وو او هغه سلام و نه گرځوي بلکه ودرېدی همداسي د هغه دوهم واجب ترک سو.

دلته په دې خبره هم پوه سئ چي د مسافر لپاره د قصر په جواز کي د هیڅ عالم او هیڅ امام اختلاف نسته یوازي دومره خبره ده چي د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد خو قصر واجب دی مگر د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد قصر اولی دی که یو مسافر قصر نه وکړي نو هغه د امام صاحب د مذهب سره سم گناه کار دی که څه هم د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب هغه گناهکار نه گرځوي خو د اولی او افضل شي ترک کونکی ورته وایي.

### د قصر اندازه

قصر په دومره فاصله سره واجب کیږي چي په درمیانه تگ سره تر درو ورځو کم تلل نسي د درمیاني تگ څخه مراد د سړي یا د اوښ درمیاني رفتار دی د درو ورځو د مسافت څخه دا مراد دی چي د سهاره تر غرمې پوري ولاړ سي نه دا چي د سهار څخه تر ماښامه پوري ځکه فقهاء په موجود زمانه کي د دې مسافت انداه اته څلوېښت میله لگولې ده گویا که یو سړی اته څلوېښت میله تقریبا اته اویا کلومتره فاصلې لپاره د خپل کور څخه په سفر ووځي څرنگه چي پورته ذکر سول د خپل کور یا ابادي څخه په دباندي وتلو سره پر هغه قصر واجب کیږي که یو سړي د قصر فاصله یعني اته څلوېښت میله یا اته اویا کلومتره د یو تیز سپرلۍ مثلا آس یا د رېل گاډي وغیره په ذریعه تر درو ورځو کم ووهي بیا هم هغه به مسافر گڼل کیږي هغه ته هم قصر لمونځ کول پکار دی.

## د قصر وخت

مسافر ته تر هغه وخته پوري قصر کول پکار دی تر څو پوري چي خپل اصلي وطن ته و نه رسيږي يا پر يو ځای باندي کم تر کمه تر پنځلسو ورځو پوري د اوسېدو قصد ونه کړي په شرط د دې چي دی د هغه ځای د اوسېدو وړ وي که يو سړی په درياب کي د اوسېدو قصد وکړي يا په دارالحرب کي يا همداسي په ځنګل کي نو د هغه نيت به د هيڅ اعتبار څخه نه وي هو کوچيان خلک که په ځنګل کي هم د پنځلسو ورځو د اوسېدو نيت وکړي نو دا نيت به صحيح وي ځکه چي هغوی په ځنګلو کي د اوسيدو عادي وي.

که يو سړی دا اندازه مسافت د قطع کولو څخه مخکي چي د هغه په سفر کي اعتبار سوی دی پر يو ځای باندي د اوسېدو يا خپل وطن ته د بيرته تلو نيت وکړي نو هغه به مقيم سي که څه هم تر پنځلسو ورځو کم اوسېدو نيت يې کړی وي.

**د قصر لمانځه يو څو مسئلې:**

۱. په لاندينی صورتو کي که يو مسافر د سفر مسافت پرې کولو وروسته تر پنځلسو ورځو هم زيات و دريږي نو هغه به مقيم نه وي او پر هغه به قصر کول واجب وي.

۲. که د پنځلسو ورځو اوسېدو اراده نه وي مګر په يو وجه بلاقصده او ارادې د زيات تم کېدو اتفاق وسي.

۳. کله يې هم نيت نه وي کړی مګر په نن صبا کي د هغه اراده د هلته څخه تلل وي خو هغه د دې وروسته پنځلس ورځي يا تر دې زيات هم و اوسيږي.

۴. پنځلس ورځي يا تر دې زيات تم کېدو نيت وکړي خو هغه ځای د هستوګني وړ نه وي.

۵. د پنځلسو ورځو لپاره د اوسېدو نيت وکړي مګر په دوو ځايو کي په شرط د دې که هغه په دواړو ځايو کي دومره فاصله وي چي د يو مقام اواز دوهم ځای ته نسي رسېدلای مثلا لس ورځي په مکه معظمه کي د اوسېدو اراده وکړي او پنځه ورځي په منی کي کوم چي پر پنځه ميله فاصله باندي واقع ده او که د شپې په يو ځای کي د اوسېدو نيت وکړي او د ورځي په دوهم ځای کي نو په کوم ځای کي چي د شپې تېرېدو نيت يې کړی وي هغه به د هغه د اقامت وطن سي هلته به هغه ته د قصر اجازه نه وي اوس دوهم ځای چيري چي هغه ورځ تېروي که د هغه اول ځای څخه د سفر په مسافت وي نو هلته په تلو سره به مسافر سي کنه مقيم به وي او که يو ځای دوهم ځای ته دومره نژدې وي چي د يو ځای اذان دوهم ځای ته رسېدلای سي نو هغه دواړه ځايونه به يو ګڼل سي او په دواړو ځايو کي به د پنځلسو

ورځو د تم کېدو په اراده سره مقيم سي.

د مقيم اقتداء په مسافر پسي صحيح ده که څه هم ادا لمونځ وي يا قضاء، مسافر امام چي کله د دوو رکعتو په کولو سره سلام وګرځوي نو مقيم مقتدي ته پکار ده چي په ولاړېدو سره خپل لمونځ پوره کړي او په هغه کي دي قرائت نه کوي بلکه پټه خوله به ولاړ وي ځکه چي هغه لاحق دی او قعده اولی به پر هغه مقتدي باندي هم فرض وي مسافر امام ته مستحب دی چي د سلام ګرځولو څخه وروسته سمدستي د خپل مسافر کېدو په ويلو سره مقتديانو ته خبر ورکړي چي زه مسافر يم مقتديان دي خپل لمونځ پوره کړي.

مسافر هم په مقيم پسي اقتداء کولای سي خو په وخت کي دننه د وخت وروسته نه، ځکه کله چي مسافر په مقيم پسي اقتداء وکړي نو د امام سره به د تابعداری په وجه دی هم څلور رکعته وکړي او د امام قعده اولی څخه وروسته نور لمونځ به د مسافر دپاره نفل وي او د مسافر فرض به د امام د تحريمه تکبير څخه تر قعده اولی پوري وي.

مسافر دي د سهار سنت نه پرېږدي او د ماښام سنت پرېښول هم غوره نه دي او د پاته سنتو پرېښودل ورته اختيار دي خو غوره داده که چيري روان وي او اطمينان نه وي نو نه دي يې کوي کنه وه دي يې کړي. (علم الفقه).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ قصر لمونځ

﴿۱۲۵۵﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ بِالْمَدِيْنَةِ أَرْبَعًا وَصَلَّى الْعَصْرَ بِذِيْ الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ. متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ څلور رکعته وکړل او په ذي الحليفه کي يې د مازديګر دوه رکعته وکړل. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۶۹، رقم: ۱۰۸۹ ومسلم ۱\۴۸۰، رقم: ۱۰- ۶۹۰.

**تشريح**: په دغه حديث شريف کي د رسول الله ﷺ د سفر حال بيان سوی دی، رسول الله ﷺ چي د حج لپاره د مکې د سفر اراده وکړه نو په مدينه کي يې د ماپښين څلور رکعته لمونځ وکړ بيا چي د مدينې څخه ووتی او ذوي الحليفه ته ورسېدی نو هلته يې قصر وکړ او د مازديګر لمونځ

پې دوه رکعته وکړ، (ذوالحليفه د يو ځای نوم دی چي مدينې منورې ته په دري کوسه فاصله باندي پروت دی)

د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام شافعي رحمة الله عليه هم دا مذهب دی چي کله شرعي مسافر د خپل ښار يا کلي د ځايو څخه دباندي ووځي نو قصر لمونځ دي وکړي.

﴿۱۲۵۶﴾: وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبِ الْخُزَاعِيِّ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ أَكْثَرُ مَا كُنَّا قَطُّ وَآمَنَهُ بِمِنَا رَكْعَتَيْنِ. متفق عليه

د حضرت حارثة بن وهب ﷺ څخه روايت دی چي موږ ته رسول الله ﷺ په منی کي دوه رکعته لمونځ راکړ حال دا چي موږ د وړاندي څخه زيات وو او د امن په حالت کي وو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۵۶۳، رقم: ۱۰۸۳ و مسلم ۱\۴۸۳، رقم: ۲۰-۶۹۶.

**تشريح**: دا د حجة الوداع يادونه ده په دغه وخت د اسلام حقانيت او صداقت د اکثر په زړونو کي ځای نيولی وو او د مسلمانانو شمېر ډېر زيات سوی وو د حجة الوداع پر وخت صحابه کرام رضي الله تعالی عنهم چي په څومره زيات شمېر کي وه تر دې مخکي په هيڅ وخت کي نه وه، د امن په حالت کي وو د دې مطلب دادی چي د کفارو د يو حملې يا د هغوی سره د جنګ کولو څه بېره نه وه مګر ډېر اطمينان او د سکون په حالت کي وه د دې ذکر په خاصه توګه ځکه سوی دی چي دا واضحه سي چي د قصر مشروعيت د کفارو د فتنو پر بيري موقوف نه دی څرنګه چي د قرآن کريم د آيت څخه ښکاره ده مګر په سفر کي بهر صورت قصر کول پکار دی په مخکي حديث کي په تفصيل سره د دې بيان سوی دی.

## د قصر په اړه آيت

﴿۱۲۵۷﴾: وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ إِنَّمَا قَالَ اللهُ أَنْ

د حضرت يعلي بن امية څخه روايت دی چي ما حضرت عمر بن خطاب ﷺ ته وويل: الله تعالی دا حکم کړی دی چي

تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَقَدْ أَمِنَ النَّاسُ

که تاسو د کافرانو د لوري په بيره کي ياست نو لمونځ کم کړئ مګر اوس چي امن قائم دی او بيره نسته نو په لمانځه کي د کمي څه ضرورت دی؟

قَالَ عُمَرُ عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عمر ﷛ وويل څرنګه چي تا ته دا شک پیدا سوی دی همدارنګه ما ته هم پیدا سوی وو نو ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ،

عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللّٰهُ بِهَا عَلَيْكُمْ فَاقْبَلُوا صَدَقَتَهُ. رواه مسلم

هغه وفرمايل : دا يو احسان دی چي الله پر تا کړی دی نو ته دا احسان قبول کړه . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۴۷۸، رقم: ۴- ٦٨٦.

**تشريح** : د مسافر لپاره په لمانځه کي د قصر د اجازې په اړه چي کوم آيت نازل سوی وو او د هغه يو جزء دلته په حديث کي نقل سوی دی هغه پوره داسي دی :

وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُواْ مِنَ الصَّلاَةِ إِنْ خِفْتُمْ أَن يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُواْ

ژباړه : او کله چي تاسو سفر کوئ نو تاسو ته په دې کي ګناه نسته چي کم لمونځ کوئ که تاسو ته دا بيره وي چي کافران به تاسو ته تکليف درکړي .

د دې آيت څخه په څرګنده دا معلوميږي چي د سفر په حالت کي د قصر اجازه هغه وخت وي کله چي د کافرانو څخه د تنګولو بېره وي حال دا چي داسي نه ده مګر حقيقت دا دی چي په آيت کي د بيري عادت او د اغلب په اعتبار کيږي چي اکثرو مسافرو ته بېره وي خصوصا په هغه زمانه کي کله چي کافر هر وخت او په هره زمانه کي مسلمانانو ته تاوان رسونکی وي دا وجه ده چي رسول الله ﷺ په فاقبلوا صدقة فرمايلو سره دې ته اشاره وفرمايل چي د سفر په حالت کي د قصر لمونځ کولو حکم يوازي د کافرانو د بېري سره مختص نه دی مګر دا اساني په حقيقت کي د الله تعالی له خوا پر هغو ټولو بندګانو باندي چي د سفر په حالت کي وي يو احسان دی چي د هغه څخه هر مسافر ګټه اخيستلای سي که څه هم بيره وي وي يا نه وي .

په (فا قبلوا) کي حکم د وجوب لپاره دی يعني د هر شرعي مسافر لپاره قصر کول واجب او ضروري دی د دې څخه د حنفيه مذهب تائيد کيږي چي د سفر په حالت کي قصر واجب دی او قصر نه کول يعني پوره لمونځ ناخوښه دی .

## د اقامت موده

﴿۱۲۵۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ووتلو

الْمَدِيْنَةِ إِلٰى مَكَّةَ فَكَانَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ حَتّٰى رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِيْنَةِ

د مدينې څخه مکې ته ، رسول الله ﷺ به په سفر کي دوه رکعته لمونځ کوی تر څو چي موږ مدينې ته راستانه سو ،

قِيْلَ لَهُ أَقَمْتُمْ بِمَكَّةَ شَيْئًا قَالَ أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا. متفق عليه

د انس څخه پوښتنه وسول چي تاسو په مدينه کي څومره وخت واست؟ هغه وويل موږ په مکه کي لس ورځي وو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۵۶۱، رقم: ۱۰۸۱ و مسلم ۱\۴۸۱، رقم: ۱۵-۶۹۳.

**تشريح** : د حجة الوداع پر وخت د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو قيام په مکه کي لس ورځي داسي وې چي رسول الله ﷺ مکې ته د ذي الحجې پر څلورم تاريخ رسېدلی وو او د حج د ارکانو وغيره څخه د فراغت وروسته د څورلسم ذي الحجې په سهار د هغه ځای څخه مدينې ته روان سو. په هر حال د دې حديث څخه معلومه سوه چي د سفر په حالت کي په يو ځای کي لس ورځي تېرولو سره هيڅ سړی نه مقيم کيږي د هغه لپاره قصر لمونځ کول جائز دی دا حديث په ښکاره د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب خلاف معلوميږي ځکه د هغه په نزد که يو سړی په يو ځای کي تر څلورو ورځو زيات اوسي نو بيا د هغه لپاره قصر لمونځ جائز نه دی بلکه د هغه لپاره پوره لمونځ کول ضروري دی د دې پوره تفصيل په راتلونکي حديث کي را روان دی.

﴿۱۲۵۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَافَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَفَرًا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي نبي کريم ﷺ يو سفر وکړ

فَأَقَامَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَنَحْنُ

او هلته يې نولس ورځي تيري کړې او په دغه وخت کي به يې دوه دوه رکعته کول ، ابن عباس رضي الله عنه وايي موږ چي به

نُصَلِّي فِيمَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَكَّةَ تِسْعَةَ عَشَرَ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فَإِذَا أَقَمْنَا أَكْثَرَ

د مکې او مدينې په منځ کي تر نولس ورځو پوري پاته سو نو دوه دوه رکعته به مو کول او که تر دي به زيات پاته سو

مِنْ ذٰلِكَ صَلَّيْنَا أَرْبَعًا. رواه البخاري

نو څلور رکعته به مو کول. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۵۶۱، رقم: ۱۰۸۰.

**تشريح** : (فاقام تسعة عشر يوما) : ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ نولس ورځي بېله داقامت د نيت څخه داسي تيري کړې چي په نن سبا کي د هغه ځای څخه د راونېدو اراده به يې وکړل مګر بېله قصده او ارادې د رسول الله ﷺ قيام نوولس ورځي وسو د دې څخه ابن عباس رضي الله عنه دا نتيجه واخېستل که يو سړی د سفر په حالت کي يو ځای نولس ورځي تيري کړي نو هغه قصر لمونځ کولای سي هو د نولس ورځو وروسته به د هغه لپاره قصر لمونځ جائز نه وي په دې مسئله کي ابن عباس رضي الله عنه يوازي دی د بل هيچا دا مذهب نه دی.

د اقامت د مودې په اړه د باب په شروع کي په تفصيل سره بيان سوی دی په دې خبره هم پوه سئ چي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی که يو سړی د سفر په حالت کي په يو ځای کي د پنځلس ورځو څخه زيات د پاته کېدو اراده وکړي نو د هغه لپاره قصر جائز نه دی بلکه هغه دي پوره لمونځ وکړي او که يو سړی پنځلس يا د پنځلسو ورځو څخه زيات د پاته کېدو اراده ولري نو قصر لمونځ دي وکړي مګر که چيري هغه د اقامت نيت وکړي او په نن سبا کي د هغه ځای څخه د روانېدو اراده لري او همداسي بېله قصده اراده د هغه د قيام په اړه تر کلونو پوري اوږده سي نو بيا هم هغه دي د قصر لمونځ وکړي، امام طحاوي رحمة الله عليه دا مسئله د جليل القدر صحابه کرامو مثلا حضرت ابن عمر رضي الله عنه وغيره څخه نقل کړې ده.

امام محمد رحمة الله عليه په خپل کتاب الاثار کي نقل کړي دي چي ابن عمر رضي الله عنه په اذربائجان کي شپږ مياشتي همداسي اوسېدی چي په نن سبا کي به يې د تلو اراده وه خو بېله قصده د هغه قيام دومره اوږد سو نو هغه به په دغه وخت کي قصر لمونځ کوی او صحابه کرام هم د هغه سره ملګري وه، همداسي حضرت انس رضي الله عنه هم د مروان د زوئ عبد المالک سره په شام کي تر دوو مياشتو پوري بېله ارادې اوسېدی او هلته به يې دوه دوه رکعته لمونځ کوی.

په دې مسئله کې د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دا دی که یو سړی په یو ځای کې پرته د دوو ورځو تلو راتلو ځخه د څلورو ورځو ځخه د زیات تلو راتلو اراده لري نو هغه مقیم کیږي د هغه لپاره قصر جائز نه دی هغه دې پوره لمونځ کوي همداسې د اقامت د نیت ځخه پرته په نن سبا کې د تلو راتلو په اراده کولو سره بېله قصده او ارادې تر اتلسو ورځو زیات و اوسېدی نو بیا هم د هغه لپاره قصر جائز نه دی بلکه هغه دې پوره لمونځ کوي، د امام شافعي رحمة الله علیه په فقه کې دا د باور وړ او صحیح قول دی.

## په سفر کې نفل کول

﴿۱۲۶۰﴾: وَعَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ قَالَ صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ فِيْ طَرِيْقِ مَكَّةَ فَصَلّٰى

د حفص بن عاصم رضي الله عنه ځخه روایت دی چې زه د مکې په سفر کې د ابن عمر رضي الله عنه ملګری وم

لَنَا الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ جَاءَ رَحْلَهُ وَجَلَسَ فَرَأَى نَاسًا قِيَامًا فَقَالَ مَا يَصْنَعُ

هغه د ماپښین لمونځ دوه رکعته وکړ، ددې وروسته ابن عمر رضي الله عنه خپل ځای ته راغلی او کښېنستی خلک یې ولاړ ولیدل نو پوښتنه یې وکړل دا خلک ځه کوي؟

هٰؤُلَاءِ؟ قُلْتُ يُسَبِّحُوْنَ. قَالَ لَوْ كُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِيْ صَحِبْتُ رَسُوْلَ

ما ورته وویل نفل کوي، ابن عمر رضي الله عنه وویل که ما نفل کولای نو خپل لمونځ به مې پوره کولای زه د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کې پاته سوی یم

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ لَا يَزِيْدُ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ وَأَبَا بَكْرٍ

مګر ما رسول الله ﷺ په سفر کې تر دوو رکعتو زیات پر لمانځه کولو نه دی لیدلی او ابوبکر،

وَّعُمَرَ وَعُثْمَانَ كَذٰلِكَ. متفق علیه

عمر رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه به هم په سفر کې همداسې کول. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۵۷۷، رقم: ۱۱۰۱، ومسلم ۱۱\۴۷۹، رقم: ۸- ۶۸۹.

**د لغاتو حل**: یسبحون: ای یصلون نفلا.

**تشریح**: ابن مالک رحمة الله علیه فرمایي چې دا حدیث د هغه خلکو لپاره دلیل دی کوم چې وایي د سفر په حالت کې نفل نه کیږي، سنت راتبه لمنځونه به انشاء الله تعالی په دوهم فصل

کي ذکر سي .

## په سفر کي دوه لمنځونه يو ځای کول

﴿۱۲۶۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ إِذَا كَانَ عَلٰى ظَهْرِ سَيْرٍ وَّيَجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ . رواه البخاري

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په سفر کي د ماپښين او مازديګر لمونځ يو ځای کوی اود ماښام او ماخستن لمونځ به يې يو ځای کوي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۵۷۹، رقم: ۱۱۰۷.

**تشريح** : شافعي حضرات د دغه حديث ښکاره مفهوم په خپل مستدل جوړولو سره دامسئله اخيستې ده چي د سفر په حالت کي جمع بين صلوتين يعني د ماپښين او مازديګر لمونځ په يو وخت کي يوځای کول جائز دی که د مازديګر لمونځ د ماپښين په وخت کي وکړي او که د ماپښين لمونځ د مازديګر په وخت کي، همداسي د ماښام او ماپښين لمنځونه هم يو ځای کول جائز دی که د ماښام په وخت کي د ماخستن لمونځ وکړي اوکه د ماخستن لمونځ د ماښام په وخت کي وکړي .

د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد جمع بين صلوتين جائز نه دی ځکه د هغه له خوا د دې حديث چي د شوافع د ټولو لوی مستدل دی يعني رسول الله ﷺ به د ماپښين او مازديګر لمونځ يوځای داسي کوی چي ماپښين به يې د هغه په اخري وخت کي کوی او مازديګر به يې د هغه بالکل په لومړني وخت کي اداء کوی، د ښکاره صورت د لحاظ څخه دا جمع بين صلوتين دی چي رسول الله ﷺ دواړه لمنځونه يو ځای وکړل مګر په حقيقت کي دواړه لمنځونه پر خپل خپل وخت کول کيږي همداسي د ماښام لمونځ به يې په څنډ سره بالکل په اخري وخت کي کوی او د ماخستن لمونځ به يې په لومړنی برخه کي اداء کوی .

## پر سپرلۍ باندي لمونځ کول

﴿۱۲۶۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ فِي السَّفَرِ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ بِهٖ يُوْمِئُ إِيْمَاءً صَلَاةَ اللَّيْلِ إِلَّا الْفَرَائِضَ وَيُوْتِرُ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د شپې پر خپل سپرلۍ لمونځ کوی د سپرلۍ مخ چي به هر لوري ته وود اشارې ځخه به يې کار اخيستی مگر فرض لمونځ به يې پر سپرلۍ نه کوی البته وتريې کول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۸۹، رقم: ۱۰۰۰، ومسلم ۱\۴۸۷، رقم: ۳۷- ۳۸\۷۰۰.

**تشريح**: د (حيث توجهت به) مطلب دادی چي کومي خوا ته به د سپرلۍ مخ وو هغه خوا به رسول الله ﷺ مخ کړ او لمونځ به يې کوی مگر د تکبير تحريمې په وخت کي به ده خپل مخ مبارک په هر صورت د قبلې خوا ته کوی ځرنگه چي د انس رضي الله عنه د راويت ځخه معلوميږي.

په اشارې سره د لمانځه کولو مطلب دادی چي رکوع او سجده به يې په اشاره سره کول او دا چي رسول الله ﷺ به سجده په اشاره سره کول هغه به د رکوع د اشارې ځخه کښته وه.

د دې حديث ځخه دوې مسئلې اخيستل کيږي: اول خودا چي پر سپرلۍ باندي نفل لمونځ کول جائز دی نه فرض لمنځونه، په دې حديث کي که ځه هم د شپې د لمانځه ذکر سوی دی مگر په نورو روايتو کي د عامو نفلو لمنځونو ذکر موجود دی نو په دې حکم کي سنت موکده او د دې ځخه پرته نور سنتونه او نفلونه هم گډ دي. مگر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه د يو بل روايت ځخه معلوميږي چي د سهار د سنتو لپاره د سپرلۍ ځخه کښته کېدل پکار دي مگر د يو بل روايت ځخه معلوميږي چي د سهار سنت د سپرلۍ ځخه په کښته کېدو سره کول واجب دی ځکه دا لمونځ بېله يو عذره په ناستي کول جائز نه دی فرض لمونځ پر سپرلۍ باندي کول جائز نه دی مگر د لاندنيو عذرونو په صورت کي فرض لمونځ پر سپرلۍ باندي کول هم جائز دی:

۱. کله چي يو سړی په ځنگل کي وي او د خپل مال يا ځان د هلاکت بېره غالبه وي مثلاً دا بېره وي که د سپرلۍ ځخه کښته سي او لمونځ پيل کړي نو غل به ده د مال او اسباب وتښتوي يا د يو حيوان د تاوان رسېدو بېره وي يا د قافلې ځخه د جلاکېدو بېره وي يا د لاري د ورکېدو بيره وي.

۲. سپرلۍ يو داسي سرکښ حيوان وي يا يو داسي شی وي چي د هغه ځخه په راکښته کېدو سره دوهم وار هغه ته ختل نا ممکن وي.

۳. لمونځ کونکی دومره ضعيف او سپين ږيری وي چي خپله نه خو د سپرلۍ ځخه کښته کېدای سي او نه سپرلۍ ته ختلای سي او داسي ځوک نه وي چي د سپرلۍ ځخه يې کښته کړي يا هغه ته يې وخېژوي.

۴. پر مځکه دومره ختي وي چي پر هغه لمونځ کول ممکن نه وي.
۵. د باران عذر وي.

په هر حال په دغه صورتونو کي فرض لمونځ هم پر سپرلۍ کولای سي ځکه چي عذرونه او ضرورتونه د شرعي قواعد او قوانينو څخه مستثنی دي، او کوم چي د رسول الله ﷺ د دغه عمل تعلق دی چي رسول الله ﷺ به وتر لمونځ هم پر سپرلۍ کوی نو د دې په باره کي امام طحاوي رحمة الله علیه فرمايي چي زموږ په نزد د دې يوه وجه دا کېدای سي چي رسول الله ﷺ به د وتر لمونځ د حکم د تاکيد په خاطر او د دې د ارزښت د احساس ورکولو لپاره پر سپرلۍ باندي وتر لمونځ کوی مگر کله چي د خلکو په ذهن کي ددغه لمانځه تاکيد او اهميت کښېنستی او د هغه وروسته رسول الله ﷺ د دې دومره تاکيد وفرمايه چي ددې پرېښودل يې روا ونه ګڼل نو وروسته رسول الله ﷺ وتر لمونځ هم د سپرلۍ څخه په کښته کېدو سره پر مځکه کوی او فرمايل به يې چي رسول الله ﷺ همداسي کول.

امام محمد رحمة الله علیه په خپل کتاب مؤطا کي د صحابه کرامو رضي الله تعالی عنهم اجمعين او د تابعينو رحمة الله عليهم ډېر اثار نقل کړي دي چي د هغو څخه ثابتيږي چي هغه حضراتو به د وتر لمونځ کولو لپاره د خپلو سپرليو څخه را کښته کېدل.

علامه شمني رحمة الله علیه فرمايي چي د فرض لمانځه په ډول د جنازې لمونځ، نذر لمونځ او هغه سجده تلاوت چي د هغه د آيت تلاوت پر مځکه سوی وي پر سپرلۍ باندي کول جائز نه دي.

د حديث څخه دو همه مسئله دا اخيستل کيږي چي پر سپرلۍ باندي لمونځ کول په سفر سره مشروط دی، د جمهور امامانو دا مذهب دی، د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه او امام ابويوسف رحمة الله علیه څخه هم په يوه روايت کي دا نقل دي مگر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه محقق او صحيح مذهب دادی چي پر سپرلۍ باندي د لمانځه جواز د لمونځ کونکي لپاره د ښار څخه په دباندي کېدو سره مشروط دی که څه هم مسافر وي يا مسافر نه وي، که يو مسافر په ښار کي دننه وي نو د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه په نزد د هغه لپاره پر سپرلۍ باندي نفل لمونځ کول جائز نه دی، مگر د امام محمد رحمة الله علیه په نزد جائز دی که څه هم د هغه په نزد مکروه دی، امام ابويوسف رحمة الله علیه فرمايي که مسافر په ښار کي دننه پر سپرلۍ نفل لمونځ وکړي نو څه پرواه نه لري اوس د دې وروسته په دې کي اختلاف دی چي د ښار څخه د څومره فاصلې په صورت کي پر سپرلۍ باندي لمونځ کول جائز دی د ځينو حضراتو په نزد کم تر کمه شپږ ميله د ښار څخه د باندي کېدل ضروري دي د ځينو حضراتو په نزد

درې فرسخه او د ځینو حضراتو په نزد یو قوس تعین کړی دی، صحیح داده چې د ښار او ابادۍ د ځایونو څخه په وتلو سره نفل لمونځ کول پر سپرلۍ جائز دي لکه څرنګه چې د قصر د لمانځه په باره کې قاعده ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د رسول الله ﷺ قصر نه کول

﴿۱۲۶۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُلّ ذٰلِكَ قَدْ فَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَصَرَ الصَّلَاةَ وَأَتَمَّ . رواه في شرح السنة .

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ پوره لمونځ هم کړی دی او قصر (دوه رکعته) یې هم کړی دی. شرح السنة

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۶۶\۴، رقم: ۱۰۲۳.

**تشريح**: د دې مطلب دادی چې رسول الله ﷺ به د سفر په حالت کې په دواړو طریقو باندې عمل کوی یعني څلور رکعته لمونځ به یې هم کوی او دوه رکعته به یې هم کول، د امام شافعي رحمة الله علیه عمل پر دغه حدیث دی هغه فرمایي چې په سفر کې قصر لمونځ کول هم جائز دی او پوره لمونځ کول هم جائز دی، د اما اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد په سفر کې پوره لمونځ کول جائز نه دی که یو سړی قصر لمونځ ونه کړی بلکه پوره لمونځ وکړي نو ګناه کار به سي.

دا حدیث که څه هم د امام شافعي رحمة الله علیه دلیل دی مګر د اهل نظر وینا ده چې د دې حدیث په اړه په یوه روایت کې د ابراهیم بن یحیی نوم هم راغلی چې د هغه په وجه دا حدیث ضعیف ګرځول کیږي د دې وجه داده چې صاحب سفر السعادة فرمایي چې دا حدیث د صحت مرتبې ته نه دی رسېدلی او د سفر په حالت کې د رسول الله ﷺ څخه پوره لمونځ کول ثابت نه دي، دارقطني، بیقهي او داسي نورو چې کوم روایت نقل کړی دی چې د هغه څخه د سفر په حالت کې دا ویل کېدای سي که دا روایت هم صحیح ومنل سي نو د دې تعلق به د اول حکم سره وي یعني په شروع کې خو اتمام او قصر دواړه جائز وه مګر وروسته قصر ضروري وګرځول سو، دلته د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه چې کوم روایت نقل سوی دی د هغه یوه معنی دا هم

کېدای سي چي د حدیث د اولي برخي اړه د هغه لمنځو سره ده چي په هغه کي قصر کېږي مثلا ځلور رکعتیز لمونځ، او د دويمي برخي اړه د هغه لمنځو سره ده چي په هغه کي قصر نه کېږي لکه درې رکعتیز یا دوه رکعتیز لمونځ یعني رسول الله ﷺ خو به ځلور رکعته او دوه رکعته لمونځ پوره کوی، دا مفهوم په مراد اخیستو سره د ښکاره معنی او مفهوم څخه زیات لیري والی نه راځي ځکه چي قصر او اتمام دواړه پر خپل خپل ځای مفهوم کېږي او دا توجیه ډېره مناسبه او حقیقت ته نژدې ده.

## د پنځلس ورځو څخه زيات قيام

﴿۱۲۶۴﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره په جهاد کي وم،

وَشَهِدْتُ مَعَهُ الْفَتْحَ فَأَقَامَ بِمَكَّةَ ثَمَانِيَ عَشَرَ لَيْلَةً لاَ يُصَلِّيْ إِلاَّ رَكْعَتَيْنِ

رسول الله ﷺ په مکه کي اتلس شپې پاته وو او په دغه وخت کي يې فرض لمنځونه دوه دوه رکعته کول

يَقُوْلُ يَا أَهْلَ الْبَلَدِ صَلُّوْا أَرْبَعًا فَإِنَّا سَفَرٌ . رواه أبو داود .

او د ښار خلکو ته يې فرمايل: تاسو ځلور رکعته کوئ ځکه چي موږ مسافر يو . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۳- ۲۴، رقم: ۱۲۲۹.

**تشريح**: مخکي ښودل سوي دي چي په يو ځای کي ښېله قصده او ارادې تر پنځلسو ورځو زيات د قيام په صورت کي قصر لمونځ کېدای سي، د مکې د فتح په وخت کي د رسول الله ﷺ قيام اتلس شپې وو، رسول الله ﷺ په نن سبا کي د هغه ځای څخه راوتېدونکی وو مگر قيام يې بيله قصده او ارادې دومره اوږد سو، نو رسول الله ﷺ قصر لمونځ کوی د مکې د قيام په وخت کي به رسول الله ﷺ دوه رکعته په پوره کولو سره د سلام گرځولو وروسته فرمايل چي ښاروالا دي ځلور رکعته لمونځ پوره کړي زه مسافر یم ځکه دوه رکعته کوم، نو د مسافر امام لپاره د مقيم مقتديانو همدا سي خبرول مستحب دي.

د دې حديث څخه معلومه سوه که چيري مقيم د مسافر اقتداء وکړي نو د هغه لپاره ځلور رکعته لمونځ پوره کول ضروري دي د امام په متابعت کي دوه رکعته کول جائز نه دی هو که

مسافر د مقيم اقتداء وكړي نو هغه ته د امام د متابعت له كبله څلور ركعته كول پكار دي .

**قصر يوازي په څلور ركعتيز لمانځه كي**

﴿۱۲۶۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دى چي ما په سفر كي د رسول الله ﷺ سره د ماپښين دوه ركعته وكړل

فِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وفي رواية قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى

او د هغه وروسته دوه ركعت سنت، او په يو بل روايت كي دا الفاظ دي چي ما د رسول الله ﷺ سره لمونځ كړى دى

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا

په سفر او حضر كي په حضر كي مي د رسول الله ﷺ سره ماپښين څلور ركعته كول

وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ

او دوه سنت او په سفر كي دماپښين دوه ركعته وكړل او وروسته دوه سنت

وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا وَالْمَغْرِبَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ سَوَاءً

او په مازديگر كي دوه ركعته او د هغه وروسته مو هيڅ لمونځ نه دى كړى ، او د ماښام لمونځ مو په سفر او حضر دواړو كي

ثَلاَثَ رَكَعَاتٍ لاَ يَنْقُصُ فِي حَضَرٍ وَلاَ فِي سَفَرٍ وَّ هِيَ وِتْرُ النَّهَارِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ . رواه الترمذي

درې ركعته كړى دى او دماښام په لمانځه كي مو څه كمي نه ده كړې نه په سفر كي او نه په حضر كي (د حضر څخه مراد ښار دى) لكه د ماښام لمونځ چي د ورځي وتر دي او د ماښام څخه وروسته مو دوه ركعته سنت وكړل . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\ ۴۳۷، رقم: ۵۵۲.

**تشريح** : د دې حديث څخه دا خبره په وضاحت سره معلومه سوه چې د سفر په حالت کې قصر يوازې په څلور رکعتيز لمنځو کې جائز دی لکه د ماپښين، مازديګر او ماخستن لمونځ، او په درې رکعتيز او دوه رکعتيز لمنځو کې لکه د ماښام او سهار نو په هغو کې قصر جائز نه دی دا لمنځونه چې څرنګه په کور کې کيږي همداسې په سفر کې کول هم پکار دي په هغو کې قصر کول جائز نه دی .

( وهي وتر النهار): ددې مطلب دادی چې څرنګه وتر لمونځ د شپې وتر دی همداسې د ماښام لمونځ د ورځې وتر دی ګويا د دې قول څخه د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه د قول تائيد کيږي چې وتر لمونځ په يوه سلام سره درې رکعته دی .

ابن ملک رحمة الله عليه فرمايلي دي چې دا حديث پر دې خبرې دلالت کوي چې سنت موکده د حضر په ډول په سفر کې هم کول پکار دي مګر د حنفيه په نزد دلته معتمد او صحيح قول دادی چې کله مسافر په يوه ځای کې تم سي نو هلته دې سنت وکړي مګر په لاره کې دې يې پرېږدي نه دې يې کوي .

## دوه لمونځونه يو ځای کول

﴿۱۲۶۶﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به د تبوک د غزا په ورځو کې

تَبُوْكَ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَّرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَإِنِ

کله چې به زوال وسو نو د سفر کولو څخه تر مخه به يې د ماپښين او مازديګر لمونځ يو ځای کوی او که به

ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيْغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ حَتّٰى يَنْزِلَ لِلْعَصْرِ وَفِي الْمَغْرِبِ

د زوال څخه تر مخه سفر وسو نو په ماپښين کې به يې ځنډ کوی او د مازديګر په وخت کې به راکښته سو او د ماپښين او مازديګر دواړه لمنځونه به يې يو ځای کول، او په ماښام کې به يې

مِثْلَ ذٰلِكَ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَّرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ

هم داسې کول يعني که د لمر لوېدو څخه وروسته به سفر سو نو د ماښام او ماخستن لمونځ به يې يو ځای کوی

وَإِنِ ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَغِيْبَ الشَّمْسُ آخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتّٰى يَنْزِلَ لِلْعِشَاءِ ثُمَّ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا. رواه أبو داود والترمذي

او كه د لمر لوېدو مخكې به سفر سو نو په ماښام كي به يې ځنډ كوى او د ماخستن په وخت كي به راكښته سو بيا به يې دواړه لمنځونه يو ځاى كول. ابوداؤد، ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۱۸، رقم: ۱۲۲۰، والترمذي ۲\۴۳۷، رقم: ۵۵۳.

**تشريح**: د دغه حديث څخه د شوافع حضراتو د جمع بين الصلوتين په اړه جمع تقديم او جمع تاخير ثابت كړى دى د دې بيان مخكې جائز دى او هغه دواړه لمنځونه په يو وخت كي هم كېداى سي، د حنفيه په نزد جمع بين الصلوتين جائز نه دى ځكه هغوى په دې اړه د ابوداؤد رحمة الله عليه قول نقل كړى دى چي د وخت څخه مخكې د لمانځه كولو په اړه هيڅ قوي حديث نه دى ثابت. لكه د ابوداؤد دغه قول چي د دې حديث پر ضعيف كېدو باندې دليل دى بيا دا چي د حنفيه دليل د بخاري او مسلم هغه روايت دى چي حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نقل كړى دى چي ما رسول الله ﷺ پر هيڅ يو لمونځ كولو په ټاكلي وخت كي نه دى ليدلى نو د دې دواړو حديثونو د ټكر په صورت كي د ابن مسعود رضي الله عنه په باره كي دا حديث به راجح وي ځكه چي دا د ابن مسعود رضي الله عنه په باره كي دى د دې څخه هيڅوك انكار نسي كولاى چي هغه د خپل تفقه، علم او د حديث د روايت په اړه په احتياط كي تر ټولو زيات ممتاز دى او ښكاره خبره ده چي د هغه روايت سوى حديث تر ټولو زيات صحيح او د باور وړ وي.

## پر سپرلۍ باندې لمونځ

﴿۱۲۶۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا سَافَرَ وَأَرَادَ أَنْ يَتَطَوَّعَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ بِنَاقَتِهِ فَكَبَّرَ ثُمَّ صَلّٰى حَيْثُ وَجَّهَهُ رِكَابُهُ. رواه أبو داود.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي كله به رسول الله ﷺ په سفر كي د نفل لمونځ كولو اراده كول نو اوښه به يې د قبلې په لور كړه تكبير به يې وايه بيا چي به اوښه پر كوم لور تله نو هغه لوري ته به يې لمونځ كوى. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۱، رقم: ۱۲۲۵.

**تشريح**: د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په پورتني صورت كي قبلې ته مخ كول شرط دى

مګر د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد په فرض لمانځه کي شرط نه دی یعني کوم عذرونه چي د دغه باب په اتم نمبر حدیث کي ذکر سوه د هغه په وجه که پر سپرلۍ باندي فرض لمونځ وکړل سي نو مخ پر قبله کېدو سره تکبیر تحریمه ویل ضروري دي.

﴿۱۲۶۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ حَاجَةٍ فَجِئْتُ وَهُوَ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَيَجْعَلُ السُّجُوْدُ أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوْعِ. رواه أبو داود

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زه په یو کار پسي ولیږلم کله چي زه راغلم نو وه مي لیدل چي رسول الله ﷺ پر سپرلۍ لمونځ کوی او د سپرلۍ مخ د ختیځ پر لور وو او رسول الله ﷺ تر رکوع سجده زیاته کښته کول. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۲، رقم: ۱۲۲۷.

**تشریح**: د حدیث د اخري الفاظو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به رکوع او سجده دواړه په اشارې سره کول د سجدې لپاره به زیات او د رکوع لپاره به کم کښته کېدی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د حضرت عثمان رضي الله عنه په منی کي قصر نه کول

﴿۱۲۶۹﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى رَكْعَتَيْنِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په منی کي دوه رکعته لمونځ وکړ

وَأَبُوْ بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ رَكْعَتَيْنِ صَدْرًا مِنْ خِلَافَتِهِ ثُمَّ اِنَّ عُثْمَانَ صَلّٰى

د رسول الله ﷺ وروسته ابو بکر رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه د خپل خلافت په پیل کي دوه رکعته وکړل بیا حضرت عثمان رضي الله عنه

بَعْدُ اَرْبَعًا فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا صَلّٰى مَعَ الْاِمَامِ صَلّٰى اَرْبَعًا وَاِذَا صَلَّاهَا وَحْدَهُ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ. متفق علیه

څلور رکعته کول پیل کړل او ابن عمر چي به د امام سره لمونځ کوی نو څلور رکعته به یې کول او کله چي به یې یوازي کوی نو دوه رکعته یې کول. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۶۳، رقم: ۱۰۸۲، ومسلم ۱\۴۸۲، رقم: ۱۶- ۶۹۴.

**تشریح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ او د خلافت په زمانه کي حضرت ابوبکر او عمر فاروق رضي الله تعالی عنهما د حج کولو په وخت په منی کي قصر لمونځ کړی دی او په دې ترتیب سره حضرت عثمان غني رضی اللہ عنہ د خپل خلافت په شروع کي دوه رکعته لمونځ کړی دی او بیا یې څلور رکعته.

د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د دې عمل په باره کي خو څو سببه نقل کيږي علماء ليکي چي د دې وجه یا خو داده چي هغه په مکه کي متاهل وو د دې تائید د امام احمد رحمة الله علیه د روایت څخه کيږي چي حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په منی کي څلور رکعته وکړل نو خلکو حیرانتیا اظهار وکړ هغه وفرمایل خلکو زه په مکه کي متاهل یعني قبیله داره یم او ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي کوم سړی په یو ښار کي قبیله داره واده وکړي د کور او بچیانو خاوند سي نو هغه دي د مقیم په ډول لمونځ کوي، د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ پر دې عمل د خلکو حیرانېدل د دې خبري دلیل دی چي رسول الله ﷺ به په سفر کي پوره لمونځ نه کوی او دا چي د سفر په حالت کي قصر لازم دی کنه نو خلکو به د حیرت اظهار نه کوی.

د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ یوه دوهمه توجیه داهم کېدای سي چي د حج په وخت کي ډېر زیات مسلمانان په منی کي جمع کېدل او په هغوی کي داسي خلک هم وه چي نوي مسلمانان سوي وه او د دین په پوره احکامو سره نه پوهېدل ځکه حضرت عثمان رضی اللہ عنہ هغوی ته د ښودلو لپاره څلور رکعته کول چي ناخبره مسلمانان پوه سي چي د لمانځه څلور رکعته دي که چیري قصر یې کړی وای نو هغه خلکو به دا ګڼلای چي دوه رکعته لمونځ فرض دي.

بیا دا هم ویل کېدای سي چي په اخر کي د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ عمل د بي بي عائشې رضي الله تعالی عنها په نزد په سفر کي قصر او پوره لمونځ دواړه جائز وو.

**قصر د رخصت څخه زیات عزیمت دی.**

﴿۱۲۷۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ فُرِضَتِ الصَّلٰوةُ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ هَاجَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

د حضرت عائشې رضی اللہ عنہا څخه روایت دی چي په پیل کي دوه رکعته لمونځ فرض سوی وو بیا چي رسول الله ﷺ هجرت وکړ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفُرِضَتْ اَرْبَعًا وَتُرِكَتْ صَلٰوةُ السَّفَرِ عَلَى الْفَرِيْضَةِ

نو ځلور رکعته لمونځ فرض سو او د سفر لمونځ هم هغه دوه رکعته وو ،

الْأُوْلٰى قَالَ الزُّهْرِيُّ فَقُلْتُ لِعُرْوَةَ مَا بَالُ عَائِشَةَ تُتِمُّ قَالَ تَأَوَّلَتْ كَمَا تَأَوَّلَ عُثْمَانُ. متفق عليه

زهري وايي ما عروه ته وويل چي د بي بي عائشې څه حال دی چي هغه په سفر کي هم پوره لمونځ کوي ؟ هغه وويل چي هغه هم د عثمان رضی الله عنه په ډول قصر او پوره دواړه جائز ګڼي .بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) ۱\ ۴٦۴، رقم: ۳۵۰، ومسلم ۱\ ۴۷۸، رقم: ۱- ٦۸۵.

**تشريح** : مطلب دادی چي په شروع کي لمونځ دوه دوه رکعته فرض سوی وو مګر وروسته د ماپښين ، مازديګر او ماخستن ځلور رکعته فرض سول البته د ماښام لمونځ پر اول حکم قائم پاته سو د دې څخه معلومه سوه چي د سفر په حالت کي ځلور رکعته د شروع کېدو وروسته رخصت نسته مګر په اصل کي مشروع دی دوه رکعته دي ځکه قصر عزيمت يعني لازم دي نه چي رخصت چي د هغه مطلب دا سو چي د چا زړه غواړي قصر دي وکړي او که دچا زړه غواړي نو پوره لمونځ دي وکړي، د دې څخه د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د مذهب تائيد کيږي که يو څوک د سفر په حالت کي کله چي پر هغه قصر لازم وي پوره ځلور رکعته وکړي او په اوله قعده کي کښيني نو هغه به بد وکړي او د هغه زائد دوه رکعته به نفل سي او که يو سړی ځلور رکعته داسي وکړي چي په اوله قعده کي کښيني چي حکما هغه اخري قعده ده نو د هغه فرض لمونځ به باطل سي .

د حديث اخري الفاظ ( تاولت کما تاول عثمان ) مطلب دادی چي څرنګه حضرت عثمان رضی الله عنه د سفر په حالت کي ځلور رکعته لمونځ کوی او د خپل دغه عمل تاويل يې کوی او س سوال دا دی چي د حضرت عثمان رضی الله عنه او د هغوی په ډول د بي بي عائشې رضي الله عنها تاويل څه وو .

علماء ليکي چي د دې تاويل په باره کي صحيح قول دا ښودل سوی دی چي حضرت عثمان رضی الله عنه او بي بي عائشې رضی الله عنها دواړو به د سفر په حالت کي قصر او پوره لمونځ دواړه جائز ګڼل .

**قصر د الله جل جلاله حکم دی**

﴿۱۲٧۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فَرَضَ اللّٰهُ الصَّلَاةَ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ صلى الله عليه وسلم فِي الْحَضَرِ أَرْبَعًا وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً . رواه مسلم

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي الله جل جلاله ستاسو د نبي پر ژبه لمونځ فرض کړی دی په حضر کي څلور رکعته او په سفر کي دوه رکعته او د بيري په حالت کي يو رکعت . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم ۱\ ۴۷۹، رقم: ۶- ۶۸۷.

**تشريح** : ( وفي السفر ركعتين) دا د حنفيه د مذهب ښکاره دليل دی چي د سفر په حالت کي دي دوه رکعته وکړي پوره لمونځ دي نه کوي، (وفي الخوف ركعة) يعني د بيري په حالت کي يو رکعت فرض دی د دې پر ښکاره مفهوم باندي په علماء سلف کي يو ډلي عمل کړی دی چي په هغه کي حسن بصري رحمة الله عليه او اسحاق رحمة الله عليه هم دي، مګر جمهور علماء فرمايي چي د لمانځه د رکعتونو په اعتبار د امن او خوف په لمانځه کي هيڅ فرق نسته، څومره رکعتونه چي د امن په حالت کي کيږي هغومره رکعتونه د خوف په حالت کي هم کول پکار دي د هغه لخوا د دې حديث تاويل داسي کيږي چي د دې څخه مراد دادی چي د حقيقي يا حکمي امام سره د کولو په اړه دا طريقه دي اختيار کړل سي او يو رکعت دي يوازي وکړل سي څرنګه چي د خوف په حالت کي رسول الله ﷺ او صحابه رضي الله عنهم څخه د دې لمانځه کولو طريقه د حديثو څخه ثابته ده او په ښار کي مطلقا د خوف په حالت کي څلور رکعته او درې رکعته دي داسي وکړل سي چي د امام سره دي دوه رکعته وکړي او پاته دي يوازي وکړي د دې تفصيل به د صلوة الخوف په باب کي انشاء الله تعالى راسي.

## قصر د قرآن او سنت څخه ثابت دی

﴿۱۲۷۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالاَ سَنَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلاَةَ السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ وَالْوِتْرُ فِي السَّفَرِ سُنَّةٌ . رواه ابن ماجه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په سفر کي دوه رکعته ټاکلي دي او دا دوه رکعته (په ثواب کي) پوره دي ناقص نه دی او وتر کول په سفر کي سنت دی . ابن ماجه .

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۱\ ۳۷۷، رقم: ۱۱۹۴.

**تشريح** : د سفر په حالت کي قصر لمونځ کول خو د قرآن کريم څخه ثابت دی او د حديث الفاظ رسول الله ﷺ د خپل قول او فعل څخه ښکاره کړي دي .

( وهما تمام غير قصر) يعني هغه ناقص نه دی پوره دی، د دې مطلب دادی چي د سفر د لمانځه

لپاره مشروع دوه ركعتونه دي نه دا چي مخكي څلور ركعته مشروع وه بيا وروسته دوه ركعته كم كړل سوي دي او وتر لمونځ په سفر كي سنت دى يعني په سفر كي وتر لمونځ كول د سنت څخه ثابت دي يا دا چي د سفر په حالت كي وتر لمونځ كول د اسلام د سنتو څخه يو سنت دى دا مفهوم به د وجوب وتر خلاف نه وي ځكه چي وتر لمونځ څرنگه چي په حضر كي واجب دى همداسي په سفر كي هم واجب دى.

## د قصر اندازه

﴿۱۲۷۳﴾: وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ كَانَ يَقْصُرُ فِي الصَّلَاةِ فِيْ مِثْلِ مَا

د حضرت مالك رحمه الله څخه روايت دى چي هغه ته دا څرگنده سوې ده چي ابن عباس رضي الله عنه په اندازه د هغه مسافت چي

يَكُوْنُ بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ وَفِيْ مِثْلِ مَا يَكُوْنُ بَيْنَ مَكَّةَ وَعُسْفَانَ وَفِيْ مِثْلِ مَا

د مكې او طائف په منځ كي دى په سفر كي قصر كولو او همداسي په اندازه ددې مسافت په سفر كي چي مكه او عسفان

بَيْنَ مَكَّةَ وَجَدَّةَ قَالَ مَالِكٌ وَذٰلِكَ أَرْبَعَةُ بُرُدٍ. رواه في الموطأ.

او د مكې او جدې په منځ كي دى. مالك وايي دا مسافت (۳۶) كوس برابر دى. مؤطا.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱۴۸/۱، رقم: ۱۵.

**تشريح**: څلور بريده د شپاړس فرسخو برابر دى يو فرسخ درې ميله دى او يو ميل د محدثينو په نزد د څلور زره لاسه مسافت ته وايي همداسي څلور بريده اته څلوېښت ميله فاصله سوه كه يو منزل دوولس ميله مسافت ومنل سي نو څلور بريده څلور منزلونه سوه.

په ښكاره د دې حديث څخه دا معلوميږي چي په حديث كي د كومو درو مسافتو ذكر سوى دى هغه يو ډول دي يعني څومره مسافت چي د مكې او طايف په مينځ كي وي هغومره مسافت د مكې او عسفان په مينځ كي وي همداسي څومره مسافت چي د دې دواړو بېل بېل وي هغومره مسافت د مكې او جده په مينځ كي وي حال دا چي په حقيقت كي دا درې سره مسافت برابر نه دي كه دا وويل سي نو زيات مناسب به وي چي د امام مالك رحمة الله عليه د قول اخري مسافت يعني د مكې او جدې په مينځ كي مسافت دى چي د مكې او جدې منځنى فاصله څلور

بریده ده.

د ابن عباس رضی الله عنه د پورتني فعل په باره کي علماء ليکي چي په قرآن او حديث کي د قصر د مسافت يو حد نه دی بيان سوي مګر مطلقا سفر ذکر سوی دی د قصر لمانځه په اړه پر احاديث باندي په نظر اچولو سره دا خبره ښکاره کيږي چي چيري هم د قصر د لمانځه ذکر سوی دی او د رسول الله ﷺ قصر لمونځ کول بيان سوی دی د هغه ټولو ځايونو په مسافت کي فرق دی د ځينو مسافت کم دی او د ځينو مسافت زيات دی، د رسول الله ﷺ وروسته صحابه رضي الله تعالى عنهم، تابعين رحمة الله عليهم، امامان او د علماؤ امت د اساني لپاره د خپل خپل اجتهاد په ذريعه او د غور او فکر سره د قصر مسافت حد ټاکلی دی چي د دې حد څخه په کم مسافت کي قصر نه کيږي بلکه پوره لمونځ به کوي او د دې مسافت يا تر دې زيات مسافت په صورت کي قصر واجب کيږي.

امام شافعي رحمة الله عليه د يوه روايت مطابق د يوې ورځي مسافت او د دوهم روايت مطابق د دوو ورځو مسافت مقرر کړی دی مګر د هغوی د مذهب کتاب حاوي کي د شپاړسو فرسه تعين سوی دی او دا مذهب د امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه دی، امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه د قصر د مسافت په اړه درې منزله حد ټاکلی دی او يو منزل پر دومره مسافت باندي وي چي په کوچنيو ورځو کي قافله د سهار په روانېدو سره د غرمې وروسته منزل ته ورسيږي، امام ابويوسف رحمة الله عليه د دوو ورځو او د دريمي ورځي د زياتي برخي مسافت د قصر مسافت ګرځولی دی.

اصحاب ظوهار هغه جماعت چي يوازي د حديث پر ښکاره الفاظو باندي عمل کوي د مطلقا سفر اعتبار کړی دی يعني د هغوی په نزد د قصر د مسافت څه حد مقرر نه دی که سفر اوږد وي که کوچنی په هر حالت کي قصر لمونځ ادا کيږي په دې اړه د څلور کوچني امامانو مذهب ته که وکتل سي نو معلوميږي چي د حقيقت او نتيجې په اعتبار د ټولو يو ډول مذهب دی ځکه چي د حنفيه په نزد د مشهور مذهب مطابق قصر اته څلوېښت ميله دی، د حاوي د قول مطابق د شوافعو حضراتو په نزد شپاړلس فرسخه مقرر دي، او د شپاړسو فرسخو اعتبار د اته څلوېښتو ميلو برابر دی همداسي د امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه هم دا مذهب دی نو د څلورو سره په مذهب کي د قصر مسافت اته څلوېښت ميله سو. والله اعلم

## په سفر کي د لمانځه بيان

﴿۱۲۷۴﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ

د حضرت براء ﷛ څخه روايت دی چي زه اتلس ورځي د رسول الله ﷺ سره

عَشَرَ سَفَرًا فَمَا رَأَيْتُهُ تَرَكَ رَكْعَتَيْنِ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ . رواه أبو داود والترمذي وقال هذا حديث غريب .

په سفر کي ملګری وم ما نه دي ليدلي چي د زوال کېدو سره د ماپښين مخکي رسول الله ﷺ دوه رکعته ترک (پرې ايښي) کړي وي. ابوداؤد. ترمذي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن ابي داد: ۱\۱۹۱، رقم: ۱۲۲۲، والترمذي ۲\۴۳۵، رقم: ۵۵۰.

**تشريح**: په ښکاره خو دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د لمر لوېدو وروسته او د ماخستن د لمانځه څخه مخکي دوه رکعته د فرض مخکي سنت کول او د سفر په وجه به يې پر څلورو رکعتو باندي اکتفاء کړې وي يا دا هم کېدای سي چي دا دواړه رکعتونه د تحية الوضوء دي.

﴿۱۲۷۵﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ إِنَّ عَبْدَ اللهِ بْنِ عُمَرَ كَانَ يَرٰى ابْنَهُ عُبَيْدَ اللهِ يَتَنَفَّلُ فِي السَّفَرِ فَلَا يُنْكِرُ عَلَيْهِ . رواه مالك .

د حضرت نافع ﷛ څخه روايت دی چي عبدالله بن عمر ﷛ به خپل زوی په سفر کي پر نفلو کولو ليدلی او هغه به يې نه منعه کوی. مالک

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۱۵۰، رقم: ۲۴.

**تشريح**: کېدای سي چي عبيدالله سنت موکده کول يا دا چي هغه د دې اعتقاد سربېر چي د سفر په حالت کي نفل لمونځ پرېښودل جائز دی که په وخت کي يې وسعت وليدلی نو نور نوافل به يې کول نو د دې مفهوم په صورت کي د ابن عمر ﷛ په باره کي هغه روايت چي په هغه کي ذکر دي چي هغه د خپل قافلې خلک د سفر په حالت کي د نفل لمونځ کولو څخه منعه کړې وه، شپېتم نمبر حديث وګوره پر دغه خبره به محمول کړل سي، چي هلته هغه خلک ځکه منعه کړي وه چي هغوی به نور نوافل په تنګ وخت کي کول يا دا چي په وخت کي خو وسعت وو مګر هغوی به دا ګمان کړی وي چي وظائف مثلا نوافل وغيره دومره لازم دي چي هغه د سفر په حالت

كي هم پرې نه ښودل سي حال دا چي داسي څه حكم نسته ځكه ابن عمر رضي الله عنه هغوى نفل لمونځ كولو سره هغوى د دې ګمان او خيال ترديد وكړ ځكه چي الله تعالى خو په خپل فضل او كرم سره د مسافر بنده په اعمال نامه كي د هغه عمل ثواب هم ليكي چي هغه به د عبادت په توګه د حضر يعني په خپل كور كي كوى او كوم چي د نفل لمانځه تعلق دى د دې څخه بهتر كوم مصروفيت كېداى سي او بېله څه وجهي د دې د كولو څخه پې څوک منعه كولاى سي كله چي ابن عمر رضي الله عنه خپله پوهېدى چي د لمانځه څخه منعه كول ښه خبره نه ده ، د الله تعالى ارشاد دى :

اَرَاَيْتَ الَّذِيْ يَنْهٰى عَبْدًا اِذَا صَلّٰى

ايا تا هغه (سړى) ليدلى دى چي منعه كوي يو بنده چي كله هغه لمونځ كوى.

=========

# بَابُ الْجُمُعَةِ

## د جمعې د لمانځه بيان

لفظ د (جمعه) چي د اونۍ د يوې ورځي نوم دى د فصيح ژبي او د لغت په اعتبار د جيم او ميم دواړو په پېښ سره دى مګر د جيم پېش او د ميم په سكون سره هم مستعمل سوى دى .

دې ورځي ته جمعه ځكه ويل سوې ده چي په دغه ورځ د حضرت ادم عليه السلام تخليق، جمع سوى او پوره سوى وو ، ځيني حضرات وايي دې ورځي ته د جمعې د نامه وركولو وجه داده چي حضرت ادم عليه السلام د جنت څخه دنيا ته راواستول سو نو په دغه ورځ هغه د بي بي حوا سره يو ځاى سو د دې څخه پرته علماؤ نوري وجهي هم بيان كړي دي د ځينو حضراتو قول دى چي په دغه ورځ ټول خلک د الله تعالى د عبادت او لمانځه لپاره را ټولېږي ځكه نو دغه ورځي ته جمعه وايي .

جمعه اسلامي نوم دى د جاهليت په زمانه كي به دې ورځي ته عروبه ويل كېده مګر د ځينو علماؤ تحقيق دادى چي عروبه ډېر قديم نوم وو خو د جاهليت په زمانه كي دا نوم بدل كړل سو او دې ورځي ته جمعه ويل پيل سول .

د جمعې ورځ به د رسول الله صلى الله عليه وسلم د پيغمبرى څخه مخكي د جاهليت په زمانه كي هم د يو خاص شرف او فضيلت ورځ منل كېدل مګر اسلام دا ورځ د دې حقيقي عظمت او فضيلت له كبله ډېره باعظمته او بزرګۍ ورځي په حيث وګرځول .

په تېرو صفحو کي دا خبره بيان سوې ده چي الله تعالى ته د لمانځه څخه زيات بل هيڅ عبادت هم نه دی خوښ دا وجه ده چي پر بندګانو باندي د الله تعالى له خوا چي د کومو نعمتونو باران کيږي او د هغه تعلق د انسان د پيدائش څخه تر مرګ پوري دی مګر د پيدائش مخکي او د مرګ وروسته هم انسان د الله تعالى د نعمتونو سره نازول کيږي د هغه شکر د اداء کولو لپاره په هره ورځ کي پنځه وخته لمونځ وټاکل سو او د جمعې په ورځ تر ټولو ورځو زيات نعمتونه پر بندګانو نازليږي ځکه په دې ورځ د يو خاص لمانځه کولو حکم ورکړل سوی دی او دا هم ښکاره کړل سوې ده چي په جماعت کي څومره زيات کثرت وي او مسلمانان په څومره زيات شمېر کي د لمانځه لپاره را جمع کيږي هغومره د هغه فائدې زياتي وي او دا هغه وخت ممکن ده کله چي د سيمو مسلمانان او د هغه ځايو اکثر خلک په يو ځای کي په را جمع کېدو سره لمونځ وکړي هره ورځ پنځه وخته دومره اجتماع د خلکو د پرېشانۍ او تکليف له کبله ممکن نه وه ځکه شريعت په اونۍ کي يوه ورځ داسي وټاکل چي په هغه کي د بېلو سيمو او کليو مسلمانان په خپلو کي را يو ځای سي او دا عبادت وکړي او د جمعې ورځ په ټولو ورځو کي افضله او اشرفه ده نو دا تخصيص د دې ورځي لپاره وسو.

مخکني امتونو ته هم الله تعالى د دې ورځي د عبادت حکم ورکړی وو خو هغوی د خپل سرکښۍ او بد نصيبۍ په وجه اختلاف وکړ نو د هغوی د سرکښۍ نتيجه دا سوه چي هغوی د دغه عظيم نعمت څخه محروم پاته سوه او دا فضيلت او سعادت هم د دې امت په محرومه برخه کي راغلی، يهوديانو د شنبې ورځ وټاکل په دې خيال چي په دغه ورځ الله تعالى د ټولو مخلوقاتو د پيدا کولو څخه فارغ سوی وو، عيسائيانو د يکشنبې ورځ وټاکل په دې خيال چي دا ورځ د پيدا کولو د شروع ورځ ده تر اوسه پوري دا دواړي ډلي په دغه ورځو کي د عبادت ډېره پابندي کوي خپل ټول کاروبار په پرېښودو سره په دغه ورځ کليسا او عبادت خانو ته خامخا ځي، په عيسايي حکومتونو کي د يکشنبې په ورځ په دې سبب ټول دفترونه او تعليمي ښوونځي رخصت وي، د ځينو په نامه مسلمانو حکومتونو دا بدنصيبي ده چي هغوی هم د عيسايي حکومتونو دا مذهبي طرز عمل بدل نه کړای سو او په خپلو هيوادونو کي يې د جمعې پر ځای د يکشنبې ورځ اختيار کړه.

د جمعي لمونځ فرض عين دی، د قرآن کريم، حديثونو او اجماع امت څخه ثابته ده او د اسلام د سترو شعارو څخه دی د جمعې د لمانځه انکار کونکی کافر او بېله عذره پرېښودونکی فاسق دی د جمعې د لمانځه په اړه د الله تعالى ارشاد دی:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ

ژباړه : اې مؤمنانو ! کله چي د جمعې د لمانځه لپاره اذان وسي نو تاسو د الله تعالی ذکر ته راځغلئ او رانيول پلورل پرېږدئ دا ستاسو لپاره غوره ده که تاسو پوهيږئ .

په دغه آيت کريمه کي د الله تعالی د ذکر څخه مراد د جمعې لمونځ او خطبه ده، د اورېدلو څخه مراد د دغه لمانځه لپاره په ډېره پابندي سره تلل دي، د جمعې د لمانځه فرضيت رسول الله ﷺ ته په مکه شريفه کي معلوم سو مګر د کفر د غلبې په وجه د هغه د اداء کولو موقع تر لاسه نه سوه د هجرت وروسته په مدينه منوره کي په تشريف راوړلو سره رسول الله ﷺ د جمعې مبارکي لمونځ پيل کړ .

په مدينه منوره کي د رسول الله ﷺ د تشريف راوړلو مخکي حضرت اسعد ابن زراره رضی الله عنه په خپل اجتهاد او کشف صادق سره د جمعې مبارکي لمونځ شروع کړی وو . ( علم الفقه )

د جمعې مبارکي د لمانځه په باره کي څو خبري وړاندي سوي دي په راروانو بابو کي به په مناسبه موقع د جمعې د لمانځه د احکامو او مسائلو او د هغه د فضايلو بيان وکړل سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د جمعې د فضيلت څخه مخ اړول

﴿۱۲۷۶﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : موږ

الْآخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بَيْدَ اَنَّهُمْ اُوْتُوْا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا وَاُوْتِيْنَاهُ

په دنيا کي آخر راتلونکي يو او موږ به په قيامت کي مخته کيدونکي يو که څه هم اهل کتاب ته زموږ تر مخه کتاب ورکړل سوی دی او موږ ته

مِنْ بَعْدِهِمْ ثُمَّ هٰذَا الْيَوْمُ الَّذِيْ فُرِضَ عَلَيْهِمْ يَعْنِي الْجُمُعَةَ فَاخْتَلَفُوْا فِيْهِ

وروسته راکړل سوی دی بيا دا ورځ ( د جمعې ورځ ) هغه ورځ وه چي په هغوی ( اهل کتابو . ) باندي فرض سوې وه هغوی په دې کي اختلاف وکړ

فَهَدَانَا اللّٰهُ لَهُ فَالنَّاسُ لَنَا فِيهِ تَبَعٌ اَلْيَهُودُ غَدًا وَالنَّصَارٰى بَعْدَ غَدٍ. وَفِيْ

او موږ ته په دې اړه الله ﷻ لارښوونه وکړه او س نور خلک د جمعې په اړه زموږ تابع دي يهود و د جمعې وروسته ورځ (يعني شنبه) غوره کړل او نصاراوو د شنبې وروسته ورځ (يکشنبه) غوره کړل. بخاري او مسلم،

رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ نَحْنُ اَوَّلُ مَنْ

د مسلم په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: موږ دنيا ته د راتلو په اعتبار آخري يو او په قيامت کې به اول يو

يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بَيْدَ اَنَّهُمْ وَ ذَكَرَهُ نَحْوَهُ اِلٰى آخِرِهِ وَ فِيْ اُخْرٰى لَهُ عَنْهُ وَ عَنْ

او په جنت کې به هم تر ټولو اول موږ داخليږو ، بيا اهل کتاب. ددې وروسته مخکني الفاظ دي، په يوه روايت کې ابو هريرة

حُذَيْفَةَ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اٰخِرِ الْحَدِيْثِ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ

او حذيفة څخه نقل دي چې هغوی وويل: رسول الله ﷺ وفرمايل: (د ذکر سوي حديث په پای کې) موږ د دنيا والاوو په اعتبار اخري يو

مِنْ اَهْلِ الدُّنْيَا وَالْاَوَّلُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمَقْضِيُّ لَهُمْ قَبْلَ الْخَلَائِقِ.

او د قيامت په ورځ به اول يو د ټولو مخلوقاتو څخه لومړی به زموږ لپاره حکم وسي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۳۵۴، رقم: ۸۷۶، ومسلم ۲\۵۸۵، رقم: ۱۹- ۸۵۵.

**تشريح**: د حديث الفاظ (موږ ته وروسته کتاب راکړل سوی دی) د دې مطلب دادی چې که څه هم پر تېرو امتونو د الله تعالی کتاب مخکې نازل سوی دی او بيا تر ټولو وروسته زموږ امت په قرآن کريم سره نازول سوی دی خو په حقيقت کې دا شيان زموږ د امت لپاره د ټولو امتونو په مقابله کې د شرف او فضيلت دليل دی ځکه چې اصولي خبره ده چې کوم کتاب وروسته راځي هغه مخکې کتاب منسوخ کوي او ښکاره ده چې کوم کتاب مخکې کتاب منسوخ کړي هغه د خپل عظمت او فضيلت په اعتبار پر ټولو کتابونو حاوي وي د دې څخه معلومه سوه چې د رسول الله ﷺ قول (نحن الآخرون) هم د امت محمدي د فضيلت او عظمت د بيان لپاره دی.

د ( فاختلفوا فیه) په وضاحت او تشریح کي د حدیث د شارحینو اختلاف دی چي د الله تعالی له خوا پر یهودو او نصاری باندي د جمعې ورځ د فرض کولو څخه څه مراد دی او دا چي اهل کتابو په دې کي څه اختلاف وکړ .

ځینو علماؤ لیکلي دي چي ددې څخه مراد دادی چي الله تعالی څرنګه پر مسلمانانو باندي جمعه فرض کړې ده بعینه همداسي پر اهل کتابو باندي هم د جمعې د ورځي عبادت کول فرض کړي وو او هغوی ته یې دا حکم ورکړی وو چي هغوی دي د الله تعالی د عبادت لپاره په خپلو کي جمع کیږي څرنګه چي د حدیث د الفاظو څخه مفهوم کیږي خو هغوی د خپل عادت مطابق په دې معامله کي د الله تعالی د حکم څخه مخ واړوی او خپله سرکښي یې څرګنده کړه ګویا همداسي د الله تعالی له خوا دا د اهل کتاب د اجتهاد او فکر او امتحان چي ایا هغوی ته حق او صحیح خبره د دریافت کولو او په هغه د خبرېدو صلاحیت لري که نه، مګر یهودیانو د شنبې ورځ وټاکل او وه یې ویل چي دا ورځ د اللهﷻ په عبادت کي په اجتماعیت سره د مصروف کېدو ورځ ده او د دې ورځي تر ټولو زیات فضیلت دی ځکه چي په دې ورځ الله تعالی د ټولو مخلوقاتو د پیدا کولو څخه فارغ سوی وو نو موږ ته هم پکار ده چي موږ په دغه ورځ د دنیا د کاروبار څخه د فراغت حاصلولو لپاره په عبادت کي مصروف سو .

نصاری د یکشنبې ورځ وټاکل هغوی دا ورځ په دې توګه تر ټولو ورځو زیاته افضله او بابرکته وګڼل چي په دې ورځ د مخلوقاتو د پیدائش ابتداء سوې ده دوی فکر وکړ چي دا ورځ د کمالاتو او انعاماتو مبداء ده چي په دې کي حق تعالی پر خپل مخلوق باندي خپل فیض او په خپلو نعمتونو سره متوجه سو نو د دې مقصد لپاره چي د الله تعالی عبادت او بندګي ډېره زیاته وکړل سي او بندګانو ته د دنیا د مصروفیاتو څخه په مخ اړولو سره د خپل پیدا کونکی او خپل پالونکي په بندګي کي اخته سي دا ورځ تر ټولو زیاته مناسب او غوره وګڼل مګر یهود او نصاری دواړه په خپل اجتهاد اورایه کي ناکامه سول د دوی په طبیعت او مزاج کي د سرکښی ماده زیاته وه د سعادت او خیر د نور څخه د هغوی زړونه په پوره توګه مستفید نه وه ځکه د دوی اصل مقصود او اصل روح چي د الله تعالی په علم کي وو و نه پېژندل سو مګر د خپلو دلیلونو په مرسته اخیستو سره نوري ورځي یې وټاکلې .

د دې پر خلاف الله تعالی امت محمدیه په هدایت سره ونازوی اوپه خپل فضل او کرم سره یې د اصلي ورځي یعني د جمعې د معروفیت توفیق یې موږ ته راکړ، کله چي الله تعالی د دغه آیت :یا ایها الذین آمنوا اذا نودي للصلواة من یوم الجمعة فاسعوا الی ذکر الله) په ذریعه

مسلمانانو ته حکم ورکړ چي په جمعه کي د الله تعالى عبادت کوئ نو په دې سره هغوى ته يې د دې حکم پر ځاى راوړلو توفيق هم ورکړ او دا امت يې په دې مرحله هم د سرکښۍ او خود ساخته دليلونو په ذريعه ګمراه نه کړ نو مسلمانانو د الله تعالى د دغه حکم منلو لپاره غاړه کښېښودل او د رښتوني او فرمانبردار امت په کېدو سره د جمعې ورځ يې د الله تعالى د عبادت او بندګي لپاره اختيار کړل.

خلک زموږ تابع دي د دې مطلب دادى چي د جمعې ورځ د حضرت ادم عليه السلام د پيدا کېدو په وجه د انساني نسل لپاره مبداء او د انساني ژوند د ټولو اوله ورځ ده ځکه په دې ورځ عبادت کونکى د عبادت په اعتبار متبوع او د دې وروسته دوې ورځي يعني شنبه او يکشبنه د عبادت کونکو تابع سول.

په دې وجه حديث پر دې دلالت کوي چي شرعا او اصولا د جمعې ورځ د اونۍ اوله ورځ ده مګر تعجب دى چي عرف عام د دې پر خلاف دى.

## د جمعې فضيلت

﴿۱۲۷۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ يَوْمٍ

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تر ټولو غوره ورځ

طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ فِيهِ خُلِقَ آدَمُ وَفِيهِ أُدْخِلَ الْجَنَّةَ وَفِيهِ

د هغه ورځو څخه چي لمر پکښې راخيژي جمعه ده، په دې ورځ حضرت آدم ﷺ پيدا سوى دى او په دې ورځ جنت ته داخل سوى دى او په دې ورځ

أُخْرِجَ مِنْهَا وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ إِلَّا فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ. رواه مسلم

د جنت څخه را ايستل سوى دى او قيامت به هم د جمعې په ورځ وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۸۵، رقم: ۱۷- ۸۵۴.

**تشريح**: د حديث د اولي جملې په ذريعه د مبالغې په توګه د جمعې د ورځي د فضيلت ښکاره کول مقصود دي د دې مطلب دادى چي په ټولو ورځو کي تر ټولو افضله ورځ جمعه ده ځکه چي داسي هيڅ ورځ نسته چي په هغه کي لمر نه راخيژي د حضرت ادم عليه السلام د پيدائښ ورځ د کېدو په وجه د جمعې د ورځي فضيلت ښکاره دى. مګر جنت ته د تلو په وجه د جمعې فضيلت

ځکه دی چي په اصل کي حضرت ادم علیه السلام د جنت څخه په وتلو سره مځکي ته راتلل د انبیاؤ او اولیاؤ د پیدائښ سبب او هغوی د مقدس ژوند څخه د بې حسابه حسنات د ظهور باعث سوه همداسي د حضرت ادم علیه السلام مرگ د الله تعالی په دربار کي د هغوی د حاضری باعث سو همداسي قیامت قائمېدل په جنت کي د داخلېدو سبب دی چي په هغه کي به پرهېزگار او د نیکانو لپاره د الله تعالی کړي وعدې څرگنده کېږي.

د قیامت قائمېدو څخه مراد یا خو اوله شپېلۍ وهل دي چي د هغه په اواز سره به مځکه او اسمان فناء سي او ټوله دنیا به د مرگ غېږ ته ورسیږي یا دوهمه شپېلۍ مراد اخستل کېږي چي د ټول مخلوق دوهم وار ژوندي کېدل او د هغوی د احکم الحاکمین په دربار کي د حساب کتاب لپاره یو ځای کېدل مراد دي.

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چي ځیني حضرات وایي په ټولو ورځو کي د عرفات ورځ افضله ده او د ځینو وینا ده چي د جمعې ورځ افضله ده څرنگه چي د حدیث د مفهوم څخه ښکاره کېږي مگر دا اختلاف او تضاد په هغه صورت کي دی کله چي مطلقا دا وویل سي چي په ورځو کي افضله ورځ د عرفات ورځ ده یا داسي ویل کېدای سي چي د جمعې ورځ تر ټولو افضله ورځ ده او که د دواړو اقوالو مفهوم داسي واخستل سي چي کوم حضرات د عرفات د فضیلت قائل دی د هغوی مراد دا دی چي په کال کي تر ټولو افضله ورځ عرفه ده او کوم حضرات چي وایي جمعه تر ټولو افضله ورځ ده د هغوی مراد دا دی چي د اونۍ په ورځو کي تر ټولو افضله ورځ جمعه ده.

همداسي نه یوازي دا چي په دواړو اقوالو کي د تطبیق او تاویل ضرورت نه پاته کېږي بلکه دواړه اقوال پر خپل خپل ځای صحیح او د اعتبار وړ دي هو که چیري په حسن اتفاق سره عرفه یعني د ذي الحجې نهم تاریخ د جمعې په ورځ سي نو نور علی نور چي دا ورځ به مطلقا په ټولو ورځو کي تر ټولو زیاته افضله وي او په دې ورځ نېک عمل به په ټولو اعمالو کي افضل وي دا وجه ده که په خوشبختۍ سره حج (د عرفات ورځ) د جمعې په ورځ واقع سي نو هغه ته حج اکبر وایي ځکه چي کوم حج د جمعې په ورځ وي هغه د فضیلت او مرتبې په اعتبار علاوه په نورو ورځو کي پر ادا کېدونکو او یا پر حجونو باندي درونه وي.

د جمعې د فضیلت او عظمت اندازه د ابن مسیب رحمة الله علیه د دغه قول څخه معلومېږي چي د الله تعالی په نزد جمعه د نفل حج څخه زیاته محبوبه ده.

په جامع صغیر کي ابن عباس رضي الله عنه دا روایت مرفوعا نقل کړی چي جمعه د مسکینانو حج دی.

## په جمعه کي د قبلېدو ساعت

﴿۱۲۷۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْجُمُعَةِ لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللهَ فِيْهَا خَيْرًا إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ.

د جمعې په ورځ کي يو داسي ساعت دی که په هغه کي يو مسلمان د نيکۍ دعاء وغواړي نو الله جل جلاله به هغه ورکړي. بخاري او مسلم،

وَزَادَ مُسْلِمٌ وَهِيَ سَاعَةٌ خَفِيْفَةٌ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لَهُمَا قَالَ إِنَّ فِي الْجُمُعَةِ لَسَاعَةً

د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چي هغه ساعت ډير لږ دی، او د بخاري او مسلم په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي د جمعې په ورځ کي يو ساعت دی

لَا يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ قَائِمٌ يُصَلِّيْ يَسْأَلُ اللهَ خَيْرًا إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ.

که مسلمان هغه ترلاسه کړي او دلمانځه کولو وروسته په هغه کي د الله څخه د خير دعاء وغواړي نو خير ورکول کيږي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۱۵، رقم: ۹۲۵ ومسلم ۲\۵۸۴، رقم: ۱۵- ۸۵۲.

**تشريح**: د جمعې په ورځ يو خاص ساعت دی چي په هغه کي د بنده له خوا پروردګار ته هر پيښېدونکي خواست قبليږي خو هغه ساعت معين او ښکاره نه دی بلکه پټ دی دا نه دي ښودل سوي چي هغه ساعت کله راځي او د هغه د پټ ساتلو حکمت دادی چي خلک د هغه ساعت په اميد کي پوره ورځ په عبادت او دعا تيره کړي.

علامه جزري رحمة الله عليه فرمايي چي د قبوليت کوم ساعات چي نقل دي په هغه ټولو کي د جمعې د ورځي ساعت په قبوليت کي د دعا قبلېدو اميد ډېر زيات دی.

د (اعطاء اياه) مطلب يا خو دا دی چي بنده په هغه مقبول حالت کي دعاء کوي نو الله تعالى د هغه دعا سمدستي قبلوي په دې توګه چي د هغه مقصد په دنيا کي پوره کوي يا د دعا د قبوليت دا صورت وي چي حق تعالى د يو حکمت او د بنده د بهتري لپاره په دنيا کي خو د هغه د دعا څخه اجر نه ښکاره کوي مګر د هغه لپاره د اخرت ذخيره کوي او هلته به د هغه ثواب

ورکول کيږي .د ( قائم يصلی) معنی داده چي لمونځ په پابندي سره کوي يا دا معنی چي پر دعا باندي همېشتوب کوي يا دا معنی ده چي د لمانځه انتظار کوي دا تاويلات ځکه سوي دي چي په ټولو روايتونو کي مطابقت راسي .

## د قبلېدو ساعت کوم وي

﴿۱۲۷۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ

حضرت ابوبردة بن ابوموسی وايي چي ما د خپل پلار څخه اوريدلي دي چي (هغه وايي) ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ شَأْنِ سَاعَةِ الْجُمُعَةِ هِيَ مَا بَيْنَ أَنْ يَّجْلِسَ

چي د جمعې د ساعت په اړه يې فرمايل چي پر منبر د امام د ناستي څخه

الْإِمَامُ إِلٰى أَنْ تُقْضَى الصَّلَاةُ . رواه مسلم .

د لمانځه تر پايه پوري چي کوم وخت دی په هغه کي دا ساعت دی. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۵۸۴، رقم: ۱۶- ۸۵۳.

**تشريح**: د جمعې په ورځ د دعا د قبوليت ساعت نقل دی او د هغه په حقيقت کي هيڅ چا ته شک او شبهه نسته مګر د علماؤ په نزد په دې خبري کي اختلاف دی چي هغه ساعت کوم يو دی يعني هغه ساعت کوم وخت دی چي په هغه کي د قبوليت ساعت راځي د ځيني علماؤ تحقيق خو دادی چي د شب قدر ساعت د قبوليت او د اسم اعظم په ډول د جمعې د ورځي د قبوليت ساعت هم مبهم يعني غير معلوم دی د ځيني حضراتو رايه داده چي هغه ساعت په هره جمعه کي بدلېږي کله د جمعې د ورځي په لومړنۍ برخه کي راځي، کله د جمعې په درمياني برخه کي او کله په اخري برخه کي وي، مګر د اکثرو علماؤ وينا داده چي هغه ساعت متعين او معلوم دی مګر په دې کي هم اختلاف دی چي کوم ساعت دی او هغه کوم وخت دی چي په هغه کي دا عظيم او مقدس ساعت پټ دی په دې باره کي پنځه دېرش اقوال نقل دی :

۱. د جمعې په ورځ د سهار د لمانځه لپاره د مؤذن د اذان کولو وخت .

۲. د لمر ختلو څخه تر لمر لوېدو پوري وخت .

۳. د مازديګر څخه تر لمر لوېدو پوري وخت .

۴. د خطبې وروسته د امام د منبر څخه د راكښته كېدو سمدستي وروسته ساعت .
۵. د لمر راختلو څخه سمدستي وروسته ساعت .
٦. د لمر ختلو وخت .
۷. يوه لحظه د پاته ورځې آخري ساعت .
۸. د زوال شروع كېدو څخه تر نيم لاس سايې راتلو پوري وخت .
۹. د زوال شروع كېدو څخه تر يوه لاس سايې راتلو پوري وخت .
۱۰. يوه لوېشت د لمر زوال كېدو وروسته يو لاس د لمر د زوال كېدو پوري وخت .
۱۱. عين د زوال پر وخت .
۱۲. د جمعې د لمانځه لپاره چي موذن اذان وكړي هغه وخت .
۱۳. د زوال شروع كېدو څخه د جمعې په لمانځه كي د شاملېدو وخت .
۱۴. د زوال په شروع كېدو سره د امام د جمعې د لمانځه څخه تر فارغه كېدو پوري.
۱۵. د لمر د زوال څخه تر لمر لوېدو پوري وخت .
١٦. د خبطې لپاره د امام پر منبر باندي ختلو څخه د جمعې د لمانځه تر شروع كېدو پوري وخت .
۱۷. د امام د جمعې د لمانځه څخه تر فارغه كېدو پوري وخت .
۱۸. د خطبې لپاره د امام پر منبر باندي ختلو او د لمانځه د اداء كولو په مينځ كي .
۱۹. د اذان څخه تر لمانځه ادا كولو پوري درمياني وخت .
۲۰. د امام پر منبر باندي په ناسته سره د لمونځ تر پوره كولو پوري وخت .
۲۱. د رانيولو او خرڅولو حرام كېدو او د هغه د حلال كېدو درمياني وخت يعني د اذان د وخت څخه د جمعې د لمانځه تر ختمېدو پوري وخت .
۲۲. اذان ته نژدې وخت .
۲۳. د امام خطبه شروع كولو او د خطبې تر ختمېدو پوري وخت .
۲۴. د خطبې لپاره د امام پر منبر باندي د ختلو او د خطبې د شروع كېدو درمياني وخت .
۲۵. د دواړو خطبو په مينځ كي د امام د ناستي وخت .
٢٦. د خطبې څخه د فراغت وروسته د امام د منبر څخه د را كښته كېد وخت .
۲۷. د لمانځه لپاره تكبير د شروع كېدو څخه د امام پر مصلى باندي تر درېدو پوري وخت .
۲۸. د تكبير شروع كېدو څخه د لمانځه تر ختمېدو پوري وخت .
۲۹. د جمعې د لمانځه څخه د فراغت سمدستي وروسته وخت .

۳۰. د مازدیګر د لمانځه څخه تر لمر لوېدو پورې وخت.
۳۱. د مازدیګر د لمانځه درمیاني وخت.
۳۲. د مازدیګر د لمانځه وروسته یعني د لمر کښته کېدو مخکې د لمانځه د اخري مستحب وخته پورې وخت.
۳۳. مطلقا د مازدیګر وروسته وخت.
۳۴. د مازدیګر دلمانځه وروسته اخري ساعت.
۳۵. هغه وخت کله چې لمر لوېږي.

ویل کیږي چې حضرت علي کرم الله وجهه به بي بي فاطمي رضي الله عنها ته او ټولو اهل بیتو ته خپل خادمان تاکل چې د هغوی د هرې جمعې په ورځ د اخري ګړې خیال وساتي او هغه وخت ټولو ته یاد کړي چې هغوی په هغه ګړې کې د الله تعالی په عبادت او دعا کې مصروف سي دلته چې کوم حدیثونه نقل سوي دي د دې متعلق بلقیني رحمة الله علیه څخه پوښتنه وسوه چې د خطبې په وخت دعا څرنګه غوښتل پکار ده ځکه چې دا حکم دی چې کله امام خطبه وایي هغه وخت پټه خوله کېدل پکار دي.

ددې په جواب کې هغه وفرمایل چې د دعا لپاره تلفظ شرط نه دی مګر د خپل مقصود او مطلوب په زړه کې خیال ساتل کافي دی یعني د دعا لپاره دا ضروري نه ده چې د دعا الفاظ په ژبه سره اداء کړل سي مګر دا هم کافي ده چې په زړه کې دې دعا وغوښتل سي همدا سي مقصود به هم حاصل سي او د خطبې پر وخت د پټه خوله کېدو شرعي حکم به هم خلاف نه وي، حضرت امام شافعي رحمة الله علیه ویلي دي: دا خبره ماته معلومه سوې ده چې د جمعې په شپه هم غوښتل سوې دعاء قبلیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جمعې فضیلت او د قبلېدو ساعت

﴿۱۲۸۰﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجْتُ إِلَى الطُّوْرِ فَلَقِيْتُ كَعْبَ الْأَحْبَارِ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې زه د طور غره ته ولاړم او د کعب احبار سره مې ولیدل

فَجَلَسْتُ مَعَهُ فَحَدَّثَنِيْ عَنِ التَّوْرَاةِ وَحَدَّثْتُهُ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

زه د هغه سره کنبېنستم هغه زما په وړاندي د تورات لږ بيان وکړی او ما د رسول الله ﷺ حديث هغه ته بيان کړل

وَسَلَّمَ فَكَانَ فِيمَا حَدَّثْتُهُ أَنْ قُلْتُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ

کوم حديثونه چي ما بيان کړل په هغو کي يو دا هم وو چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي غوره

يَوْمٍ طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ فِيْهِ خُلِقَ آدَمُ وَفِيْهِ أُهْبِطَ وَفِيْهِ تِيْبَ

په هغه ورځو کي چي لمر پکښي راخيژي د جمعې ورځ ده په دې ورځ کي آدم ﷺ پيدا سوی دی په دې ورځ هغه د جنت څخه را ايستل سوی دی په دې ورځ د هغه توبه قبوله سوه

عَلَيْهِ وَفِيْهِ مَاتَ وَفِيْهِ تَقُوْمُ السَّاعَةُ وَمَا مِنْ دَابَّةٍ إِلاَّ وَهِيَ مُصِيْخَةٌ يَوْمَ

په دې ورځ هغه وفات سو او په دې ورځ به قيامت وي او هيڅ يو حيوان داسي نسته چي غوږونه يې منتظر کړي نه وي

الْجُمُعَةِ مِنْ حِيْنَ تُصْبِحُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ شَفَقًا مِّنَ السَّاعَةِ إِلاَّ الْجِنَّ

د جمعې د سهار څخه تر لمر ختلو پوري له جهته د بيري د قيامت څخه مگر پيريانان

وَالْإِنْسُ وَفِيْهَا سَاعَةٌ لاَّ يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُّسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّيْ يَسْأَلُ اللهُ شَيْئًا

او انسان د دې څخه غافل کړل سوي دي او د جمعې په ورځ کي يو ساعت دی که يو مسلمان هغه تر لاسه کړي او په هغه کي د لمانځه وروسته دعاء وغواړي

إِلاَّ أَعْطَاهُ إِيَّاهُ. قَالَ كَعْبٌ ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ. فَقُلْتُ بَلْ فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ فَقَرَأَ

نو الله تعالی به يې غوښتنه پوره کړي (د دې په اوريدو سره کعب احبار وويل) دا ورځ په کال کي يوه ورځ ده ما وويل بلکه دا ساعت په هره جمعه کي وي د دې په اوريدو سره

كَعْبُ التَّوْرَاةَ فَقَالَ صَدَقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ

کعب تورات وو ايه او وه يې فرمايل: رسول الله ﷺ رښتيا فرمايلي دي، ابو هريرة ﷺ وايي

لَقِيْتُ عَبْدَاللهِ بْنِ سَلاَمٍ فَحَدَّثْتُهُ بِمَجْلِسِيْ مَعَ كَعْبٍ وَمَا حَدَّثْتُهُ فِيْ يَوْمِ

د دې وروسته ما د عبدالله بن سلام سره ليدنه وکړه او کعب احبار سره چې کومې خبرې سوې وې

الْجُمُعَةِ فَقُلْتُ لَهُ قَالَ كَعْبٌ ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ ؟ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ سَلاَمٍ

د هغې يادونه کولو سره مې ورته وويل د کعب احبار بيان دی چې دا ورځ په کال کې يوه ورځ راځي عبدالله بن سلام د دې په اوريدو سره وويل

كَذَبَ كَعْبٌ فَقُلْتُ لَهُ ثُمَّ قَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ . فَقَالَ بَلْ هِيَ فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ .

کعب دروغ وايي بيا ما وويل کعب د دې وروسته تورات ووايه او وه يې ويل چې هغه ساعت په هره جمعه کې دی

فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ سَلاَمٍ صَدَقَ كَعْبٌ ثُمَّ قَالَ عَبْدُاللهِ بْنِ سَلاَمٍ قَدْ عَلِمْتُ

عبدالله بن سلام وويل کعب رښتيا وويل ، د دې وروسته عبدالله بن سلام وويل زه د دې ساعت څخه خبر يم ،

أَيَّةَ سَاعَةٍ هِيَ . قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ لَهُ فَأَخْبِرْنِيْ بِهَا وَلاَتَضِنَّ عَلَيَّ فَقَالَ

ابوهريرة وويل ما ته يې راوښيه او بخل مه کوه ، عبدالله بن سلام وويل

عَبْدُاللهِ بْنِ سَلاَمٍ هِيَ آخِرُ سَاعَةٍ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ

هغه د جمعې د ورځې آخري ساعت دی ، ابوهريرة د دې په اوريدو سره وويل د جمعې په ورځ

وَكَيْفَ تَكُوْنُ آخِرُ سَاعَةٍ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

آخري ساعت څنګه کيدلای سي هر کله چې رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي چې

وَسَلَّمَ لاَ يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَقَالَ عَبْدُاللهِ بْنُ سَلاَمٍ أَلَمْ

کوم مسلمان بنده چې دا ساعت تر لاسه کړي او په هغه کې لمونځ کوي او د هغه وخت چې ته يادونه کوې په هغه کې خو لمونځ نه کيږي، عبدالله بن سلام وويل : ايا

يَقُلْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَنْتَظِرُ الصَّلاَةَ فَهُوَ

رسول الله ﷺ دا نه دي فرمايلي څوک چي د لمانځه په انتظار کي پر خپل ځای ناست وي هغه لکه چي په لمانځه کي دی

فِيْ صَلَاةٍ حَتّٰى يُصَلِّيْ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ بَلٰى قَالَ فَهُوَ ذَالِكَ . رواه مالك وأبو داود والترمذي والنسائي وروى أحمد إلى قوله صدق كعب .

تر څو چي هغه لمونځ وکړي، ابوهريرة وايي د دې په جواب کي ما وويل :هو، رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي ، دلمانځه څخه مراد دادی چي هغه د لمانځه انتظار کوي، مالک، ابوداؤد، ترمذي، نسائي، احمد يوازي د کعب تر قوله پوري بيان کړی دی .

**تخريج**: الامام مالک في موطاه ۱\ ۱۰۸- ۱۱۰، رقم: ۱۶. والامام احمد ۲\ ۴۸۶ وابوداؤد ۱\ ۶۳۴- ۶۳۵، رقم: ۱۰۴۶ والترمذي ۲\ ۳۶۲، رقم: ۴۹۱ والنسائي: ۳\ ۱۱۴- ۱۱۵، رقم: ۱۴۲۹.

**د لغاتو حل**: (مُصيخة): منتظرة لقيام الساعة. (په انتظار کي).

**تشريح** : د حديث الفاظ (حين تصبح حتى تطلع الشمس) مطلب دادی چي قيامت به د جمعې په ورځ د لمر ختلو څخه تر لمر لوېدو پوري په درمياني برخه کي قائميږي ځکه حيوانان د هري جمعې په ورځ په دغه وخت کي د قيامت د قائمېدو منتظر وي په دې ټول وخت کي کله چي حيوان د قيامت خيال لري او بيريږي نو انسانانو ته په طريقه اولی دا پکار ده چي هغوی د جمعې ټوله ورځ د الله تعالی په عبادت او د هغه په ذکر کي تېره کړي او هغه شی چي راتلونکی دی (يعني د قيامت څخه) وبيريږي .

دا حديث د رسول الله ﷺ د معجزې څرګندونه کوي چي د امي کېدو سربېره د هغه عظيم الشان شي خبر يې ورکړ چي په يهوديانو کي د تورات د يو لوی عالم څخه هم پټ وو حال دا چي په تورات کي د دې خبري ذکر موجود دی ګويا د تورات عالم خو په تورات کي د ذکر سوي شي څخه بې خبره وو او رسول الله ﷺ چي امي وو په پوره توګه سره باخبر وو په حقيقت کي دا يو ستره معجزه وه چي رسول الله ﷺ په ښکاره خو امي وو مګر الله تعالی د هغه په سينه مبارکه کي د علوم معرفت بحر موجزن کړی وو .

کعب احبار په يهودو کي يو لوی عالم او دانشمند منل کېدی هغه د رسول الله ﷺ زمانه خو ترلاسه کړې وه مګر د رسول الله ﷺ په خدمت کي نه وو حاضر سوی وروسته د حضرت عمر فاروق ﷺ د خلافت په زمانه کي د اسلام په نعمت مشرف سو حضرت عبد الله ابن سلام ﷺ هم

د هغو يهوديانو يو د پر لوی عالم وو چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي يې اسلام راوړلو سره د صحابيت په عظيم شرف باندي مشرف سوی وو .

﴿۱۲۸۱﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلْتَمِسُوا السَّاعَةَ الَّتِي تُرْجَى فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَى غَيْبُوبَةِ الشَّمْسِ . رواه الترمذي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه ساعت ولټوئ په کوم کي چي د دعاء قبلېدو اميد دی د جمعې په ورځ د مازديګر څخه وروسته تر لمر لوېدو پوري . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۳۶۰، رقم: ۴۸۹.

## د جمعې فضيلتونه

﴿۱۲۸۲﴾: وَعَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت اوس بن اوس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِيْهِ خُلِقَ آدَمُ وَفِيْهِ قُبِضَ وَفِيْهِ النَّفْخَةُ

ستاسو په ورځو کي غوره ورځ د جمعې ورځ ده د جمعې په ورځ آدم عليه السلام پيدا سو د جمعې په ورځ د هغهٔ روح قبض کړل سوه او د جمعې په ورځ به شپېلۍ وهل کېږي

وَفِيْهِ الصَّعْقَةُ فَأَكْثِرُوْا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيْهِ فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوْضَةٌ عَلَيَّ

او د جمعې په ورځ به صعقه (د مرګ شپېلۍ) وي نو په دې ورځ پر ما ډېر درود وايا ست ځکه چي ستاسو درود به ما ته وړاندي کېږي ،

فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ ؟ قَالَ يَقُوْلُوْنَ

صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! درود تاسو ته څنګه وړاندي کېږي حال دا چي ستاسو هډوکي به زاړه سوي وي ،

بَلِيْتَ قَالَ إِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ . رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه والدارمي والبيهقي في الدعوات الكبير .

رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى پر مځکه د انبياؤو بدنونه حرام کړي دي . ابوداؤد، نسائي .

**تخريج:** سنن ابي داؤد ١\ ٦٣٥، رقم: ١٠٤٧، والنسائي ٣\ ٩١- ٩٢، رقم: ١٣٧٣، وابن ماجه ١\ ٥٢٤، رقم: ١٦٣٦، والدارمي ١\ ٤٤٥، رقم: ١٥٧٢.

**تشريح** : دا ارشاد : ( ان من افضل ايامكم يوم الجمعة ) دې ته اشاره کوي چي يا خو د عرفه ورځ تر ټولو ورځو افضله ورځ ده يا عرفه او جمعه په فضيلت کي سره برابر دي د جمعې په ورځ د ډېر زيات درود ويلو لپاره رسول الله ﷺ ځکه حکم ورکړی وو چي درود شريف د افضلو عبادتو څخه دی او د جمعې په ورځ دي د هري نيکۍ او ثواب لپاره اويا درجې زيات حاصليږي ځکه د جمعې په ورځ درود ويل اولی دي په دې خبري پوهېدل پکار دي چي د جمعې په ورځ او د جمعې په شپه کي پر رسول الله ﷺ باندي د درود ويلو وخت ډېر زيات فضائل په نورو حديثونو کي هم ثابت دي ځکه د مسلمانانو لپاره دا د حق تعالى لخوا يو عظيم الشان نعمت دی . نو د جمعې په ورځ او د جمعې په شپه پر رسول الله ﷺ ډېر زيات درود ويل پکار دی او د دې څخه غافل کېدل نه دي پکار .

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي څرنګه مځکه د نورو مړو سره معامله کوي چي د څو ورځو وروسته د هغوی بدن د مځکي نذر سي او خراب سي، مګر داسي معامله د انبياء عليهم السلام د بدنونو سره نه کيږي نه خو د هغوی جسمونه فناء کيږي نه خرابيږي مګر هغوی په قبرونو کي د دنيا په ډول ژوندي وي او د الله تعالى له خوا هغوی ته هلته حيات جسماني حقيقي ورکول کيږي دا مسئله بالکل صفا او څرګنده ده او په دې کي د هيڅ ډول اختلاف ځای نسته چي انبياء عليهم السلام په خپلو خپلو قبرونو کي ژوندي دي او د دنيا په ډول حقيقي او جسماني حيات ورته حاصل دی نه چي حيات معنوي نه علاوه نور مړي هم په خپلو قبرونو کي سلام کلام اوري او په ځينو ورځو کي د هغوی د خپلو کورنی اعمال هم د هغوی په مخکي وړاندي کيږي .

﴿۱۲۸۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْيَوْمُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (يوم

الْمَوْعُوْدُ يَوْمُ الْقِيَامَةِ وَالْيَوْمُ الْمَشْهُوْدُ يَوْمُ عَرَفَةَ وَالشَّاهِدُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ

موعود) د قيامت ورځ ده او (يوم مشهود) د عرفات ورځ ده او شاهد د جمعې ورځ ده ،

وَمَا طَلَعَتُ الشَّمْسُ وَلاَ غَرَبَتْ عَلَى يَوْمٍ أَفْضَلَ مِنْهُ فِيهِ سَاعَةٌ لاَ يُوَافِقُهَا

لمر پر هيڅ يو داسي ورځ نه راخيژي او نه لويږي چي د جمعې تر ورځي دي غوره وي د جمعې په ورځ کي يو ساعت دی چي

عَبْدٌ مُؤْمِنٌ يَدْعُو اللّٰهَ بِخَيْرٍ إِلاَّ اسْتَجَابَ اللّٰهُ لَهُ وَلاَ يَسْتَعِيذُ مِنْ شَيْءٍ إِلاَّ

مؤمن بنده يې تر لاسه کړي او په هغه کي د الله ﷻ څخه دعاء و غواړي د خير نو الله تعالی هغه دعاء قبلوي او د کوم شي څخه چي پناه و غواړي

أَعَاذَهُ اللّٰهُ مِنْهُ. رواه احمد والترمذي و قال هذا حديث غريب لايعرف الا من حديث موسى ابن عبيدة وهو يضعف.

الله ﷻ د هغه څخه پناه ورکوي . احمد او ترمذي، ترمذي ويلي دا حديث غريب يو ازي د موسى بن عبيد څخه پيژندل کيږي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۲۹۸ - ۲۹۹، والترمذي ۵\ ۴۰٦، رقم: ۳۳۳۹.

**تشريح**: د سورة بروج آيت دادی :

وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْد وَشَاهِدٍ وَّ مَشْهُوْد

ژباړه : او (قسم دی) په هغه ورځ چي د هغه وعده ده او پر حاضرېدونکو او څه چي د هغه سره حاضر کړل سي د هغه.

د دې آيت تفسير دا حديث دلته داسي کوي چي د يوم موعود څخه مراد د قيامت ورځ ده چي الله تعالی د هغه د راتلو خبر ورکړی دی او د مومنانو سره د دې ورځو د راتلو وروسته د جنت پر نعمتونو باندي وعده کړل سوې ده .د شاهد څخه مراد د جمعې ورځ ده چي مخلوق ته حاصليږي او په هره اونۍ کي راځي . د مشهود څخه مراد د عرفات ورځ ده چي د ټول عالم مسلمانانو او د الله تعالی ملائکي په دې ورځ حاضريږي او يوځای کيږي که څه هم امام ترمذي رحمة الله عليه ويلي دي چي د دې حديث راوي موسى ته د روايت حديث په اړه ضعيف ويل سوي دي مګر دا حديث پر خپل ځای ځکه قابل اسناد او قبول دی چي په دې اړه نور حديثونه چي د نورو روايتونو څخه روايت دي دغه حديث ته تقويت ورکوي .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دریم فصل)

### د جمعې فضیلت

﴿۱۲۸۴﴾: عَنْ أَبِي لُبَابَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُنْذِرِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابولبابة بن عبدالمنذر ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

إِنَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ سَيِّدُ الْأَيَّامِ وَأَعْظَمُهَا عِنْدَ اللهِ مِنْ يَوْمِ الْأَضْحٰى وَيَوْمِ الْفِطْرِ

د جمعې ورځ د الله ﷻ په نزد د ورځو سرداره او یوه ستره ورځ ده او د الله ﷻ په نزد د دې عظمت تر کوچني اختر او لوی اختر تر ورځو هم زیات دی

فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ خَلَقَ اللهُ فِيهِ آدَمَ وَأَهْبَطَ اللهُ فِيهِ آدَمَ إِلَى الْأَرْضِ وَفِيهِ

د جمعې په ورځ پنځه (۵) خبري دي ۱: الله تعالی په دې ورځ آدم ﷤ پیدا کړی دی ۲: په دغه ورځ یې مځکې ته راالیږلی دی ۳: او په دې ورځ یې

تَوَفَّى اللهُ آدَمَ وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يَسْأَلُ الْعَبْدُ فِيهَا شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ مَالَمْ يَسْأَلْ

وفات کړی دی ۴: په دغه ورځ کي یو داسي ساعت دی که بنده د یو شي د عاء وغواړي الله ﷻ هغه شي ورکوي په شرط د دې چي سوال نه وي

حَرَامًا وَفِيهِ تَقُومُ السَّاعَةُ مَا مِنْ مَلَكٍ مُقَرَّبٍ وَلَا سَمَاءٍ وَلَا أَرْضٍ وَلَا رِيَاحٍ

د یو حرام شي ۵: او په دې ورځ به قیامت قائمیږي څکه مقربي ملائکي، آسمان، مځکه، هواء،

وَلَا جِبَالٍ وَلَا بَحْرٍ إِلَّا وَهُوَ مُشْفِقٌ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ. رواه ابن ماجه. وَرَوٰى

غرونه او د ریاب ټوله خائف (په بیره کي) وي، ابن ماجه،

أَحْمَدُ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

احمد د سعد بن معاذ څخه روایت کوي چې یو انصاري د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

فَقَالَ أَخْبِرْنَا عَنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مَاذَا فِيهِ مِنَ الْخَيْرِ؟ قَالَ فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ

وَساقَ إِلىٰ آخِرِ الْحَدِيثِ.

او عرض يې وکړ اې دالله رسوله ! موږ د جمعې د ورځې د حال څخه خبر کړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د جمعې په ورځ کې پنځه خبرې دي .(تر پايه حديث.)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۳۴۴، رقم: ۱۰۸۴، الامام احمد في مسنده ۵\ ۲۸۴.

**تشريح** : د حديث الفاظ وهو اعظم عند الله يوم الاضحى و يوم الفطر څخه معلوميږي چې يا خو د عرفات ورځ د جمعې تر ورځې افضله ده يا د فضيلت په اعتبار دا دواړې ورځې برابرې دي مګر د رزين په نقل سوي روايت کې په صراحت سره فرمايل سوي دي چې په ټولو ورځو کې تر ټولو افضله ورځ د عرفات ورځ ده .

وفيه خمس او په دې ورځې کې پنځه خبرې دي د جمعې د فضائلو په بيان کې تحديد او د حصر لپاره نه دي فرمايل سوي چې د هغه مطلب داوي چې د جمعې د ورځې څخه يوازې دا پنځه خبرې د فضيلت او عظمت په اعتبار جمعې ته پر ټولو ورځو امتياز ورکوي مثلا نقل سوي دي چې په جنت کې به د الله تعالى د زيارت شرف هم د جمعې په ورځ حاصليږي يا همداسې نورې ډيرې خبرې نقل سوي دي .

## د جمعې نوم ولې جمعه ده

﴿۱۲۸۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَيِّ شَيْءٍ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چې

سُمِّيَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ ؟ قَالَ لِأَنَّ فِيهَا طُبِعَتْ طِينَةُ أَبِيكَ آدَمَ وَفِيهَا الصَّعْقَةُ

د جمعې د ورځې نوم ولې جمعه ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: په دې ورځ ستاسو د پلار آدم عليه السلام خاوره يو ځای کړل سوې او خمير کړل سوې ده او په دې ورځ به صعقة وي (يعني شپيلۍ به پوه کړل سي د مرګ)

وَالْبَعْثَةُ وَفِيهَا الْبَطْشَةُ وَفِي آخِرِ ثَلَاثِ سَاعَاتٍ مِّنْهَا سَاعَةٌ مَنْ دَعَا اللهَ فِيهَا اسْتُجِيبَ لَهُ . رواه أحمد .

او په دې ورځ به ټول مخلوق را ژوندي کړل سي او په دې ورځ به قيامت وي او د دې ورځو په

آخري درې ساعتونو كې يو داسې ساعت دى چې په هغه كې كومه دعاء وسي هغه قبليږي. احمد

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ۲\۳۱۱.

**د لغاتو حل:** (طبعت): اي خمرت وجمعت.

**تشريح:** علامه يحيى رحمة الله عليه فرمايي چې د رسول الله ﷺ د جواب حاصل دادى چې د دې ورځې نوم جمعه مباركه ځكه ايښودل سوى دى چې پورتني ستر شيان په دې ورځ كې جمع كړل سوي دي مګر دا خبره دې هم ښكاره وي چې قطع نظر د دې خبرې څخه چې دا ټولې خبرې په هيئت مجموعي ده وجه تسميه ښكاره كوي په دې كې هر يو پر خپل خپل ځاى باندې د جماعيت او اجماعيت پر مفهوم باندې حاوي دي.

## د جمعې په ورځ زيات درود ويل

﴿۱۲۸۶﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثِرُوا

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

الصَّلَاةَ عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِنَّهُ مَشْهُوْدٌ تَشْهَدُهُ الْمَلَائِكَةُ وَإِنَّ أَحَدًا لَنْ يُّصَلِّ

د جمعې په ورځ پر ما ډير درود وايا ست ځكه چې دا ورځ د حاضرۍ ده او په دې كې ملائكي حاضريږي او په تاسو كې چې څوك پر ما درود وايي

عَلَيَّ إِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلَاتُهُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهَا قَالَ قُلْتُ وَبَعْدَ الْمَوْتِ؟ قَالَ

تر څو پورې چې هغه د درود څخه فارغ سوى نه وي د هغه درود زما مخته ته وړاندې كيږي، ما عرض وكړ ايا ستاسو د وفات وروسته به درود وړاندې كيږي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَنْ تَأْكُلَ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ فَنَبِيُّ اللهِ حَيٌّ يُرْزَقُ. رواه ابن ماجه.

پر مځكه دا خبره حرامه سوې ده چې هغه د انبياؤو بدن وخوري د الله نبيان ژوندي دي او هغوى ته رزق وركول كيږي. ابن ماجه.

**تخريج:** سنن ابن ماجه ۱\۵۲۴، رقم: ۱۶۳۷.

**تشريح:** دا حديث د ابن عباس رضي الله عنهما د تفسير تائيد كوي هغه فرمايلي دي چې واليوم الموعود

وشاهد و مشهود په دې كي د مشهود څخه مراد د جمعې ورځ ده لكه څرنګه چي مخكي تير سو
په حديث نمبر اتم كي فرمايل سوي دي چي د شاهد څخه مراد د جمعې ورځ ده او دا زيات
صحيح هم دی كه څه هم دلته د مشهود څخه د جمعې ورځ مراد اخستل كيږي په دې اعتبار سره
چي په دغه ورځ ملائكي حاضريږي دا د حضرت علي كرم الله وجهه د تفسير خلاف نه دی او دا
احتمال هم قوي دی چي د حديث په الفاظو كي فانه ضمير د جمعې خوا ته نه دی مګر زيات
درود شريف ته راجع دی چي د لفظ اكثر څخه مفهوم كيږي همداسي د حديث معنی به دا وي
چي د جمعې په ورځ پر ما په كثرت سره درود وايي ځكه چي په كثرت سره درود مشهود ده يعني د
ملائكو د حاضرېدو سبب دی .

عرضت صلواته: د دې مطلب دادی چي هسي خو همېشه څوک چي پر ما درود شريف
وايي نو د هغه درود ماته وړاندي كيږي مګر د جمعې ورځ تر ټولو افضله ورځ ده ځكه د جمعې
په ورځ درود ويونكی درود بطريق اولی چي زما مخكي پېږ ووايي كه څه هم د درود ويلو موده
هر څومره اوږده وي حتی يفرغ په فرمايلو سره دې ته اشاره كيږي چي تر څو پوري درود
ويونكی په خپله د درود څخه فارغ نسي يا درود ويل پرې نږدي تر هغه وخته پوري درود ماته
رارسيږي .

د رسول الله ﷺ د ارشاد په اورېدو سره حضرت ابودرداء رضي الله عنه دا وګڼل چي شايد دا حكم
ښكاره حالت يعني د رسول الله ﷺ په دنياوي ژوند سره متعلق وي نو هغوی د رسول الله ﷺ
څخه په دې باره كي پوښتنه وكړه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل پر مځكه باندي د انبياؤ بدنونه
خوړل حرام دي يعني څرنګه چي د نورو مړو بدنونه په قبرونو كي فناء كيږي همداسي د انبياؤ
بدن په قبر كي نه فناء كيږي مګر هغه په خپل اصلي حالت كي موجود وي ځكه انبياؤ عليهم
السلام لپاره دواړه حالته يعني د دې ښكاره ژوند او په مرګ كي څه فرق نسته څرنګه چي
هغوی دلته دي همداسي هلته دي ځكه ويل سوي دي چي :

اولياء الله لايموتون ولاكن ينتقلون من دار الا دارا : د الله تعالی دوستان او حقيقي بندګان مري نه
هغوی يوازي د يوه ځای څخه بل ځای ته اوړي .

څرنګه چي دلته د دنيا په ژوند كي مخكي درود وايي همداسي به زما په قبر كي هم ماته
درود شريف وايي .

د حديث اخري الفاظ حتی يرزق مطلب دادی چي انبياؤ عليهم السلام ته په خپلو خپلو
قبرونو كي د الله تعالی د خوا هغوی ته رزق وركول كيږي او كه د رزق څخه رزق حسي مراد

واخستل سي نو دا به د حقيقت خلاف نه وي مگر صحيح به وي هر كله چي د شهداؤ د روحونو په باره كي نقل دي چي هغوی د جنت مېوې خوري نو انبياء عليهم السلام خو د شهداء څخه اشرف او اعلی دي ځکه د هغوی لپاره هم دا خبره بطريق اولی ثابتېدای سي چي هغوی ته په خپلو قبرونو كي حسي رزق وركول كيږي.

## د جمعې په ورځ مرگ

﴿۱۲۸۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوْ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ إِلاَّ وَقَاهُ اللهُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ.

رواه أحمد والترمذي وقال هذا حديث غريب وليس إسناده بمتصل.

: كوم مسلمان چي د جمعې په ورځ يا د جمعې په شپه وفات سي نو هغه د قبر د فتنو څخه محفوظ وي. احمد، ترمذي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی د دې اسناد متصل نه دي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۶۹/۲، والترمذي ۳۸۶/۲، رقم: ۱۰۷۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي د يو نېكبخته مسلمان د جمعې په ورځ يا د جمعې په شپه وفات كېدل په حقيقت كي د هغه د سعادت دليل دی ځکه چي د جمعې په مقدسو ساعتونو كي وفات كېدونكی سړی د الله تعالی له لوري په بې پناه رحمتونه او نعمتونو سره نازول كيږي د جمعې په ورځ د وفات كېدونكو مسلمانانو په حق كي ډېر زيات زيري نقل دي مثلاً په يوه روايت كي نقل دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل كوم مسلمان چي د جمعې په ورځ مړ سي هغه ته د قبر د عذاب څخه خلاصون وركول كيږي او هغه به د قيامت په ورځ په داسي حال كي راځي چي پر هغه باندي به د شهيدانو ټاپه لگول سوې وي.

په يو بل روايت كي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل كوم سړی چي د جمعې په ورځ مړ سي د هغه لپاره د شهيدانو ثواب ليكل كيږي او هغه د قبر د فتنې څخه ساتل كيږي.

همداسي د يو بل روايت الفاظ دادي چي كوم مسلمان سړی يا ښځه د جمعې په ورځ يا په شپه وفات سي هغه د قبر د فتنې او د عذاب څخه ساتل كيږي او الله تعالی سره به په داسي حال كي د هغه ملاقات كيږي چي د قيامت په ورځ به د هغه سره هيڅ محاسبه نه كيږي، ځکه چي د

هغه سره به شاهدي وي چي د هغه د سعادت او نیکي گواهي به ورکوي یا پر هغه به د شهداؤ تاپه لگول کیږي.

## جمعه د اختر ورځ ده

﴿۱۲۸۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ قَرَأَ (اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ) الآيَة وَعِنْدَهُ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي هغه د یهودي په وړاندي دا آیت تلاوت کړ: (نن ورځ ما ستاسو لپاره دین پوره کړ)

يَهُودِيٌّ فَقَالَ لَوْ نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ عَلَيْنَا لَاتَّخَذْنَاهَا عِيْدًا فقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

د دې په اوریدو سره یهودي وویل که دا آیت پر موږ نازل سوی وای نو موږ به دا ورځ د اختر گرځولې وای، ابن عباس ﷺ وویل:

فَإِنَّهَا نَزَلَتْ فِيْ يَوْمِ عِيْدَيْنِ فِيْ يَوْمِ جُمُعَةٍ وَيَوْمِ عَرَفَةَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

دا آیت د دوو اخترو په ورځ نازل سوی دی یعني د جمعې او عرفات په ورځ. ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۲۳۳، رقم: ۳۰۴۴.

**تشریح**: د یهودي د ویلو مطلب دا وو چي که دا آیت پر موږ نازل سوی وای نو دومره عظیم الشان نعمت خوشحالي او د هغې د شکرانې په توگه د لوی اختر ورځ گرځولې وای خو تعجب دی چي مسلمانانو دا ورځ یادگار او د اختر ورځ ونه گڼل د دې په جواب کي ورته ابن عباس ﷺ وفرمایل کله چي الله تعالی په خپله دا آیت په یوه داسي ورځ باندي نازل کړ چي پر یوه نه بلکه پر دوو اخترو باندي حاوي وه نو بیا موږ ته دوې ورځي د لمانځني څه ضرورت وو ځکه چي رسول الله ﷺ اخري حج ادا کړی وو نو هغه د جمعې په ورځ وو گویا یو خو د جمعې کېدو په وجه خپله هغه ورځ افضله او اشرفه وه او دوهمه د عرفې ورځ یعني د حج ورځ کېدو په وجه د دې افضلیت او عظمت زیات وو او په دې ورځ دا آیت نازل سو نو ښکاره ده چي د خپل عظمت او فضیلت په اعتبار د مسلمانانو لپاره د دې څخه بله کومه شپه کېدای سي.

## د جمعې ورځ او شپه ځلانده وي

﴿۱۲۸۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ رَجَبٌ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به د رجب مياشت راغلل نو رسول الله ﷺ به

قَالَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ رَجَبٍ وَّشَعْبَانَ وَبَلِّغْنَا رَمَضَانَ قَالَ وَكَانَ يَقُوْلُ لَيْلَةُ

دا دعاء کول: (اې الله جل جلاله! د رجب او شعبان په مياشتو کې موږ ته برکت راکړې او موږ رمضان ته ورسوې) او انس رضي الله عنه فرمايلي دي چې رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي: شپه

الْجُمُعَةِ لَيْلَةٌ أَغَرُّ وَيَوْمُ الْجُمُعَةِ يَوْمٌ أَزْهَرُ. رواه البيهقي في الدعوات الكبير

د جمعې ځلانده شپه ده او د جمعې ورځ ځلانده ورځ ده. بيهقي.

**تخريج:** رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**د لغاتو حل:** (ازهر): اى ابيض (نوراني).

**تشريح:** او موږ ېې روژې ته ورسولو: د دې مطلب دادی چې اې الله! زموږ دا سعادت نصيب کړه چې پوره روژه ونيسو او د روژې په ټولو ورځو کې موږ ته د روژو نيولو او د تراويح لمونځ کولو توفيق راکړې. د جمعې په ورځ يا د جمعې په شپه نورانيت نبوي يا خو بالذات وي يا دا چې د جمعې ورځ او د جمعې په شپه کې چې کوم عبادت کيږي د هغه برکت او د هغه په سبب سره معنوي نورانيت پيدا کيږي.

# بَابُ وُجُوْبِهَا

## د جمعې د واجب کېدو بيان

لکه څرنګه چې مخکې ښودل سوې ده چې د جمعې لمونځ فرض عين دی دلته د وجوب څخه مراد فرض دی.

علامه يحيى رحمه الله فرمايي د جمعې لمونځ فريضه محکمه ده چې قرآن کريم احاديث رسول الله ﷺ او اجماع امت څخه ثابته ده د جمعې د لمانځه د فرضيت څخه انکار کونکی کافر کيږي د قرآن کريم د کوم آيت څخه چې د جمعې فرضيت ثابت دی د هغه الفاظ (فاسعوا الي ذكر الله) د ذکر څخه مراد د جمعې لمونځ او د هغه خطبه ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د جمعې د لمانځه پرېښودل او د هغه سزا

﴿۱۲۹۰﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُمَا قَالَا سَمِعْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه او ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې موږ د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَلَى أَعْوَادِ مِنْبَرِهِ لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ

چې فرمايل يې د لرګي پر منبر: خلک دې د جمعې د پرېښودو څخه منعه سي (يعني د جمعې لمونځ دې نه پرېږدي)

أَوْ لَيَخْتِمَنَّ اللّٰهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ ثُمَّ لَيَكُونُنَّ مِنَ الْغَافِلِينَ. رواه مسلم

کنه نو الله به د هغو پر زړو مهر ولګوي او هغوی به په غافلو خلکو کې حساب سي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۹۱، رقم: ۴۰- ۸۶۵.

**تشريح**: مطلب دادی چې په دغه دوو شيانو کې يو شی مقرر دی يا خو د جمعې لمونځ نه پرېښودل يا پر زړونو باندې ټاپه لګېدل خلک د جمعې لمونځ نه پرېږدي نو هغوی په زړونو به مهر نه لګول کيږي او که څوک يې پرېږدي نو د هغوی پر زړونو به ټاپه ولګول سي.
پر زړونو ټاپه لګول ددې خبرې کنايه ده چې الله تعالی به د داسې بد بختو خلکو زړونه په انتهايي غفلت کې اخته کړي د هغه نتيجه ښکاره ده چې داسې خلک به د الله تعالی په سخت عذاب کې اخته کړه سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۲۹۱﴾: عَنْ أَبِي الْجَعْدِ الضُّمَيْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو الجعد الضميري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ اللّٰهُ عَلَى قَلْبِهِ. رواه أبو داود والترمذي

والنسائي وابن ماجه والدارمي، ورواه مالك عن صفوان بن سليم .

كوم څوک چي د سستئ له کبله درې جمعې لمونځ پرېږدي الله به د هغه پر زړه مهر ولگوي.
ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ١\ ٦٣٨، رقم: ١٠٥٢، والترمذي ٢\ ٣٧٣، رقم: ٥٠٠. والنسائي ٣\ ٨٨، رقم: ١٣٦٨، وابن ماجه ١\ ٣٥٧، رقم: ١١٢٥، والدارمي ١\ ٤٤٤، رقم: ١٥٧١.

## د جمعې دلمانځه نه کولو په صورت کي صدقه کول پکار دي.

﴿١٢٩٢﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمرة بن جندب ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِيْنَارٍ فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ فَبِنِصْفِ دِيْنَارٍ . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه .

چا چي د يو عذر پرته د جمعې لمونځ پرېښودی نو هغه ته پکار ده چي يو دينار صدقه کړي که ممکن نه وي نو نيم دينار دي صدقه کړي. احمد ابوداؤد، ابن ماجه

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٥\ ١٤، وابوداؤد: ١\ ٦٣٨، رقم: ١٠٥٣، وابن ماجه ١\ ٣٥٨، رقم: ١١٢٨.

## د جمعې پر اذان اورېدونکی باندي د جمعې لمونځ واجب دی

﴿١٢٩٣﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْجُمُعَةُ عَلَى مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ . رواه أبو داود .

حضرت عبد الله بن عمرو ﷛ د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي چي: د جمعې لمونځ پر هغه چا فرض او واجب دی چي د جمعې آذان واوري. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ١\ ٦٤٠، رقم: ٥٠٢.

**تشريح**: شيخ عبد الحق رحمة الله عليه فرمايي د دې مطلب دادی هر کله چي يو سړی د جمعې اذان واوري نو د هغه لپاره د جمعې تياري کول او د جمعې د لمانځه لپاره تلل واجب دي.

ملا علي قاري رحمة الله عليه فرمايي دا حديث كه على الاطلاق د دى پر ښكاره معنى باندي محمول كړل سي نو د دې څخه دېرزيات شكلونه پيدا كيږي ځكه مناسبه داده كه د دې حديث مفهوم داسي واخيستل سي چي جمعه پر هغه سړي واجب ده چي په داسي ځاى كي وي چيري چي د هغه سړي او ښار په مينځ كي د ږغ رسيدو فاصله وي يعني كه يو څوك په ښار كي ږغ وكړي نو چيري چي هغه دى هلته آواز وررسيږي.

په شرح منيه كي ذكر سوى دى چي جمعه پر هغه سړي باندي لازمه ده چي د ښار په شاوخوا كي په داسي ځاى كي وي چي د هغه او د ښار په مينځ كي فاصله نه وي مگر جنگېدلي مقامات وي كه څه هم هغه د اذان اواز وا نه وري او كه د هغه او د ښار په مينځ كي د فصلونو،.كورونو وغيره د حائل كېدو په وجه فاصله وي نو پر هغه جمعه واجب نه ده كه څه هم هغه اذان واوري مگر د امام محمد رحمة الله عليه څخه نقل دي كه هغه اذان واوري نو پر هغه جمعه واجب ده او فتوى د امام محمد رحمة الله عليه پر قول ده.

﴿۱۲۹۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْجُمُعَةُ عَلٰى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلٰى أَهْلِهِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث إسناده ضعيف.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د جمعې لمونځ پر هغه چا واجب دى چي د جمعې لمونځ وكړي او د شپې خپل اهل وعيال ته ورسيږي. ترمذي ويلي دي د دې حديث اسناد ضعيف دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۳۷٦، رقم: ۵۰۲.

**تشريح**: مطلب دادى چي جمعه پر داسي سړي باندي واجب ده چي د هغه د هستوگني د ځاى او هغه مقام په مينځ كي چيري چي د جمعې لمونځ كيږي دومره فاصله وي چي د جمعې وروسته په اساني سره خپل كورته دوهم وار راسي او شپه د خپلو بچيانو سره تېره كړي.

## هغه كسان چي جمعه پر واجب نه ده

﴿۱۲۹۵﴾: وَعَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ

د حضرت طار بن شهاب رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: جمعه واجب ده

عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ جَمَاعَةٍ إِلاَّ عَلٰى أَرْبَعَةٍ عَبْدٍ مَّمْلُوْكٍ أَوِ امْرَأَةٍ أَوْ صَبِيٍّ أَوْ

مَرِيضٍ . رواه أبو داود وفي شرح السنة بلفظ المصابيح عن رجل من بني وائل

پر هر مسلمان باندي په جماعت سره مگر نه پر څلورو کسانو ۱: غلام باندي، ۲: ښځه باندي ۳: کوچنی باندي . ۴: ناروغ باندي . ابوداؤد ، شرح السنة د مصابيح په ډول د بني وائل د يو سړي څخه روايت کړی دی .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۶۴۴، رقم: ۱۰۶۷، والبغوي في شرح السنة ۴\ ۲۲۵، رقم: ۱۰۵۶ ومصابيح السنة ۱\ ۴۷۰، رقم: ۹۶۸.

## د جمعې لمونځ په جماعت سره فرض دی

جمعه حق ده يعني د جمعې فرضيت د کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ په ذريعه ثابت دي همداسي واجب دی د دې مطلب دادی چي پر هر مسلمان باندي پرته د پورتنيو څلور ډوله خلکو څخه د جمعې لمونځ په جماعت سره فرض دی .

## پر لاندنيو خلکو باندي جمعه ولي نه ده واجب ؟

۱. غلام د نورو په ملکيت کي وي ځکه پر هغه د جمعې لمونځ نه دی فرض کړل سوی.
۲. پر ښځي باندي د جمعې لمونځ ځکه فرض نه دی چي نه يوازي دا چي د هغې پر ذمه د خاوند حقوق دومره زيات متعلق دي چي د جمعې په لمانځه کي د ګډون د هغه د حقوقو ادا کولو څخه مانع کيږي مگر د جمعې په لمانځه کي د خلکو رش او کش زيات وي ځکه د جمعې په لمانځه کي د ښځو ګډون د فتنې او فساد سبب ګرځي.
۳. کوچنيان غير مکلف دي ځکه پر هغوی د جمعې لمونځ نه دی فرض .
۴. همداسي پر ناروغ باندي د هغه د ضعف او ناتواني او د ضرر د دفع کولو په سبب جمعه فرض نه ده مگر د ناروغ څخه مراد هغه ناروغ دی چي په يو داسي ناروغۍ کي اخته وي چي د هغه په وجه دی په جمعه کي نه سي حاضرېدای .

د دې څخه پرته پر کومو خلکو چي جمعه فرض کېدل نه دي ثابت په هغوی کي لېونی هم دی چي د کوچني په حکم کي دی همداسي پر مسافر، ړوند، ګوډ او شل باندي هم جمعه فرض نه ده .
ابن همام رحمة الله عليه فرمايي داسي سپين ږيری چي هغه ته ضعف لاحق وي د ناروغ په حکم کي داخل دی ځکه چي هغه او پر هغه معذور هم چي پر خپلو پښو تللو باندي قادر نه وي جمعه فرض نه ده همداسي د مريض پر ساتونکي هم جمعه فرض نه ده چي د هغه جمعې ته تللو په وجه د ناروغ تکليف او وحشت زياتېدو يا د هغه د ضائع کېدو ډېره وي .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### د جمعې پرېښودونکي لپاره سزا

﴿۱۲۹۶﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِقَوْمٍ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د هغه خلکو په اړه وفرمايل

يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ رَجُلاً يُصَلِّي بِالنَّاسِ ثُمَّ أُحَرِّقَ

چي د جمعې د لمانځه څخه شاته پاته کيږي : ما دا اراده کړې ده چي زه يو سړي ته د لمانځه کولو حکم وکړم او بيا کورونه وسوځم

عَلَى رِجَالٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ بُيُوتَهُمْ . رواه مسلم

د هغه خلکو چي د جمعې لمانځه ته نه راځي.مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۴۵۲، رقم: ۲۵۴- ۶۵۲.

**تشريح** : په دغه حديث کي د هغه خلکو لپاره سخت وعيد دی چي بېله عذره او بې مجبورۍ د جمعې لمونځ نه کوي داسي خلکو ته پکار ده چي ددغه حديث څخه عبرت واخلي او د جمعې لمونځ هيڅکله قضاء نه کړي.

﴿۱۲۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَكَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي پرېږدي

الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ كُتِبَ مُنَافِقًا فِي كِتَابٍ لاَ يُمْحَى وَلاَ يُبَدَّلُ . وفي بعض الروايات ثلاثا . رواه الشافعي .

د جمعې لمونځ بېله عذره نو هغه په هغه کتاب کي منافق ليکل کيږي د کوم چي ليکنه نه خرابېدای سي او نه بدلېدلای سي . او په ځيني رواياتو کي دا الفاظ دي چي درې ځله (يعني درې جمعې) . شافعي

**تخريج** : ترتيب مسند الامام الشافعي ۱\۱۲۹، رقم: ۳۸۱.

**تشریح**: من غیر ضرورة : مطلب دادی چي د جماعت پرېښودلو کوم عذرونه مثلاً د ډېر ظالم او د دښمن څخه بېره، بارن اورېدل، واوره کېدل، په لارکي ختي وغیره کېدل او داسي نور که په دغو کي د یو عذر په وجه یو څوک د جمعې لمانځه ته ولاړ نسي نو هغه به منافق نه وي هو بېله عذره او مجبوری، د جمعي پرېښودونکي منافق دی.

(في کتاب لا یمحي ولا یبدل) : د کتاب څخه مراد اعمال نامه ده، مطلب دا چي د جمعې د لمانځه د پرېښودونکي په اعمال نامه کي چي په هغه کي نه تنسیخ ممکن دی او نه تغیر او تبدیل په هغه کتاب کي دی منافق لیکل کیږي تر دې چي د هغه سره د لفظ نفاق په ډول لعنتي صفت همېشه لپاره لګیږي تر دې چي په اخر کي یا خو به الله تعالی هغه د دې په وجه په عذاب کي اخته کړي یا په خپل فضل او کرم سره په معاف کولو سره به یې وبخښي د غور او فکر مقام دی چي د جمعې د لمانځه پرېښودونکي لپاره څومره سخت وعید دی الله تعالی دي موږ ټول د خپل عذاب څخه وساتي .آمین.

## د جمعې پرېښودونکی خپله تاواني دی

﴿۱۲۹۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم څوک چي ایمان لري

بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَعَلَيْهِ الْجُمُعَةُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِلاَّ مَرِيْضٌ أَوْ مُسَافِرٌ أَوْ صَبِيٌّ

پر الله ﷻ او د قیامت پر ورځ نو پر هغه د جمعې لمونځ واجب دی، مګر ناروغ، مسافر، کوچنی

أَوْ مَمْلُوْكٌ فَمَنِ اسْتَغْنٰى بِلَهْوٍ أَوْ تِجَارَةٍ اسْتَغْنَى اللهُ عَنْهُ وَاللهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ.

رواه الدار قطني.

او غلام د دې څخه وتلي دي پر دوی د جمعې لمونځ فرض نه دی کوم څوک چي د جمعې د لمانځه څخه بې پروایي غوره کړي یا په لهو ولعب او تجارت کي بوخت سي نو الله تعالی د هغه څخه بې پروا دی او الله تعالی بې پروا او تعریف کړل سوی دی. دار قطني.

**تخریج**: سنن الدار قطني ۲/۳، رقم: ۱.

**تشریح**: د حدیث د اخري الفاظو مطلب دادی چي کوم سړی په بازیو، تجارت او د دنیا په نورو کارونو کي په اخته کېدو سره د جمعې د لمانځه پرواه نه وکړي او د جمعې د لمانځه د

پرېښودو احساس هغه ته نه وي نو هغه خپل تاوان خپله کوي ځکه چې د داسي سړي څخه الله تعالی هم بې پرواهي اختياروي او پر هغه خپل فضل وکرم او مهرباني نه کوي او پر کوم بدنصيبه چې د الله تعالی کرم او مهرباني نه وي نو په دين او دنيا دواړو ځايو کي به د هغه تباهۍ او بربادي په باره کي کوم بد بخت ته شک کېدای سي ·

=========

# بَابُ التَّنْظِيْفِ وَالتَّكْبِيْرِ

## پاکي تر لاسه کول او د جمعې لمانځه ته پر وخت تلل

د پاکۍ تر لاسه کولو څخه مراد د غسل په ذريعه بدن پاکول، د برېتونو وېښتان پرېکول، نوکان پرېکول ،د نامه لاندي وېښتان پاکول ، د بغل وېښتان ليري کوي ، جامې پاکول او د عطرو استعمالول د جمعې د ورځي دا ټول شيان سنت دي د دې تفصيل په کتاب الطهارت کي د مسواک په بيان کي تېر سوی دی ·

د جمعې لپاره د وختي تللو څخه مراد دادی چې مسجد يا چيري چي لمونځ اداء کيږي او هلته د جمعې د لمانځه لپاره په اول وخت کي رسېدل که يو سړی د جمعې د لمانځه لپاره مسجد ته ورځي په اوله برخه کي ورسيږي نو دا افضل دي، امام غزالي رحمة الله عليه د ځينو علماؤ سلف دا معمول نقل کړی دی چي هغوی د عبادت خواته د پېش روي په اختيارولو سره په جذبې سره د جمعې د لمانځه لپاره به د سهار څخه مسجد ته رسېدل خو دومهر خبره په ذهن کي کښېنول پکار ده چي په مسجد نبوي کي لمونځ کونکو چي دا معمول جوړ کړی دی چي هغوی د جمعې په ورځ د سهار د وخته څخه په مسجد اقدس کي ځای د نيولو لپاره خپلي خپلي مصلې هواري کړي او هلته نه کښېني بلکه ولاړسي بيا د لمانځه پر وخت راځي نو په دې باره کي علماؤ ليکلي دي که داسي خلک هلته په ناستي سره په ذکر او فکر کي مصروف سي نو بهتره ده کنه يوازي د ځای نيولو لپاره هلته په مصله اوارولو سره کورته بيرته راتلل مناسب نه دي ځکه چي په دې سره خلکو ته تنگي پيدا کيږي ·

د دې څخه معلومه سوه چي په جامع مسجد کي د ځای نيولو لپاره د اول وخت په رسېدو سره خپل خپل پټوان يا مصلی هوارول بيا د هغه ځای څخه د خوراک لپاره کورته تلل مناسبه نه دي ·

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د جمعې اداب

﴿۱۲۹۹﴾: عَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا يَغْتَسِلُ

د حضرت سلمان رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم څوک چې غسل وکړي

رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَتَطَهَّرُ مَا اسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ وَيَدَّهِنُ مِنْ دُهْنِهِ أَوْ يَمَسَّ

د جمعې په ورځ او څومره چې ممکن وي پاکي ترلاسه کړي او عطر يا خوشبويي چې په کور کې موجود وي ولګوي

مِنْ طِيْبِ بَيْتِهِ ثُمَّ يَخْرُجُ فَلاَ يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ ثُمَّ يُصَلِّيْ مَا كُتِبَ لَهُ ثُمَّ

يا د کور څخه د لمانځه لپاره راسي او د دوو خلکو په منځ کې ورننوتلو سره نه کښيني څومره لمونځ چې الله جل جلاله پر فرض کړی دی هغه وکړي

يُنْصِتُ إِذَا تَكَلَّمَ الْإِمَامُ إِلاَّ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرٰى. رواه البخاري

بيا چې امام خطبه وايي پټه خوله کښيني نو د هغه ټول ګناهونه چې د يوې جمعې څخه تر بلې جمعې پورې يې کړي دي معاف کيږي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۱۲\۳۷۰، رقم: ۸۸۳.

**تشريح**: او څومره چې کېدای سي پاکي اختيار کړي: د دې مطلب دادی چې د بريتو وېښتان پرې کول، نوکان پرې کول، د نامه لاندې ورېښتان پاکول، د بغلونو وېښتان لېرې کول او پاکې جامې دې واغوندي.

د دوو خلکو په مينځ کې فرق و نه کړي د دې مطلب دادی چې په مسجد کې پلار او زوی يا داسې دوه خلک چې په خپلو کې ډېره مينه او تعلق لري يو ځای ناست وي نو د هغه په مينځ کې دې نه کښېني يا د خلکو په مينځ کې ځای نه وي نو هلته دې نه کښېنې که هغوی ته تکليف وي هو که چيرې ځای خالي وي نو څه پرواه نه لري.

يا د فرق کولو څخه مراد دادی چې د خلکو پر سرونو دې جمپونه نه وهي او په ځغاسته سره خلکو ته په ډيکو ورکولو سره دې مخکې صف ته نه ځي بلکه چيرې چې ځای ترلاسه کړي هلته

دي کښېني او که بېله ډېکو وهلو او د صفونو خرابولو اول صف ته رسېدای سي نو بیا مخکي په ورتلو کي څه پرواه نسته، دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي په مخکي صفونو کي ځای نه وي هو که دا وګڼي که زه مخکي صفونو ته ولاړسم نو خلک به هلته د ناستي لپاره ځای راکړي یا دا چي په مخکي صفونو کي ځای خالي وي نو صفونه په خرابولو سره هم مخکي تلل صحیح نه دي ځکه چي په وروستني صفونو کي ناسته د خلکو قصور دی چي هغوی په مخکي کېدو سره په مخکني صفونو کي ولي کښېنستل او خالي ځای یې ولي ډک نه کړ.

په حقیقت کي دا حدیث دې ته اشاره کوي چي د جمعې د لمانځه لپاره په اول وخت کي مسجد ته رسېدل پکار دي چي هلته د فرق نه کولو او د صفونو خرابولو ضرورت پېښ نسي.

﴿۱۳۰۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اغْتَسَلَ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم څوک چي د جمعې په ورځ غسل وکړي

ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَصَلَّى مَا قُدِّرَ لَهُ ثُمَّ أَنْصَتَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ ثُمَّ يُصَلِّي

بیا د جمعې د لمانځه کولو لپاره مسجد ته راسي او څومره لمونځ چي یې په مقدر کي وو هغه وکړي او بیا پټه خوله کښېني تر څو چي امام د خطبې څخه فارغ سي بیا د امام سره لمونځ وکړي

مَعَهُ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى وَفَضْلُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ. رواه مسلم

نو د هغه ټول هغه ګناهونه بخښل کېږي چي د یوې جمعې څخه تر بلي جمعې پوري یې کړي وي بلکه د نورو درو ورځو زیات ګناهونه یې بخښل کېږي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۵۸۷، رقم: ۲۶- ۸۵۷.

**تشریح**: د درو ورځو زیادتوب د دې لپاره دی چي د هري نېکي ثواب لس چنده زیات وي نو د یوې جمعې څخه تر بلي جمعې پوري اوه ورځي سوې او درې ورځي په دې کي نوري اضافه سوې چي لس پوره سوې.

﴿۱۳۰۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم څوک چي په ښه ډول

الْوُضُوءَ ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ

او دس وكړي بيا د جمعې لمانځه ته د مسجد په لور ولاړ ی خطبه يې واوريدل پټه خوله كښېنستی نو د هغه ګناه بخښل كيږي كومه چې يې د يوې جمعې څخه تر بلې جمعې پورې كړې وي

وَزِيَادَةُ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ وَمَنْ مَسَّ الْحَصَى فَقَدْ لَغَا . رواه مسلم

بلكه د نورو درو ورځو زياته ګناه چې هغه كړې وي بخښل كيږي خو چا چې د خطبې پر وخت يا په لمانځه كې په شګو يا بل شي سره ځان بوخت كړو نو هغه عبث كار وكړ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۸۸، رقم: ۲۷- ۸۵۷.

**تشريح**: شګو ته لاس ور وړل يعني په لمانځه كې په شګو بوخت سو په دې توګه چې د سجدې ځای برابرولو لپاره هغه يې د يوه وار څخه زيات ليرې كړل ځيني حضرات وايي چې د دې څخه مراد دادی چې د خطبې په وخت په شګو سره بازي كول دي.

د لغو معنى ده باطل او بې فائدې نو د لمونځ كونكي په شګو سره بازی كولو ته يې په لغو سره مشابهت ځكه وركړی دی چې دا فعل د خطبې د اوريدو څخه منعه كوي.

## د جمعې لمانځه ته په اول وخت كې د حاضريدو فضيلت

﴿۱۳۰۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د جمعې په ورځ

وَقَفَتِ الْمَلاَئِكَةُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ يَكْتُبُونَ الأَوَّلَ فَالأَوَّلَ وَمَثَلُ الْمُهَجِّرِ

ملائكې د مسجد په دروازه كې دريږي او مسجد ته د راتلونكو حاضري ليكي يعني كوم چې اول راځي هغوی اول ليكي او كوم چې وروسته راځي هغوی وروسته ليكي، او د اول مثال داسې دی لكه (مهجر)

كَمَثَلِ الَّذِي يُهْدِي بَدَنَةً ثُمَّ كَالَّذِي يُهْدِي بَقَرَةً ثُمَّ كَبْشًا ثُمَّ دَجَاجَةً ثُمَّ

چې په سخته ګرمۍ كې دلمانځه لپاره راسي او تر هغه وروسته چې راسي د هغه مثال د هغه چا په دول دی چې مكې ته د قربانۍ لپاره غوا وليږي او كوم سړی چې وروسته راسي هغه د هغه چا په دول دی چې پسه وليږي بيا د دې څخه وروسته چې څوک راسي هغه مثال د هغه چا په دول دی چې چرګه وليږي

بَيْضَةً فَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ طَوَوْا صُحُفَهُمْ وَيَسْتَمِعُوْنَ الذِّكْرَ. متفق عليه

او څوک چي د دې وروسته راسي هغه داسي دی لکه هګۍ چي ولیږي بیا چي امام د خطبې لپاره ولاړیږي نو ملائکي خپل کاغذونه ټول کړي او خطبه اوري. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۹۷، رقم: ۹۲۹ ومسلم ۲\۵۸۷، رقم: ۲۴- ۸۵۰.

**د لغاتو حل**: (المُهجر): المبكر الى الجمعة (د جمعې لمانځه ته وختي راتلونکی).

**تشريح**: د حديث د اولي حصې مطلب دادی چي د جمعې په روځ يا خو د سهار کېدو سره يا په لمر ختو سره يا څرنګه چي بهتر او راجح قول دی د زوال د وخت څخه فرښتې د مسجد په دروازه کي درېږي او په کوم ترتيب سره چي لمونځ ګزار راځي په هغه ترتيب سره د هغوی نومونه ليکي داسي چي کوم خلک په اول وخت کي مسجد ته راځي د هغوی نوم تر ټولو مخکي ليکل کيږي ګويا هغوی تر ټولو افضل وي او کم خلک چي وروسته راځي د هغوی نوم وروسته ليکل کيږي همداسي هغه خلک په اول وخت کي د راتلونکو خلکو په نسبت کم فضيلت والا شمېرل کيږي او دا فرښتې د هغو فرښتو څخه علاوه وي کومي چي د بندګانو پر اعمالو ليکلو باندي ماموري وي.

## د خطبې په وخت کي منعه شيان

﴿۱۳۰۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي امام خطبه وايي نو هغه وخت ملګري ته دومره ويل چي پټه خوله سه هم عبث کار دي وکړ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۱۴، رقم: ۳۹۴، ومسلم ۲\۵۸۳، رقم: ۱۱- ۸۵۱.

**تشريح**: د خطبې په وخت کي د هيڅ ډول خبرو اجازه نسته ځکه دا وخت چي کوم سړی خبري کوي هغه ته د پټه خوله کېدو لپاره ويل هم د دې حديث مطابق لغو دي د دې څخه معلومه سوه چي د خطبې وخت مطلقا کلام کول ممنوع دي که څه هم هغه کلام امر بالمعروف او نهي عن المنكر سره متعلق وي او دا وخت دا فريضه د اشارې په ذريعه اداء کوي مګر په ژبي سره د ويلو اجازه نسته.

## د خطبې په وخت کي د چوپتيا مسئله

کله چي امام خطبه ووايي هغه وخت چپتيا اختيارول د اکثرو علماؤ په نزد واجب ده امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه هم په هغوی کي گډ دی او د ځيني علماؤ په نزد مستحب دی د امام شافعي رحمة الله عليه هم دا مذهب دی مګر په مذاهب لدينه کي ليکلي دي چي په دې مسئلې کي د امام شافعي رحمة الله عليه دوه قوله دي يو قول د وجوب دی او دوهم د استحباب د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي کوم وخت امام د خطبې لپاره روان سي هغه وخت هم لمونځ شروع کول يا کلام کول دواړه ممنوع دي که يو سړی لمونځ مثلا سنت وغيره کوي او امام خطبه شروع کړي نو هغه ته دوه رکعته په پوره کولو سره لمونځ ماتول پکار دی خو د امام ابويوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په نزد د امام خطبې ته د ورتللو او د خطبې شروع کولوپه مينځ کي داسي د هغه د خطبې د ختمولو وروسته تکبير تحريمه تر شروع کولو پوري په کلام کولو کي څه حرج نسته ځکه چي کلام کراهيت په دې وجه دی چي په کلام کي د مصروفېدونکي سړي خطبه نسي اورېدلای او ښکاره ده چي دا مواقع د خطبې اورېدو څخه نه وي ځکه په داسي اوقات کي کلام کول جائز دی.

خو امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه د دې دواړو د ممانعت دا دليل وړاندي کوي چي حديث دی اذا خرج الامام فلا صلوة ولا کلام هر کله چي امام خطبې ته روان سي نو د هغه وخت څخه لمونځ جائز دی او نه کلام او د صحابه رضي الله عنهم اقوال هم همداسي دي او د صحابي رضي الله عنه قول حجت او دليل په ګرځولو کي نه يوازي دا چي څه شک او شبهه نسته مګر د صحابي د قول تقليد او پېروي واجب ده علماؤ ليکلي دي چي د خطبې پر وخت د صاحب ترتيب لپاره قضاء لمونځ کول مکروه نه دی.

د هغه سړي په باره کي چي د امام څخه ليري وي او د خطبې اواز هغه ته نه ور رسيږي د علماء مختلف اقوال دي مګر صحيح او مختار قول دادی چي هغه سړی دي هم خبري نه کوي بلکه د هغه لپاره چپ کېدل واجب دی.

## د خطبې پر وخت اداب

علماؤ صراحت کړی دی چي کوم وخت امام خطبه ووايي هغه وخت خوراک څښاک يا کتابت وغيره په دنيوي کارو کي مصرفېدل حرام دي د سلام او ترچي جواب ورکول هم مکروه دی په دې اړه په درمختار کي يوه کليه ليکل سوې ده کل شيء حرم في الصلواة حرم في الخطبه

يعني کوم شيان چي په لمانځه کي حرام وي هغه د خطبې په وخت کي هم حرام دي د خطبې پر وخت دي درود هم په ژبي سره نه بلکه په زړه سره دي يې ووايي. که چيري د خطبې پر وخت يو سړی د شريعت خلاف عمل وکړي نو په ژبه سره يې منعه کول مکروه دي ليکن په لاس يا اشارې سره هغه منعه کول مکروه نه دي.

په هر حال د دې حديث د دغه باب سره د مناسبت وجه داده چي د دې باب مقتضي دادی چي په جمعه کي مسجد ته وختي تلل د ثواب د زياتي باعث دي او که يو سړی وختي مسجد ته خو ورسېدی خو هغه هلته د امام د خطبې ويلو پر وخت چاته په ژبي سره نصيحت وکړي نو گويا د هغه څخه يو لغو (عبث) کار وسو د هغه نتيجه دا سوه چي د وختي مسجد ته رسېدو ثواب يې ختم سو نو پکار ده چي د جمعې د لمانځه دپاره مسجد ته وختي ورسي نو داسي يو عمل ونه کړي چي په هغه سره ثواب ختم سي او هلته داسي حرکت نه وکړي چي په هغه سره ثواب ولاړسي.

## بل څوک ولاړول نه دي پکار

﴿۱۳۰۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لاَ يُقِيمَنَّ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ ثُمَّ لِيُخَالِفُ إِلَى مَقْعَدِهِ فَيَقْعُدَ فِيهِ وَلَكِنْ يَقُولُ افْسَحُوا. رواه مسلم

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي دي هيڅوک خپل مسلمان ورور د جمعې په ورځ د هغه د ځای څخه نه ولاړوي او بيا د هغه پر ځای خپله دناستي اراده دي نه کوي مگر هغو ته دا پکار ده چي د پراختيا غوښتنه وکړي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۱۴، رقم: ۲۹- ۲۱۷۸.

**تشريح**: مسئله داده چي د يو سړی په ولاړولو سره د هغه پر ځای د هغه د رضا خخه بغير کښېنستل حرام دی او که رضا حاصله سي نو هغه هم حقيقة کښېدل پکار دي نه چي د څه بيري اوحياء په وجه وي همداسي که يو سړی څوک د مخکي څخه مسجد ته ورواستوي چي هلته د هغه لپاره ځای ونيسي نو هغه سړی هم د هغه ځای څخه ولاړول حرام دی ځکه چي يو سړی هم يوازي په وراستولو سره او د ځای په نيولو سره د مسجد وغيره شان مقدس ځايونو حقدار کېدای نسي مگر کوم سړی چي پر کوم ځای ناست وي هغه هغه ځای ته مخکي د رسېدو په وجه تر ټولو زيات حقدار کيږي که څه هم هلته په رسېدو باندي د هغه دانيت نه وي چي کوم سړی زه

را استولی یم د هغه لپاره ځای نیسم او دلته به هغه سړی کښېنې نو خپله هغه سړي ته د خپل ځای څخه د استونکي لپاره پورته کېدل او د هغه سره په دې اړه د قرباني معامله کول مکروه ده په شرط د دې چي هغه سړی د هغه څخه په فضیلت کي د کمي درجې وي یعني که څوک د هغه څخه زیات افضل وي نو د هغه سره د قرباني معامله کول مکروه نه ده او د هغه لپاره د هغه ځای څخه پورته کېدل ځکه مکروه دي چي په عباداتو کي بلاغذره مکروه دي.

تر څو پوري چي د دې آیت (والذین یوثرون علی انفسهم) تعلق دی چي په دې کي الله تعالی د ایثار کونکو فضیلت بیان کړی دی نو په دې باره کي ویل سوي دي چي دلته ایثار مراد دادی چي د هغه تعلق حفظ نفس یعني د طبعي ضروریاتو او خواهشاتو سره وي.

اوس خو غالبا هیڅ چیري دا دستور نسته خو په پخوا زمانه کي ځیني اصحاب ثروت او دولت چي د هغوی د ژوند بنیادي مقصد پر نورو ظلم کول وو خپل خادمان او ملازمان به ېې جامع مسجد ته وروا استول چي هلته د مخکي څخه ناست کمزوري او غریبان خلک به ېې پورته کړل په وهلو او ټکولو او ورته وه به ېې ویل دلته زما اقا کښېنې د هغې زمانې عارف ته چي د دې غلطي طریقې په باره کي وویل سوه نو هغه په ډېر افسوس سره دا عارفانه مقوله ارشاد وفرمایله هر کله چي د هغوی د عبادت دا حال وي نو د هغوی د ظلم او گناه به څه حال وي.

ځای دي پراخه کړي داسي په هغه وخت کي ویل پکار دي کله چي په ځای کي د پراخې امکان وي کنه په داسي صورت کي داهم ویل نه دي پکار او نه خلک تنگول پکار دي مگر چیري چي ځای تر لاسه کړي هلته دي کښېني. ددې باب د حدیث مناسبت دادی چي په دې حدیث کي دا رغبت ورکړل سوی دی چي لمونځ گزار ته مسجد ته پر وخت رسېدل پکار دي چي د چا د پورته کولو لیري کولو ضرورت مخ ته رانه سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جمعې په ورځ ښه جامه اغوستل

﴿۱۳۰۵﴾: عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ وَّأَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعید رضي الله عنه او ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلَبِسَ مِنْ أَحْسَنِ ثِيَابِهٖ وَمَسَّ مِنْ طِيْبٍ إِنْ كَانَ

څوک چي د جمعې په ورځ غسل وکړي او د خپلو جامو څخه ښه جامه واغوندي که خوشبويي ورسره وي هغه ولګوي

عِنْدَهُ ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَلَمْ يَتَخَطَّ أَعْنَاقَ النَّاسِ ثُمَّ صَلَّى مَا كَتَبَ اللهُ لَهُ ثُمَّ

بيا د جمعې لمانځه ته ولاړ سي مګر د خلکو تر غاړو اوښتو سره مسجد ته نه ننوزي بيا څومره چي الله ﷻ د هغه په مقدر کي ليکلي وي (يعني سنت) وکړي

أَنْصَتَ إِذَا خَرَجَ إِمَامُه حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ كَانَتْ كَفَّارَةً لِّمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ

الْجُمُعَةِ الَّتِيْ قَبْلَهَا رواه أبو داود.

هر کله چي امام د خطبې لپاره ودريږي پټه خوله کښيني تر دې چي د لمانځه څخه فارغ سي نو دا د هغه د ګناهو کفاره ده چي هغه د يوې جمعې څخه تر بلي جمعې پوري کړي وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۲۴۴، رقم: ۳۴۳.

**تشريح**: د ښه جامو څخه مراد سپيني جامې دي رسول الله ﷺ به سپيني جامې خوښولې.

## مسجد ته پر پښو تلل غوره ده

﴿۱۳۰۶﴾: وَعَنْ اَوْسِ بْنِ اَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت اوس بن اوس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ وَبَكَّرَ وَابْتَكَرَ وَ مَشٰي وَ لَمْ يَرْكَبْ وَدَنَا مِنَ

د جمعې په ورځ غسل وکړي او خپل ښځه هم په غسل کولو باعثه کړي او لمانځه ته پر وخت پر پښو ولاړ سي او مسجد ته اول ورسيږي او نژدې کښيني

الْاِمَامِ وَاسْتَمَعَ وَلَمْ يَلْغُ كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ صِيَامُهَا وَقِيَامُهَا.

رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجه.

امام ته او خطبه واوري او يو پالتو بې ځايه خبره ونه کړي نو هغه ته د هر قدم په بدله کي د يو کال د روژو او د شپې د عباداتو ثواب ورکول کيږي. ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه.

**تخريج:** سنن ابي داوٗد ١\ ٢٤٦، رقم: ٣٤٥، والترمذي ٢\ ٣٦٧، رقم: ٣٩٦، والنسائي ٣\ ٩٧، رقم: ١٣٨٣، وابن ماجه ١\ ٣٤٦، رقم: ١٠٨٧.

**د لغاتو حل:** (وابتكر): اى اتى الصلاة في اول وقتها وادرك اول الخطبة.

**تشريح:** د غسل كولو مطلب دادى چي خپله بي بي ولمبوي او د دې څخه مراد چي په خپلي بي بي سره صحبت وكړي چي د هغې د لمبولو باعث سي يا مراد دادى چي خپلي جامې صافي كړي او پرې پيولي يا خپل سره په خطمي وغيره سره ومينزي د جمعې د ورځي يا د شپې د خپلي بي بي سره هم بستري په دې غوره ده چي په دې سره د زنا خطره په زړه كي نه پيدا كيږي او په لمانځه كي حضور قلب حاصليږي.

په حديث كي د لفظ مشى څخه وروسته د لم يرتكب د قيد مقصد دا خبره ښكاره وي چي په ټوله لار په پښو ولاړ سي بيا د تلو سره سپور سي ځكه لم يركب په ذكر كولو سره د دې خبري تاكيد وفرمايل سو چي جامع مسجد ته د تلو لپاره سواري بالكل استعمال نه كړه سي او ټوله لار پر پښو ولاړ سي.

## د جمعي لپاره جامې جوړول

﴿١٣٠٧﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَا عَلٰى أَحَدِكُمْ إِنْ وَجَدَ أَنْ يَّتَّخِذَ ثَوْبَيْنِ لِيَوْمِ الْجُمُعَةِ سِوٰى ثَوْبَيْ مِهْنَتِهِ.

رواه ابن ماجه و رواه مالك عن يحيى ابن سعيد.

په تاسو كي چي څوك د كاروبار يا د مزدورۍ د جامو څخه پرته د جمعې د لمانځه لپاره دوې جامې نوري جوړي كړي نو هيڅ پروا نسته. ابن ماجه، مالک.

**تخريج:** سنن ابن ماجه ١\ ٣٤٨، رقم: ١٠٩٥.

**تشريح:** مطلب دادى كه يو سړي ته اساني حاصله وي چي هغه د جامو څخه ماسېوا كومي چي همېشه اغوندي او په هغو جامو كي د كور بهر كاروبار كوي د جمعې د لمانځه لپاره دوې نوري جامې جوړي كړي نو دا تاوان نه لري.

د دې څخه معلومه سوه چي كه يو سړى په خاصه توګه سره د جمعې او اخترونو په لمانځه كي جامې جوړي كړي نو دا د زهد او تقواى خلاف نه دي مګر د رسول الله ﷺ په باره كي ثابته

ده چي دوې داسي جامې ورسره وې چي په خاصه توګه سره به يې د جمعې په ورځ اغوستلې .

**امام ته نژدې کښېنستل**

﴿۱۳۰۸﴾ : وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمرة بن جندب ﷛ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اُحْضُرُوا الذِّكْرَ وَادْنُوْا مِنَ الْإِمَامِ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَايَزَالُ يَتَبَاعَدُ حَتّٰى يُؤَخَّرَ فِي الْجَنَّةِ وَإِنْ دَخَلَهَا . رواه أبو داود .

د خطبې پر وخت حاضر او امام ته نژدې اوسئ ځکه چي سړى څومره د نيکيو څخه ليري وي هغومره به په جنت کي وروسته وي که چيري جنت ته ولاړ سي ، ابوداؤد .

**تخريج :** سنن ابي داؤد ۱۱ ٦٦۴ ، رقم : ۱۱۰۸ .

**تشريح :** د دې حديث په ذريعه د دې خبرې رغبت ورکول کيږي چي همېشه اعلى امور اختيار کړه سي او پر ادنى شيانو باندي قناعت دې ونه کړه سي .

همت بلند دار که نزد خدا او خلق : باشد بقدر همت تو اعتبار تو

**د خلکو تر غاړو د اوښتلو سزا**

﴿۱۳۰۹﴾ : وَعَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَخَطّٰى رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اتَّخَذَ جِسْرًا إِلَى جَهَنَّمَ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب .

سهل بن معاذ بن انس الجهني د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

کوم څوک چي د جمعې په ورځ د خلکو پر غاړو اوړي هغه د جهنم په لور پول جوړ کړي ځان ته .
ترمذي ، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى

**تخريج :** سنن الترمذي ۲\ ۳۸۸ ، رقم : ۵۱۳ .

**تشريح :** سيد رحمة الله عليه ويلي دي د حديث اسناد عن معاذ ابن انس عن ابيه سهوا نقل کړي دي ځکه چي د معاذ پلار انس ته نه يوازي شرف روايت حاصل دئ مګر فيض صحبت

ورته هم ميسر سوی دی نو صحیح اسناد داسي دی عن سهل ابن معاذ عن ابیه سهل ابن معاذ د خپل پلار څخه نقل کړي دي څرنګه چي په ترمذي کي نقل دي.

د حدیث الفاظ د جهنم پر پل جوړیږي د دې مطلب دادی چي د قیامت په ورځ به داسي سړی د خپل مثل بدله تر لاسه کوي یعني څرنګه چي هغه د خلکو پر څټانو باندي ټوپونه وهلي وه او د خلکو څخه یې خپله لار جوړه کړل همداسي به هغه د جهنم خوا ته د پل په جوړولو سره د هغه خلکو لپاره لاره جوړه کړل سي.

## د ناستي منعه طریقه

﴿۱۳۱۰﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْحَبْوَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ. رواه الترمذي وأبو داود.

د حضرت معاذ رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ چي کله امام خطبه وایي د (حبوة) څخه منعه فرمایلې ده یعني چي دواړه زنګنونه جګ ودروي او ورنونه د نس سره وموښلوي او کناټي پر مځکه ولګوي. ترمذي، ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ٦٦۴، رقم: ۱۱۱۰، والترمذي ۲\ ۳۹۰، رقم: ۵۱۴.

**د لغاتو حل**: (الحَبوة): اسم من الاحتباء وهو ضم الساق إلى البطن بثوب أو باليدين (ورنونه د نس سره موښلول په جامه یا لاسونو سره).

**تشريح**: حبوة د یو خاص ناستي یو خاص طریقې ته وایي د دې صورت داوي چي د پښو پر سر په کښېنستو سره وزن پر پښو وي خو کوناټي پر مځکه نه ایږدي د جامو یا د لاس په ذریعه دواړه زنګونان او ورنونه د نس سره یو ځای کړل سي.

د خطبې پر وخت د داسي ناستي څخه منعه فرمایل سوې ده ځکه چي په داسي حالت کي خوب راځي چي د هغه په وجه د خطبې اوریدل نسي کېدای مګر د هر واره داسي کیږي چي داسي کښېنستونکی د پرکایي په حالت کي د اړخ خوا ته وغورځیږي یا په ناستي بې اودس مات سي او هغه خبر هم نسي.

## د اورمې په راتلو سره ځای بدلول پکار دي

﴿۱۳۱۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَعَسَ

أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ. رواه الترمذي

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم چا ته چي د جمعې په ورځ اررمی راسي نو هغه ته پکار ده چي خپل ځای بدل کړي. ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۲\۴۰۴، رقم: ۵۲۶.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د بل چا پر ځای کښېنستل

﴿۱۳۱۲﴾: عَنْ نَافِعٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

نافع وايي ما د ابن عمر رضي الله عنهما څخه اوريدلي دي چي رسول الله ﷺ د دې څخه منعه فرمايلې ده

وَسَلَّمَ أَنْ يُّقِيْمَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَقْعَدِهِ وَيَجْلِسُ فِيْهِ قِيْلَ لِنَافِعٍ فِي الْجُمُعَةِ قَالَ فِي الْجُمُعَةِ وَغَيْرِهَا. متفق عليه

چي يو څوک يو سړي ولاړوي او خپله د هغهٔ پر ځای کښيني، د نافع څخه پوښتنه وسول ايا دا منعه يوازي د جمعې په ورځ ده؟ هغه وويل د جمعې په ورځ هم او په نورو ورځو کي هم، بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري) ۱۱\۶۲، رقم: ۶۲۷۰، ومسلم ۴\۱۷۱۴، رقم: ۲۸- ۲۱۷۷.

**تشريح:** د دې عمل څخه ځکه منعه فرمايل سوې ده چي په دې سره يو مسلمان ورور ته تکليف ور رسيږي نو دا ممانعت که جمعه وي او که غير جمعه د هر وخت سره متعلق دی.

### د جمعې ادب کونکي لپاره زيری

﴿۱۳۱۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَحْضُرُ الْجُمُعَةَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ فَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِلَغْوٍ فَذٰلِكَ حَظُّهُ مِنْهَا وَرَجُلٌ

د جمعې په ورځ درې ډوله خلک مسجد ته ننوزي ۱: يو هغه چي د پالتو کار لپاره حاضرېږي

(يعني د خطبې پر وخت) بيكاره حركت او لغو كار وي او د هغه د حاضريدو دغه حصه ده ۲: دوهم هغه سړی چي

حَضَرَهَا بِدُعَاءٍ فَهُوَ رَجُلٌ دَعَا اللّٰهَ إِنْ شَاءَ أَعْطَاهُ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُ وَرَجُلٌ

د دعاء لپاره حاضرېږي هغه دعاء كوي كه الله يې قبوله كړي او كه نه، ۳: دريم هغه سړی چي

حَضَرَهَا بِإِنْصَاتٍ وَسُكُوتٍ وَّلَمْ يَتَخَطَّ رَقَبَةَ مُسْلِمٍ وَّلَمْ يُؤْذِ أَحَدًا فَهِيَ

په پټه خوله خطبه اوريدو لپاره حاضر سوی وي نه د چا تر غاړه اوښتی وي او نه يې چا ته تكليف رسولی وي نو د هغه دا كار

كَفَّارَةٌ إِلَى الْجُمُعَةِ الَّتِي تَلِيهَا وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ (مَنْ

كفاره دی د دې جمعې څخه تر هغه جمعې پوري چي ددې سره لګېدلې ده بلكه د درو ورځو زياتو د ګناه كفاره او دا له دې كبله چي الله تعالى فرمايي: كوم سړی چي

جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا). رواه ابوداؤد.

يوه نيكي وكړي هغه ته لس چنده ثواب وركول كيږي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱۱ ٦٦٥، رقم: ۱۱۱۳.

**تشريح**: (ان شاء اعطاه و انشاء منعه) د دې مطلب دادی چي هغه سړی د ادب خلاف او د حكم خلاف هغه وخت په دعاء كي بوخت دی ځكه كه الله تعالى وغواړي نو يوازي په خپل فضل او كرم سره به د ده دعا قبوله كړي كه د عدل له مخي هغه د دغه بد كار په وجه چي هغه په دعاء كي په بوخت كېدو سره د خطبې اورېدو څخه غافل سو نو د هغه دعا به قبوله نه كړي، د خطبې پر وخت په دعا كي بوخت كېدل د حنفيه په نزد مكروه دي او د نورو علماؤ په نزد حرام دی، د مشكوة په يوه بله نسخه كي لفظ د يلغوا په صيغه مضارع سره نقل سوې ده مګر صحيح بلغوا دی څرنګه چي دلته نقل سوی دی ځكه چي دا د مخكنيو جملو سره سم دی.

(ولم يؤذ احدا) د دې مطلب دادی چي مسجد ته په راتلو سره هغه چا ته تكليف ورنه كړي په دې توګه چي مثلا نه خو يې څوک د هغه د ځای څخه پورته كړی او نه د چا د بدن پر يو اندام ختلو سره كښېنستی يا همداسي نه خو د چا پر مصلی باندي د هغه د خوښي څخه پرته كښېنستی او نه د اوږي او پياز په ډول بديويه شيانو سره يې چا ته تكليف ورسوی.

## د خطبې پر وخت خبرې کول

﴿۱۳۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي

تَكَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَهُوَ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا وَالَّذِي

د خطبې پر وخت خبري وکړي نو هغه د هغه خره په ډول دی چي پر هغه کتابونه بار وي او څوک چي

يَقُوْلُ لَهُ أَنْصِتْ لَيْسَ لَهُ الْجُمُعَةُ . رواه أحمد .

یو چا ته ووایي چي پټه خوله سه نو د هغه هم جمعه نسته . احمد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۲۳۰.

**تشريح** : د (کمثل الحمار) مطلب دادی چي داسي سړی د هغه خره په ډول دی چي د هغه پر شا کتابونه واچول سي دا په اصل کي د عالم په علم نه کولو څخه کنایه ده او د دې خبري کنایه ده چي هغه سړی په ډېر زیات محنت او مشقت برداشتولو سره علم تر لاسه کړ خو د هغه څخه یې فائده وانه خیستل .

کوم سړی چي په خبرو کي مصروف سړي ته د چپتیا لپاره ووایي نو هغه ته هم د جمعې ثواب ځکه نه تر لاسه کیږي چي د هغه څخه داسي لغو او بې فائدې کلام صادر سو چي د هغه ممانعت ثابت سوی دی ځرنګه چي د دې تفصیل د حضرت ابوهریره رضي الله عنه په روایت کي بیان سوی دی .

## د خطبې پر وخت د رسول الله ﷺ د کلام وضاحت

په یوه روایت کي راځي چي یو وار د جمعې په ورځ رسول الله ﷺ خطبه ویل چي یو اعرابي راغلی هغه عرض وکړ اې د الله رسوله زما مال تباه سو، زما اهل او عیال ووږل سوه، زما لپاره دعا وکړه، رسول الله ﷺ په هغه حالت کي خپل لاس مبارک پورته کړ او دعا یې وکړه یا همداسي په ځیني روایتونو کي د خطبې په حالت کي خبري اتري کول ثابت دي نو د دې روایتو په باره کي څو احتمال دي یا خو دا چي د رسول الله ﷺ په دعا کي مصروف کېدل یا خبري اتري کول د خطبې په حالت کي نه وو یا خو د خطبې پیل کېدو څخه مخکي یا د خطبې شروع کېدو وروسته به رسول الله ﷺ په دعا یا خبرو اترو کي مصروف سوی وي یو احتمال

دادى چي ددې روايتو تعلق د هغه زمانې سره دى كله چي د خطبې په حالت كي د دې ډول مصروفيت څخه منعه نه وه سوې يا دا به وويل سي چي دا د رسول الله ﷺ د ځانګړتياوو څخه دى.

## د جمعې ورځ دا اختر ورځ ده

﴿۱۳۱۵﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبيد بن السباق رضي الله عنه څخه مرسلا روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل

وَسَلَّمَ فِيْ جُمُعَةٍ مِّنَ الْجُمَعِ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ إِنَّ هٰذَا يَوْمٌ جَعَلَهُ اللهُ عِيْدًا

يوه ورځ په جمعه كي د جمعو : اې د مسلمانانو ټولې! الله تعالى د جمعې دا ورځ اختر ګرځولې ده

فَاغْتَسِلُوْا وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ طِيْبٌ فَلاَ يَضُرُّهُ أَنْ يَّمَسَّ مِنْهُ وَعَلَيْكُمْ بِالسِّوَاكِ.

رواه مالك ورواه ابن ماجه عنه وهو عن ابن عباس متصلا.

نو تاسو په جمعه كي غسل كوئ كه خوشبويي درسره وي هغه ولګوئ او مسواک خامخا ووهئ. (مالک)

**تخريج**: الامام مالک في موطا ۱\۶۵، رقم: ۱۱۳ وابن ماجه ۱\۳۴۹، رقم: ۱۰۹۸.

**تشريح**: مطلب دادى چي د جمعې ورځ اختر يعني د فقيرانو، اولياء الله او صالحينو لپاره د خوشحالى او د زيب و زينت ورځ ده په دې ورځ ولمبېږئ يعني په ښه ډول صفائي او پاكي وكړئ او عطر استعمال كړئ عطر داسي پكار دي چي په هغه كي عطر وي خو رنګ نه وي پكښې.

علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي په عطرونو كي افضل عطر داسي مشک دي چي په هغه كي د ګلاب ګډون وي ځكه چي رسول الله ﷺ به اكثر د مشكو خوشبو استعمالول.

د حديث الفاظ (ومن كان عنده طيب فلا يضره ان يمس) په باره كي دا اشكال پيدا كيږي چي دا بيان هلته استعماليږي چيري چي د يو ګناه ګمان وي مګر عطر استعمالول او په خاصه توګه د جمعې په ورځ چي سنت موكده دي نو په دې وخت كي يې دا ولي اختيار كړل؟ نو جواب به دا وي چي ځينو مسلمانانو به دا ګمان كوى چي د عطرو په استعمال كي د ښځو استعمال زيات وي او ښځي زيات د دې د استعمال عادت وي ځكه د خلكو لپاره به د دې استعمال مناسب نه وي د دې ګمان ګناه نفي ده په پيرايه كي بيان سوي دي چي څرنګه په طواف يعني د صفا او مروه اركان حج دى او واجب دي مګر د دې باوجود په دې باره كي الله تعالى دا پيرايه

بيان كړ (لا جناح عليه ان يطوف بهما) يعني په دې كي څه حرج نسته چي د صفا او مروه سعي وكړل سي.

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادى چي د جمعې په ورځ په خاصه توګه په غسل او اوداسه كي مسواک استعمالول پكار دي.

## د جمعې په ورځ غسل كول او خوشبويي لګول

﴿۱۳۱۶﴾: وَعَنِ الْبَرَّاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقًّا عَلَى

د حضرت براء رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: واجب ده

الْمُسْلِمِيْنَ أَنْ يَّغْتَسِلُوْا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلْيَمَسَّ أَحَدُهُمْ مِنْ طِيْبِ أَهْلِهِ فَإِنْ

پر مسلمانانو چي د جمعې په ورځ غسل وكړي كه په كور كي خوشبويي وي هغه دي ولګوي كه

لَمْ يَجِدْ فَالْمَاءُ لَهُ طِيْبٌ. رواه أحمد والترمذي وقال هذا حديث حسن.

خوشبويي نه وي نو اوبه يې خوشبويي ده (يعني چي غسل په وكړي). احمد، ترمذي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۸۲، والترمذي ۲\۴۰۷، رقم: ۵۲۸.

**تشريح**: (من طيب اهله) ځكه فرمايل سوي دي چي ښځي اكثر عطر لري ګويا دلته دې ته اشاره ده كه چيري د يو چا سره عطر نه وي نو هغه دي يې د خپل ښځي څخه واخلي مګر د ښځي عطر داسي نه وي چي په هغه كي د رنګ ګډون وي (فالماء طيب له) مطلب دادى كه د چا سره عطر نه وي او د هغه په كور كي د ښځي وغيره سره هم نه وي نو هغه دي په اوبو سره ولمبيږي چي اوبه په درجه د خوشبويي وي ځكه چي اوبه د پاكۍ او صفائي سبب دى او د بدن بدبويي په دې اوبو سره ليري كيږي.

دا حديث او پورته حديث د امام مالک رحمة الله عليه د مذهب تائيد كوي ځكه د هغه په نزد د جمعې په ورځ غسل كول واجب دى مګر د جمهور علماء په نزد د جمعې په ورځ غسل واجب نه دى نو دې حضراتو دا حديث پر سنت محمول كړى دى ځكه چي د دې څخه پرته په نورو ډيرو حديثونو كي دا ثابته ده چي د جمعې په ورځ غسل واجب نه دى بيا هم علماء ليكي چي د جمعې په ورځ غسل نه كول مكروه دى.

----------

# بَابُ الْخُطْبَةِ وَالصَّلٰوةِ

## د خطبې او د جمعې د لمانځه بيان

خطبه په لغات کي خبرو اترو او هغه کلام ته ويل کيږي چي د هغه په ذريعه خلک مخاطب کړل سي مګر د شريعت په اصطلاح کي خطبه هغه کلام ته وايي چي پر پند، نصيحت، ذکر، درود، سلام او شهادتين باندي مشتمل وي.

د جمعې په لمانځه کي خطبه فرض او شرط ده، زموږ د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د خطبې کم تر کمه مقدار سبحان الله يا الحمد لله يا لااله الا الله ويل دي که څه هم د رسول الله ﷺ څخه اوږده خطبه نقل سوې ده مګر اوږده خطبه واجب يا سنت ده خو امام ابويوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه فرمايي چي اوږد ذکر، پند او نصيحت چي هغه ته په عرف عام کي خطبه ويل کيږي ضروري ده يوازي سبحان الله يا الحمد لله ويلو ته خطبه نسي ويل کېداى، امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي تر څو پوري چي دوې خطبې نه وي ويل سوي خطبه نه جائز کيږي د دې ټولو امامانو مذهبونه د فقهي په کتابونو کي مذکور دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د جمعې د لمانځه وخت

﴿۱۳۱۷﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِيْنَ تَمِيْلُ الشَّمْسُ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د جمعې لمونځ هغه وخت کوی چي کله به زوال و سو. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۸۶، رقم: ۹۰۴.

**تشريح**: د جمعې د لمانځه په اړه د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي د يخ په وخت کي به د لمر د زوال کېدو سره به يې د جمعې لمونځ کوی مګر د سختي ګرمي په ورځو کي به يې د يخ په وخت کي کوی څرنګه چي وړاندي به د انس رضي الله عنه د يو بل روايت څخه معلومه سوه.

﴿۱۳۱۸﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ مَا كُنَّا نَقِيْلُ وَلاَ نَتَغَدّٰى إِلاَّ بَعْدَ الْجُمُعَةِ. متفق عليه

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دى چي د جمعې د لمانځه د مخه به موږ نه قيلوله (د غرمې خوب) كول او نه به مو ډوډى خوړل مګر د جمعې تر لمونځ كولو وروسته به مو كول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۴۲۷، رقم: ۹۳۹ ومسلم ۲\ ۵۸۸، رقم: ۳۰ - ۸۵۹.

**تشريح**: د غرمې په وخت كي ارام كولو ته قيلوله وايي كه بيده سي يا بيده نسي د حديث حاصل دادى چي موږ به د جمعې په ورځ په ډوډى خوړلو او قيلوله كي نه بوخت كېدلو، بلكه وختي به د جمعې د لمانځه لپاره تلو د لمانځه كولو وروسته به مو ډوډى خوړل او قيلوله به مو كوله.

﴿۱۳۱۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلاَةِ وَإِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلاَةِ يَعْنِي الْجُمُعَةَ. رواه البخاري

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به د سخت يخ په ورځو كي د جمعې لمونځ وختي كوى او د سختي ګرمى په ورځو كي به يې لږ وروسته كوى. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۳۸۸، رقم: ۹۰۶.

## د جمعې لومړنى اذان

﴿۱۳۲۰﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدٍ قَالَ كَانَ النِّدَاءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوَّلُهُ إِذَا جَلَسَ

د حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي به د جمعې لومړى آذان هغه وو چي

الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ

د امام پر منبر د ناستي وروسته به كېدى، د حضرت ابو بكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كي هم په دې عمل كېدى

فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ وَكَثُرَ النَّاسُ زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ . رواه البخاري

بيا چي د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت زمانه سول او خلک زيات سول نو دريم آذان زيات کړل سو . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۲ ۳۹۳، رقم: ۹۱۲.

**د لغاتو حل**: (الزوراء): موضع في سوق المدينة (د مدينې په بازار کي يو ځای).

**تشريح**: د رسول الله ﷺ په زمانه کي د جمعې د اذان په اړه دا معمول وو چي کوم وخت به رسول الله ﷺ د جمعې د لمانځه لپاره تشريف راوړ او پر منبر به کښېنستی نو اذان به يې کوی د جمعې د اول اذان چي د لمانځه د وخت شروع کېدو څخه وروسته کيږي وخت تړاکلی نه وو د رسول کريم ﷺ د زمانې وروسته د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي هم همداسي معمول وو مګر حضرت عثمان غني رضی الله عنه چي خليفه سو او هغه دا وليدل چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي مسلمانان په کم شمېر کي وه او هغوی هم مسجد ته نژدې اوسېدونکي وه او اکثر مسلمانان به هر وخت د الله تعالى په دربار کي حاضر وه او اوس نه يوازي دا چي د مسلمانانو شمير ډير زيات سوی دی بلکه اکثر مسلمانان د مسجد څخه په ليري ليري سيمو کي اوسي او په خپل کاروبار کي بوخت وي نو هغه دا مناسب وګڼل چي کله د لمانځه وخت راسي نو اذان دي وکړل سي چي کوم خلک په ليري ليري سيمو کي اوسيږي هغوی دي هم په خطبه کي حاضر سي همداسي اول اذان کول شروع سو نو د دريم اذان څخه مراد اول اذان دی مګر د رسول الله ﷺ په زمانه کي ټاکلي دوه اذانونه يعني يو خو هغه اذان چي د خطبې پر وخت کيږي او دوهم د تکبير وروسته ځکه دی ته دريم اذان ويل کيږي .

په هرحال هغه اذان چي د جمعې د لمانځه لپاره تر ټولو مخکي کيږي حضرت عثمان غني رضی الله عنه ټاکلی دی او هغه هم سنت دی دې ته بدعت نسي ويل کېدای ځکه چي د خلفاء راشدينو رضي الله عنهم فعل او د هغوی ټاکلې طريقه هم په سنت کي شمېرل کيږي .

اوس خو غالبا په هيڅ ځای کي دا طريقه رواج نه ده مګر مخکي په ځينو ځايو کي دا معمول وو چي د سنت کولو پر وخت به يې يو اذان کوی دا نه خو د رسول الله ﷺ په زمانه وه ټاکل سوې وه نه د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجمعين او نه د تابعينو رحمة الله عليهم په زمانه ټاکل سوې وه او نه په اکثرو اسلامي هيوادو او ښارو کي هغه وخت اذان کېدی، معلومه

نه ده چي کوم سړي دا بدعت شروع کړی دی، علماء ليکي چي د جمعې په لمانځه کي په تلوار سره د هغه تياري کول او رسېدل واجب دی.

## دوې خطبې

﴿۱۳۲۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

خُطْبَتَانِ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيُذَكِّرُ النَّاسَ فَكَانَتْ صَلَاتُهُ قَصْدًا وَخُطْبَتُهُ قَصْدًا. رواه مسلم

دوې خطبې ويلې او د هغو په منځ کي به کښېنستی او په دواړو خطبو کي يې قرآن کريم وايه او نصيحت به يې کوی او دده مبارک لمونځ به اوسط وو (نه ډير اوږد نه ډير لنډ) او خطبه به يې هم د اوسطي درجې وه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۸۹- ۵۹۱، رقم: ۳۴- ۸۶۲.

**تشريح**: رسول الله ﷺ به د دواړو خطبو په مينځ کي دومره کښېنستی چي د بدن مبارک هر اندام به خپل خپل ځای ته راتلی د دواړو خطبو په مينځ کي ناسته يوازي دومره ټاکل سوې ده چي په هغه کي درې واره سبحان الله ويل کېدای سي د دواړو خطبو په مينځ کي ناسته واجب نه ده مګر سنت ده په دې خبره هم پوهېدل پکار دي چي په صحيح توګه سره دا ثابته نه ده چي رسول الله ﷺ به د دواړو خطبو په مينځ کي په ناستي سره دعا غوښتل.

## لنډه خطبه وايا ست

﴿۱۳۲۲﴾: وَعَنْ عَمَّارٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ

د حضرت عمار رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

طُولَ صَلَاةِ الرَّجُلِ وَقِصَرَ خُطْبَتِهِ مَئِنَّةٌ مِنْ فِقْهِهِ فَأَطِيلُوا الصَّلَاةَ وَاقْصُرُوا

لمونځ اوږد کول او خطبه لنډه ويل د هوښيارتوب نښه ده نو تاسو خپل لمونځ اوږد کوئ او

الْخُطْبَةَ وَإِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا. رواه مسلم

خطبه لنډه وا یاست او ځيني بيان سحر وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\ ۵۹۴، رقم: ۴۷- ۸۶۹.

**د لغاتو حل**: (مَئِنة): اى علامة يتحقق بها فقهه (ځيركتوب).

**تشريح**: د خطبې په حالت کي د خلکو توجه د مخلوق يعني خطبې ويونکي ته وي او حال دا چي د لمانځه په حالت کي د توجه مرکز د الله تعالى ذات وي، پورتني حديث په ډېر بليغ انداز کي دا ښودل غواړي چي د انسان د هوښيارتوب غوښتنه دا کېدل پکار ده چي هغه حالت زيات اوږد کړل سي په کوم کي چي د بنده توجه د خپل خالق خوا ته وي او هغه حالت ډېر مختصر کړل سي په کوم کي چي د ده توجه د مخلوق خوا ته وي مګر په دې خبره باندي پوه سي چي دلته د لمانځه د اوږدولو څخه مراد دادى چي لمونځ د سنت موافق وي يعني د لمانځه کولو په اړه چي کومه درجه د رسول الله ﷺ څخه نقل او ثابته ده د هغه څخه نه طويل وي او نه مختصر، همداسي په دې حديث او په پورتني حديث کي به مطابقت پيدا سي.

( ان من البيان سحرا ) ځکه چي ځيني بيان سحر يعني جادو دى، ګويا دا دخطبې د مختصر کولو په اړه دليل بيانيږي چي د هغه مطلب دادى چي خطبه داسي کول پکار ده چي د قل او دل پوره پوره مصداق وي يعني د هغه الفاظ مختصر مګر د حقائقو او معنى درياب پکښي ځاى سوي وي څرنګه چي د سحر په مختصر الفاظو کي ډېر زيات تاثير وي، همداسي په هغه بيان او تقرير کي هم چي د الفاظ او معنى په اعتبار جامع او مانع وي يو عظيم تاثير وي چي د هغه په وجه د اورېدونکو زړونه د يوه حالت څخه دوهم حالت ته مائل او منتقل کيږي نو د حديث په دې الفاظو کي د بيان تقرير عريف هم دى او مذمت هم په دې ترتيب که يو بيان د اورېدونکو زړونه او دماغ د بدۍ څخه د نيکي خوا ته مايل کړي نو هغه ښه دى او کوم بيان چي د اورېدونکو په ذهن او په فکر کي د نيکۍ د لاري څخه د ليري کولو سره د بدي لاري ته مائل کړي نو هغه خراب دى.

## د رسول الله ﷺ خطبه

﴿۱۳۲۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَطَبَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي کله به رسول الله ﷺ خطبه ويل

احْمَرَّتْ عَيْنَاهُ وَعَلَا صَوْتُهُ وَاشْتَدَّ غَضَبُهُ حَتّٰى كَأَنَّهُ مُنْذِرُ جَيْشٍ يَقُولُ

نو سترګي به يې سرې سوې آواز به يې لوړ سو او سخت غضب ناک به سو لکه چي رسول الله ﷺ بيرونکی دی د خلکو د لښکر څخه په دې الفاظو چي

صَبَّحَكُمْ وَمَسَّاكُمْ وَيَقُولُ بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ وَيَقْرُنُ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى. رواه مسلم

د دښمن لښکر به سبا يا ماښام تاسو لوټ کړي او فرمايل به يې زه او قيامت داسي راليږل سوي يو د دې په فرمايلو سره به يې منځنی ګوته او د شهادت ګوته په خپلو کي سره يو ځای کړې .مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۲\۵۹۲، رقم: ۴۳- ۸۶۷.

**تشريح** : د الله تعالی د لويي او د امت مرحومه د کوتاهيو د ليدني په وجه به د خطبې په وخت کي د رسول الله ﷺ سترګي مبارکي سرې سوې همداسي د امت د غم او فکر په وجه يا دا چي د اوريدونکو غوږونو ته د خپلو الفاظو رسولو لپاره د رسول الله ﷺ اواز به پورته کېدی چي د خلکو زړونه متاثر سي او هغه وخت به د رسول الله ﷺ غصه د امت د اعتقاد او عمل له کبله نه تيزيدل .

په هرحال د حديث خلاصه داده چي څرنګه د خپل قوم او لښکر غفلت شعاري او کمي په ليري کولو سره قومونه او لښکرونه د دښمن د خطرناکو ارادو او منصوبه بندو د بېريدو څخه خپل اواز پورته کوي نو د هغه سترګي سرې کيږي او غصه يې تيزيږي همداسي د خپل امت د غفلت شعاري له کبله د خطبې پر وخت به د رسول الله ﷺ هم دا کيفيت او حالت وو .

د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي څرنګه منځنی ګوته د شهادت د ګوتي څخه لږ اوږده ده همداسي زه هم د قيامت څخه بس لږ مخکي دنيا ته راغلم د قيامت د راتلو وخت زما د پيغمبری د وخت سره متصل دی زما وروسته ډېر ژر قيامت راتلونکی دی .

## په خطبه کي آياتونه ويل

﴿۱۳۲۲﴾: وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ (وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ). متفق عليه

د حضرت يعلي بن اميه ﷺ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پر منبر دا آيت اوريدلی

دی : ( وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ) . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۶۸، رقم: ۴۸۱۹ ومسلم ۲\۵۹۴، ۵۹۵، رقم: ۴۹- ۸۷۱.

**تشريح** : په دې آيت كي د دوږخيانو او د دوږخ د سردار د سوال او جواب بيان دی چي دوږخيان به د دوږخ د عذاب د شدت څخه د بېرېدو سره وايي اې سرداره ته خپل پروردګار ته عرض وکړه چي هغه زموږ کار خلاص کړي مخکي د دوږخ د مشر جواب هم ذکر دی هغه به وايي انک ماكثون يعني مرګ او د دې عذاب څخه ستاسو د خلاصېدو ارمان باطل او بې كاره دی تاسو خو به همېشه په دغه عذاب كي اخته ياستئ رسول الله ﷺ به د دوږخ د عذاب څخه د خلكو د بېرېدو لپاره دا آيت تلاوت كوی .

﴿۱۳۲۵﴾ : وَعَنْ أُمِّ هِشَامِ بِنْتِ حَارِثَةَ بْنِ نُعْمَانَ قَالَتْ مَا أَخَذْتُ ق وَالْقُرْآنِ

د حضرت ام هشام بنت حارثه بن نعمان څخه روايت دی چي ما سورة ق والقرآن

الْمَجِيدِ إِلاَّ عَنْ لِسَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهَا كُلَّ يَوْمِ

المجيد د رسول الله ﷺ د خولې مباركي څخه زده كړی دی چي هره

جُمُعَةٍ عَلَى الْمِنْبَرِ إِذَا خَطَبَ النَّاسَ . رواه مسلم

جمعه به يې په خطبه كي پر منبر خلكو ته وايه . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۲\۵۹۵، رقم: ۵۱- ۸۷۳.

**تشريح** : په خطبه كي په يو وار د رسول الله ﷺ څخه پوره سورت ويل ثابت نه دي ځكه د دې حديث مفهوم دا معلومېږي چي رسول الله ﷺ به د هري جمعې په خطبه كي د سورت لږ لږ برخه تلاوت كول همدا سي بي بي ام هشام رضي الله تعالى عنها به د رسول الله ﷺ څخه هره جمعه په لږ لږ اورېدو سره پوره سورت يا د كړی وي . (والله اعلم)

**د لنګوټې په تړلو سره خطبه ويل**

﴿۱۳۲۶﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ قَدْ أَرْخَى طَرَفَيْهَا بَيْنَ كَتِفَيْهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ . رواه مسلم

د حضرت عمرو بن حريث رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د جمعې په ورځ په داسې

حال کي خطبه ویل چي توره لنگوټه به یې پر سر کړې وه او دلنگوټې دواړې شملې به یې د اوږو په منځ کي پرتې وې . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۹۹۰، رقم: ۴۵۲- ۱۳۵۹.

**تشریح**: په یو ضعیف حدیث کي نقل دي چي په کوم لمانځه کي لنگوټه تړل سوې وي هغه ته د اویا لمنځو فضیلت حاصلیږي په نسبت د هغه لمنځو چي بېله لنگوټې کړل سوي وي.

په هر حال علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چي د پورتني حدیث څخه دا مفهوم اخیستل کیږي چي د جمعې په ورځ ښکلا اختیارول، جامې اغوستل، توره لنگوټه تړل او د لنگوټې دواړې غاړې د اوږو په مینځ کي را زړول سنت دي.

د میرک شاه رحمة الله علیه قول ددې حدیث په باره کي دادی چي د کومي خطبې په باره کي دلته ښودل سوي دي دا خطبه د رسول الله ﷺ د مرض الموت په وخت کي ارشاد فرمایل سوې ده د زیلعي رحمة الله عیله وینا ده چي د توري لنگوټې استعمالول سنت دی صاحب مدخل لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ لنگوټه مبارکه اوه لاسه وه.

سیوطي رحمة الله علیه داسي ډېر صحابه او طابعین ذکر کړي دي چي توره لنگوټه به یې تړل په هغوی کي انس بن مالک رضی الله عنه، عمار ابن یاسر رضی الله عنه، معاویه رضی الله عنه، ابو درداء رضی الله عنه، براء رضی الله عنه، عبد الرحمان بن عوف رضی الله عنه، وائله رضی الله عنه، سعید بن مسیب رضی الله عنه، حسن بصري او سعید بن جبیر وغیره هم دي. نووي رحمة الله علیه لیکلي دي چي لنگوټه په دواړو طریقو سره تړل جائز ده که شمله یې ایله کړې وي یا نه وي، په دې کي یوه طریقه هم مکروه نه ده.

## د خطبې پر وخت تحیة المسجد کول

﴿۱۳۲۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په خطبه کي فرمایلي دي

إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا . رواه مسلم

هر کله چي په تاسو کي یو څوک د جمعې په ورځ مسجد ته ولاړ سي او امام خطبه وایي نو هغه ته پکار دي چي دوه لنډ رکعتونه وکړي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۹۷، رقم: ۵۹- ۸۷۵.

**تشريح**: امام شافعي رحمة الله عليه دا روايت پر تحية المسجد محمول کړی دی د هغه په نزد د تحية المسجد لمونځ واجب دی که څه هم امام خطبه وايي، دا مذهب د امام محمد رحمة الله عليه هم دی دا دواړه حضرات دا حديث خپل دليل جوړوي چي تحية المسجد واجب دی ځکه خو رسول الله ﷺ د خطبې په وخت کي د دې کولو تاکيد کړی دی.

د حنفيه په نزد تحية المسجد د جمعې څخه پرته په نورو وختو کي واجب نه دی نو د خطبې په وخت به په اولی طريقې سره واجب نه وي د امام مالک رحمة الله عليه او سفيان ثوري رحمة الله عليه هم دا مذهب دی جمهور علماء صحابه رضي الله تعالی عنهم او تابعين همنوا دي.

د دې حضراتو له خوا د دې حديث تاويل دا کيږي چي دلته د خطبې څخه مراد اراده ده يعني در سول الله ﷺ دا ارشاد مبارک دی چي دوه رکعته هغه وخت هم کول کيږي کله چي امام د خطبې لپاره ورسيږي او د خطبې ورکولو اراده کوي نه دا چي بالفعل خطبه وايي د دې تاويل هغه قرائن او صحيح احاديث دي چي د هغه څخه د خطبې پر وخت د لمانځه حرمت ثابت سوی دی د رسول الله ﷺ ارشاد دی: کله چي امام د خطبې لپاره منبر ته روان سي نو د هغه وخت څخه خبري اتري نه دي صحيح نه لمونځ صحيح دی، يوازي دا ارشاد نبوي نه بلکه د حضرت علي کرم الله وجهه او حضرت عمر ؓ په باره کي نقل دي چي هغوی به هم د امام د خطبې لپاره د راوتلو وروسته کلام او لمونځ کول دواړه مکروه ګڼل نو د صحابه رضي الله تعالی عنهم قول حجت دی او زموږ په نزد د هغه تقليد د واجب که سنت څخه منقول يو شی د هغه مخالف نه وي.

په صحيح بخاري او مسلم کي د حضرت جابر ؓ څخه دا روايت په متعدد طريقو سره نقل دی چي يو سړی په مسجد کي هغه وخت داخل سو کله چي رسول الله ﷺ خطبه ورکول، رسول الله ﷺ د هغه سړي څخه پوښتنه وکړه چي تا تحية المسجد کړي دي؟ هغه عرض وکړ چي يا، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دوه رکعته لمونځ وکړه او مختصر يې وکړه د دې تاويل دا کېدای سي چي دا واقعه د هغه وخت ده چي د خطبې په وخت کي د لمانځه کولو ممانعت نه وو سوی يا دا اجازه يوازي د هغه سړي لپاره مخصوص وو د ځينو حضراتو تحقيق دادی چي دا واقعه د رسول الله ﷺ د خطبې شروع کولو مخکي پېښه سوې وه.

شيخ ابن همام رحمة الله عليه چي په دې اړه کومه خبره فرمايلې ده هغه زياته مناسبه ده هغه فرمايي په دې حديث کي او په هغو حديثونو کي چي د هغه څخه د خطبې د وخت کولو ممانعت

ثابتیږي څه اختلاف پکښي نه لازمیږي، کېدای سي کله چي سړی په مسجد کي داخل سو او رسول الله ﷺ هغه ته د لمانځه کولو لپاره وفرمایل نو رسول الله ﷺ خطبه درولې وه بیا رسول الله ﷺ خطبه پوره کړې وه.

د ابن همام رحمة الله علیه دا خبره یوازي تر دغه قیاس او تاویل پوري محدوده نه ده مګر حقیقت دادی چي صورت حال همداسي سوی دی د دارقطني رحمة الله علیه روایت بالکل په واضح الفاظو کي دا وضاحت کړی دی چي رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چي دوه رکعته لمونځ وکړه بیا تر څو پوري چي هغه سړی د لمانځه څخه فارغ سوی نه وو نو رسول الله ﷺ چپ وو د لمانځه څخه د فارغه کېدو وروسته رسول الله ﷺ بیا خطبه مکمله کړې وه.

## یو رکعت د امام سره کول

﴿۱۳۲۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصَّلَاةِ مَعَ الْإِمَامِ فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ. متفق علیه

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي د امام سره یو رکعت ونیوی نو هغه پوره لمونځ ونیوی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\۵۷، رقم: ۵۸۰، ومسلم ۱\۴۲۴، رقم: ۱۶۲- ۶۰۷.

**تشریح**: دا حکم په عامه توګه د ټولو لمنځو لپاره دی د جمعې لپاره مخصوص نه دی په کتاب الصلوة باب ما علی الماموم کي ددغه مضمون حدیث تیر سوی دی چي (من ادرک رکعة قد ادرک الصلوة) د دې وضاحت هلته هم سوی دی مګر دا حدیث چي دلته نقل کیږي امام شافعي رحمة الله علیه د جمعې په لمانځه سره مخصوص او مقید کړی دی او د دې بنیاد هغه د ابو هریره رضی الله عنه پر هغه روایت ایښی دی کوم چي د دې باب په اخر کي راځي.

د فقه حنفي په مشهور کتاب هدایه کي لیکلي دي چي کوم سړي ته د جمعې په لمانځه کي د امام سره د لمانځه کومه برخه حاصله سي هغه دي د امام سره اداء کړي او پر هغه برخه باندي د جمعې بناء کولو سره پاته لمونځ دي پوره کړي د دې حدیث دا دلیل دی چي (ما ادرکتم فصلوا ما فاتکم فاقضوا) یعني د لمانځه کومه برخه چي د امام سره ترلاسه کړئ هغه دي ادا کړي او څه چي پاته سي هغه دي پوره کړي د دې مطلب دا سو که یو سړی د جمعې په لمانځه کي بالکل په اخر کي په داسي حال کي شریک سي چي امام په التحیات کي وي یا په سجده سهو کي وي

نو هغه ته پکار ده چي په هغه حالت کي په جماعت کي شريک سي او د امام سره د جمعې د لمانځه کومه برخه چي هغه لاندي کړې ده پر هغه د جمعې بناء کولو سره پاته لمونځ دي پوره کړي، د امام يوسف او امام ابو حنيفة رحمة الله عليهما هم دا مذهب دی.

امام محمد رحمة الله عليه فرمايي که يو سړی د امام سره د جمعې د دوهم رکعت اکثره برخه ترلاسه کوي نو هغه ته پر هغه د جمعې بناکول پکار ده مګر کوم سړی چي د جمعې دوهمه برخه ترلاسه نه کړي نو هغه دي پر هغه د جمعې بناء نه کوي مګر د ماپښين بناء دي وکړي.

د دوهم رکعت د اکثري برخي د ترلاسه کولو څخه مراد د رکوع تر لاسه کول دي يعني که يو سړی د دوهم رکعت په رکوع کي هم نسي ګډ نو هغه اکثره برخه دي لاندي کړي او که امام د رکوع څخه سر په پورته کولو سره هغه په جماعت کي ګډ سي نو هغه ته بۀ اکثره برخه تر لاسه کول نه وايو. شيخ ابن همام رحمة الله عليه فرمايلي دي چي امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام ابويوسف رحمة الله عليه د خپل پورتني مذهب بنياد چي پر کوم حديث ايښی دی هغه حديث مطلق دی د جمعې سره د هغه تخصيص نسته.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نبي کريم ﷺ د خطبې طريقه

﴿۱۳۲۹﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به دوې خطبې ويلې

كَانَ يَجْلِسُ إِذَا صَعِدَ الْمِنْبَرَ حَتَّى يَفْرُغَ أُرَاهُ الْمُؤَذِّنُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ ثُمَّ

پر منبر به کښېنستی بيا چي کله مؤذن به د آذان څخه فارغ سو نو رسول الله ﷺ به ودريدی او خطبه به يې ويل بيا

يَجْلِسُ وَلَا يَتَكَلَّمُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ. رواه أبو داود.

د يوې خطبې وروسته به کښېنستی او هيڅ خبره به يې نه کول بيا به ودريدی او دوهمه خطبه به يې ويل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱/ ۶۵۷، رقم: ۱۰۹۲.

**تشریح**: د حدیث د الفاظ (اذا صعد المنبر) سره سم علماء لیکي چي پر منبر باندي په دریدو سره خطبه ویل مستحب ده د دوارو خطبو په مینځ کي د ناستي د مقدار په باره کي علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمایلي دي غوره داده چي د سورة اخلاص قل هو الله احد ویلو په اندازه دي کښیني.

(خبري به یې نه کولې): د دې مطلب دادی چي د دوارو خطبو په مینځ کي به رسول الله ﷺ نه یو دعا کول او نه به یې څه ویل.

مسئله داده چي په دوهمه خطبه کي د رسول الله ﷺ د آل، اصحاب او ازواج مطهراتو، خلفاء راشدینو، حضرت حمزه رضی الله عنه او حضرت عباس رضی الله عنه لپاره دعا کول مستحب ده.

په شرح کنیه کي لیکلي دي چي د پاچهانو داسي تعریف چي غلط وي او د هغوی داسي اوصاف بیانول چي د هغه سره هغوی متصف نه وي سخت مکروه یعني مکروه تحریمي دی ځکه چي په داسي عبادت سره ګناه یعني دروغ یو ځای کول لازمیږي، د دې مسئلې شدت ددي ځخه په ښه ډول واضح کیږي چي زموږ ځیني امامانو خو دا ویلي دي چي زموږ د زمانې پاچاهانو ته عادل ویل د کفر حد ته نژدې کیږي، په حدیث کي چي دا بیان سوی دی چي رسول الله ﷺ د دوارو خطبو په مینځ کي خبري نه کولې نو د دې په باره کي شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله علیه تشریح کړې ده کوم چي پورته بیان سوې ده مګر علي قاري رحمة الله علیه د شرح طیبي ځخه نقل کړي دي چي د دوارو خطبو په مینځ کي د قرآن ویل غوره دي ځکه چي د ابن حبان رحمة الله علیه یو روایت دی چي د هغه مفهوم دادی: کله چي به رسول الله ﷺ د دوارو خطبو په مینځ کي کښېنستی نو د کتاب الله ایاتونه به یې ویل ځیني حضراتو ویلي دي چي په دې دوران کي سورة اخلاص ویل مستحب دی، په هرحال داسي معلومیږي چي د حدیث د دې جملې د تشریح پر وخت به د شیخ عبدالحق رحمة الله علیه دا روایت نه وو. والله اعلم.

## خطبې ته د ناستي طریقه

﴿۱۳۳۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَوٰى عَلَى الْمِنْبَرِ اِسْتَقْبَلْنَاهُ بِوُجُوْهِنَا. رواه الترمذي وقال هذا حديث لا نعرفه إلا من حديث محمد بن الفضل وهو ضعيف ذاهب الحديث.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ځخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ پر منبر کښېنستی نو

مخامخ به سوو موږ ده ته په مخونو خپلو سره ، ترمذي ويلي دي دا موږ ته يوازي د محمد بن فضل څخه څرګنده ده چي ضعيف دی او د هغه حديث ياد نه پاته کېدل .

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۳۸۳، رقم: ۵۰۹.

**تشريح**: د دې حديث څخه معلومه سوه چي د خلکو لپاره دا مستحب ده چي هغوی د خطبې پر وخت د خطبې اورېدو لپاره خپل مخ د خطيب خواته متوجه کړي او کښېني همداسي خطيب دي هم خلکو ته مخ په متوجه کېدو سره خطبه شروع کړي .

د حنفيه په نزد مسئله داده چي کله خطيب د خطبې لپاره پر منبر کښېني نو خلکو ته دي سلام نه کوي خو امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه د دې څخه اختلاف کړی دی .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### نبي كريم ﷺ به خطبه په ولاړه ويل

﴿۱۳۳۱﴾: عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به خطبه ويل

قَائِمًا ثُمَّ يَجْلِسُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا فَمَنْ نَبَّأَكَ أَنَّهُ كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا

په ولاړه بيا به کښېنستی بيا به ودريدی او خطبه به يې ويل ، کوم چا چي تا ته دا خبر درکړی دی چي رسول الله ﷺ به په ناسته خطبه ويل

فَقَدْ كَذَبَ فَقَدْ وَاللّٰهِ صَلَّيْتُ مَعَهُ أَكْثَرَ مِنْ أَلْفَيْ صَلَاةٍ . رواه مسلم

هغه دروغجن دی ما د رسول الله ﷺ سره تر دوو زرو زيات لمنځونه کړي دي .مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۸۹، رقم: ۳۵- ۸۶۲.

**تشريح** : د دوو زرو څخه زيات لمنځونو څخه يوازي د جمعې لمنځونه مراد نه دي بلکه مطلب دادی چي جمعه او د جمعې پرته نور تر دوو زرو زيات لمنځونه ما د رسول الله ﷺ سره کړي دي ځکه چي رسول الله ﷺ تر ټولو اوله جمعه مدينې منورې ته په راتلو سره کړي وه او په مدينه کي د رسول الله ﷺ ټول وخت د اقامت لس کاله وو همداسي د رسول الله ﷺ په ژوند کي د ټولو جمعو اندازه تر پنځو سوو زياته وه، په هرحال د حضرت جابر رضي الله عنه مقصد خو د رسول الله ﷺ

سره د معیت او رفاقت (ملگرتوب) زیاتوب بیانول دی.

په شرح منیه کي دا مسئله لیکلې ده چي کوم ښار په جنګ او جدل سره او د توري په ذریعه فتح سوی وي لکه مکه مکرمه چي فتح سوې ده نو هلته خطیب ته په توري سره خطبه ویل او د کوم ښار اوسېدونکي چي په خپله خوښه مسلمانان سي یعني اسلام قبول کړي لکه مدینه منوره نو هلته بېله توري خطبه ویل پکار ده.

په ینا بیع کي لیکلي دي چي دوهمه خطبه د اولي خطبې په نسبت په کرار اواز سره ویل پکار ده.

﴿۱۳۳۲﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ ابْنُ أُمِّ

د حضرت کعب بن عجرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي هغه مسجد ته ننوتی او عبدالرحمن بن ام

الْحَكَمِ يَخْطُبُ قَاعِدًا فَقَالَ انْظُرُوا إِلَى هَذَا الْخَبِيثِ يَخْطُبُ قَاعِدًا وَقَالَ

الحکم په ناسته خطبه ویل هغه وویل دا خبیث ته ګوره چي په ناسته خطبه وایي حال دا چي

اللَّهُ تَعَالَى وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا. رواه مسلم

الله تعالی فرمایلي دي (کوم وخت چي سوداګري یا لوبي ویني نو د هغه په لور ور وځغلي او تا په ولاړه) (خطبه ویلو) پرېږدي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۵۹۱، رقم: ۳۹- ۸۶۴.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ په مقدسه زمانه کي یو وار په مدینه منوره کي سخته وچ کالي راغلل او اهل مدینه سخت پرېشان او په تکلیف کي اخته سول په هغه ورځو کي یو وار داسي وسول چي رسول الله ﷺ د جمعې ورځ پر منبر خطبه و فرمایل چي ناڅاپه د تجارت یوه قافله د شام څخه په مدینه کي داخله سول، صحابه کرام رضي الله تعالی عنهم چي د لوږي څخه ډیر بې حاله او کمزوري سوی وه د خطبې په دوران کي هغه قافلې ته د کتلو لپاره د مسجد څخه دباندي ووتل ځیني صحابه کرام رضي الله عنهم چي د هغوی شمېر دوولس وو په مسجد کي ناست خطبه بې اورېدل د دغه خلکو په اړه پورتنی آیت نازل سو، د کعب رضی الله عنه د ارشاد مطلب دا وو چي د الله تعالی د دې قول څخه دا خبره بالکل واضحه کېږي چي خطبه په ولاړه ویل کیږي او د صحیح احادیثو څخه هم ثابته ده، نو سربېره د دې چي هغه سړي په ناسته خطبه ویل نو د هغه

په خبث باطن کي څه شک دی.

په هر حال د آيت د الفاظو (تا ولاړ پرېږدي) څخه دا خبره څرگنده سوه چي رسول الله ﷺ به په ولاړي خطبه ورکول د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په ولاړي خطبه ورکول د خطبې شرط دی مگر د حنفيه په نزد سنت دی.

## د جمعې او خطبې وختونه

د جمعې د صحيح اداء کولو د شرطو څخه يو شرط وخت دی چي وخت تېر سي بيا نه صحيح کيږي د جمعې وخت د ماپښين وخت دی د جمعې لمونځ د وخت څخه مخکي جائز نه دی مگر د امام احمد ابن حنبل رحمة الله عليه په نزد صحيح دی همداسي د مازديگر وخت د شروع کېدو وروسته هم د جمعې لمونځ جائز نه دی خو د امام مالک رحمة الله عليه په نزد جائز دی.

پورتنی حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د حرام يا مکروه شيانو کونکي باندي سختي کول يا په هغه سره د غصې معامله کول جائز ده ځکه چي د هغه شي خلاف عمل کول چي د هغه همشتوب د رسول الله ﷺ څخه ثابت دی دا د هغه د خبث باطن علامه ده.

## په خطبه کي لاسونه غورزول نه دي پکار

﴿۱۳۲۳﴾: وَعَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُؤَيْبَةَ قَالَ رَأَى بِشْرَ بْنَ مَرْوَانَ عَلَى الْمِنْبَرِ رَافِعًا

د حضرت عمارة بن رويبة ﷛ څخه روايت دی چي هغه بشر بن مروان پر منبر وليدی

يَدَيْهِ فَقَالَ قَبَّحَ اللّٰهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په لاسو غورزولو سره، هغه وويل الله تعالى دي دا لاسونه خراب کړي ما رسول الله ﷺ ليدلی دی

مَا يَزِيدُ عَلَى أَنْ يَقُولَ بِيَدِهِ هٰكَذَا وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ الْمُسَبِّحَةِ. رواه مسلم

چي تر دې زياته اشاره يې نه کول د دې په ويلو سره يې د شهادت په گوتي سره اشاره وکړل. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۵۹۵، رقم: ۵۳- ۸۷۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي کله حضرت عمار ﷛ بشر وليدی چي هغه د سنت طريقې خلاف خپل لاسونه زيات پورته کوي نو پر هغه بې ډير بد وويل چي په داسي الفاظو کي يې د هغه اظهار وکړ د دې وروسته هغه د خپل شهادت په گوتي سره په اشاره کولو سره وښودل چي رسول الله ﷺ به يوازي په دومره اندازه اشاره کول او هغه به بې هم ځکه کول چي خلک په ښه انداز

سره مخاطب وي او ه خطبې اورېدو خواته راغب وي او د خبطې پر جزئیاتو باندي د عمل کولو ولوله او جذبه پیدا سي.

## د نبي کریم ﷺ د خطبې پر وخت پر منبر درېدل او د ابن مسعود رضي الله عنه مسجد ته رابلل

﴿۱۳۳۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا اسْتَوٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَ اجْلِسُوْا فَسَمِعَ ذٰلِكَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فَجَلَسَ عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ فَرَآهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تَعَالَ يَا عَبْدَ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ. رواه أبو داود.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي یو ځل رسول الله ﷺ په اطمینان سره پر منبر کښېنستی او وه یې فرمایل: کښېنئ، ابن مسعود دا الفاظ واورېدل نو د مسجد په دروازه کي کښېنستی چي هغه وخت هلته ولاړ وو کله چي رسول الله ﷺ هغه ولیدی نو وه یې فرمایل: عبدالله بن مسعوده! دننه راسه. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۵۶، رقم: ۱۰۹۱.

**تشریح**: علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي دا حدیث د دې خبري دلیل دی چي پر منبر باندي د خطبې ورکولو او درېدو په صورت کي خبري کول جائز دي مګر د حنفیه په نزد د خطیب لپاره د خطبې په حالت کي کلام کول جائز نه دی په شرط د دې چي هغه کلام د امر بالمعروف په توګه نه وي خو خطیب ته پکار ده چي د امر بالمعروف په اړه که چاته څه وایي نو په عربي ژبه کي دي یې ووایي که په بله ژبه یې ووایي نو مکروه ده.

علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمایي چي په ښکاره خو داسي معلومیږي چي کله به رسول الله ﷺ د خطبې لپاره پر منبر ودرېدی نو رسول الله ﷺ به په حاضرینو کي یو څوک هغه وخت د لمانځه کولو لپاره درېدلی لیدلی وو نو هغه ته به یې د کښېنستلو حکم فرمایلی وي ځکه چي د خطبې لپاره پر منبر باندي د خطیب د کښېنستلو په وخت کي لمونځ کول حرام دي څرنګه چي د ټولو علماؤ دا متفقه مذهب دی.

## د جمعې دلمانځه قضايي

﴿۱۳۳۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي

أَدْرَكَ مِنَ الْجُمُعَةِ رَكْعَةً فَلْيَصِلْ إِلَيْهَا أُخْرٰى وَمَنْ فَاتَتْهُ الرَّكْعَتَانِ فَلْيُصَلِّ

أَرْبَعًا أَوْ قَالَ الظُّهْرَ . رواه الدار قطني .

د جمعې يو ركعت ونيسي نو هغه ته پكار ده چي د هغه سره دوهم ركعت يو ځای کړي او د کوم چا څخه چي دواړه رکعتونه تير سي نو هغه ته پکار ده چي څلور رکعته وکړي يا د ماپښين لمونځ وکړي . دار قطني.

**تخريج**: سنن الدار قطني ۲\۱۱، رقم: ۷.

**تشريح** : که څه هم نووي رحمة الله عليه وضاحت کړی دی چي دا حديث د ضعف څخه خالي نه دی خو دا حديث که صحيح هم ومنل سي نو د دې مطلب به دا وي چي کوم سړی د جمعې دوه رکعتونه هيڅ ونه نيسي نو هغه دي د ماپښين څلور رکعته وکړي د دې مسئلې وضاحت د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د هغه روايت د تشريح په ضمن چي د دې باب د اول فصل په اخر کي تېر سوی دی بيان سوی دی .

=========

# بَابُ صَلٰوةِ الْخَوْفِ (د بيري دلمانځه بيان)

د کافرانو د بيري او د دښمن د مقابلې په وخت کي چي کوم لمونځ کيږي هغه ته د بيري لمونځ ويل کيږي، د بيري لمونځ د کتاب او سنت څخه ثابت دی، د اکثرو علماؤ په نزد پر دې خبره اتفاق دی چي د رسول الله ﷺ د وصال وروسته هم دا لمونځ پاته او ثابت دی که څه هم د ځينو حضراتو قول دی چي د بيري لمونځ يوازي د رسول الله ﷺ د زمانې سره ځانګړی وو او د ځينو حضراتو مثلا امام مالک رحمة الله عليه په نزد دا لمونځ د سفر په حالت سره مخصوص دی او د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد دا لمونځ د سفر او حضر په دواړو صورتو کي جائز دی .

د زماني او ځای د اختلاف په مناسبت سره دا لمونځ په زياتو طريقو سره روايت سوی دی ځينو حضراتو ويلي دي چي په شپاړلسو طريقو سره نقل دي، ځيني حضرات تر دې زيات او ځينو تر دې کم طريقې وايي، مګر د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي په حديثو کي چي څومره طريقې نقل دي ټولي معتبري دي، د علماء په نزد اختلاف يوازي د ترجيح او فوقيت په باره کي دی، چا يوې طريقې ته ترجيح ورکړې ده او د چا په نزد بلي طريقې ته فوقيت حاصل دی، علامه شمني رحمة الله عليه ويلي دي چي رسول الله ﷺ د بيري لمونځ څلور ځايه کړی دی: اول په ذات الرقاع کي، دوهم په بطن نخل کي، دريم په عسفان کي او څلورم په قرد کي.

د دې څخه معلومه سوه چي د بيري لمونځ سته نو د سفر په حالت کي پر دې قياس کولو سره دا لمونځ ہې په حضر کي هم جائز کړی دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د جګړې په وخت کي دلمانځه طريقه

﴿۱۳۳۶﴾: عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ

حضرت سالم بن عبد الله بن عمر د خپل پلار څخه روايت دی کوي چي زه د رسول الله ﷺ سره

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ فَصَافَفْنَا لَهُمْ فَقَامَ

د نجد په لور په جهاد ولاړم او د دښمن سره مو مقابله وکړه موږ د دښمن په وړاندي صف بندي وکړه او رسول الله ﷺ ودريدی

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ لَنَا فَقَامَتْ طَائِفَةٌ مَّعَهُ وَأَقْبَلَتْ

موږ ته دلمانځه کولو لپاره يوه ډله د رسول الله ﷺ سره لمانځه ته ودريدل او بله ډله د دښمن مقابلې ته ودريدل

طَائِفَةٌ عَلَى الْعَدُوِّ وَرَكَعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْ مَعَهُ وَسَجَدَ

رسول الله ﷺ د هغه خلکو سره چي په رسول الله ﷺ پسي لمانځه ته ولاړ وه رکوع وکړل بيا يې دوې سجدې وکړې

سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفُوْا مَكَانَ الطَّائِفَةِ الَّتِيْ لَمْ تُصَلِّ فَجَاؤُوْا فَرَكَعَ رَسُوْلُ

بيا كومي ډلي چي لمونځ كوى د هغه ډلي پر ځاى ودريدل كوم چي لمنځونه نه وه كړې او د دښمن سره جنګېدل هغه ډله راغلل او د رسول الله ﷺ سره يې يو ركعت وكړ

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِمْ رَكْعَةً وَّسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ كُلُّ

او دوې سجدې يې وكړې ، بيا رسول الله ﷺ سلام وګرځوى او هر سړي په ولاړه

وَاحِدٍ مِّنْهُمْ فَرَكَعَ لِنَفْسِهِ رَكْعَةً وَّ سَجْدَتَيْنِ وَرَوٰى نَافِعٌ نَحْوَهُ وَزَادَ فَإِنْ

بيل بيل خپل يو ركعت وكړى او دوې سجدې يې وكړې ، رافع هم دا ډول روايت بيان كړى دى د هغه په روايت كي دا الفاظ زيات دي كه چيري

كَانَ خَوْفٌ هُوَ أَشَدُّ مِنْ ذٰلِكَ صَلُّوْا رِجَالاً قِيَامًا عَلٰى أَقْدَامِهِمْ أَوْ رُكْبَانًا

يره د دې څخه هم زياته وي نو خلک دي پر پښو په ولاړه او سپاره دي پر خپل سپرلۍ

مُسْتَقْبِلِي الْقِبْلَةِ أَوْ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِيْهَا قَالَ نَافِعٌ لاَ أُرٰى ابْنَ عُمَرَ ذَكَرَ ذٰلِكَ

د قبلې په لور يا بل لوري ته مخ كړي او لمونځ دي وكړي ، نافع وايي ابن عمر به دا روايت

إِلاَّ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه البخاري .

خامخا د رسول الله ﷺ څخه نقل كړى وي .بخاري.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۲۹، رقم: ۹۴۲.

**تشريح** : نجد لوړي ځكي ته وايي او دلته د نجد څخه مراد نجد حجاز دى نجد يمن مراد نه دى دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي تعدد د جماعت يعني څو څو واره جماعت كول مكروه دى په خاصه توګه كله چي ټول لمونځ كونكي حاضر وي، همداسي دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي فرض لمونځ په نفل لمونځ كونكو پسي نه دى صحيح كنه رسول الله ﷺ به دواړو جماعتونو ته بيل بيل دوه دوه واره لمونځ وركړى واى او د جماعت واجب كېدو هم دا حديث قوي دليل دى چي په داسي حالت كي هم كله چي د دښمن لښكر مخامخ وي جماعت دي نه پرېږدي .

ابن همام رحمة الله علیه فرمايي چي په پورتني طريقې سره د بيري د لمانځه اداء کول هغه وخت ضروري کيږي کله چي ټول خلک د يوه سړي پر امام جوړولو باندي ټينګ وي که داسي صورت نه وي نو بيا غوره داده چي يو امام دي يو جماعت ته پوره لمونځ ورکړي او دوهم امام دي دوهم جماعت ته پوره لمونځ ورکړي.

د حديث الفاظ فقام کل واحد منهم او دا خلک ودريدل د دې تفصيل او تشريح د علماء حنفيه څخه ځيني شارحينو دا بيان کړې ده چي دا جماعت چي وروسته په راتلو سره په لمانځه کي ګډ سوی وو د رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو وروسته د دښمن سره د مقابلې لپاره ولاړ او اول جماعت چي په اول رکعت کي ګډ سوی وو د هغه ځای څخه د لمونځ کولو لپاره راغلی او يوازي يوازي خپل پاته لمونځ يې پوره کړی او د سلام ګرځولو سره بيا د دښمن مقابلې ته ولاړل د دې وروسته بيا دوهم جماعت دلته راغی او هغوی هم يوازي يوازي خپل لمونځ په پوره کولو سره سلام وګرځوی او بيا د دښمن مقابلې ته ولاړل.

ابن ملک رحمة الله علیه فرمايي چي د ځينو علماؤ څخه دا تفصيل او طريقه نقل ده د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه هم دا مذهب دی که څه هم دا تفصيل په حديث کي په وضاحت سره نه دی بيان سوی او نه په صراحت سره حديث پر دې دلالت کوي مګر ابن همام همام رحمة الله علیه فرمايي چي د دې حديث څخه د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه د مذهب يو برخه ثابتيږي او هغه دا چي اول جماعت په يوه رکعت کولو سره ولاړ سي او دوهم جماعت په دريم رکعت کي په راتلو سره د امام سره ګډ سي او د دې دوهم جماعت په شتون کي دي امام خپل لمونځ په پوره کولو سره سلام وګرځوي البته د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه پوره مذهب او د هغوی نقل سوې پوره طريقه د يو بل روايت څخه معلوميږي چي پر حضرت ابن عباس ﷺ باندي موقوف ده، د امام اعظم رحمة الله علیه دا مذهب او د هغوی روايت امام محمد رحمة الله علیه په خپل کتاب الاثار کي نقل کړی دی.

په دې اړه په دې خبره هم پوه سی چي د بيري د لمانځه په باره کي چي د امام اعظم رحمة الله علیه کوم مذهب دی او هغه چي کوم تفصيل بيان کړی دی هغه د حديث د موقوف څخه ثابت دی او ښکاره ده چي په دې باب کي عقل ته هيڅ دخل نسته نو حديث موقوف به د حديث مرفوع په درجه کي وي.

او بيا دا چي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله علیه مذهب داهم دی چي په پورتني صورت کي اول جماعت خپل لمونځ بيله قرائته د لاحق په ډول پوره کړي او دوهم جماعت يې په قرائت

سره پوره کړي ځرنګه چي مسبوق خپل لمونځ په قرائت سره پوره کوي.

مګر دا صورت د هغه وخت دی کله چي لمونځ د سفر په حالت کي کول کیږي او امام مسافر وي یا لمونځ دوه رکعتیز وي او که امام مقیم وي او لمونځ څلور رکعتیز وي نو د دواړو جماعتونو څخه هر یو جماعت به د امام سره دوه دوه رکعته کوي مګر که لمونځ دري رکعتیز وي لکه د ماښام لمونځ که د سفر وي یا د حضر په دواړو صورتونو کي اول جماعت دي د امام سره دوه رکعته کوي او دوهم جماعت یو رکعت او هر جماعت به خپل خپل لمونځ په پورتنی طریقې سره پوره کوي.

د حدیث اخري الفاظ ( قیاما علی اقدامهم ) څخه دې خبري ته اشاده ده چي لمونځ کونکي دي رکوع او سجده پرېږدي یعني په پورتني صورت کي کله چي خلک پر سپرلی باندي لمونځ وکړي نو رکوع او سجده دي د سر په اشاره سره وکړي، د بیري د لمانځه په اړه پورتنی ذکر سوې طریقه که څه هم د قیاس خلاف ده مګر خپله د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد تلل، سپرېدل او جنګ کول لمونځ فاسد کوي بیا دا چي په دې صورت کي نه یوازي دا چي دا عمل کثیر دی بلکه د قبلې څخه هم مخ اړول کیږي ، په قرآن کریم او د رسول الله ﷺ په احادیث صحیحه کي د بیري لمونځ او د دې طریقه راغلې ده ځکه نو هغه مشروع ساتل سوې ده.

**د بیري د لمانځه یوه بله طریقه**

﴿۱۳۳۷﴾: وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَمَّنْ صَلَّى مَعَ رَسُولِ

یزید بن رومان د صالح بن خوات څخه او هغه د هغه سړي څخه چي د رسول الله ﷺ سره یې

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلَاةَ الْخَوْفِ أَنَّ طَائِفَةً صَفَّتْ

د ذات الرقاع په غزا کي د خوف (بیري) لمونځ کړی وو، نقل کوي چي یوې ډلي صف وتړی

مَعَهُ وَطَائِفَةٌ وِجَاهَ الْعَدُوِّ فَصَلَّى بِالَّتِي مَعَهُ رَكْعَةً ثُمَّ ثَبَتَ قَائِمًا وَأَتَمُّوا

د رسول الله ﷺ سره او بله ډله د دښمن مقابلې ته ودریدل، رسول الله ﷺ دې صف ته یو رکعت لمونځ ورکړ بیا په دوهم رکعت کي رسول الله ﷺ ودریدی هغه ډلي خپل لمونځ پوره کړی

لِأَنْفُسِهِمْ ثُمَّ انْصَرَفُوا فَصَفُّوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى فَصَلَّى

بیا یوازي د دښمن مقابلې ته ورغلل او بله ډله راغلل ، رسول الله ﷺ دې ډلي ته هم

بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِي بَقِيَتْ مِنْ صَلاَتِهِ ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا وَأَتَمُّوا لأَنْفُسِهِمْ ثُمَّ

یو رکعت لمونځ ورکړ هغه رکعت چي پاته وو د لمانځه دده ﷺ ځخه بیا پاته سوو ناستو خلکو خپل لمونځ د خپل ځان سره پوره کړ بیا

سَلَّمَ بِهِمْ . متفق عليه واخرج البخاري بطريق آخر عن القاسم عن صالح بن خوات عن سهل بن ابي خثمة عن النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

نبي کريم ﷺ سلام وګرزوی دوی هم سلام ورسره وګرزوی. بخاري او مسلم، امام بخاري دا حدیث د یو بل سند ځخه بیان کړی دی د دې سند داسي دی چي قاسم د صالح بن خوات ځخه او هغه د سهل بن حشمه ځخه او هغه د رسول الله ﷺ ځخه روایت کړی دی.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۱۷\۴۲۱، رقم: ۴۱۲۹ ومسلم ۱۱\۵۷۵، ۵۷۶، رقم: ۳۱۰ – ۸۴۲.

**تشریح**: د ذات الرقاع په ورځ کوم سړي چي د رسول الله ﷺ ملګری وو د هغه نوم سهل ابن خثمه رضی الله عنه وو، ځکه چي محمد ابن قاسم رحمه الله د صلوة الخوف حدیث د صالح ابن خوات رحمة الله علیه ځخه او هغه د حضرت سهل ابن خثمه رضی الله عنه ځخه نقل کړی دی لکه څرنګه چي د بخاري په روایت کي بیان سوي دي.

ذات الرقاع د یو غزا نوم دی چي په پنځم هجري کال کي رامنځته سوې ده، رسول الله ﷺ د کفارو د مقابلې لپاره ولاړی مګر بیله جګړې کولو بیرته ستانه سول او په دغه وخت کي دا لمونځ سوی وو.

دغه غزا ته ذات الرقاع ځکه وایي چي هغه وخت مسلمانان په غزا کي د ګډون کولو لپاره د جنګ ډګر ته تللي وه نو لوڅي پښې وه او د هغه په وجه یې په پښو کي سوریان سوي وه او نوکان یې مات سوي وه هغه مجاهدینو پر خپلو پښو رقاع چاپیره کړي وې او په دې مناسبت سره دا غزا د ذات الراقع په نامه مشهوره سوه.

په دې حدیث کي د بیري د لمانځه چي کومه طریقه نقل سوې ده دا یوه بله طریقه ده په دې کي هم هري ډلي یو رکعت د رسول الله ﷺ سره وکړ او یو یو رکعت یې یوازي وکړ، مګر دلته فرق دادی چي هري ډلي چي یو یو رکعت یوازي وکړ هغه یې د رسول الله ﷺ په لمانځه کي د پاته کېدو په دوران کي وکړ او په لومړی طریقه کي هري ډلي خپل یو یو رکعت د رسول الله ﷺ

د لمانځه څخه د فارغه کېدو وروسته کړې وو.
امام شافعي رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه پر دغه طريقه عمل کړی دی کوم چي د دغه حديث څخه ثابته ده.

## د رسول الله ﷺ زغم

﴿۱۳۳۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَقْبَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره جهاد ته روان سو، کله چي

إِذَا كُنَّا بِذَاتِ الرِّقَاعِ قَالَ كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا عَلٰى شَجَرَةٍ ظَلِيلَةٍ تَرَكْنَاهَا لِرَسُولِ

ذات الرقاع ته ورسيدو نو موږ د رسول الله ﷺ لپاره يوه سايه داره درخته پرېښودل

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَسَيْفُ رَسُولِ

چي د هغې لاندي آرام وکړي، جابر رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ تر درختي لاندي آرام کوی او توره يې

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعَلَّقٌ بِشَجَرَةٍ فَأَخَذَ سَيْفَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

پر درختي زړېدل چي په مشرکينو کي يو سړی راغلی او د رسول الله ﷺ توره يې واخيسته

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرَطَهُ فَقَالَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَخَافُنِي

او د تيکي څخه يې راوکښل او وه يې ويل ايا ته زما څخه بيرېږې ؟

قَالَ لَا قَالَ فَمَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي قَالَ اللّٰهُ يَمْنَعُنِي مِنْكَ قَالَ فَتَهَدَّدَهُ أَصْحَابُ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :نه، هغه ورته وويل زما څخه به دي اوس څوک خلاصوي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ستا د لاسه به ما الله خلاصوي، بيا صحابه کرامو هغه وليدی

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَغْمَدَ السَّيْفَ وَعَلَّقَهُ قَالَ فَنُودِيَ بِالصَّلَاةِ

او هغه يې ونيوی او توره يې په تيکي کي واچول او پر درخته يې وزړول، جابر رضي الله عنه وايي د دې وروسته آذان وسو د لمانځه

فَصَلّٰى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ تَأَخَّرُوا وَصَلّٰى بِالطَّائِفَةِ الْأُخْرٰى رَكْعَتَيْنِ قَالَ

رسول الله ﷺ یوې ډلي ته دوه رکعته ورکړل بیا دا ډله شا ته سول او بله ډله د هغه پر ځای راغلل رسول الله ﷺ هغوی ته هم دوه رکعته ورکړل ،

فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعُ رَكَعَاتٍ وَلِلْقَوْمِ رَكْعَتَانِ .

متفق عليه

يعني رسول الله ﷺ څلور رکعته وکړل او خلکو دوه دوه رکعته وکړل . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۲۶، رقم: ۴۱۳۶، ومسلم ۱\۵۷۶، رقم: ۳۱۱- ۸۳۴.

**تشريح** : د دې حديث څخه معلومه سوه چې رسول الله ﷺ نه یوازې دا چې ډېر زړه ور وو بلکه د کفارو له خوا پر رسېدونکي تاوان باندي به يې صبر کوی او جاهلو کفارو چې به کله د رسول الله ﷺ سره د بداخلاقۍ معامله کول نو رسول الله ﷺ به هغه په ډېر صبر سره زغمل، وافدي رحمة الله عليه ذکر کړی دی چې کله هغه مشرک په غلطي ارادې سره توره راوایستل نو د هغه پر ملا سخت درد پیدا سو چې په هغه سره وارخطا سو او توره یې د لاسه څخه پر مځکه ایله سوه په دې حالت لیدو سره هغه مشرک مسلمان سو او د هغه په وجه ډېرو زیاتو خلکو هدایت تر لاسه کړ مګر ابو عوانه رحمه الله نقل کړی دی چې هغه مسلمان نه سو خو هغه دا وعده وکړه چې بیا به هیڅکله د رسول الله ﷺ سره جنګ نه وکړم .

په هر حال رسول الله ﷺ د هغه پر بداخلاقۍ هغه ته سزا نه ورکړل د دې وجه یا خو تالیف قلب وو یا یو بله وجه وه چې رسول الله ﷺ هغه معاف کړ، د دې حديث په باره کي د مظهر رحمة الله عليه قول دا دی چې د دې څخه مخکي سوی روایت او په دې روایت کي اختلاف دی .

د دغه دواړو روایتونو تعلق د یو ځای یعني غزوه ذات الرفاع سره دی نو د دې وجه دا ده که څه هم دواړه روایتونه په یوه ځای سره متعلق وي خو په وختونو کي فرق او اختلاف دی د دې مطلب دا دی چې دواړه روایتونه به پر دې محمول کیږي چې غزوه ذات الرقاع کي رسول الله ﷺ دوه واره لمونځ کړی دی یو وار خو د هغه طریقې سره سم کوم چې سهل ابن خثمه رضي الله عنه بیان کړی دی او یو وار د هغه طریقې مطابق چې حضرت جابر رضي الله عنه یې بیانوي، نو د سهل روایت د سهار پر لمانځه محمول کیږي او د حضرت جابر رضي الله عنه روایت به د ماپښین یا مازدیګر پر لمانځه محمول کیږي بیا دا ویل کېدای سي چې دواړه روایتونه به پر تعدد غزوات باندي محمول کیږي .

څرنګه چې د جابر رضي الله عنه د ارشاد څخه ثابتیږي چې په دغه وخت کي رسول الله ﷺ څلور

كعته وكړل او د نورو خلكو دوه ركعته سول نو علماؤ د دې څو وجهې بيان كړي دي په هغه ټولو كي صحيح او بهتره وجه داده چي يا خو دا واقعه د آيت د قصر نازلېدو مخكي ده يا كوم ځاى چي دا لمونځ سوى وو هلته قصر نه واجب كېدى، امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه دا قول اختيار كړى دى چي خلكو د رسول الله ﷺ سره دوه ركعته وكړل او پاته دوه ركعته يې يوازي پوره كړل. والله اعلم.

## د بيري د لمانځه يوه بله طريقه

﴿۱۳۳۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْخَوْفِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به موږ ته د خوف لمونځ راكوى

فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ صَفَّيْنِ وَالْعَدُوُّ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ فَكَبَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

موږ په رسول الله ﷺ پسي دوه صفونه جوړ كړل او د ښمن زموږ او د قبلې په منځ كي وو، رسول الله ﷺ تكبير ووايه

وَسَلَّمَ وَكَبَّرْنَا جَمِيعًا ثُمَّ رَكَعَ وَرَكَعْنَا جَمِيعًا ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ

بيا موږ ټولو تكبير ووايه بيا حضرت ﷺ ركوع وكړل نو موږ هم ټولو ركوع وكړل بيا رسول الله ﷺ د ركوع څخه سر راپورته كړ

وَرَفَعْنَا جَمِيعًا ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُودِ وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ وَقَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ

او موږ هم ټولو سر راپورته كړ بيا د سجدې لپاره كښته سو او د رسول الله ﷺ سره هغه صف هم كښته سو كوم چي رسول الله ﷺ ته نژدې وو يعني لومړى صف او دوهم صف

فِي نَحْرِ الْعَدُوِّ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السُّجُودَ وَقَامَ الصَّفُّ

د ښمن مقابلې ته ولاړى بيا رسول الله ﷺ سجده وكړه او هغه صف ودريدى

الَّذِي يَلِيهِ انْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُودِ ثُمَّ قَامُوا ثُمَّ تَقَدَّمَ الصَّفُّ

(كوم چي سجده كړې وه) بيا دوهم صف د لومړي صف پر ځاى

الْمُؤَخَّرُ وَتَأَخَّرَ الصَّفُّ الْمُقَدَّمُ ثُمَّ رَكَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَكَعْنَا

او لومړی صف د دوهم صف پر ځای ودریدل (د قرائت وروسته) رسول الله ﷺ رکوع وکړه او موږ ټولو هم رکوع وکړه

جَمِيعًا ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَرَفَعْنَا جَمِيعًا ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُودِ

بیا یې د رکوع څخه سر پورته کړ او موږ هم سر پورته کړ بیا د رسول الله ﷺ سره نژدې صف

وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ الَّذِي كَانَ مُؤَخَّرًا فِي الرَّكْعَةِ الأُولَى وَقَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ

د رسول الله ﷺ سره سجده وکړه چې وړاندې ولاړ وو او دوهم صف

فِي نَحْرِ الْعَدُوِّ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السُّجُودَ وَالصَّفُّ الَّذِي

د دښمن مقابلې ته ولاړی کوم چې مخکې یې سجده کړې وه بیا چې رسول الله ﷺ او نژدې صف

يَلِيهِ انْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُودِ فَسَجَدُوا ثُمَّ سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَلَّمْنَا جَمِيعًا. رواه مسلم

د سجدې څخه فارغ سول نو دوهم صف سجده وکړه او بیا نبي کریم ﷺ او موږ ټولو سلام وګرزوی. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۵۷۴، رقم: ۳۰۷= ۸۴۰.

**تشريح** : د ویرې د لمانځه دا یوه غوره طریقه ده، رسول الله ﷺ چې به څرنګه وخت او موقع لیدل د هغه سره سم به یې د ویرې لمونځ کوی دلته دښمن د قبلې خواته وو ځکه اسلامي لښکر یوې خواته داسې لمونځ کوی چې د دښمن لښکر مخامخ وو نو د یوې ډلې بلې خوا ته د استولو ضرورت نه محسوس کېدی، پوره لښکر تر رکوع پورې خو متفق وو د هغه وروسته یوازې دومره فرق وسو کله چې یو صف سجدې ته ولاړی نو دوهم صف ودرېدی او کله چې دوهم صف سجدې ته ولاړی نو اول صف به ودرېدی څرنګه چې په حدیث کې ذکر سوي دي، علماء لیکي چې دا لمونځ رسول الله ﷺ په عسفان کې ادا کړی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د بيري د لمانځه يوه خاصه طريقه

﴿۱۳۴۰﴾: عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ صَلاَةَ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په بطن نخل (د يو ځای نوم) كي خلكو ته د جګړې په حالت كي

الظُّهرِ فِي الْخَوْفِ بِبَطْنِ نَخْلٍ فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَّكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ جَاءَ طَائِفَةٌ

د ماپښين لمونځ وركړ نو يوې ډلي ته رسول الله ﷺ دوه ركعته وركړل او سلام يې وګرزوی او بيا بله ډله راغلل

أُخْرٰى فَصَلّٰى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ . رواه في شرح السنة .

او هغوی ته يې هم دوه ركعته وركړل او سلام يې وګرځوی . شرح السنة .

**تخريج** : البغوي في شرح السنة ۴\۲۸۴، رقم: ۱۰۹۴.

**د لغاتو حل** : ((بطن نخل): موضع بين مكة والطائف. (د مكې او طائف په منځ كي يوه سيمه).

**تشريح** : بطن نخل د مكې او مدينې په مينځ كي د يو ځای نوم دی د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب سره سم دا حديث پر دې محمول دی چي رسول الله ﷺ قصر لمونځ وكړ يعني د څلورو ركعتو پر ځای يې دوه ركعته لمونځ وكړ، د هغه وروسته يې دوه ركعته نفل لمونځ وكړ.

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په نفل لمونځ كونكي پسي د فرض لمونځ كونكی اقتدا صحيح نه ده .

د حنفي مذهب سره سم د دغه حديث تشريح په څرګنده يوه سخته مسئله ده ځكه كه چيري دا پر سفر باندي محمول كړل سي نو په نفل لمونځ كونكي پسي د فرض لمونځ كونكي اقتداء لازميږي او د حنفيه په نزد دا صحيح نه ده ، نو دا د سفر لمونځ نسي كيدای ، او كه چيري د دغه حديث محمول د حضر لمونځ وګرځول سي نو بيا پر هرو دوارو ركعتو باندي سلام ګرځول لازميږي چي د لمانځه خلاف كار دی، نو ددې څخه پرته بله لار نسته چي دا وويل سي چي لمونځ د حضر په حالت كي وركړل سوی دی ، البته د هرو دوو ركعتو وروسته د رسول الله ﷺ سلام ګرځول دا يوازي د رسول الله ﷺ ځانګړتيا وه چي د نورو خلكو لپاره جائز نه ده، نو خلكو

خپل پاته دوه رکعته د رسول الله ﷺ د سلام گرځولو وروسته په خپله پوره کړل ، همداسي د هغوی هم څلور رکعته پوره سول .

په دې اړه چي امام طحاوي کومه پلټنه وړاندي کړې ده هغه ډېر مناسب معلومېږي ، هغه فرمايي : چي دا پېښه د هغه وخت ده چي کله يو فرض لمونځ دوه واره کيدلای سو .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### د بيري د لمانځه يوه بله طريقه

﴿۱۳۴۱﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ بَيْنَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ قيام وکړ په منځ کي

ضَجْنَانَ وَعُسْفَانَ فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ إِنَّ لِهَؤُلَاءِ صَلَاةً هِيَ أَحَبُّ إِلَيْهِمْ مِنْ

د ضجنان او عسفان ، مشركانو په خپل منځ کي وويل چي د دې خلکو يو لمونځ دی چي دوی ته زيات خوښ دی تر

آبَائِهِمْ وَأَبْنَائِهِمْ هِيَ الْعَصْرُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ فَمِيلُوا عَلَيْهِمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً

تر پلرونو خپلو او زامنو خپلو او هغه د مازديگر لمونځ دی خپله اراده پخه کړئ او په يو وارد لمانځه په حالت کي بريد پر وکړئ ،

وَأَنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَأَمَرَهُ أَنْ يَقْسِمَ أَصْحَابَهُ شَطْرَيْنِ فَيُصَلِّيَ بِهِمْ

نو سمدستي جبرائيل عليه السلام د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ چي خپل اصحاب په دوو برخو وويشه يوې ډلې ته لمونځ ورکړه

وَتَقُومُ طَائِفَةٌ أُخْرَى وَرَاءَهُمْ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ فَتَكُونُ لَهُمْ

او دوهمه ډله دي د دښمن مقابلې ته ودرېږي او د ځان سره دي د خپل ساتني ټول سامان او اسلحه واخلي نو د هغوی د هري ډلي

رَكْعَةٌ وَلِرَسُولِ اللّٰهِ ﷺ رَكْعَتَانِ . رواه الترمذي والنسائي .

يو يو ركعت سو او د رسول الله ﷺ دوه ركعته سول . ترمذي، نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۲۷، رقم: ۳۰۳۵، والنسائي ۳\۱۷۴، رقم: ۱۵۴۳.

**د لغاتو حل**: (ضجنان و عُسفان): موضعان او جبلان على بعد مرحلتين من مكة.

**تشريح**: ضجنان د يو غره نوم دی چي د مکې او مدينې په مينځ کي واقع دی او عسفان د يو ځای نوم دی چي د مکې څخه پر دوه پړاوه فاصله باندي پروت دی .

=========

## بَابُ صَلٰوةِ الْعِيْدَيْنِ (د اخترو د لمانځه بيان)

د شوال د مياشتي لومړنۍ نېټې ته عيد الفطر (يعني د سرسايې اختر) او د ذي الحجې لسمي نېټې ته عيد الاضحی (يعني د قربانۍ اختر) او دواړو ته عيدين (اخترونه) ويل کيږي .دا دواړه تاريخونه د اخترو او خوشحالۍ ورځي دي چي په هغه کي دوه دوه رکعته لمونځ د شکرانې په توګه ادا کيږي، د اخترونو لمونځ د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد واجب دی مګر امام شافعي رحمة الله عليه او نورو علماؤ د اخترو لمنځو ته سنت مؤكده ويلي دي .

د عيد لفظ د عود څخه مشتق دی چي د هغه معنی ده په وار وار راتلل، نو دې ورځي ته اختر ځکه ويل سوی دی چي دا ورځ هر وار راځي يعني هر کال راځي، ځيني حضرات وايي د دې ورځي نوم اختر ځکه دی چي الله تعالی عود کوي يعني پر بندګانو باندي په خپل رحمت او بخښني سره متوجه کيږي په دې مناسبت سره د اختر په باره کي دا عارفانه جملې استعماليږي .

| | |
|---|---|
| لَيْسَ الْعِيْدُ لِمَنْ لَبِسَ الْجَدِيْدَ | اختر د هغه چا لپاره نه دی چي جامې واغوندي |
| اِنَّمَا الْعِيْدُ لِمَنْ اٰمِنَ مِنَ الْوَعِيْدِ | بلکه د هغه چا لپاره دی چي د سزا څخه په امن کي وي |
| لَيْسَ الْعِيْدُ لِمَنْ تَبَخَّرَ بِالْعُوْدِ | اختر د هغه چا لپاره نه دی چي د عود په خوشبويي معطر سي |
| اِنَّمَا الْعِيْدُ لِلتَّائِبِ الَّذِيْ لَايَعُوْدُ | بلکه د هغه چا لپاره دی چي توبه کونکی وي او بيا ګناه نه کوي . |
| لَيْسَ الْعِيْدُ لِمَنْ تَزَيَّنَ بِزِيْنَةِ الدُّنْيَا | اختر د هغه چا لپاره نه دی چي ددنيا زيب وزينت اختياروي بلکه د هغه چا لپاره دی چي تقوا او د |

| | |
|---|---|
| إِنَّمَا الْعِيْدُ لِمَنْ تَزَوَّدَ بِزَادِ التَّقْوٰى | آخرت توښه جوړه کړي. |
| لَيْسَ الْعِيْدُ لِمَنْ رَكِبَ الْمَطَايَا | اختر د هغه چا لپاره نه دی چي پر سپرلیو سپور سي |
| إِنَّمَا الْعِيْدُ لِمَنْ تَرَكَ الْخَطَايَا | بلکه د هغه چا لپاره دی چي ګناهونه پرېږدي. |
| لَيْسَ الْعِيْدُ لِمَنْ بَسَطَ الْبِسَاطَ | اختر د هغه چا لپاره نه دی چي فرش وغوړوي بلکه |
| إِنَّمَا الْعِيْدُ لِمَنْ جَاوَزَ الصِّرَاطَ. | د هغه چا لپاره دی چي پر پل صراط تېر سي. |

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د اخترو لمونځ

﴿۱۳۴۲﴾: عَنْ أَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ

يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالْأَضْحٰى إِلَى الْمُصَلّٰى فَأَوَّلُ شَيْءٍ يَبْدَأُ بِهِ الصَّلَاةَ ثُمَّ

د کوچني او لوی اختر په ورځ د کور څخه عیدګاه ته تلی نو تر ټولو وړاندي به یې دا کار کوي چي لمونځ به یې شروع کوی د لمانځه څخه د فارغ کېدو وروسته به

يَنْصَرِفُ فَيَقُوْمُ مُقَابِلَ النَّاسِ وَالنَّاسُ جُلُوْسٌ عَلٰى صُفُوْفِهِمْ فَيَعِظُهُمْ

خلکو ته مخامخ ودریدی او خلک به په خپلو صفو کي ناست وه او رسول الله ﷺ به هغوی ته نصیحت کوی (یعني خطبه یې ویل)

وَيُوْصِيْهِمْ وَيَأْمُرُهُمْ وَإِنْ كَانَ يُرِيْدُ أَنْ يَّقْطَعَ بَعْثًا قَطَعَهُ أَوْ يَأْمُرَ بِشَيْءٍ أَمَرَ بِهِ ثُمَّ يَنْصَرِفُ. متفق عليه

وصیت به یې کوی او ضروري احکام به یې ورښودل او که یو لښکر به یې لیږی نو د هغه د روانېدو حکم به یې کوی او که یو خاص حکم به یې نافذ کوی نو هغه به یې نافذ کوی بیا به بیرته راوګرځیدی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۴۸- ۴۴۹، رقم: ۹۵٦ ومسلم ۲\٦۰۵، رقم: ۹- ۸۸۹.

**تشریح**: د مدينې منورې عیدګاه د ښار څخه دباندي وه چي د هغه فاصله د حجرې شریفي څخه پر زر قدمه باندي ده، هغه ځای ډیر زیات متبرک او مقدس دی اوس د هغه چاپېره چاردیواري جوړه سوې ده.

په هر حال په تشریح السنه کي لیکلي دي چي د وخت د امام لپاره ضروري ده چي د اختر د لمانځه لپاره عیدګاه ته ولاړسي هو که چیري یو عذر مانع وي نو بیا د ښار په مسجد کي دي لمونځ وکړي ابن همام رحمة الله علیه فرمايي چي د امام لپاره مسنون دی چي هغه خپله د اختر د لمانځه لپاره عیدګاه ته ولاړسي او یو داسي سړی خپل قائم مقام جوړ کړي چي په ښار کي ضعیفانو ته د اختر لمونځ ورکړي مګر علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمايي چي عیدګاه ته د تلو مسئله د مسجد حرام او بیت المقدس څخه پرته د نورو ځايو لپاره ده ځکه چي نه یوازي ددغه دواړو مقدسو مسجدونو د عظمت او تقدس له کبله بلکه د صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمة الله علیهم په اِتباع کي هم په مسجدو کي تول لمنځونه کول افضل دي.

مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه د فراغت وروسته د خطبې ارشاد فرمايلو لپاره د خلکو مخکي پر مخکه ودرېدی ځکه چي د رسول الله ﷺ په هغه زمانه مبارکه کي په عیدګاه کي منبر نه وو د هغه وروسته چي د مسلمانانو شمېر ډیر زیات سو نو په عیدګاه کي د منبر انتظام وکړل سو ځکه چي پر منبر باندي په درېدو سره د خطبې اواز تر لیري پوري ځي.

نصیحت يې کوی: یعني رسول الله ﷺ به مسلمانانو ته دغه وخت په دنیا کي د زهد اختیارولو او د اخرت خواته د توجه کولو نصیحت فرمایه او د خلکو مخکي به يې د ثواب عظمت او فضائل بیانول او د ګناهونو څخه به يې بېرول چي خلک ددغه ورځو په خوشبويو او خوشحالیو کي په مصروف کیدو سره د طاعت څخه غافل او په ګناهونو کي اخته نسي لکه څرنګه چي نن سبا د خلکو حال دی، او وصیت به يې کوی: یعني خلکو ته به يې د تقوی اختیارولو نصیحت کوی، د تقوی دوې درجې دي: لومړی ادنی درجه يې داده چي د شرک څخه ځان وساتي ،دوهم: اوسطه درجه يې داده چي د الله تعالی او د هغه د رسول فرمانبرداري وکړي، دریمه او اعلی درجه يې داده چي د الله تعالی خواته هر وخت په حضور قلب سره متوجه او د الله تعالی څخه بې غرضه سي، احکام به يې صادر فرمایل: یعني د خلکو د معاملاتو په باره کي چي کوم احکام ورکول پکار وه هغه به يې صادرول او په کوچني اختر کي به يې د

سرسايې او په لوى اختر كي به يې د قرباني احكام بيانول.

﴿۱۳۴۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِيدَيْنِ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلاَ مَرَّتَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلاَ إِقَامَةٍ. رواه مسلم

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ سره د دواړو اخترو لمنځونه كړي دي يو وار او دوه واره نه بلكه ډېر لمنځونه كړي چي نه به آذان وو او نه اقامت. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۰۴، رقم: ۷-۸۸۹.

**تشريح**: په شرح السنة كي ليكلي دي چي د رسول الله ﷺ په اصحابو كي د اكثر اهل علم دا مذهب وو چي د دواړو اخترونو په لمانځه كي نه اذان مشروع دى او نه اقامت، همداسي په نورو نفلو كي هم اذان او اقامت نسته بلكه په كتاب الازهار كي خو مكروه ليكلي دي.

## د اختر دلمانځه وروسته خطبه ويل

﴿۱۳۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُوبَكْرٍ وَّعُمَرُ يُصَلُّونَ الْعِيدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ. متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ، ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه به د دواړو اخترو لمونځ د خطبې تر مخه كوى. بخاري و مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)؛ ۲\۴۵۳، رقم: ۹۶۳ ومسلم ۲\۶۰۵، رقم: ۸\۸۸۸.

**تشريح**: د ابن منذر رحمة الله عليه قول دى چي د ديني عالمانو پر دې خبره اتفاق دى چي د كوچني او لوى اختر خطبه د لمانځه وروسته ويل پكار ده د لمانځه څخه مخكي خطبه ويل جائز نه ده، كه چيري يو سړي د لمانځه مخكي خطبه ووايي نو د ټولو علماؤ په نزد لمونځ يې جائز دى، ويل كيږي چي مروان ابن حكم چي د مدينې حاكم سو او هغه د امير معاويه رضي الله عنه له خوا خطبه د لمانځه مخكي وويل نو د هغه دا فعل صحابه كرامو ډير بد وګڼى.

## د اخترو دلمانځه لپاره اذان او اقامت نسته

﴿۱۳۴۵﴾: وَسُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَشَهِدْتَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چي ايا تا د اختر په لمانځه كي د رسول الله ﷺ سره

ګډون کړی دی ؟

الْعِيْدَ قَالَ نَعَمْ خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى ثُمَّ خَطَبَ

هغه وویل :هو، رسول الله ﷺ به د کور څخه راووتی او عیدګاه ته د رسیدو سره به یې د اختر لمونځ وکړ او بیا به یې خطبه ویل،

وَلَمْ يَذْكُرْ أَذَانًا وَّلاَ إِقَامَةً ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ فَوَعَظَهُنَّ وَذَكَّرَهُنَّ وَأَمَرَهُنَّ

ابن عباس رضي الله عنه په خپل بیان کې د آذان او اقامت یادونه ونه کړل، بیا به رسول الله ﷺ ښځو ته متوجه سو هغوی ته به یې نصیحت کوی د دین احکام به یې وریادول او د صدقه (خیرات) کولو حکم یې ورکوی

بِالصَّدَقَةِ فَرَأَيْتُهُنَّ يُهْوِيْنَ إِلَى آذَانِهِنَّ وَحُلُوْقِهِنَّ يَدْفَعْنَ إِلَى بِلاَلٍ ثُمَّ

ابن عباس رضي الله عنه وایې ما ولیدل چې د رسول الله ﷺ د دې الفاظو په اوریدو سره ښځو خپل لاسونه غوږو او غاړو ته اوږده کړل زیورات یې را کښل او بلال رضي الله عنه ته یې ورکول بیا به

ارْتَفَعَ هُوَ وَبِلاَلٌ إِلَى بَيْتِهِ (متفق عليه)

رسول الله ﷺ او بلال رضي الله عنه کور ته ولاړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۳۴۴، رقم: ۵۲۴۹، ومسلم ۲\۶۰۲، رقم: ۱- ۸۸۴.

**تشريح** : څرنګه چې جابر رضي الله عنه ابن سمره رضي الله عنه هم په وضاحت سره بیان کړی دی د هغه روایت څخه هم ثابتیږي چې د دواړو اخترو د لمانځه لپاره اذان او اقامت کول مشروع نه دی.

د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کې د رسول الله ﷺ سره ښځې هم د اخترو د لمانځه لپاره عید ګاه ته تللې، رسول الله ﷺ چې خلکو ته وعظ او نصیحت لپاره تشریف یوور ځکه چې ښځې به د خلکو څخه بیلې بلې خواته کښېنستلې ځکه نو کله چې به رسول الله ﷺ خلکو ته خطبه فرمایل نو اواز به ښځو ته ښه سم نه رسېدی.

## د اختر د لمانځه مخکې یا وروسته نفل لمونځ

(۱۳۴۶): وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى يَوْمَ الْفِطْرِ رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهُمَا وَلاَ بَعْدَهُمَا. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د کوچني اختر په ورځ دوه رکعته لمونځ وکړ د هغه وړاندي او وروسته يې هيڅ يو بل لمونځ نه وکړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۵۳، رقم: ۹۶۴، ومسلم ۲\۶۰۶، رقم: ۱۳- ۸۸۴.

**تشريح** : علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمايي دا نفي د عيدگاه سره اړوند ده ځکه چي د ابوسعيد خدري رضی الله عنه دا روايت دی چي رسول الله ﷺ د اخترو د لمانځه مخکي نفل لمونځ نه کوی، مگر کله چي به د عيدگاه څخه کورته يې تشريف راوړ نو دوه رکعته به يې کول، په در مختار کي ليکلي دي چي د اخترو د لمانځه مخکي نفل لمونځ کول مطلقا مکروه دی يعني په عيدگاه کي هم مکروه دی او په کور کي هم، البته د اخترو د لمانځه وروسته په عيدگاه کي لمونځ کول مکروه دی او په کور کي جائز دی.

## دا اختر په لمانځه کي د ښځو گډون

﴿۱۳۴۷﴾: وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ أُمِرْنَا أَنْ نُخْرِجَ الْحُيَّضَ يَوْمَ الْعِيدَيْنِ

د حضرت ام عطيه څخه روايت دی چي موږ ته دا حکم راکړل سو چي موږ ټولي ښځي حيض والا يا پردې والا ټولي د دواړو اخترو په لمنځو کي گډون وکړو

وَذَوَاتِ الْخُدُورِ فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ وَدَعْوَتَهُمْ وَتَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ

او د مسلمانانو په ډله کي گډون وکړو او د هغوی په دعاء کي گډون وکړو او حيض والا ښځي دي

عَنْ مُصَلَّاهُنَّ قَالَتِ امْرَاَةٌ يَا رَسُولَ اللهِ إِحْدَانَا لَيْسَ لَهَا جِلْبَابٌ قَالَ

د خپلي مصلا څخه بيلي وي، يوې ښځي د دې په اوريدو سره عرض وکړ اې د الله رسوله! په موږ کي د ځينو ښځو سره څادر نه وي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا. متفق عليه

هغه دي د خپلي ملگري څادر استعمال کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۴۶۶، رقم: ۳۵۱، ومسلم ۲\۶۰۶، رقم: ۱۲- ۸۹۰.

**تشريح** : خطابي رحمة الله عليه فرمايي چي رسول الله ﷺ ټولو ښځو ته عيدگاه ته د تللو حکم ورکړ چي کومو ښځو ته يو عذر نه وي هغوی دي لمونځ وکړي او کومو ښځو ته چي يو عذر وي

هغوی ته به د لمانځه او دعا برکت ورسيږي ګويا داسي خلکو ته ترغيب ورکول کيږي چي هغوی په لمنځو کي ګډون وکړي د وعظ او ذکر په مجالسو کي حاضر سي او د علماء او صلحاؤ قرب حاصل کړي چي هغوی ته د الله تعالی د هغه نېکو او مقدسو بندګانو برکت حاصل سي که څه هم د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کي د ښځو لپاره عيدګاه ته تلل ممنوع نه وه مګر نن سبا د فتنې او فساد په زمانه کي د ښځو عيدګاه ته تلل مستحب نه دي.

د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کي عيدګاه ته د ښځو د تللو وجه امام طحاوي رحمة الله عليه دا بيان کړې ده چي په هغه وخت کي د اسلام ابتدائي دور وو مسلمانان ډير کم وه څکه د رسول الله ﷺ دا مقصد وو چي ټولي ښځي دي هم عيدګاه ته ځي نو د مسلمانانو شمېر به زيات معلوم سي چي په هغه سره به پر کفارو رعب ولويږي، نن سبا نه يوازي دا چي د دې ضرورت نسته بلکه د ښځو په شتون کي د زياتو مکروهاتو او محروماتو ذريعه جوړېدای سي څکه علماؤ د ښځو عيدګاه ته تلل منعه کړي دي.

د حديث د اخري جملې مطلبْ دادی که د يوې ښځي سره يو پټو يا جامه نه وي چي ځان په پټ کړي او عيدګاه ته ولاړه سي نو د هغې ملګري ته پکار ده چي هغې ته يو شی ورکړي چي پرده په وکړي يا دا که د هغې سره هم يو څادر وي نو د خپل څادر نيمه برخه دي پر هغې واچوي او دواړي دي يو ځای کښېني.

## د غزلو او سروز مسئله

﴿۱۳۴۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ اَبَابَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا جَارِيَتَانِ فِيْ

د حضرت عائشې ؓ څخه روايت دی چي حضرت ابوبکر ؓ هغې ته راغلی او په دغه وخت کي د انصارا وو دوې انجوني ناستې وې

اَيَّامِ مِنًى تُدَفِّفَانِ وَتَضرِبَانِ وَفِيْ رِوَايَةٍ تُغَنِّيَانِ بِمَا تَقَاوَلَتِ الْاَنْصَارُ يَوْمَ

د منى په ورځو کي (په کومو ورځو کي چي حاجيان په منا کي قيام کوي) او دريا يې وهل، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي هغو انجونو هغه شعرونه ويل کوم چي انصارو

بُعَاثَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَغَشٍّ بِثَوْبِهٖ فَانْتَهَرَهُمَا اَبُوْبَكْرٍ فَكَشَفَ

د بعاث د جګړې په ورځ ويلي وه، رسول الله ﷺ دغه وخت په جامه کي ځان پيچلی وو، ابوبکر صديق ؓ هغه انجونی وترټلی (بد او رد يی ورته وويل)

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ وَجْهِهِ فَقَالَ دَعْهُمَا يَا أَبَا بَكْرٍ فَإِنَّهَا أَيَّامُ

رسول الله ﷺ د مخ څخه جامه ليري كړه او وه يې فرمايل : اې ابوبكر ! دوى پريږده ځكه دا

عِيدٍ وَّفِي رِوَايَةٍ يَا أَبَا بَكْرٍ إِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيدًا وَهٰذَا عِيدُنَا . متفق عليه

د اختر ورځ ده ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي د هر قوم يو اختر وي او دا زموږ اختر دى.
بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) ۱۱/۴۴۵، رقم: ۹۵۲، رقم: ۹۸۷ ومسلم ۲/۶۰۷، رقم: ۱۶، ۱۷- ۸۹۲.

**تشريح** : لفظ د تضربون ګويا د تدفقان د تاكيد لپاره استعمال سوى دى مګر ځينو حضراتو د دې دا معنى بيان كړې ده چي هغه انجونو به ټوپونه وهل او دريه به يې وهل.

**د دريا وهلو مسئله** : د دريا وهلو په باره كي د علماؤ دوه قوله دى، اول خو دا چي غزل ويل مطلقا مباح دي يعني پر هر وخت يې ويلاى سي د دې پر خلاف دوهم قول دا دى چي مطلقا حرام كار دى په دې اړه صحيح مسئله داده چي پر ځينو وختونو باندي مثلا نكاح، وليمه د واده ډوډۍ يا دا ډول نور مراسمو كي چي ددغه دواړو په حكم كي وي او په اخترو كي دريا ويل مباح دي، علماؤ په دريا وهلو كي فرق كړى دى يعني كه چيري دريا شرنګى كونكې نه وي نو مكروه نه ده كه څه هم د نه شرنګي كونكي دريې په باره كي ځينو علماؤ اختلاف كړى دى.

(تغنِيَانِ) يعني غزلي يې ويلې، مطلب دادى چي انجونو هغه شعرونه ويل په كوم كي چي د شجاعت او مېړاني مضمون وو چي كله انصارو پر بعاث حمله وكړه او د هغه جګړې په اړه يې ويلي وه څرنګه چي د زړه ورو عادت دى چي د جنګ په وخت خپل زړه توب او عبادت باندي مشتمل اشعار په ډير فخر سره وايي، بعاث د يو ځاى نوم دى چي د مدينې څخه پر دوه ميله فاصله باندي پروت دى د ځينو حضراتو تحقيق دادى چي د جاهليت په ورځو كي د انصارو د دوو قبيلو اوس او خزرج په منځ كي سخت جنګ وسو چي په هغه كي قبيله اوس كامياب سوه دې جنګ ته جنګ بعاث ويل كيږي.

په هرحال انجونو چي كوم اشعار ويل هغه د فحش، حسن او عشق د مضامينو څخه نه وه چي د هغه ويل معيوب او ممنوع وي مګر هغه اشعار د جنګ او جدل د كارنامو پر شجاعت داستانو او د ميدان جنګ پر كرمو قصو باندي مشتمل وه چي د هغه په ويلو سره په اشاعت دين كي مرسته حاصليدل په دې توګه چي هغوى به د كفارو سره د جهاد كولو لپاره مومنانو ته

ترغيب ورکوی کنه د هغو انجونو جرئت نسته چي د بي بي عائشې رضي الله تعالی عنها په شتون کي او د رسول الله ﷺ په مخکي د خراب او معيوبو اشعارو ويلو جرئت ېې کړی وای.

د بخاري په يوه روايت کي د لفظ تغنيان څخه وروسته دا الفاظ هم ذکر دي و ليستا بمغنيتين، يعني انجونو شعرونه ويل او غزلي يې ويلې د هغو انجونو کسب او کار نه وه چي څوک زياتي ښه غزلي وايي او د غزلو ويلو په فن کي مشهوري وې يا دا چي هغوی د خپلو اشعارو په ذريعه د خيالات فاحشه او خواهشات نفساني د اشتياق سبب جوړېدې چي د فتنې او فساد باعث به وو مگر هغوی بالکل په داسي انداز کي اشعار ويل چي اکثر شريف خلک يې په خپلو کورونو کي د پاکو خيالاتو حامل اشعار وايي.

(فانترها ابوبکر): يعني حضرت ابوبکر ﷛ هغه انجوني وترټلي، څرنگه چي په صحيح بخاري کي ذکر دي چي حضرت ابوبکر ﷛ هغو انجونو ته دا وويل چي رسول الله ﷺ ته نژدې شيطاني باجه واياست گويا حضرت ابوبکر ﷛ هغو ته زوررونه ورکړل او د هغه فعل څخه يې منعه کړې په اصطلاح کي مزمار هغه باجې ته وايي چي غزل چيان يې وايي مثلا سورنا ،دريا، رباب، او داسي نور، ابوبکر ﷛ د هغه انجونو باجې ته شيطاني باجه ځکه وويل چي څرنگه شيطان د خپل ذات سره د انسان علمي ژوند د نيک کار څخه په آخوا کولو سره په بد کار کي يې مصروف کوي همداسي باجه هم انساني زړه يا د الله تعالی د ياد د مقدسي لاري څخه په آخوا کولو سره د لهو و لعب او د ناجائزو خواهشاتو پر لار روانوي.

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي څرنگه د تيرو امتونو او د غير مسلمو په نزد د خوشحالۍ او اختر يوه ورځ ده څرنگه چي د مجوس قوم په نزد نوروز يوه خاص ورځ ده چي په هغه کي خپل اختر کوي همداسي د مسلمانانو لپاره د خوشحالۍ دوې ورځي دي او هغه د کوچني او لوی اختر ورځي دي.

دا مشابهت يوازي د تمثيل تر حده پوري نه دی د هغوی معتقدات او په افعالو سره مشابهت مقصود نه دی يعني د دې مقصد دا نه دي څرنگه چي غير مسلم د خوشحالۍ او ميلو په ورځ غلط کارونه کوي هسي غلط کارونه مسلمانان هم په دغه ورځ کولای سي علماء ليکي چي د کوچني او لوی اختر په ورځ د غير مسلمانانو د ميلې مشابهت اختيارول کفر دی مثلا غيرشرعي او غير مناسب زيب و زينت کول، هگۍ جنگول، نارينوو ته نکريزي وهل، په غزلو وغيره کي مصروف کيدل.

د حديث څخه د اهل سماع غلط استدلال : په دغه حديث کي د اهل سماع څخه لويه غلطي

سوې ده دغه خلکو ددغه حدیث پر بنیاد د هارمونیم په ډول ساز سره د قوالۍ مباح کیدل او د هغه اوریدل جائزګرځولي دي حال دا چي د دې حدیث په قطعي توګه سره دا مفهوم او مطلب نه دی کوم چي اهل سماع مراد اخستی دی مګر د انصاف او بېله څه تعصب په نظر که معقولیت پسند زړه او دماغ سره د حدیث حقیقي مفهوم ته وګوري نو د هغه پوره وضاحت دادی چي حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه هغه انجوني د غزلو ویلو څخه ځکه منعه کړې او هغوی ته یې زورونه ورکړه چي د هغوی په نزد غزل ویل مطلقا معیوب شی وو او هغه دا ګمان وکړ چي رسول الله ﷺ دا انجوني د غزلو ویلو څخه ځکه منعه وفرمایلې چي رسول الله ﷺ بیده وو او دا نه وه ورته معلومه چي دلته څه کیږي حال دا چي حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته دا معلومه نه وه چي رسول الله ﷺ په داسي ورځ په ډیري معمولي طریقې سره د اشعار ویلو اجازه ورکړې وه او هغه د غزلو ویلو او تماشو څخه نه وو.

حاصل دا چي حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ته ددې فرق او تفصیل علم نه وو ځکه هغه انجوني د غزلو ویلو څخه منعه کړې چي پر هغه رسول الله ﷺ صدیق اکبر رضی الله عنه ته وفرمایل چي دغه انجونو ته هیڅ مه وایه نو ددغه حدیث څخه یوازي دومره معلومه سوه چي د اختر په ورځ یا پر داسي وخت باندي خوشحالي کول مباح دي د شریعت په حدودو کي دننه اشعار ویل مباح دي بیا دا هم ویل پکار دي چي د دغه واقعې تعلق په یو مخصوص ځای او یو مخصوص وخت سره دی چي په هغه کي غزل ویل وغیره مطلقا مباح کېدل نه لازمیږي.

ځینو حضراتو ویلي دي چي ددې حدیث څخه دا ثابتیږي چي پر یو خاص وخت باندي دریا ویل او قوالي وغیره ممنوع نه دي مګر پر دې همېشتوب کول مکروه دي ځکه چي په مستقله توګه غزل ویل د تقوی وصف او اخلاق فاضله ختموي چي د هغه په وجه داسي سړی د شریعت په نظر کي خپل اعتماد ضائع کوي.

ابن مالک رحمة الله علیه فرمایي چي دا حدیث پر دې دلالت کوي چي دریا وهل جائز ده چي په هغه کي شرنګی نه وي او کله نا کله وویل سي، او داسي اشعار ویل جائز دي چي په هغه کي د چا بدي او مذمت نه وي بیان سوې، او پر فاحشو مضامینو باندي مشتمل نه وي، په فتاوی قاضي خان کي لیکلي دي چي د باجو اوریدل ګناه ده.

د رسول الله ﷺ ارشاد دی: د باجو اورېدل ګناه ده د هغه په مجلس کي کډون فسق او د هغه څخه خوند اخیستل د کفر څخه دی.

او مسئله داده چي که چیري په غیر اختیاري توګه د باجې اواز په غوږ کي ننوزي نو ګناه

نسته مګر د باجو د اواز څخه حتی الامکان تر خپله وسه پوري د ځان ساتلو پوره هڅه کول پکار ده، د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چي پر داسي وخت باندي رسول الله ﷺ په خپلو غوږو مبارکو کي ګوتي اچولې.

علماء ليکي چي د جاهليت د زمانې داسي اشعار ويل چي په هغه کي د فحش مضامين، شراب او کباب او د حسن او عشق يادوني وي مکروه دي.

يو جليل القدر محدث ددې حديث په تشريح کي د سماع او غنا مسئله په پوره وضاحت سره ليکلې ده، دلته د هغه خلاصه نقل کول مناسب دي، نوموړی فرمايي چي ددغه حديث څخه دا څرګنديږي چي غزل وغيره ويل ممنوع دي هو پر يو خاص وخت باندي مثلا په اختر کي يا دا ډول بل د خوشحالۍ پر وخت يعني په نکاح وغيره کي ددې تر يوه حده پوري جواز دی ځکه چي صديق اکبر ﷺ په صحابه کرامو کي تر ټولو زيات د فضيلت خاوند دی هغه ته د دين احکام په ښه ډول معلوم وه هغه غزلو ته مزمار شيطان وويل، رسول الله ﷺ چي هغه منعه کړ نو ددې خبري څخه ښې نه وه منعه کړې چي غزلي ته ښې مرزمار شيطان وويل بلکه رسول الله ﷺ هغه د اختر لپاره منعه کړی وو چي نن ورځ په دې کي دومره سختي مه اختياروه، ګويا د رسول الله ﷺ د ارشاد مقصد د غزلي د ممانعت په اړه د صديق اکبر ﷺ د قول ترديد نه وو بلکه مراد دا وو چي د غزلوويل يوازي په دومره معمولي درجه کي چي په هغه کي دغه انجوني مصروف دي نن ورځ د ممانعت د حکم څخه مستثنی دي که انجوني په شرعي او اخلاقي حدودو کي د شجاعت او ميړاني، تعريف او توصيف باندي مشتمل اشعار په خوش اوازۍ سره ووايي نو په دې کي هيڅ تاوان نسته، رسول الله ﷺ نه يوازي دا چي خپله د انجونو په دغه کار کي دلچسپي نه واخستل څرنګه چي معلومه سوه چي رسول الله ﷺ بيده وو مګر صديق اکبر ﷺ هم ددې ترغيب نه وکړ مګر رسول الله ﷺ يو ډول لا پرواهي څرګنده کړل ګويا رسول الله ﷺ د خپل دغه فعل په ذريعه هم په هغه ورځ د دې جائز کيدو خوا ته اشاره وفرمايل.

نو دا حديث په اتفاق سره د غزلو ويلو پر اباحت باندي دليل نسي ګرځول کېدای څرنګه چي ځيني حضراتو ددې روايت د حقيقت په مفهوم اخستو سره د سماع او غنا مطلقا جواز ثابتوي.

**د سماع حرمت او کراهت** : دا خو د حديث وضاحت او تشريح سول، اوس د اصلي مسئلې خوا ته راسئ او وګورئ چي په دې باره کي د سلف (پخوانيو علماؤ) څه رايه ده د سماع او غناء مسئله د هميشه څخه د علماؤ او فقهاء په منځ کي مختلف فيه راغلې ده د صحابه کرامو

او تابعينو هم په دې مسئلې کي اختلاف دي مګر اکثر جليل القدر صحابه کرام ددې د حرمت او کراهت قائل وه، هغوی دا آيت کريمه (ومن الناس من يشتری لهو الحديث) څخه مراد غنا بيان کړې ده، ابن عباس رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه خو ددې مراد د تعين په اړه تر قسم خوړلو پوري به يې ويل چي دلته د غنا مراد دی همداسي د ابن عباس رضي الله عنه او مجاهد رضي الله عنه په نزد دا آيت کريمه (واستفرز من استطعت منهم بصوتک) کي د شيطان د اواز څخه مراد غنا اخلي.
د ابن عمر رضي الله عنه په باره کي نقل دي چي هغه به د غزلو اورېدو څخه منعه فرمايل.

د امير المومنين حضرت علي کرم الله وجهه ارشاد مبارک نقل دی که يو سړی داسي مړ سي چي د هغه سره غزلي ويونکي ښځي وي نو د هغه جنازه مه کوئ.

ابو امامه رضي الله عنه روايت کوي چي د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک دی چي غزل ويونکي ښځي مه اخلئ مه يې خرڅوئ او مه په هغوی تعليم کوئ يعني پوره قاطعه ور سره وساتئ د دې ارشاد په ډول دا آيت کريمه: يشتری لهوا الحديث نازل سوی وو په دې وجه ځيني علماء وايي چي کوم حديثونه د غزلو او سروز پر اباحت باندي دلالت کوي د هغه تعلق د هغه ممانعت د مخکي زمانې سره دی کله چي ايت شريف نازل سو او د غنا ممانعت واضح سو نو هغه حديثونه منسوخ وګرځول سوه.

د ابن مسعود رضي الله عنه څخه يو ارشاد نقل دی چي غناء نفاق داسي شين کوي لکه څرنګه چي اوبه شينګيا شنه کوي .د حضرت جابر رضي الله عنه څخه دا الفاظ نقل دي چي څرنګه اوبه فصل شين کوي. د حضرت انس رضي الله عنه څخه دا الفاظ نقل دي چي غنا او لهوه په زړه کي نفاق داسي شين کوي لکه څرنګه چي اوبه وابنه شنه کوي.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه دا الفاظ نقل دي چي د غنا مينه په زړه کي نفاق داسي شين کوي لکه څرنګه چي اوبه وابنه شنه کوي، په دغه ارشاداتو کي د نفاق څخه مراد هغه عملي نفاق دی چي د څرګنده احوال پر خلاف د ګناه خواهش پټ لري.

حضرت فضيل ابن عياض رضي الله عنه فرمايي چي غنا د زنا منتر دی په هرحال په دې اړه د صحابه کرامو او تابعينو دا ډول نور ډير ارشادات نقل دي، او کوم چي د فقهاؤ تعلق دی هغوی هم ددې حرمت او کراهت ډير زيات په شدت سره بيان کړی دی او د څلورو امامانو په اتفاق سره مشهور او صحيح قول دادی چي غنا مکروه ده او پر دې د حرمت اطلاق هم منقول دی، قاضي ابو اللطيف رحمة الله عليه، شعبي رحمة الله عليه، سفيان ثوري رحمة الله عليه، حماد نخعي رحمة الله عليه او د فاکهي رحمة الله عليه څخه حرام کيدل ثابت سوي دي، علامه بغوي رحمة

الله علیه هم په تفسیر معالم التنزیل کي ویلي دي چي د څلورو امامانو په نزد غنا حرامه ده.
علامه قطبي رحمة الله علیه فرمایلي دي چي د غناء د حرمت په باره کي اختلاف نسته ځکه چي د دا د لهو لعب د قبیل څخه دی چي په متفقه توګه سره د ټولو په نزد مذموم دی هو کومه غنا چي د محرمات څخه محفوظ وي هغه لږ ډیر د واده، کوزدې او دا ډول نورو مراسمو کي جائز دی، د علماؤ د یو ډلي میلان د غناء د اباحت خوا ته دی.
په دې اړه دا خبره هم باید په ذهن کي وي چي دلته د کومي غنا او سروز په باره کي بحث کیږي او د حرمت او اباهت محل اختلاف دی دا هغه ډول غنا ده لکه غزلچیان چي د پېسو او فن په توګه بې اختیاروي هغوی یوازي د خلکو په طبیعتونو کي هیجان او کیف ونشاط پیدا کولو لپاره داسي شعرونه وایي چي یوازي د محروماتو پر ذکر باندي مشتمل دي هو هغه غنا مباح ده چي پر داسي پاکو شعرونو باندي مشتمل وي چي په هغه کي زړونه روحاني خوشحالي محسوس کړي او د محروماتو او مکروهاتو پر ذکر باندي مشتمل نه وي مثلا د الله تعالی حمد، د رسول الله ﷺ نعت، د حرمین شریفین یا د نورو مقدسو ځایونو منقبت، جهاد او د میدان جنګ اوصاف، د کوچنیانو خوشحالي او د بیده کولو لپاره د مندو خویندو کوچنیانو ته الله هو، د بزرګانو جائز توصیف او تعریف، د لاري پرې کولو لپاره د مسافرو د خوشحالي لپاره دا ډول اشعار په ترنم سره ویل نا جائز نه دي مګر تر یوه حده پوري دا مستحب دي ځکه چي دا د نیک او با مقصد اعمالو لپاره د نشاط موجب دي.
کوم علماء چي د غنا د اباحت قائل دي هغوی وایي چي غنا او سماع د اکثرو صحابه کرامو، تابعینو، محدثینو او علماؤ څخه چي اصحاب زهد او تقوی وه نقل دي، دا حضرات وایي چي د غنا د حرمت او کراهت په اړه د امامانو او ځینو اکابرو څخه چي کوم سخت الفاظ نقل دي هغه په اصل کي پر هغه غنا باندي محمول دي چي په هغه کي فحش مضامین یا د هغه سره د غیر شرعي شیانو مثلا مزامیر وغیره ارتباط وي دا خبره د هغه حضراتو له خوا ځکه کیږي چي د امامانو او علماؤ په قول او فعل کي تطبیق راسي ځکه چي د هغوی څخه هم غنا اوریدل نقل دي.
د پخوانی زمانې بزرګانو او شیخانو او د وروستنی زمانې بزرګانو او شیخانو د اقوالو او افعالو په مینځ کي هم اختلاف دی د مخکنی زمانې شیخانو چي په راه طریقت پیش روا رهنما دي پرهیز کوی خو وروسته د ځینو مشائخو څخه د سماع ابتداء کیږي په دې اړه د مخکنی زمانې د شیخانو د قول او فعل په باره کي د دې خبري اندازه لګیږي چي شیخ حماد

وياس رحمة الله عليه چي د خپل وخت امام طريقت او د سلسله قادريه يو جليل القدر شيخ غوږ ته غزل ورسېدل نو سمدستي ودريدی او وه يې فرمايل: نن زما څخه داسي کومه ګناه سوې ده چي د هغه په سزا کي زه په دې اخته کړل سوی يم تر ډيره وخته پوري يې غور او فکر کوی خو يو داسي خبره ورته محسوس نه سوه چي د هغه څخه پوه سي چي فلانۍ ګناه ورڅخه سوې ده کله چي کور ته راغلی نو پلټنه يې شروع کړه د ډير وخت وروسته ورته معلومه سوه چي يو عکس لرونکې پياله يې رانيولې ده نو وه يې فرمايل: همدا سبب دی چي د هغه په وجه زه په دې سزا کي اخته سوم چي د غزلو اواز زما غوږو ته راځي، دحضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رحمة الله عليه اقوال او ارشادات د کتلو څخه هم دا معلوميږي چي نوموړي به دا بد ګڼل.

د حضرت شبلي رحمة الله عليه په باره کي نقل دي چي يو وار د هغه څخه پوښتنه وسول چي: آيا غنا جائز ده؟ نو هغه پوښتنه وکړل چي ايا هغه غنا حق ده؟ يعني په هغه کي غير شرعي او غير اخلاقي مضامين مذکور نه دي؟ خلکو وويل: يا، نو نوموړي وفرمايل که هغه حق نه ده نو بيا د ګمراهۍ څخه پرته نور څه کېدای سي، بيا يې وفرمايل ددې مکروه کيدو مخکنۍ دليل کافي دی د دې په ذريعه نه يوازي دا چي په طبيعت کي خواهشات نفساني او د ښځو خوا ته ميلان کيږي بلکه په دې کي د نفس اماره د خوښۍ، د عقل د سپکي او د ناءت اظهار هم دی البته د الله ذکر او د هغه په ياد کي مصروف کيدل د هر هغه سړي لپاره چي پر الله او د اخرت پر ورځ يې ايمان راوړی دی تر ټولو غوره دی.

شيخ ابوالحسن شاذلي رحمة الله عليه چي د شاذليه لړۍ امام او پيشوا دی، فرمايي: کوم خلک چي په سماع کي مصروف کيږي او د ظالمانو ډوډۍ خوري په هغوی کي د يهوديت يوه برخه شامله ده چي د هغه په باره کي الله تعالی فرمايي: (سماعون للكذب آكلون للسحت)

حضرت اما غزالي رحمة الله عليه فرمايي چي د سماع څو درجې دي: اوله درجه: د ځوانانو لپاره حرام محض ده ځکه چي د ځوانانو مزاج او پر طبيعت باندي د خواهشاتو نفسانيه غلبه وي نو سماع د هغوی لپاره پر ځای د ښه اثر مرتب کيدو د هغوی خواهشات نفساني کي زيات انتشار پيدا کوي.

دوهم: د هغه سړي لپاره مکروه ده چي اکثر وختونه په لهو، لعب او سماع کي مصروف وي.

دريم: د هغه سړي لپاره مباح ده چي يوازي د ترنم او په خوش آوازۍ سره دلچسپي لري.

څلورم: د هغه سړي لپاره مندوب ده چي په هغه کي د الله تعالی د ميني غلبه وي او سماع د هغه لپاره ښه اثرات مرتب کړي.

د چشتیه مشائخو په اړه نقل دي چي هغوی د سماع سره دلچسپي درلودل، خو د هغوی د لچسپي به د آدابو او شرطو په حدودو کي دننه وه هغوی به اکثر په خلوت کي سماع اوریدل چي په هغه کي به نامحرم نه وو .

د شیخ المشائخ خواجه نظام الدین په اړه ویل کیږي چي هغه به هم سماع اوریدل مګر د هغه مجلس سماع به د مزامیر او تالی په ډول د لغویاتو څخه پاک وه .

په هر حال مطلب دادی چي کوم صوفیان د سماع قائل دي د هغوی په نزد دا کلیه مقرره ده چي سماع یوازي د اهل لپاره مباح ده هغوی نه یوازي دا چي د سماع لپاره اداب او شرطونه ټاکلي دي بلکه دایې هم ښودلي دي چي د سماع اورېدو اهل چاته ویل کیږي همداسي د سماع د ممانعت په اړه فقهاء او اکابر اولیاء څخه چي کوم الفاظ نقل دي د هغه تعلق د هغه نغمې او سروز سره دی چي په هغه سره غیر مشروع شیان مثلا مزامیر وغیره وي او د هغه بنیاد پر یوازي نفسي خواهشاتو او لهو لعب باندي وي کنه خوش آوازي ممنوع نه ده ځکه چي هغه مباح الاصل ده .

او بیا ددې حقیقت څخه انکار هم نسي کېدای چي څرنګه په خوش آوازي کي مفاسد دي همداسي مصالح وغیره هم دي مثلا غزل او ترنم سخت زړه نرموي او په عباداتو کي ذوق، شوق، خوږوالی او خشوع پیدا کوي مګر ددې سربېره پر غزلو او ترنم باندي همیشتوب دا اکابر سلف دا طریقه د اتباع څخه لیري ده ځکه کېدای سي چي کوم سړی پر دې همېشتوب کوي نو هغه ددې دلچسپي ته پر عباداتو او ریاضت باندي ترجیح ورکوي او د شیطان مکر او فریب هغه د سمي لاري څخه خپل په جال کي د اطاعت او شریعت اهمیت د هغه په نظر کي کم کړي چي د هغه په وجه هغه پر غلطه لار روان سي، نو سماع بذاته خو مباح ده مګر غلط معارض لکه د ښځي او شرابو ذکر، د نامحرمو ښځو او هلکانو غزلي، مزامیر یعني ډول او هارمونیم وغیره،د سماع پر نا اهلیت او پر دې د همیشتوب په وجه ممنوع دي .

دا خبره دي په ذهن کي وي چي کوم خلک د معرفت، حقیقت مینې مدعا کېدو سره د یو خاص جذبې د تسکین له کبله په سماع کي په بوخت کېدو سره حقیقي ذکر الله او د قرآن کریم د تلاوت څخه محروم کیږي هغوی د خپل نفس دوکه او د شیطان په فریب کي راګیر دي، هغوی په حقیقت کي د سیده لاري په پرېښودو سره غلطه لار اختیار کړې ده چي د هغه په وجه ورځ په ورځ ددین او شریعت د لاري څخه لیري کیږي ، د هغوی دا حالت دی چي په نور عبادت کي به څه بوخت سي د هغوی لمنځونه هم په بې روح کېدو سره محضي د ناستي یوه ټولګه جوړه سوې

ده ، هغه لمنځونه هم د جبر او ريا په وجه يا په مخلوق کي د خپل دين او مذهبي ژوند د ښودلو لپاره يې کوي افسوس چي د هغوی د سماع سره دومره دلچسپي نه وي يوازي هغوی لمونځ، روژه او نور فرضونه په خلوص نيت سره ادا کولای نو د هغوی دين به کم از کم نه پاته کيدی، په دې اړه دا صورت هم دی چي نن سبا کوم خلک د سماع قائل دي د هغوی نظر دادی چي فلاني بزرګ سماع اورېدل ، زموږ فلاني پيشوا د هغه قائل وو، نو کله چي هغه اختيار کړل نو موږ هم د هغوی پيروي کوو، او د هغوی په اتباع کي سماع جائز ګڼو، حال دا چي دا هم محض د نفس فريب دی ځکه که چيري هغه بزرګانو سماع اختيار کړه او د هغه سره يې مينه درلودل نو دا هم د هغوی د بې خودی او د حال غلبه وه که چيري هغوی سماع اورېدلې ده نو پر هغه يې هميشتوب نه دی کړی بلکه کله کله يې د يو حکمت سره سم اوريدلې ده او بيا دا چي د هغوی په مجلسو کي د سماع دا جلوه نه وه بلکه هغوی په خلوت کي او د نيت په خلوص سره اوريدلې ده او هغوی په ضروري ګرځولو سره يو طريقه تاکلې نه ده چي په هر صورت کي په هغه عمل وکړل سي ، او بيا دا چي د هغه بزرګانو جذبه، حال او د نيت اخلاص او چيري موږ د زمانې دنياوي او نفساني خواهشات او د نفس او فريب ، اوس خو د هغه بزرګانو يوازي ددې خبري تقليد دی نه چي د هغوی د صالح افکارو اطاعت او نه د هغوی د نيك اعمالو او مقدس ژوند پيروي ده .

حقيقت دا دی چي د هغه بزرګانو سره نه خو ددغه خلکو يو حقيقي نسبت سته او نه د هغه بزرګانو ددغه خلکو سره څه تعلق سته، او کوم خلک چي دا کارونه د پلار او نيکه روايت ګڼي بيله اهليته يې اختياروي د هغوی پر حال دغه آيت کريمه صادقيږي :

إِنَّهُمْ أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ ضَالِّينَ ۞ فَهُمْ عَلَىٰ آثَارِهِمْ يُهْرَعُونَ

خلاصه دا چي نن سبا کومه طريقه رواج ده چي د اولياء الله پر مزارو د عرس په نامه محض د نمود او ښووني او شهرت جشن کوي ، د رقص او سروز مجلسونه جوړوي ، قوالی او قوالي ويونکي د خپل قوالی او ساز وسامان سره يوازي د شهرت او مال تر لاسه کولو لپاره راځي ، حاشا لله چي د پخوانی زمانې د يو بزرګ دا طريقه پاته سوې وي .

او بيا دا چي دا شيان د مشائخو په عرسونو کي د الله تعالی د قرب ذريعه ګڼل کيږي داسي خلک دي فکر وکړي چي دوی د ګمراهی او ضلالت لار اختيار کړې ده ، آرمان چي دغه خلکو خپل ځان ته متقي، پرهيزګار او بزرګان نه ويلای، او خپل آزاد بدن ته يې د زهد او تقوا دا تنګه جامه نه اغوستلای،

بنه پوه سئ چي د داسي خلکو شرعا او دیانتا نه خو اطاعت واجب دی او نه د دوی تعظیم ضروري دی، ځکه که چیري د دغه خلکو عزت وکړل سي نو په دا ډول به د دوی دغه غلط اعمال او افعال تائید او مرسته به يې کیږئ ، الله تعالی دي موږ ټولو ته پر هغه لار د تللو توفیق را کړي چي هغه د خپل پیغمبر ﷺ په ذریعه موږ ته را ښودلې ده . آمین .

## د اختر په ورځ خرما خوړل

﴿۱۳۴۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَغْدُوْ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا . رواه البخاري .

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي تر څو پوري به رسول الله ﷺ يو څو خرماوي نه وای خوړلي نو د کوچني اختر لمانځه ته به نه راتلی او رسول الله ﷺ به طاق خرماوي خوړلې .بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۴۶، رقم: ۹۵۳.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د اختر په ورځ عیدگاه ته د تللو څخه مخکي خرما خوړل گویا په خوراک کي تلوار کول وو چي د مخکنیو ورځو یعني روژې څخه امتیاز پیدا سي ځکه چي ځرنګه په روژې کي نه خوړل واجب دي همداسي د اختر په ورځ خوړل واجب دي .

رسول الله ﷺ به خرما طاق یعني درې، پنځه ، اوه یا تر دې کمي یا زیاتي خوړلې په هر کار کي د طاق شمېر خیال ساتل غوره دي ځکه رسول الله ﷺ په دې اړه هم د طاق لحاظ ساتی او ددې وجه داده چي (ان الله وتر یحب الوتر) یعني الله تعالی طاق دی او طاق خوښوي .

د اختر په ورځ به رسول الله ﷺ خرما ځکه خوړل چي هغه به هغه وخت موجود وې ځیني حضراتو ویلي دي په خرما خوړلو کي حکمت دا وو چي هغه خوږې وې او د قوت بصر ذریعه جوړیدل په خاصه توګه سره د خلو معده وخت خو نظر ته تقویت لپاره دا ډیر ژر اثر کوي نو د روژو په وجه چي کوم ضعف پیدا سوی دی خرما خپل په اثراتو سره هغه ختموي بیا دا چي خوږوالی د مقتضاء ایمان موافق ده، علماء لیکي کوم سړی په خوب کي خوږ شی خوړل ووینی هغه ته حلاوت ایمان نصیب کیږي او خوږ شی زړه نرموي په دې ترتیب سره په خواږه شي سره روژه ماتول افضل دي .

## عیدگاه د تګ راتګ دوې لاري

﴿۱۳۵۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ عِيْدٍ

خَالَفَ الطَّرِيْقَ. رواه البخاري.

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي د اختر په ورځ به رسول الله ﷺ پر دوو مختلفو لارو تګ راتګ کوی. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\۴۷۲، رقم: ۹۸۶.

**تشریح**: یعني عیدګاه ته به پر یوه لاره راتلی او پر دوهمه لاره به د عیدګاه څخه بیرته تلی په دې کي حکمت دا وو چي پر دواړو لارو باندي انسانان او پیریان د عبادت شاهدي ورکړي ددې څخه پرته نوري وجهي هم علماؤ لیکلي دي مګر حقیقت دا دی چي دا ټول د احتمال په درجه کي دي، علماء د خپل فهم سره سم ددې وجهي بیان کړي دي اصل حقیقت او وجه څه ده په دې الله او د هغه رسول ښه پوهیږي.

## د اختري کولو وخت

﴿۱۳۵۱﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ

د حضرت براء رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي د قرباني په ورځ به رسول الله ﷺ زموږ په وړاندي خطبه ویل

فَقَالَ إِنَّ أَوَّلَ مَا نَبْدَأُ بِهِ فِي يَوْمِنَا هٰذَا نُصَلِّي ثُمَّ نَرْجِعُ فَنَنْحَرُ فَمَنْ فَعَلَ

رسول الله ﷺ به فرمایل: تر ټولو لومړی کار چي نن موږ کوو هغه دا دی چي موږ لمونځ وکړو او بیا کورو ته ولاړ سو او قرباني وکړو، کوم څوک چي په دې طریقه عمل وکړي

ذٰلِكَ فَقَدْ أَصَابَ سُنَّتَنَا وَمَنْ ذَبَحَ قَبْلَ اَنْ نُّصَلِّيَ فَإِنَّمَا هُوَ شَاةُ لَحْمٍ عَجَّلَهُ

نو هغه زموږ سنت تر لاسه کړل او چا چي د لمانځه وړاندي قرباني وکړه نو هغه قرباني نه ده بلکه د غوښو پسه دی چي

لِأَهْلِهِ لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ. متفق عليه

د خپل کورني لپاره یې ژر حلال کړی دی د قرباني سره ددې هیڅ اړه نسته. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۵۶، رقم: ۹۶۸، ومسلم ۳\۱۵۵۳، رقم: ۷- ۱۹۶۱.

**تشریح**: مطلب دا دی چي د لمانځه مخکي په قرباني کولو سره د قرباني ثواب نه حاصلیږي مګر د هغه شمیر د هغه په غوښه کي کیږي چي روزانه کور والا یې خوري.

په دې اړه مشروع دادی چې مخکې دې د لوی اختر لمونځ وکړې او د هغه وروسته دې خطبه ووایې او بیا دې قرباني وکړل سي، په پورتني حدیث کې د قربانۍ تر وخته پوري وضاحت سوی دی ځکه د علماؤ پر دې خبره اجماع ده چې د اختر په ورځ د سهار مخکې قرباني کول جائز نه ده البته د سهار وروسته د قربانۍ وخت د مشروع کیدو په اړه د امامانو اختلاف دی د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی چې لمر د یوې نیزې برابر سي او د هغه وروسته کم از کم دوه رکعته لمونځ او د دوو خطبو په اندازه وخت چې تیر سي نو د قربانۍ وخت شروع کیږي د هغه وروسته قرباني کول جائز کیږي که څه هم د لوی اختر لمونځ سوی وي یا نه وي سوی، د دې وخت څخه مخکې قرباني نه ده جائز که څه هم قرباني کونکی په ښار کې اوسیږي یا په کلي کې، د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد د قربانۍ وخت د دیارلسم تاریخ تر لمر لویدو پوري دی.

د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد د قربانۍ وخت د ښاریانو لپاره د لوی اختر د لمانځه وروسته شروع کیږي او د کلي اوسیدونکو لپاره د صبح صادق ختلو وروسته شروع کیږي د ده په نزد د قربانۍ اخري وخت د دوولسم تاریخ تر اخیره پوري دی.

## اختری واجب دی که سنت؟

د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد قرباني واجب نه ده مګر سنت ده او د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه مذهب دادی چې پر هر صاحب نصاب باندې قرباني واجب ده.

﴿۱۳۵۲﴾: وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِاللهِ الْبَجَلِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت جندب بن عبدالله البجلي رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرٰى وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ

کوم څوک چې د لمانځه مخکې اختری وکړې نو هغه ته پکار ده چې د هغه پر ځای بل اختری وکړې او څوک چې

حَتّٰى صَلَّيْنَا فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللهِ . متفق علیه

د لمانځه وروسته اختری وکړې نو هغه ته پکار ده چې د الله په نوم اخیستلو سره اختری وکړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۱۹\۶۳۰، رقم: ۵۵۰۰، ومسلم ۱۳\۱۵۵۱، رقم: ۱- ۱۹۶۰.

﴿۱۳۵۳﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ذَبَحَ

د حضرت براء ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي اختری حلال کړي

قَبْلَ الصَّلاَةِ فَإِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهِ وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلاَةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ

دلمانځه مخکي نو هغه د خپل ځان لپاره وکړی او چا چي د لمانځه وروسته حلال کړي نو د هغه ارکان پوره سول

وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ. متفق عليه

او د مسلمانانو سنت يې تر لاسه کړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۱۰\۳، رقم: ۵۵۴۶، ومسلم ۱۳\۱۵۵۲، رقم: ۴- ۱۹۶۱.

**تشريح** : د جمهورو علماؤ مذهب هم دادی، مګر تعجب دی چي د دومره واضح او صحيح حديثو سربيره امام شافعي رحمة الله عليه ولي د جمهورو علماؤ د مذهب خلاف دا وايي چي د اختري کولو د وخت پيل کېدو څخه وروسته اختری کول جائز دی که څه هم لمونځ سوی وي يا نه وي سوی، څرنګه چي مخکي د هغه مذهب نقل سوی دی.

## په عيدګاه کي اختری کول

﴿۱۳۵۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په عيدګاه کي حلالول او نحر به يې کوی (يعني د اوښ حلالول) کول. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۱۲\۴۷۱، رقم: ۹۸۲.

**تشريح** : پسه، بزه، غوا، ګامېښه او اوښ دغه حيوانان که نر وي يا ښځه ددې څخه پرته د نورو حيوانانو قرباني نه ده جائز، د اوښ څخه پرته د نورو حيوانانو حلالولو ته ذبح وايي او د اوښ حلالولو ته نحر وايي، د نحر طريقه داده چي اوښ ودروي د هغه په سينه کي نيزه ووهل

سي چي په هغه سره اوښ راولوېږي که څه هم اوښ ذبح کول جائز دی مګر نحر افضل دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د خوشحالۍ دوې ورځې

﴿۱۳۵۵﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَلَهُمْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله رسول الله ﷺ مديني ته تشريف راوړ نو په هغه وخت کي د مديني د خلکو

يَوْمَانِ يَلْعَبُوْنَ فِيْهِمَا فَقَالَ مَا هٰذَانِ الْيَوْمَانِ ؟ قَالُوْا كُنَّا نَلْعَبُ فِيْهِمَا فِي

دوې ورځي وې چي په هغو کي يې خوشحالي او لوبي کولې، رسول الله ﷺ د خلکو څخه پوښتنه وکړه چي دا دوې ورځي څنګه دي؟ صحابه کرامو عرض وکړ په دې ورځو کي به موږ د جاهليت په زمانه کي خوشحالي او لوبي کولې،

الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَبْدَلَكُمُ اللهُ بِهِمَا خَيْرًا

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: الله تعالى تاسو ته دا ورځي په دوو غوره ورځو بدلي کړې

مِّنْهُمَا يَوْمَ الْأَضْحٰى وَيَوْمَ الْفِطْرِ . رواه أبو داود .

يعني د لوی اختر ورځ او د کوچني اختر ورځ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۶۷۵، رقم: ۱۱۳۴.

**تشريح**: د جاهليت په زمانه کي د مديني اوسيدونکو لپاره دوې ورځي ټاکلي وې چي په هغو کي به په لهو او لعب کي مصروف کېدل او خوشحالي به يې کول په هغو کي يوه ورځ د نوروز وه او دوهمه ورځ د مهرجان، د نوروز په ورځ لمر په برج حمل کي او د مهرجان په ورځ په برج ميزان کي داخلېږي په دغه دواړو ورځو کي آب او هوا معتدله وي او شپې برابري وي ځکه دا دواړي ورځي حکماء د خوشحالي کولو لپاره ټاکلي دي دغه رواج په خلکو کي راروان وو تر دې چي اهل مدينه په اسلام مشرف سول، په شروع کي د پخواني عادت سره سم په دغه ورځو کي د مخکنۍ زمانې په دول به يې خوشحالۍ کولې، رسول الله ﷺ چي د دغه دواړو ورځو حقيقت وپوښتی نو خلکو د دې څه حقيقت بيان نه کړای سو يوازي دومره يې وښودل چي د پخوانی

زماني څخه دا طريقه راروانه ده چي موږ په دغه ورځو کي خوشحالي کوو بيا رسول الله ﷺ وفرمايل ددغه ورځو سره اوس تاسو هيڅ کار مه ساتی ځکه چي الله تعالی د دغه ورځو څخه غوره ورځي تاسو ته د اخترو دوې ورځي درکړي دي تاسو په دغه دوو برکتناکو ورځو کي خوشحالي کولای سئ ګويا داسي رسول الله ﷺ اشاره وفرمايل چي مسلمانانو ته پکار ده چي هغوی حقيقي اختر او خوشحالي د عبادت په ورځ وکړي نو په دې حديث کي د اخترو په ورځ په لهو او لعب کي د مصروف کيدو څخه منعه ده، بلي خوا ته دا خفي اشاره ده چي په اخترو کي په ډيره معمولي طريقې سره بازی او په هغه طريقې سره خوشحالي کول چي په هغه کي د شريعت د حدودو څخه تجاوز نه وي جائز دی.

دا حديث په ډير بليغ انداز کي دا ښيي چي د غير مسلمو د مېلو تعظيم کول او په هغه کي خوشحالي کول او د هغوی رسمونه خپلول او دا حديث د غير مسلمانانو اختر او په ميله کي د شرکت او حاضرۍ ممانعت هم ښکاره وي ځيني علماء خو دا دومره سخته ګڼلې ده چي په دې عمل يې د کفر په حکم کي راوستلي دي.

ابو حفص کبير حنفي فرمايي کوم سړی چي د نوروز د عظمت او توقير له کبله په دغه ورځ مشرکانو ته په تحفه کي هګی ورکړي لکه څرنګه چي په دغه ورځ کي د مشرکانو طريقه ده نو هغه کافر کيږي او د هغه ټول اعمال بيکاره کيږي.

د قاضي ابو المحاسن حسن ابن منصور حنفي رحمة الله عليه قول دی که څوک په دغه ورځ هغه شيان واخلي چي په نورو ورځو کي يې نه اخلي څرنګه چي دلته د يو والي په ورځ د بازيو او خواړه شيان وغيره واخلي يا په دغه ورځ يو چاته تحفه ورواستوي او د هغه څخه د هغه مقصد د دغه ورځي تعظيم وي لکه څرنګه چي مشرکان ددغه ورځي تعظيم کوي نو هغه سړی کافر کيږي او که يو سړی يو ازي د خپل استعمال او ګټي اخيستلو لپاره يا د عادت سره سم يو چا ته د هديې استولو په نيت سره يو شي ورکړي نو کافر کيږي نه مګر دا هم مکروه دي همداسي د کافرانو سره مشابهت کيږي ځکه نو ددې څخه هم پرهيز کول پکار دی.

همداسي که يو سړی د عاشورا په ورځ خوشحالي کوي نو د خوارج سره مشابهت پيدا کيږي او که په دغه ورځ د غم او تکليف شيان نه اختياروي نو د روافض سره مشابهت پيدا کيږي نو ددغه دواړو خبرو څخه ځان ساتل پکار دي په دې خبره هم پوه سی چي د نوروز عظمت او توقير په اړه روافض د مجوسيانو سره ګډون کوي او ددې سبب دا بيانوي چي په دغه ورځ حضرت عثمان رضي الله عنه شهيد سوی دی او د حضرت علي کرم الله وجهه خلافت منځته راغلی دی.

په فتاوی ذخیره کي لیکلي دي چي کوم سړی د هولي یا دیوالي (د هندوانو د لمانځني ورځي) د کتلو لپاره په خاصه توګه ووځي نو هغه د کفر حد ته نژدې کیږي ځکه چي په دي کي د کفر اعلان کیږي نو داسي سړی ګویا په خپل دغه عمل سره د کفر مرسته کوي، او پر دې باندي د نوروز کتلو لپاره وتَل هم قیاس کول پکار دي لکه چي ځیني مسلمانان داسي کوي دا هم د کفر موجب دی.

په تجنیس کي ذکر دي چي زموږ د مشائخو او علماؤ پر دې اتفاق دی چي کوم سړی د اهل کفارو د معتقداتو او معاملاتو څخه د یو شي د ښه کیدو اعتقاد وساتي نو هغه د کفر په حدود کي داخلیږي پر دې دامسئله هم قیاس کېدای سي که یو سړی د یو داسي اهل هوا وهوس انسان مثلا د شریعت څرګنده خلاف ورزي کونکی د نام نهاد صوفیاء د یو کلام یا قول په باره کي ښه خیال ساتي او دا وایي چي دا کلام معنوی دی یا دا وایي چي فلانی قول داسي دی چي د هغه معنی صحیح ده همداسي نوادر الفتاوی کي نقل دي چي کوم سړی د غیر مسلمانانو په رسمونو کي ګډون وکړي نو هغه کافر کیږي، په عمدة الاسلام کي لیکلي دي چي کوم سړی د کافرانو رسمونه ادا کوي مثلا په نوي سرای کي د غوایي، غوا او آس په ژړ او سور رنګ ورکولو سره تړي نو هغه کافر کیږي.

خلاصه دا چي د عقېدو او رواجو څخه قطعا پرهیز کول پکار دی په کوم کي د اسلام او شریعت هیڅ اړه هم نسته مګر ددې بنیاد پر خالص غیر اسلامي او غیر شرعي شیانو باندي دی.

## په کوچني او لوی اختر کي خوراک

﴿۱۳۵۶﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَطْعَمَ وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحٰى حَتّٰى يُصَلِّيَ. رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي.

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روایت دی چي د کوچني اختر په ورځ تر څو پوري چي رسول الله ﷺ به یو شی خوړلی نه وو نو د باندي به نه راوتی او د لوی اختر په ورځ به یې تر هغه وخته پوري څه نه خوړل تر څو چي لمونځ به یې نه وو کړی. ترمذي، ابن ماجه، دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۴۲۶، رقم: ۵۴۲، وابن ماجه ۱\۵۸۸، رقم: ۱۷۵۶، والدارمي ۱\۴۵۵، رقم: ۱۶۰۰.

**تشريح**: د کوچني اختر په ورځ د لمانځه مخکي د خوراک او څښناک سبب په تیرو صفحو کي بیان سوی دی د لوی اختر په ورځ به رسول الله ﷺ د غریبانو او مسکینانو سره د ملګرتیا او د

هغوی د زړه د خوشحاله کولو له کبله د لوی اختر د لمانځه وروسته خوړل ښېښل کول ځکه چي غریبانو او مسکینانو ته به خوراک او ښېښاک هغه وخت په برخه کیدی چي کله به قرباني وسول او د هغه غوښه به پر خلکو ووېشل سول ځکه نو رسول الله ﷺ به د هغوی په وجه خپله هم خوراک او ښېښاک په زنډ سره کوی .

## د اخترو تکبیرونه

﴿۱۳۵۷﴾: وَعَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

حضرت کثیر بن عبدالله د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کوي چي د دواړو اخترو په لمنځو کي به رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ كَبَّرَ فِي الْعِيدَيْنِ فِي الْأُولٰى سَبْعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ وَفِي الْآخِرَةِ خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ. رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي .

په لومړي رکعت کي د قرائت څخه وړاندي اووه تکبیرونه ویل او په دوهم رکعت کي د قرائت څخه وړاندي پنځه تکبیرونه ویل. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۲\۴۱۶، رقم: ۵۳۶، وابن ماجه ۱\۴۰۷، رقم: ۱۲۷۹. والدارمي ۱\۲۲۰، رقم: ۱۶۰۶.

**تشریح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به په اول رکعت کي د قرائت مخکي تحریمه او د رکوع د تکبیرونو څخه پرته اووه تکبیروه ویل همداسي په دوهم رکعت کي د قیام او رکوع د تکبیرونو څخه پرته پنځه تکبیرونه به یې ویل، د امام شافعي رحمة الله علیه پر دې عمل دی په دې اړه مفصل بحث مخته راځي .

﴿۱۳۵۸﴾: وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ مُرْسَلاً أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا

د حضرت جعفر بن محمد څخه مرسلا روایت دی چي رسول الله ﷺ،

بَكْرٍ وَّعُمَرَ كَبَّرُوْا فِي الْعِيدَيْنِ وَالْاِسْتِسْقَاءِ سَبْعًا وَّخَمْسًا وَصَلُّوْا قَبْلَ

ابوبکر صدیق رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه به په دواړو اخترو کي او د استسقاء په لمانځه کي اووه تکبیرونه په لومړي رکعت کي او پنځه تکبیرونه په دوهم رکعت کي ویل

الْخُطْبَةِ وَجَهَرُوْا بِالْقِرَاءَةِ . رواه الشافعي .

او د خطبې مخکې به يې لمونځ کوی او په لوړ آواز سره به يې قرائت وايه . شافعي .

**تخريج** : مسند الشافعي ۱۵۷، رقم: ۴۵۷.

**تشريح** : د جعفر څخه مراد امام جعفر صادق رحمة الله عليه، ابن باقر رحمة الله عليه، ابن علي رحمة الله عليه يعني امام زين العابدين ابن حضرت امام حسين ابن حضرت علي كرم الله وجهه دی، د اووو او پنځو وضاحت په پورتني حديث كي بيان سوی دی چي په اول ركعت كي د قرائت څخه مخکي به يې اوه تكبيرونه او په دوهم ركعت كي د قرائت څخه مخکي به يې پنځه تكبيرونه ويل او دا هم ښودل سوي ده چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب هم دادی .

﴿۱۳۵۹﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَأَلْتُ أَبَا مُوْسٰى وَحُذَيْفَةَ كَيْفَ كَانَ

د حضرت سعيد بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د ابو موسی او حذيفه څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ به

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحٰى وَالْفِطْرِ ؟ فَقَالَ أَبُوْ مُوْسٰى

په کوچني او لوی اختر كي څنګه تكبيرونه ويل ؟ ابو موسی وويل :

كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا تَكْبِيْرَهُ عَلَى الْجَنَائِزِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ صَدَقَ . رواه أبو داود .

رسول الله ﷺ به څلور تكبير ويل لكه څرنګه چي د جنازې په لمانځه كي ويل كيږي او ابو حذيفه د دې تصديق وکړ . ابوداؤد .

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۱۱ ۶۸۲، رقم: ۱۱۵۳.

**تشريح** : د حضرت ابو موسی رضي الله عنه د جواب تفصيل دادی چي څرنګه رسول الله ﷺ به د جنازې د لمانځه كولو پر وخت څلور تكبيرونه ويل همداسي رسول الله ﷺ به د اخترو په لمانځه كي په هر ركعت كي څلور تكبيرونه ويل په داسي توګه چي په اول ركعت كي د قرائت څخه مخکي په تكبير تحريمه سره به يې څلور تكبيرونه ويل او په دوهم ركعت كي د قرائت څخه وروسته د ركوع د تكبير سره څلور تكبيرونه به يې ويل .

په دې اړه په دې پوهيدل پكار دي چي د اختر د تكبيراتو په اړه متضاد حديثونه نقل دي

په دې وجه د امامانو څخه هم په مذهب کي اختلاف څرګند سوی دی د درو سره امامانو په نزد د اخترو په لمانځه کي په اول رکعت کي اووه تکبیرونه دي او په دوهم رکعت کي پنځه تکبیرونه دي فرق یوازي دادی چي د امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد په اول رکعت کي پنځه تکبیرونه د تکبیر تحریمې سره دي او همداسي په دوهم رکعت کي پنځه تکبیرونه د قیام دتکبیر سره دي او د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په اول رکعت کي اووه تکبیرونه د تکبیر تحریمې څخه پرته او په دوهم رکعت کي پنځه تکبیرونه د قیام دتکبیر څخه پرته دي.

د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه مذهب دادی چي د تکبیر تحریمې څخه پرته درې تکبیرونه په اول رکعت کي دي او د رکوع د تکبیر څخه پرته درې تکبیرونه په دوهم رکعت کي دي لکه څرنګه چي د دې حدیث څخه ثابتیږي او دا حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هم اختیار کړی دی، او د امام شافعي رحمة الله علیه دقول سره سم د حضرت ابن عباس رضي الله عنه مذهب دی، او کوم چي د هغه احادیثو تعلق دی چي د هغو څخه امام شافعي رحمة الله علیه استدلال کوي نو د هغه صحت او ضعف او د هغه د اسنادو او طریقو په باره کي ډیر زیات اعتراضات دي چي د هغه نقل کولو دلته موقع نه وه، علماء حنفیه د خپل مذهب په باره کي لیکلي دي چي د اخترو د تکبیراتو په اړه کله چي متضاد حدیثونه مخته راسي نو په هغو کي موږ هغه حدیثونه خپل معمول ګرځوو چي په هغو کي د تکبیراتو شمېر کم نقل وي ځکه چي د اخترو زائد تکبیرونه او رفع یدین په هرحال خلاف معمول دی ځکه نو د کم شمېر اختیارول به اولی وي.

## د خطبې پروخت پر لکړه تکیه

﴿۱۳۶۰﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُوْوِلَ يَوْمَ الْعِيْدِ قَوْسًا فَخَطَبَ عَلَيْهِ. رواه أبو داود

د حضرت براء رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته د اختر په ورځ یو لیندۍ ورکړل سول او رسول الله ﷺ به پر هغه خطبه ویل. ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱۱ ۶۷۹، رقم: ۱۱۴۵.

**تشریح**: مطلب دادی چي څرنګه د لکړي وغیره په تکیه کولو سره خطبه ویل کیږي همداسي رسول الله ﷺ د لکړي پر ځای د لیندۍ په لګولو سره د هغه په مرسته خطبه و فرمایل.

﴿۱۳۶۱﴾: وَعَنْ عَطَاءٍ مُّرْسَلاً أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَطَبَ يَعْتَمِدُ عَلَىٰ عَنَزَتِهِ اِعْتِمَادًا . رواه الشافعي .

د حضرت عطاء څخه مرسلا روايت دی چي رسول الله ﷺ به کله خطبه ويل نو د خپلي نيزې پر تکيه لګولو سره به ودريدی . شافعي.

**تخريج**: مسند الشافعي ۱۴۵، رقم: ۴۲۲.

**د لغاتو حل**: (عَنَزَتِه): مثل نصف الرمح اوَ اكبر شيئا وفيها سنان مثل سنان الرمح والعكازة قريب منها . (النهاية).

﴿۱۳۶۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ شَهِدْتُ الصَّلَاةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي د اختر په ورځ زه د رسول الله ﷺ سره

يَوْمِ عِيْدٍ فَبَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ

د لمانځه لپاره حاضر سوم ، رسول الله ﷺ د خطبې څخه مخکي لمونځ وکړ او آذان او اقامت يې نه وکړ ، کله چي رسول الله ﷺ لمونځ وکړ

قَامَ مُتَّكِئًا عَلَىٰ بِلَالٍ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَىٰ عَلَيْهِ وَوَعَظَ النَّاسَ وَذَكَّرَهُمْ وَحَثَّهُمْ

نو د بلال په مرسته ودريدی (يعني تکيه يې کړې وه پر بلال باندي) د الله تعريف يې وکړ او ثناء يې وويل پر ده او خلکو ته يې نصيحت وکړ او د عذاب او ثواب يادونه يې وکړه

عَلَىٰ طَاعَتِهِ ثُمَّ قَالَ وَمَضَىٰ إِلَى النِّسَاءِ وَمَعَهُ بِلَالٌ فَأَمَرَهُنَّ بِتَقْوَى اللهِ

او د الله تعالی پر فرمانبرداری يې زور واچوی ، بيا د بلال سره رسول الله ﷺ د ښځو په لور تشريف يووړ او هغوی ته يې د الله جل جلاله د بيري هدايت او نصيحت وکړ

وَوَعَظَهُنَّ وَذَكَّرَهُنَّ . رواه النسائي .

او د ثواب او عذاب يادونه يې وکړه . نسائي .

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۱۸۶، رقم: ۱۵۷۴.

**تشریح** : ددې حدیث څخه معلومه سوه چي د خطبه ویونکي لپاره مناسب ده چي د خطبې ورکولو پر وخت د یو شی مثلا توره، لیندی، نیزه، لکړي یا د یو سړي په مرسته اخیستو سره ودرېږي.

## عیدګاه ته د تللو طریقه

﴿۱۳۶۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ رَّجَعَ فِي غَيْرِهِ. رواه الترمذي والدارمي.

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ د اختر لمانځه ته پر یوه لار تشریف راوړ نو پر هغه لار به نه ستنېدی بلکه پر بله لار به تلی. ترمذي، دارمي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۲\۴۲۴، رقم: ۵۴۱، والدارمي ۱\۴۶۰، رقم: ۱۶۱۳.

**تشریح** : عیدګاه ته د تللو لپاره یوه لار غوره کول او د ستنېدو لپاره دوهمه لار غوره کول سنت ده، د دې حکمت ددې باب په اول فصل کي د یوه حدیث په تشریح کي بیان سوی دی، عیدګاه ته د تللو پر وخت په لاره کي تکبیر یعني الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله والله اکبر الله اکبر ویل پکار دي، د صاحبینو په نزد خو په دواړو اخترونو کي پر دواړو وختونو باندي په لاره کي دا تکبیر په لوړ اواز سره ویل پکار دي مګر امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه فرمایي چي په کوچني اختر کي دا تکبیر په کرار اواز سره او په لوي اختر کي په لوړ اواز سره ویل پکار دي.

## د عذر په وجه د اختر لمونځ په ښار کي کول

﴿۱۳۶۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ أَصَابَهُمْ مَطَرٌ فِي يَوْمِ عِيدٍ فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ. رواه أبو داود وابن ماجه.

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي کله به د اختر په ورځ باران وو نو نبي کریم ﷺ به خلکو ته د اختر لمونځ په مسجد کي ورکوی. ابوداؤد، ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۸۶، رقم: ۱۱۶۰، وابن ماجه ۱\۴۱۶، رقم: ۱۳۱۳.

**تشریح** : مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د اخترو لمونځ د ښار څخه دباندي په ځنګل کي اداء کوی خو کله چي به باران سو نو په مسجد نبوي کي به یې لمونځ کوی د دې څخه معلومه سوه چي د اخترو لمونځ په ځنګل کي یعني په عیدګاه کي اداء کول افضل دي هو که چیري یو

عذر وي نو بيا د ښار په مسجد كي اداء كول كيږي.

په دې اړه د اهل مكه لپاره مسئله داده چي هغوی دي د اخترو لمونځ په مسجد حرام كي اداء كوي ځرنګه چي نن سبا عمل دی همداسي اهل مدينه هم د اخترو لمونځ په مسجد نبوي كي اداء كوي.

## د اخترو دلمانځه مستحب وختونه

﴿۱۳۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي الْحُوَيْرِثِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَتَبَ إِلٰى عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ وَهُوَ بِنَجْرَانَ عَجِّلِ الْأَضْحٰى وَأَخِّرِ الْفِطْرَ وَذَكِّرِ النَّاسَ. رواه الشافعي.

د حضرت ابو الحويرث ؓ ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ عمرو بن حزم ته چي په نجران كي وو وليكل چي د لوی اختر لمونځ ژر كوه او د كوچني اختر لمونځ په ځنډ سره كوه او خلكو ته نصيحت كوه. شافعي.

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۱\۱۵۳، رقم: ۴۴۲.

**تشريح**: نجران د يو ښار نوم دی چي رسول الله ﷺ عمرو ابن حزم ؓ هلته عامل ټاكلی وو كله چي د هغه عمر اووه لس كاله وو نو رسول الله ﷺ هغه ته دا احكام وركړي وه چي پر دې عمل وكړي، د لوی اختر د لمانځه ژر اداء كولو لپاره يې ځكه وفرمايل چي خلك د لمانځه د فارغه كيدو سره په قرباني وغيره كي مصروف سي همداسي د كوچني اختر لمونځ په ځنډ سره د اداء كولو لپاره يې دا وفرمايل چي خلك دي د لمانځه مخكي سرسايه اداء كړي.

## په شاهدي سره روژه ماتول

﴿۱۳۶۶﴾: وَعَنْ أَبِي عُمَيْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ عُمُوْمَةٍ لَّهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

حضرت ابو عمر بن انس د خپل اكاګانو ځخه چي د رسول الله ﷺ اصحاب وه روايت كوي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَكْبًا جَاءُوْا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْهَدُوْنَ أَنَّهُمْ

د خلكو يو ډله سپره د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سول او ددې خبري شاهدي يې وركړه

رَأَوُا الْهِلَالَ بِالْأَمْسِ فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُّفْطِرُوْا وَإِذَا أَصْبَحُوْا أَنْ يَّغْدُوْا إِلٰى مُصَلَّاهُمْ. رواه أبو داود والنسائي.

چي هغوی پرون ماښام د اختر میاشت لیدلې ده د هغوی په شاهدي سره. رسول الله ﷺ خلکو ته د روژې ماتولو حکم وکړ او وه يې فرمايل: چي سبا عيدگاه ته ولاړ سئ. ابوداؤد، نسائي

**تخريج**: سنن ابي داد ۱۱ /۶۸۴، رقم: ۱۱۵۷، والنسائي ۳ /۱۸۰، رقم: ۱۵۵۶.

**تشريح**: د روژې مبارکي په ديرشمه شپه د مديني اوسيدونکو د اختر مياشت و نه ليدل نو هغوی پر ديرشم تاريخ روژه ونيول، اتفاقا په هغه ورځ يوه قافله مديني ته راغلل او د رسول الله ﷺ مخکي يې ددې خبري شاهدي ورکړل چي موږ پرون مياشت ليدلې ده رسول الله ﷺ د هغه قافلې شهادت په منلو سره خلکو ته حکم وکړ چي روژه ماته کړي او د مياشت ليدو دا شهادت د لمر د زوال وروسته راغلی وو دا صراحت هم دی چي (انهم قدموا آخر النهار) يعني قافله د ورځي په اخري برخه کي مديني ته رسيدلې وه ځکه رسول الله ﷺ د لمانځه په باره کي دا حکم وکړ چي سبا سهار دي اداء کړل سي، د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه پر دغه قول عمل دی چي د لمر پورته کيدو وروسته د اختر د لمانځه وخت شروع کيږي او د لمر تر زواله پوري دی.

په شرح منيه کي ليکلي دي که چيري يو داسي عذر مخته راسي چي د کوچني اختر په ورځ د لمر د زوال مخکي د کوچني اختر د لمانځه لپاره مانع وي نو د اختر لمونځ دي د هغه پر ځای په دوهمه ورځ د لمر د زوال مخکي اداء کړل سي او که په دوهمه ورځ هم يو عذر د لمانځه د اداء کولو څخه مانع سي نو بيا دي لمونځ نه کوي.

په خلاف د لوی اختر د لمانځه، که چيري د لوی اختر د لمانځه د ادا کولو لپاره يو عذر په اوله او دوهمه ورځ مانع وي نو په دريمه ورځ هم د هغه لمونځ کېدای سي هسي د لوی اختر په لمانځه کي بېله عذره هم تر دويمي يا دريمي ورځي پوري تاخير جائز دی مگر مکروه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### د اختر د لمانځه اذان او اقامت نسته

(۱۳۶۷): عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَّجَابِرِ بْنِ

حضرت ابن جريج وايي چي عطاء د ابن عباس او جابر بن عبد الله څخه روايت کوي چي

عَبْدِاللهِ قَالاَ لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَلاَ يَوْمَ الْاَضْحَى ثُمَّ سَاَلْتُهُ بَعْدَ

هغه ويلي دي د كوچني اختر او لوى اختر په ورځ به آذان نه كېدى، څو ورځي وروسته ما بيا د عطاء څخه

حِينٍ عَنْ ذٰلِكَ فَأَخْبَرَنِي قَالَ أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْأَنْصَارِيُّ أَنْ لاَ

د دې خبري پوښتنه وكړه نو هغه وويل چي ما ته جابر بن عبدالله ﷺ ښودلي دي چي

أَذَانَ لِلصَّلاَةِ يَوْمَ الْفِطْرِ حِينَ يَخْرُجُ الْإِمَامُ وَلاَ بَعْدَ مَا يَخْرُجُ وَلاَ إِقَامَةَ

د كوچني او لوى اختر په ورځ د اختر د لمانځه آذان نسته نه خو د امام د باندي د وتلو په وخت او نه د امام د راتلو او نه اقامت،

وَلاَ نِدَاءَ وَلاَ شَيْءَ لاَ نِدَاءَ يَوْمَئِذٍ وَلاَ إِقَامَةَ . رواه مسلم

اعلان او نه بل يو شى او په هغه زمانه كي نه اقامت وو نه آذان . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۰۴،رقم: ۵- ۸۸۶.

**تشريح** : ابن جريج رحمة الله عليه يا خو به دوه واره د عطاء څخه ددې مسئلې تفصيل معلوم كړى وي يا بعينه هغه مسئله به يې پوښتل، په هرحال عطا په دوهم وار كي يوازي د كوچني اختر ذكر وكړ او ددې وجه داوه چي هغه پوه سو چي يوازي د كوچني اختر ذكر كول كافي دى پوښتنه كونكي پر كوچني اختر لوى اختر هم قياس كړى دى .

د نداء (الصلوة الصلوة ) يا داسي نور الفاظ چي د لمانځه د خبر وركولو لپاره استعماليږي ويل مراد دي د لانداء وروسته لاشيئ د لانداء د تاكيد لپاره راوړل كيږي بيا ددې څخه وروسته د حديث الفاظ لانداء يومئذ ولا اقامة هم د تاكيد لپاره دوهم وار استعمال سوى دى . (شيخ عبد الحق رحمة الله عليه)

ملا علي قاري رحمة الله عليه ليكلي دي چي لفظ د (لانداء) د اول څخه تر اخيره پوري د اولي جملې تاكيد دى او مناسب دادى چي د لفظ نداء څخه اذان مراد واخيستل سي ځكه چي د اخترو پر وخت د اذان او تكبير پر ځاى الصلوة جامعة په زوره ويل د ټولو علماؤ په نزد مستحب دى ګويا د شيخ عبدالحق رحمة الله عليه د قول سره سم د حديث مطلب داسو چي د اخترو د لمانځه لپاره څرنګه چي اذان او اقامت مشروع نه دى همداسي د لمانځه د اطلاع لپاره بل لفظ مثلا الصلوة جامعة په زوره ويل هم مشروع نه دى د ملا علي قاري رحمة الله عليه د قول مطلب

دادی چي د اخترو په لمانځه کي اذان او اقامت مشروع نه دی هو د لمانځه د خبر ورکولو لپاره نداء یعني الصلوة جامعة په زوره ویل مستحب دي نو ددغه دواړو قولو اختلاف او تضاد به ددې تطبیق په ذریعه ختم سي چي شیخ چي د نداء کومه نفي کړې ده هغه په عیدګاه کي دننه او دوهم بطریق التزام نداء دي نه ورکوي او ملا علي قاري رحمة الله علیه چي نداء ته مستحب ویلي دي نو د هغه تعلق د عیدګاه څخه دباندي په ویلو سره دی یعني الصلوة جامعة د عیدګاه څخه دباندي او کله کله په زوره ویل مستحب دي. (والله اعلم)

**د خطبې مخکي لمونځ کول**

﴿۱۳۶۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

د حضرت ابوسعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به

يَخْرُجُ يَوْمَ الْأَضْحَى وَيَوْمَ الْفِطْرِ فَيَبْدَأُ بِالصَّلَاةِ فَإِذَا صَلَّى صَلَاتَهُ قَامَ

د کوچني او لوی اختر په ورځ د کور څخه د باندي راوتی او شروع به یې وکړه په لمانځه بیا چي به د لمانځه څخه فارغ سو نو (د خطبې لپاره) به ودریدی

فَأَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ وَهُمْ جُلُوسٌ فِي مُصَلَّاهُمْ فَإِنْ كَانَ لَهُ حَاجَةٌ بِبَعْثٍ ذَكَرَهُ

او خلکو ته چي د خپل لمانځه پر ځای به ناست وه توجه فرمایل او که چیري به د یو لښکر د لیږلو ضرورت سو نو د خلکو په وړاندي به یې د هغه یادونه کول

لِلنَّاسِ أَوْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ بِغَيْرِ ذٰلِكَ أَمَرَهُمْ بِهَا وَكَانَ يَقُوْلُ تَصَدَّقُوا

یا که بل څه ضرورت وو نو د هغه حکم به یې ورکوی او خطبه کي به یې دا هم فرمایل چي صدقه ورکړئ

تَصَدَّقُوا تَصَدَّقُوا وَكَانَ أَكْثَرَ مَنْ يَتَصَدَّقُ النِّسَاءُ ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَلَمْ يَزَلْ

صدقه ورکړئ صدقه ورکړئ او صدقه او خیرات ورکونکي به زیاتي ښځي وې، ددې وروسته به رسول الله ﷺ تشریف راوړ،

كَذٰلِكَ حَتَّى كَانَ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ فَخَرَجْتُ مُخَاصِرًا مَرْوَانَ حَتَّى أَتَيْنَا

د مروان بن حکم تر زمانې پوري په دې طریقه عمل وو د اختر په ورځ ما د مروان په لاس کي لاس

اچولی روان وم تر څو چي موږ عيدگاه ته ورسيدو

الْمُصَلَّى فَإِذَا كَثِيرُ بْنُ الصَّلْتِ قَدْ بَنَى مِنْبَرًا مِنْ طِينٍ وَلَبِنٍ فَإِذَا مَرْوَانُ

نو کثير بن صامت د اومو خښتو او خاورو څخه منبر جوړ کړی وو بيا چي عيدگاه ته ننوتلو نو مروان

يُنَازِعُنِي يَدَهُ كَأَنَّهُ يَجُرُّنِي نَحْوَ الْمِنْبَرِ وَأَنَا أَجُرُّهُ نَحْوَ الصَّلَاةِ فَلَمَّا رَأَيْتُ ذَلِكَ

په خپل لاس سره زما لاس راکش کړ لکه هغه چي ما د منبر په لور کشوي چي خطبه د لمانځه څخه وړاندي ورکړه او ما به هغه د لمانځه په لور راکشوی هر کله چي ما د هغه دا حالت وليدی

مِنْهُ قُلْتُ أَيْنَ الِابْتِدَاءُ بِالصَّلَاةِ فَقَالَ لَا يَا أَبَا سَعِيدٍ قَدْ تُرِكَ مَا تَعْلَمُ

چي هغه د لمانځه مخکي خطبه ورکول غواړي نو ورته وه مي ويل د اختر د لمانځه مخکي د کولو هغه فعل څه سو چي پر هغه تر اوسه عمل کېدی، مروان وويل: اې ابو سعيد! جګړه مه کوه په کومه خبره چي ته پوهيږې هغه پرېښودل سول،

قُلْتُ كَلَّا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَأْتُونَ بِخَيْرٍ مِمَّا أَعْلَمُ ثَلَاثَ مِرَارٍ ثُمَّ انْصَرَفَ. رواه مسلم

ما وويل: قسم دي په هغه ذات وي چي د هغه په واک کي زما روح ده ددې څخه غوره چي په هغه زه پوهيږم ته نه سې راوړلای ما دري ځله دا الفاظ وويل، ددې وروسته ابو سعيد بيرته راغلی. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۲/۶۰۵، رقم: ۹- ۸۸۹.

**د لغاتو حل:** (مُخَاصرا): المخاصرة هي ان ياخذ رجل بيد رجل آخر وهما ماشيان ويد كل واحد منهما عند خصر صاحبه. (لاس په لاس کي ورکول او تلل).

**تشريح:** د صدقې او خيرات يعني د الله تعالی پر نامه د خپل مال مصرف کولو چي کوم ارزښت او فضيلت دی په دې اړه رسول الله ﷺ په خطبه کي لفظ د تصدقوا درې واره د تاکيد لپاره فرمايلي دی يا دا چي درې واره فرمايل درو حالتو ته اشاره کوي اول: دا چي صدقه ورکړئ د خپل ژوند لپاره، دوهم دا چي صدقه ورکړئ د خپل مرګ لپاره او دريم دا چي صدقه ورکړئ د خپل آخرت لپاره.

مخاصر د دوو خلكو په خپلو كي لاسونه نيولو ته وايي چي د هر يوه لاس د دوهم تشي ته نژدې وي .

مروان ابن الحكم په دوهم هجري كال كي پيدا سوى وو د رسول الله ﷺ شرف زيارت ورته نه وو حاصل سوى همداسي د كثير ابن صلت په باره كي ويل سوي دي چي د هغه پيدائش هم د رسول الله ﷺ په مباركه زمانه كي سوى وو له دې كبله په صاحب جامع الاصول كي شمارل سوي دى ځيني محقيقينو ورته تابعي ويلي دي د هغه كور عيدگاه ته نژدې وو هغه په عيدگاه كي منبر جوړ كړى وو چي د اختر په ورځ پر هغه په دريدو سره به يې خطبه ويل لكه څرنگه چي د جمعې خطبه پر منبر باندي په دريدو سره ويل سنت ده، د حديث څخه دا معلوميږي چي تر ټولو مخكي مروان ابن حكم په عيدگاه كي منبر جوړ كړى دى . د حديث اخري الفاظ ثم انصرف پر دا معنى هم محتمل كېداى سي چي بيا مروان د منبر خوا ته راغلى چي خطبه ووايي هغه د ابو سعيد خبره ومنل چي مخكي لمونځ وكړي او بيا خطبه ووايي .

## د اخترو د لمانځه طريقه

د اخترو د لمانځه دوه ركعته دي طريقه يې داده چي لمونځ كونكى دي نيت وكړي او په تكبير ويلو سره دي لاس وتړي بيا د سبحانك اللهم... په ويلو سره درې واره الله اكبر دي ووايي او هر وار دي د تكبير تحريمې په ډول لاسونه دواړو غوږو ته پورته كوي او د تكبير وروسته دي يې ايله كړي او د هر تكبير وروسته دي دومره توقف وكړي چي درې واره سبحانك اللهم وويل سي د دريم تكبير وروسته دي لاسونه نه ايله كوي بلكه لاسونه دي وتړي او د اعوذ بالله او بسم الله په ويلو سره دي سورة فاتحه او يو بل سورة ووايي د دې وروسته دي درې تكبيرونه داسي وكړي لكه څرنگه چي په اول ركعت كي د سبحانك اللهم وروسته يې ويلي وه مگر دلته د دريم تكبير وروسته دي لاسونه نه تړي بلكه ايله دي يې كړي بيا د څلورم تكبير په ويلو سره دي ركوع ته ولاړسي او لمونځ دي پوره كړي د لمانځه وروسته امام ته پكار ده چي هغه پر منبر باندي په دريدو سره دوې خطبې ووايي د كوچني اختر په خطبه كي دي د سرسائې احكام او مسائل بيان كړي او د لوى اختر په خطبه كي دي د قربانۍ او د تشريق د تكبيرو احكام بيان كړي .

تكبير تشريق يعني د هر فرض لمانځه وروسته يو وار الله اكبر اكبر لا اله الا الله والله اكبر الله اكبر و لله الحمد ويل واجب دي دا تكبير د عرفات يعني ذي الحجه د نهم تاريخ څخه تر

دیارلسم تاریخ ماز دیگره پوري ویل پکار دي، دا تکبیر پر ښځي او مسافر باندي نه دی واجب هو که دا خلک د یو داسي سړي مقتدیان وي چي پر هغه تکبیر ویل واجب وي نو پر دوی هم تکبیر ویل واجب دی. علم الفقه.

=========

## بَابُ فِي الْأُضْحِيَّةِ (د اختري بيان)

په حنفي مذهب کي قرباني (اختری) پر هر هغه مسلمان باندي فرض ده چي مقیم او غني وي يعني د نصاب خاوند وي، د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد قرباني سنت مؤکده ده، د امام محمد رحمة الله علیه په نزد مشهور او مختار قول دادی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### اختری په خپل لاس حلالول

﴿۱۳۶۹﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ ضَحّٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ اختری وکړ د دوو

أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ ذَبَحَهُمَا بِيَدِهٖ وَسَمّٰى وَكَبَّرَ قَالَ رَأَيْتُهٗ وَاضِعًا قَدَمَهٗ عَلٰى

ابلکو ښکرورو مړو او په خپلو لاسو يې هغه حلال کړل، بسم الله او تکبير يې وو ايه، انس رضی الله عنه وايي ما رسول الله ﷺ وليدی چي د مړو پر بغلو پښه ايښې وه

صِفَاحِهِمَا وَيَقُوْلُ بِسْمِ اللهِ وَاللهُ أَكْبَرُ. متفق علیه

او رسول الله ﷺ د حلالولو پر وخت دا فرمایل: بسم الله والله اکبر. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۲- ۲۳، رقم: ۵۵۶۴، ومسلم ۱۳\۱۵۵۷، رقم: ۱۸- ۱۹۶۶.

**د لغاتو حل**: (صِفَاحِهِمَا): اى جنبيهما (بغل).

**تشريح**: د قرباني کونکي لپاره مستحب ده که هغه د ذبح اداب پیژني نو د قرباني حيوان دي په خپل لاس سره حلال کړي کنه د خپل خوا څخه دي بل چا حلال کړي او خپله دي هلته موجود وي د ذبح پر وخت د الله نوم اخيستل يعني والله اکبر ويل د ټولو علماؤ په نزد مستحب

دی د حدیث اخري الفاظ ويقول بسم الله والله اكبر کي دې ته اشاره ده چي لفظ والله اکبر ويل مستحب دی، د ذبح پر وخت درود شریف ویل د جمهور علماء په نزد مکروه دي او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد سنت دی .

## د اختري د حيوان صفات

﴿۱۳۷۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِكَبْشٍ أَقْرَنَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د يو داسي مېړاوستلو حکم وکړ چي د هغه په سر کي ښکر وي

يَطَأُ فِي سَوَادٍ وَيَبْرُكُ فِي سَوَادٍ وَيَنْظُرُ فِي سَوَادٍ فَأُتِيَ بِهِ لِيُضَحِّيَ بِهِ فَقَالَ لَهَا يَا

او هغه په توروالي کي ګرځي يعني د هغه پښې توري وي او په توروالي کي کښيني يعني د هغه نس او سينه توره وي او په توروالي کيويني يعني د هغه د سترګو حلقه توره وي نو داسي مېړ رسول الله ﷺ ته د اختري لپاره راوستل سو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : اي

عَائِشَةُ هَلُمِّي الْمُدْيَةَ ثُمَّ قَالَ اشْحَذِيهَا بِحَجَرٍ فَفَعَلَتْ ثُمَّ أَخَذَهَا وَأَخَذَ

عائشې ! چاړه راوړه او پر ډبره يې تېره کړه نو دا کار مي وکړ، د دې وروسته رسول الله ﷺ چاړه واخيستل

الْكَبْشَ فَأَضْجَعَهُ ثُمَّ ذَبَحَهُ ثُمَّ قَالَ بِاسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ وَآلِ

او مېړ يې پرې ايستی او بيا يې په (بِاسْمِ اللَّهِ اللَّهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ وَآلِ

مُحَمَّدٍ وَمِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ ثُمَّ ضَحَّى بِهِ . رواه مسلم

مُحَمَّدٍ وَمِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ) ويلو سره هغه حلال کړ .مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۵۵۷/۳، رقم، ۱۹- ۱۹۶۷.

**د لغاتو حل**: (المُدية): ای الشفرة، (چاړه).

**تشريح** : کله چي حيوان حلاليږي نو د هغه مخکي چاړه تېره کول مکروه دي ځکه چي د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په باره کي نقل دي چي هغه يو سړی په دُرو ووهی د داسي کولو په وجه، همداسي د يو حيوان د بل حيوان مخکي حلالول هم مکروه دي .

رسول الله ﷺ چي د حلالولو پر وخت کوم الفاظ فرمایل د هغه څخه مراد یوازي په ثواب کي خپل امت ګډول وو، نه دا چي رسول الله ﷺ د ټولو له خوا قرباني کړې وه ځکه چي د یوه پسه یا بزې قرباني د ټولو خلکو لخوا صحیح نه ده.

**دا ختري حیوان**

﴿۱۳۷۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَذْبَحُوا إِلاَّ مُسِنَّةً إِلاَّ أَنْ يَعْسُرَ عَلَيْكُمْ فَتَذْبَحُوا جَذَعَةً مِنَ الضَّأْنِ. رواه مسلم

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ و فرمایل: تاسو مه حلالوئ مګر مسنه (یعني هغه اوښه چي په شپږم کال کي وي) او که مسنه مو پیدا نه کړل نو وری یا وری جزعه (چي تر یو کال پوري وي) حلال کړئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۵۵۵، رقم: ۱۳- ۱۹۶۳.

**د لغاتو حل**: (المُسِن): من البقر، هو ما جاوز السنتين والمسنة اثناه. (تر دوو کالو غټ ګیلګی).

**تشریح**: مسنه یا جذعه د یو خاص حیوان نوم نه دی مګر دا یو اصطلاح ده چي د قرباني د حیوان په عمر کي استعمالیږي هغه اوښ ته مسنه ویل کیږي چي پوره د پنځو کالو عمریې وي او په شپږم کال کي داخل سوی وي، په ګامیښي او غویي کي مسنه هغه ته وایي چي د پوره دوو کالو وي او په دریم کال کي داخل سوی وي نو په دې حیوان کي د قرباني لپاره مسنه کیدل ضروري دي هو پسه که جذعه هم وي نو د هغه قرباني جائز ده جذعه د میږي هغه زوی ته ویل کیږي چي د هغه عمر خو د یوه کال څخه کم وي مګر د شپږو میاشتو څخه زیات وي.

ځیني حضرات وایي چي د جذعه قرباني په دې صورت کي جائز ده چي هغه دومره چاغ وي که هغه د مسنه سره ودرول سي نو د لیري څخه کتونکی پر هغه د مسنه ګمان وکړي که هغه تیار نه وي مګر کوچنی او کمزوره وي نو د هغه قرباني نه ده صحیح، په ښکاره د حدیث مفهوم داسي کیږي که مسنه تر لاسه نسي یا د هغه قیمت حاصل نسي نو د جذعه قرباني صحیح نه ده کنه په دوهم صورت کي د هغه قرباني نه صحیح کیږي مګر فقهاء لیکي چي دا پر استحباب باندي محمول ده یعني مستحب خو دادی که مسنه حاصل سي او د هغه د اخیستلو توفیق وي نو د جذعه قرباني دي نه کوي هسي که د مسنه موجود کیدو کي هم څوک د جذعه قرباني وکړي نو صحیح به وي.

## د مرغومي یاوري اختري

﴿۱۳۷۲﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَاهُ غَنَمًا

د حضرت عقبة بن عامر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ هغه ته د پسو د یوې رمې د حواله کولو حکم وکړ

يَقْسِمُهَا عَلٰى صَحَابَتِهِ ضَحَايَا فَبَقِيَ عَتُودٌ فَذَكَرَهُ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

چي پر صحابه کرامو یې د اختري لپاره وویشي ، د ویش وروسته یو وری پاته سو رسول الله ﷺ ته د هغه یادونه وسول

وَسَلَّمَ فَقَالَ ضَحِّ بِهِ أَنْتَ وَفِيْ رِوَايَةٍ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو رسول الله ﷺ راته وفرمایل دا ته قرباني کړه ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي اې دالله رسوله !

أَصَابَنِيْ جَذَعٌ قَالَ ضَحِّ بِهِ . متفق عليه

زما په برخه یو وری راغلی دی ، رسول الله ﷺ وفرمایل : ته یې قرباني کړه . بخاري او مسلم .

**تخریج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۹، رقم: ۵۵۵۵، ومسلم ۱۳\ ۱۵۵۵ - ۱۵۵۶، رقم: ۱۵ و ۱۶- ۱۹۶۵.

**د لغاتو حل:** (عَتود): هو الصغير من اولاد المعز. (وریان).

**تشریح:** عتود د پسه هغه بچي ته وایي چي تیار او تازه وي او د یوه کال وي نو ددې حدیث څخه معلومه سوه چي د پسه د یوه کال د بچي قرباني جائز ده د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه هم دا مذهب دی .

ځیني حضرات وایي چي عتود د پسه هغه بچي (وري) ته وایي چي د شپږو میاشتو څخه زیات وي په دې صورت کي به دا یوازي د عقبه ابن عامر ﷛ سره خاص وي د نورو لپاره د عتو قرباني به جائز نه وي د جذعه په باره کي مخکي ښودل سوي دي یعني د پسه هغه بچي چي د شپږو میاشتو څخه زیات وي .

## په عیدګاه کي اختری کول غوره دی

﴿۱۳۷۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به په عیدګاه کي ذبح او نحر کول. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۷۱، رقم: ۹۸۲.

**تشریح**: د باب صلوة العیدین د اول فصل په پای کي د ذبح او نحر معنی او د هغه په خپلو کي فرق په تفصیل سره بیان سوی دی علماء لیکي چي په عیدګاه کي قرباني کول افضل دي.

## د قربانۍ برخي

﴿۱۳۷۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ وَّالْجَزُوْرُ عَنْ سَبْعَةٍ. رواه مسلم وأبو داود واللفظ له.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د غوا (غوایي) او اوښ قرباني د اوو کسانو لپاره بس ده. مسلم، ابوداؤد

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۹۵۵، رقم: ۳۵۲ - ۱۳۱۸، وابوداؤد: ۳\۲۳۹، رقم: ۲۸۰۸.

## د اختري کونکي لپاره لارښووني

﴿۱۳۷۵﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ

د حضرت ام سلمة رضی الله عنها څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي داخله سي

الْعَشْرُ وَأَرَادَ بَعْضُكُمْ أَنْ يُّضَحِّيَ فَلَا يَمَسَّ مِنْ شَعْرِهِ وَبَشَرِهِ شَيْئًا وَفِيْ

د لوی اختر لومړی لسیزه او په تاسو کي یو څوک د اختري اراده وکړي نو نه دي خپل ورېښتان خریي او نه دي یې غچي کوي

رِوَايَةٍ فَلَا يَأْخُذَنَّ شَعْرًا وَّلَا يَقْلِمَنَّ ظُفُرًا وَفِيْ رِوَايَةٍ مَنْ رَأَى هِلَالَ ذِيْ

او مه نوکان پرې کوئ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي مه ورېښتان خریي او مه نوکان

پرې کوئ، او په یو بل روایت کي دا الفاظ. دي چي کوم څوک د ذي الحجې میاشت ویني

اَلْحِجَّةِ وَأَرَادَ أَنْ يُّضَحِّيَ فَلاَ يَأْخُذُ مِنْ شَعْرِهِ وَلاَ مِنْ أَظْفَارِهِ. رواه مسلم.

او د اختري کولو اراده وکړي نو هغه ته پکار دي چي نه خو وېښتان وخریي او نه یې غچي کړي او نه نوکان پرې کړي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۵۶۵، رقم: ۳۹و ۴۲- ۱۹۷۷.

**تشریح**: د لوی اختر د میاشتي لېدو وروسته د قرباني کولو څخه مخکي د وېښتانو پرېکولو څخه ځکه منعه فرمایل سوې ده چي د احرام والاوو سره مشابهت تر لاسه سي مګر دا ممانعت تنزیهي دی نو وېښتان وغیره نه پرېکول مستحب دي او ددې خلاف عمل کول ترک اولی دی او د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد ددې خلاف کول مکروه دي.

## د ذي الحجې د لسو ورځو فضیلت

﴿۱۳۷۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

أَيَّامٍ الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِيهِنَّ أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ هٰذِهِ الْأَيَّامِ الْعَشْرَة قَالُوْا

هیڅ ورځ چي په هغه کي نیک عمل چي د الله ﷻ په نزد تر تولو زیات خوښ وي تر دغه لسو ورځو پر ته بله نه ده، صحابه کرامو پوښتنه وکړه

يَارَسُوْلَ اللهِ وَلاَ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ؟ قَالَ وَلاَ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ إِلاَّ

اې د الله رسوله! ایا د الله ﷻ په لار کي جهاد هم نه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: او د الله ﷻ په لار کي جهاد هم نه، مګر

رَجُلٌ خَرَجَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ مِنْ ذٰلِكَ بِشَيْءٍ. رواه البخاري.

هغه سړی د الله په نزد د دې ورځو تر. نیک عمل هم زیات خوښ دی چي په خپل مال او ځان سره د الله په لار کي جنګ ته ووزي او بیا را نه سي. (یعني شهید سي) بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري)، ۲\۴۵۷، رقم: ۹۶۹.

**تشريح** : مطلب دادی که جهاد داسي وي چي په هغه کي سر او مال هر څه د الله په لار کي قربان کړل سي او جهاد کونکی د شهادت مرتبې ته ورسيږي نو هغه جهاد البته د الله تعالی په نزد د دې لس ورځو د نيکو اعمالو څخه هم زيات محبوب دی ځکه چي د ثواب په قدر د نفس کشي او مشقت حاصليږي او ښرګنده ده چي د الله تعالی په لار کي د سر او مال قربانولو څخه زياته نفس کشي او مشقت نور څه کېدای سي.

د روژې د نيکو اعمالو هم ډير زيات فضيلت او عظمت بيان سوی دی ځکه کيدای سي چي ددې حديث مراد داوي چي ددغه لسو ورځو نېکو اعمالو د ايام رمضان د نيک اعمالو څخه پرته د نورو ورځو د نيکو اعمالو څخه زيات محبوب دي يا دا چي په هغه ورځو کي فرض روژې نيول کيږي او ډيره زياته بزرګه او مقدس شپه يعني ليلة القدر هم په روژې کي راځي او دذي الحجه د اولي لسيزي اعمال په دې اعتبار سره تر ټولو زيات محبوب دی چي ډيره زياته بزرګه او باعظمته او د فضيلت ورځ يعني عرفات په دغه ورځو کي راځي او افعال حج هم په دغه ورځو کي وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د اختري کولو دعاء

﴿۱۳۷۷﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ ذَبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الذَّبْحِ كَبْشَيْنِ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د لوی اختر په ورځ دوه پسونه حلال کړل

أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ مَوْجُوئَيْنِ فَلَمَّا وَجَّهَهُمَا قَالَ إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ

چي ښکرور، ابلک او خصي وه، رسول الله ﷺ چي هغه د قبلې په لور کړل نو دا کلمات يې وويل: (زه خپل ځان هغه لور ته متوجه کوم

السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ عَلٰى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ إِنَّ

چي آسمان او ځمکه يې پيدا کړل په داسي حال کي چي زه د ابراهيم ﷺ پر دين يم او د هغه پر دين چي د توحيد منونکي وو او زه د مشرکانو څخه نه يم

صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ

زما لمونځ، عبادت زما او ټول عبادتونه بلكه زما ژوند او مرګ يوازي الله تعالى لره دي چي د دوارو جهانو پروردګار دى هيڅوک د هغه شريک نسته او ما ته ددې حكم سوى دى

وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ عَنْ مُحَمَّدٍ وَّأُمَّتِهٖ بِسْمِ اللهِ وَاللهُ أَكْبَرُ

او زه د مسلمانانو څخه يم، اې الله! دا قرباني ستا راكړه ده او ستا د رضا لپاره ده ته دا د محمد او د هغه د امت د لوري قبوله كړې د الله په نامه سره او الله ډير لوى دى)

ثُمَّ ذَبَحَ . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه والدارمي وفي رواية لأحمد وأبي داود والترمذي ذَبَحَ بِيَدِهٖ وَقَالَ بِسْمِ اللهِ وَاللهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُمَّ هٰذَا عَنِّيْ وَعَمَّنْ لَّمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِيْ .

د دې وروسته يې هغه حلال كړل . احمد، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي، د احمد، ابوداؤد او ترمذي په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي د دعاء كولو وروسته رسول الله ﷺ په خپل لاس سره خپل پسونه حلال كړل او ويل يې (بسم الله ...) اې الله! دا قرباني قبوله كړې زما د لوري او زما د امت د هغه چا د لوري چي قرباني يې نه وي كړې .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\ ۳۷۵و ابوداؤد ۳\ ۲۳۰- ۲۳۱، رقم: ۲۷۹۵، وابن ماجه ۲\ ۱۰۴۳، رقم: ۳۱۲۱، والدارمي ۲\ ۱۵۳، رقم: ۱۹۴۶،

**د لغاتو حل**: (أَملَحين): الذي بياضه اكثر من سواده (چي سپينوالى يې تر توروالى ډېر وي). (مَوجُوءين): الخصي.

**تشريح** : د خصي څخه مراد هغه حيوان دى چي د هغه په خوټو كبنلو سره د هغه شهوت ختم كړي د هغه په قرباني كي څه تاوان نسته داسي خصي حيوان تيار وي او غوښي يې خوندوري وي، ( وما انا من المشركين ) او زه د مشركانو څخه نه يم په دې كي د علماؤ اختلافي اقوال دي، رسول الله ﷺ د نبوت مخكي د چا د شريعت مطابق عبادت كوى ځيني حضرات وايي چي د نبوت تر لاسه كولو مخكي د رسول الله ﷺ عبادت د حضرت ابراهيم ﷺ د شريعت مطابق وو، د ځينو علماؤ قول دى چي د حضرت موسى ﷺ د شريعت مطابق وو او د ځينو علماؤ تحقيق دا دى چي د حضرت عيسى ﷺ د شريعت مطابق رسول الله ﷺ عبادت كوى .

په دې اړه صحيح قول دا دى چي رسول الله ﷺ د هيڅ يو شريعت مطابق عبادت نه كوى

مگر د خپل فهم او وجدان موافق رسول الله ﷺ به په خپل عبادت كي مصروف وو او پر الله تعالى بې ايمان درلودى البته دا خبره بالكل په اجتماعي توگه سره محقق او ثابته ده چي رسول الله ﷺ د ژوند په هيڅ دور كي هم د بت پرستي په نجاست كي ملوث نسو، اوس سوال دادى چي د رسول الله ﷺ عبادت د كوم دول او كومي طريقې وو نو په دې باره كي علماء ليكي چي هغه غير معلوم دى الله تعالى ښه پوهيږي چي رسول الله ﷺ هغه وخت څرنگه عبادت كوى.

په (عن محمد و امته) كي مشاركت يا خو پر ثواب باندي محمول دى يعني رسول الله ﷺ د ذبح پر وخت د دغه الفاظو په فرمايلو سره د خپل قرباني په ثواب كي خپل امت هم گډ كړ يا دا پر حقيقت باندي هم محمول كيداى سي چي په هغه صورت كي به ويل كيداى سي چي دا د رسول الله ﷺ د ځانگړتياوو څخه دى په دې اړه دا واضحه خبره ده چي رسول الله ﷺ د خپل خوا څخه قرباني وكړه او دوهم بې د امت لخوا څخه قرباني وكړه-.

ددغه حديث شريف څخه دا خبره معلومه سوه كه چيري قرباني كونكى پر ذبح كولو باندي قادر وي نو هغه ته په خپل لاس سره د قرباني حيوان حلالول مستحب دي كه څه هم ښځه وي.

## د مړي له لوري قرباني كول

﴿۱۳۷۸﴾: وَعَنْ حَنَشٍ قَالَ رَأَيْتُ عَلِيًّا يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ فَقُلْتُ لَهُ مَا هٰذَا ؟

د حضرت حنش ﷺ څخه روايت دى چي ما حضرت علي ﷺ پر دوو پسو حلالولو وليدى او ما پوښتنه وكړه چي دا څه دي ؟

فَقَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصَانِيْ أَنْ أُضَحِّيَ عَنْهُ فَأَنَا أُضَحِّيْ عَنْهُ . رواه أبو داود وروى الترمذي نحوه

هغه وويل : رسول الله ﷺ ما ته وصيت كړى دى چي زه د هغه د لوري هم قرباني وكړم نو ځكه زه دا قرباني كوم. ابوداؤد، ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۲۳۷، رقم: ۲۸۰۴، والترمذي ۴\ ۷۳، رقم: ۱۴۹۸، والنسائي ۷\ ۲۱۶، رقم: ۴۳۸۴، والدارمي ۲\ ۱۰۶، رقم: ۱۹۵۲، وابن ماجه ۲\ ۱۰۵، رقم: ۳۱۴۳.

**تشريح** : په دې اړه دوه احتماله دي يا خو حضرت علي كرم الله وجهه د قرباني څخه پرته دوه پسونه د رسول الله ﷺ له خوا قرباني كړل يا دا چي حضرت علي ﷺ به د يوه پسه قرباني د خپل لوري كول او يو پسه به يې د رسول الله ﷺ له خوا په هر حال كي قرباني كوى.

دا حديث پر دې خبرې دلالت كوي چې د مړي له خوا قرباني كول جائز ده كه څه هم ځيني علماؤ دې ته جائز نه دي ويلي د ابن مبارک قول دادی چې زه دا خوښوم چې د مړي له خوا د الله تعالى په لاره كې خرڅ وكړل سي د هغه له خوا قرباني ونه كړل سي هو كه د مړي له خوا قرباني وكړل سي نو د هغه غوښه دې بالكل خپله نه خوري بلكه ټوله دې د الله تعالى پر نامه وويشل سي.

## د اختري حيوان بايد بې عيبه وي

﴿۱۳۷۹﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَشْرِفَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چې موږ ته رسول الله ﷺ دا حكم كړی دی چې كوم حيوانان موږ اختري كوو

الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ وَأَنْ لاَ نُضَحِّيَ بِمُقَابَلَةٍ وَلاَ مُدَابَرَةٍ وَلاَ شَرْقَاءَ وَلاَ خَرْقَاءَ.

رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي والدارمي و ابن ماجة وانتهت روايته الى قوله والاذن.

د هغه سترګې او غوږونه دې په ښه ډول وګورو چې په هغو كې څه كمي نه وي او دا حكم يې راكړی دی چې د كوم حيوان د وړاندي څخه يا د شا څخه پرې سوی وی نو موږ هغه اختري نه كړو او نه هغه چې غوږ يې پرې سوی وي او نه پكن. ترمذي، ابوداؤد. دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۲۳۷، رقم: ۲۸۰۴، والترمذي ۴\۷۳، رقم: ۱۴۹۸.

**د لغاتو حل**: (المقابلة): المقابلة هي التي قطع من اذنها شئ ثم ترک معلقا من مقدمها (المُدابرة): هي التي قطع من دبرها وترک معلقا من مؤخرها. (الشرقاء): هي مشقوقة الاذن. (الخرقاء): هي مثقوبة الاذن.

**تشريح**: د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د هغه پسه قرباني جائز نه ده چې د هغه غوږ لږ هم پرې وي او د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد جائز دی كه چيري غوږ د نيم څخه كم پرې سوی وي، امام طحاوي رحمة الله عليه فرمايي په دې مسئله كي د امام شافعي رحمة الله عليه عمل پر دې حديث دی او د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه چې كوم مذهب دی هغه ډير جامع دی ځكه چې د هغه په مذهب سره په دې حديث كي او د قتاده په حديث كي تطبيق چې د هغه الفاظ دادي چې قتاده د حضرت ابن كليب څخه روايت كوي چې ما د حضرت علي كرم الله

وجهه څخه دا اوريدلي دي چي رسول الله ﷺ د عضبائې قرن د قرباني څخه منعه فرمايلې ده، قتاده ﷺ وايي ما د سعيد ابن مسيب څخه پوښتنه وکړه چي د عضبائې اذن څه مطلب دی؟ نو هغه وفرمايل چي د کوم حيوان غوږ نيم يا تر نيم زيات پرې سوی وي .

## د حنفيه په نزد د کوم ډول حيوان قرباني جائز نه ده

په دې اړه چي د حنفيه کوم مذهب دی د هغه خلاصه داده چي د داسي حيوان قرباني جائز نه ده چي د هغه د غوږ دريمه حصه يا زياته پرې کړل سي او د داسي حيوان قرباني صحيح نه ده چي د هغه غوږونه پيدائشي نه وي همداسي د داسي حيوان قرباني هم صحيح نه ده چي د هغه لکۍ يا پزه دريمه برخه يا زيات پرې وي، کوم حيوان چي ړوند يا کوڼ وي يا د يوې سترګي دريمه برخه رڼا يا تر دې زياته تللې وي نو د هغه قرباني نه ده صحيح د کوم حيوان چي تي وچ سوي وي د هغه قرباني صحيح نه ده او د داسي حيوان هم قرباني صحيح نه ده چي په هغه کي ماغزه نه وي پاته سوي او نه د داسي ګوډ، شل چي د قرباني تر ځايه پوري نسي تلی او نه د داسي ناروغه حيوان چي وابنه نسي خوړلای نه داسي حيوان چي خارش لري نه د بې غاښو حيوان چي وابنه نسي خوړلای او نه د نجاست خور ځاروي هو د داسي حيوان قرباني صحيح ده چي د هغه د غوږونو په اوږدوالي کي يا د هغه د مخ د خوا څخه شليدلي او خلاص سوي وي دا حديث چي د دې څخه د داسي حيوان د قرباني ممانعت معلوميږي پر نهي تنزيهي باندي محمول دی .

﴿۱۳۸۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُّضَحِّيَ بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ وَالْأُذُنِ . رواه ابن ماجه .

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د هغه حيوان قرباني منعه فرمايلې ده چي د هغه ښکر مات وي او غوږونه يې پرې سوي وي . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۰۵۱، رقم: ۳۱۴۵.

**تشريح**: په حنفي مذهب کي دداسي حيوان قرباني صحيح ده چي د هغه پيدائشي ښکرونه نه وي يا مات وي يا د هغه پوست غوڅېدلی وي نو دا حديث به پر نهي تنزيهي باندي محمول وي البته د داسي حيوان قرباني به صحيح نه وي چي د هغه ښکر بالکل د بيخ څخه مات سوی وي .

﴿۱۳۸۱﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ مَا

د حضرت براء ﷺ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي

ذَا يُتَّقٰى مِنَ الضَّحَايَا فَاَشَارَ بِيَدِهٖ فَقَالَ اَرْبَعًا اَلْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ ظَلْعُهَا وَ

کوم حیوان د اختري وړ نه دی ؟ رسول الله ﷺ په څلورو ګوتو اشاره وکړه یعني څلور ډوله ۱:
ګوډ چي د هغه ګوډوالی څرګند وي او تلای نه سي

اَلْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا وَالْمَرِيْضَةُ اَلْبَيِّنُ مَرَضُهَا وَ الْعَجْفَاءِ الَّتِي لاَ تُنْقِي.

رواه مالك واحمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجه والدارمي .

۲: ړوند چي ړوندوالی یې ښکاره وي ۳: ناروغ چي ناروغي یې څرګنده وي ۴: او څلورم
خوار چي په هډوکو کي یې توان نه وي . مالک، احمد ،ترمذي، نسائي،ابوداؤد ، ابن ماجه، دارمي

**تخریج:** الامام مالک في موطاه ۲\ ۴۸۲، رقم: ۱، والامام احمد في مسنده ۳\ ۲۸۹، وابوداؤد: ۳\ ۲۳۵، رقم: ۲۸۰۲، والترمذي ۳\ ۷۲، رقم: ۱۴۹۷، والنسائي ۷\ ۲۱۴، رقم: ۴۳۸۱، وابن ماجه ۲\ ۱۰۵۰، رقم: ۳۱۴۴، والدارمي ۲\ ۱۰۵، رقم: ۱۹۴۹.

**د لغاتو حل:** (ظلعُها): ای عَرَجُها (ګوډوالی). العَجفاء): ای التي لاشيء فیها من الشحم.

## د تیار او چاغ حیوان قرباني غوره ده

﴿۱۳۸۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُضَحِّيْ

د حضرت ابو سعید ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به اختری کوی

بِكَبْشٍ أَقْرَنَ فَحِيلٍ يَأْكُلُ فِي سَوَادٍ وَيَمْشِي فِي سَوَادٍ وَيَنْظُرُ فِي سَوَادٍ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجه .

د ښکرور پسه چي په توروالي کي به یې لیدل کول (یعني د سترګو حلقه به یې توره وه) او په توروالي کي به یې خوراک کوی (یعني مخ به یې تور وو) او په توروالي کي به تلی (یعني پښې به یې هم توري وي) .ترمذي، ابوداؤد ، نسائی، ابن ماجه.

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۳\ ۲۳۱، رقم: ۲۷۹۶، والترمذي ۴\ ۷۲، رقم: ۱۴۹۶، والنسائي ۷\ ۳۲۱، رقم: ۴۴۰۲، وابن ماجه ۲\ ۱۰۴۶، رقم: ۳۱۲۸.

**تشريح** : علماء ليكي چي دداسي حيوان قرباني كول چي ډير تيار او غټ ه وي مستحب ده د يوه تيار او چاغ پسه قرباني د دوو كمزورو پسو د قرباني څخه افضل ده، همداسي د زياتو غوښنو والا پسه قرباني د كمي غوښي والا پسه د قرباني څخه افضل ده په شرط د دې چي غوښه يې خرابه نه وي يعني د زيات غوښنور پسه غوښه كه خرابه وي نو بيا د هغه قرباني افضل نه ده .

## د جذع قرباني

﴿۱۳۸۳﴾: وَعَنْ مُجَاشِعٍ مِنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ إِنَّ الْجَذَعَ يُوَفِّيْ مِمَّا يُوَفِّيْ مِنْهُ الثَّنِيُّ . رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه .

د بني سليم يو كس مجاشع وايي چي رسول الله ﷺ به فرمايل : جذع (د شپږو مياشتو څخه زيات) بس دى د ثنى (تر كال زيات ) څخه يعني د شپږو مياشتو پسه هم د قربانۍ لپاره داسي بس دى لكه څرنگه چي د كال څخه زيات بس دى . ابوداؤد،نسائي، ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۲۳۳، رقم: ۲۷۹۹، والنسائي: ۷\ ۲۱۹، رقم: ۴۳۹۵، وابن ماجه ۲\ ۱۰۴۹، رقم: ۳۱۴۰.

**تشريح** : مطلب دادى چي څرنگه د هغه پسه قرباني جائز ده چي د يوه كال څخه زياته وي همداسي د جذع قرباني هم جائز ده، ثنى هم اصطلاحي لفظ دى چي د قرباني د عمر په اړه استعماليږي په پسو كي ثنى هغه پسه ته وايي چي د يو كال په پوره كېدو سره په دوهم كال كي داخل سوى وي او په غوا او غويي كي ثنى هغه دى چي د دوو كالو په پوره كېدو سره په دريم كال كي داخل وي په اوښ كي ثنى هغه دى چي د پنځو كالو په پوره كېدو سره په شپږم كال كي داخل سوى وي .

﴿۱۳۸۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نِعْمَتِ الْأُضْحِيَّةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ . رواه الترمذي

د حضرت ابو هریرة ﷛ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي چي د اختري لپاره د مږ جذع (شپږ میاشتنی) غوره دی . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۷۴، رقم: ۱۴۹۹.

**تشریح** : د جذع د قرباني د تعریف څخه په اصل کي خلکو ته دا ښودل مراد دي چي د پسه د شپږو میاشتو د بچي قرباني جائز ده پر خلاف د پسه د جذع چي د هغه قرباني صحیح نه ده .

## په قربانۍ کي ګډون

﴿۱۳۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَحَضَرَ الْأَضْحَى فَاشْتَرَكْنَا فِي الْبَقَرَةِ سَبْعَةً وَفِي الْبَعِيرِ عَشَرَةً . رواه الترمذي والنسائي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب .

د حضرت ابن عباس ﷟ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کي وو چي لوی اختر راغلی نو موږ په یوه غوا کي اووه کسان او په اوښ کي لس کسان ګډ سوو . ترمذي، نسائي، ابن ماجه. ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دی (د علماؤ په نزد دا په هغه حدیث سره منسوخ دی چي په اوښ کي هم د اوو کسانو د ګډون حکم راغلی دی).

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۷۵، رقم: ۱۵۰۱، والنسائي ۷\ ۲۲۲، رقم: ۴۴۰۴، وابن ماجه ۲\ ۱۰۴۷، رقم: ۳۱۳۱.

**تشریح** : اسحاق ابن راهویه رحمة الله علیه پر دغه حدیث عمل کړی دی هغه فرمایي په قرباني کي په یوه اوښ کي لسو خلکو ته ګډیدل جائز دي او د ټولو علماؤ په نزد دا حدیث د هغه حدیث په ذریعه منسوخ ګرځول سوی دی چي په هغه کي دا وضاحت دی څرنګه چي د غوا قرباني د اوو خلکو له خوا صحیح ده همداسي د اوښ قرباني هم د اوو خلکو له خوا صحیح کیدای سي .

## د قربانۍ کولو فضیلت

﴿۱۳۸۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عَمِلَ آدَمِيٌّ مِنْ عَمَلٍ يَوْمَ النَّحْرِ أَحَبَّ إِلَى اللّٰهِ مِنْ إِهْرَاقِ الدَّمِ إِنَّهَا لَتَأْتِي يَوْمَ

د حضرت عائشې ﷞ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله ﷻ ته د لوی اختر په ورځ د انسان هیڅ یو عمل پر ته د اختري کولو څخه غوره نه دی او د

قیامت په ورځ به هغه حلال سوی حیوان

الْقِيَامَةِ بِقُرُونِهَا وَأَشْعَارِهَا وَأَظْلَافِهَا وَأَنَّ الدَّمَ لَيَقَعُ مِنَ اللهِ بِمَكَانٍ قَبْلَ

د خپلو ښکرو، وربښتانو او نوکانو سره راسي او د قرباني وینه تر دې وړاندې چې

أَنْ يَقَعَ مِنَ الْأَرْضِ فَطِيبُوا بِهَا نَفْسًا. رواه الترمذي وابن ماجه.

پر مځکه توی سي د الله تعالی په نزد قبلیږي نو تاسو اختری په ښه (خوشحاله) زړه سره کوئ. ترمذي، ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۳۶۱۴، رقم: ۱۴۳۹، وابن ماجه ۱۰۴۵۲، رقم: ۳۱۲۶.

**تشريح** : زين العرب فرمايي چي د لوی اختر په ورځ تر ټولو افضل عبادت د قرباني د حیوان وینه بیول دي او د قرباني حيوان به د قیامت په ورځ داسي راځي څرنګه چي په دنیا کي د قرباني مځکي بغیر د څه عیب څخه وو چي هغه د قرباني کونکی د هر هر اندام د خوا به نعم البدل او پر پل صراط باندي د هغه سپرلۍ وي.

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي کله تاسو ته دا معلومه سي چي الله تعالی ستاسو قرباني قبلوي او د هغه په بدله کي تاسو ته ډیر زیات ثواب درکوي نو د قرباني کولو په وجه په تاسو کي د هیڅ ډول تنګي یا کراهت پیدا کیدل نه دي پکار بلکه د دغه عظیم زیري په وجه ستاسو نفس ته اطمینان او ستاسو زړه ته خوشحاله کیدل پکار دي.

## د ذوالحجې فضیلت

﴿۱۳۸۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ أَنْ يُتَعَبَّدَ لَهُ فِيهَا مِنْ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ يَعْدِلُ صِيَامُ كُلِّ

د الله تعالی په نزد هیڅ یوه ورځ چي په هغه کي عبادت وسي د ذوالحجې د لسیزي څخه غوره نه ده په دې ورځو کي د یوې ورځي د روژې ثواب

يَوْمٍ مِنْهَا بِصِيَامِ سَنَةٍ وَقِيَامُ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْهَا بِقِيَامِ لَيْلَةِ الْقَدْرِ. رواه

الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي اسناده ضعيف.

د ټول كال د روژو د ثواب سره برابر دى او د يوې شپې عبادت د شب قدر د عبادت سره سم دى. ترمذي، ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۱۳۱، رقم: ۷۵۸، وابن ماجه ۱\۵۵۱، رقم: ۱۷۲۸.

**تشريح**: مطلب دادى چي د الله ﷻ په نزد په دغه ورځو كي عبادت كول د نورو ورځو د عبادت كولو په نسبت زيات محبوب دي، په خاصه توګه قرباني كول تر نورو اعمالو زيات افضل او محبوب دى د ذي الحجې د اولي لسيزي د فضيلت په اړه پوره وضاحت مخكي تير سوى دى.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### اختري د لمانځه وروسته كول

﴿۱۳۸۸﴾: عَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِاللهِ قَالَ شَهِدْتُ الْأَضْحَى يَوْمَ النَّحْرِ مَعَ

د حضرت جندب بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دى چي د لوى اختر په ورځ زه

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَعْدُ أَنْ صَلَّى وَفَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ سَلَّمَ

د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم او رسول الله ﷺ په پوره توګه د لمانځه څخه نه وو فارغ سوى كله چي دلمانځه څخه فارغ سو سلام يې وګرزوى

فَإِذَا هُوَ يَرَى لَحْمَ أَضَاحِيَّ قَدْ ذُبِحَتْ قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ فَقَالَ مَنْ

چي د قرباني غوښه يې وليده چي د لمانځه څخه وړاندي حلال سوى وو، د دې په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: كوم چا چي

كَانَ ذَبَحَ أُضْحِيَّتَهُ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرَى وفي رواية قَالَ صَلَّى

د لمانځه څخه وړاندي اختري وكړى نو هغه ته پكار ده چي د هغه پر ځاى بل اختري وكړي، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ ذَبَحَ وَقَالَ مَنْ كَانَ ذَبَحَ

رسول الله ﷺ د لوی اختر په ورځ لمونځ وکړ بیا یې خطبه وویل بیا یې اختری وکړ او وه یې فرمایل: چا چې

قَبْلَ اَنْ يُّصَلِّيْ اَوْ نُصَلِّيْ فَلْيَذْبَحْ اُخْرٰى مَكَانَهَا وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللّٰهِ. متفق عليه

د لمانځه وړاندې اختری کړی دی نو هغه ته پکار ه چې د هغه پر ځای بل اختری وکړي او څوک چې د لمانځه وروسته اختری وکړی نو هغه دې د الله په نوم اخیستلو سره اختری وکړي. مسلم او بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۵۴۷، رقم: ۹۸۵، ومسلم ۱۳\۱۱۵۵، رقم: ۱- ۱۹۶۰.

## د اختري ورځې

﴿۱۳۸۹﴾: وَعَنْ نَّافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ الْاَضْحٰى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ الْأَضْحٰى. رواه مالك. وقال وبلغني عن علي بن أبي طالب مثله.

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چې ابن عمر رضي الله عنه وفرمایل: اختری د یوم نحر وروسته دوې ورځې کیدلای سي. مالک.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱۲\۴۸۷، رقم: ۱۲.

**تشريح**: د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه، امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه د درو سره امامانو عمل پر دې حديث دی دا حضرات فرمايي چې د قرباني اخري ورځ د ذي الحجې دوولسم تاريخ د لمر لوېدو پوري ده، امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي چې اخري وخت تر ديارلسم تاريخ پوري دی دا حديث د درو سره امامانو مستدل او پر امام شافعي رحمة الله عليه باندې حجت دی.

## رسول الله ﷺ تل قرباني کول

﴿۱۳۹۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ أَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ عَشْرَ سِنِيْنَ يُضَحِّيْ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ تر لسو کلو پوري په مدينه کي وو او هر کال به يې اختری کوی .ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۷۸، رقم: ۱۵۰۷.

**تشريح**: د قرباني د واجب کيدو دا تر ټولو لوی دليل دی چي رسول الله ﷺ پر دې مداومت (هميشتوب) کړی دی او تل به يې قرباني کول.

## قرباني د ابراهيم عليه السلام سنت ده

﴿۱۳۹۱﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ اصحابو وويل چي

وَسَلَّمَ يَارَسُوْلَ اللهِ مَا هٰذِهِ الْأَضَاحِيُّ ؟ قَالَ سُنَّةُ أَبِيْكُمْ إِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِ

اې د الله رسوله ! دا قرباني څه شي ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : دا ستاسو د پلار حضرت ابراهيم عليه السلام طريقه ده ،

السَّلَامُ قَالُوْا فَمَا لَنَا فِيْهَا يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ بِكُلِّ شَعْرَةٍ حَسَنَةٌ . قَالُوْا

صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله ! موږ ته څه ثواب رسيږي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل د هر ويښته په بدله کي يوه نيکي ده، هغوی بيا عرض وکړ

فَالصُّوْفُ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ بِكُلِّ شَعْرَةٍ مِّنَ الصُّوْفِ حَسَنَةٌ رواه أحمد وابن ماجه .

او وړی والا اې د الله رسوله ! رسول الله ﷺ وفرمايل هو ، يعني د وړی څخه د هر ويښته په مقابل کي يوه نيکي ده . . احمد ، ابن ماجه.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۳۶۸، وابن ماجه ۲\۱۰۴۵، رقم: ۳۱۲۷.

========

# بَابُ الْعَتِيْرَةِ (د بُتانو پر نامه حلالول)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### فرع او عتيره

﴿١٣٩٢﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ فَرَعَ وَلاَ عَتِيْرَةَ قَالَ وَالْفَرَعُ أَوَّلُ نِتَاجٍ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ كَانُوْا يَذْبَحُوْنَهُ لِطَوَاغِيْتِهِمْ وَالْعَتِيْرَةُ فِيْ رَجَبٍ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په اسلام کي نه فرع سته او نه عتيرة، ابو هريرة وايي فرع د حيوانانو لومړي بچي ته وايي چي کفارو به د خپلو بتانو پر نامه حلالول او عتيره هغه حيوان چي کفارو به د رجب په لومړۍ لسيزه کي د بتانو پر نامه حلالول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ٩\٥٩٦، رقم: ٥٤٧٣، ومسلم ٣\١٥٦٤، رقم: ٣٨ - ١٩٧٦.

**د لغاتو حل**: (العتيرة): هي شاة تذبح في رجب، كانوا يعظمون بذبحها شهر رجب لانه اول شهر من الاشهر الحرم. مرقات.

**تشريح**: د جاهليت په زمانې کي دا طريقه وه چي د چا د حيوان اول بچی به پيدا سو نو هغه به يې د بتانو پر نامه حلالوی د اسلام په شروع کي هم دا طريقه جاري وه چي مسلمان به هغه بچی د الله تعالی پر نامه حلالوی مگر وروسته دا طريقه منسوخ کړل سوه او د کفارو د مشابهت له کبله د دې څخه منعه وکړل سوه.

### عتيره څه ته وايي؟

د جاهليت په ورځو کي يو رواج دا هم وو چي خلکو به د رجب د مياشتي په اوله لسيزه کي د خپل معبود د تقرب حاصلولو لپاره پسه حلالوی او دې ته عتيره ويل کيږي، د اسلام په شروع کي مسلمانانو هم داسي کول، کافرانو خو به د بتانو پر نامه حلالول بيا وروسته دا هم په منسوخ گرځولو سره د دې څخه منعه وسوه.

ځيني حضرات وايي چي دا ممانعت د دې لپاره وو چي هغوی به د خپلو بتانو پر نامه ذبح کول او که چيري د الله تعالى پر نامه ذبح وکړل سي نو څه تاوان نه لري مگر صحيح مسئله داده چي د بت پرستو د مشابهت څخه د ساتني لپارهبايد دا ممانعت اختيار کړل سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۳۹۳﴾: عَنْ مِخْنَفِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ كُنَّا وُقُوفًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مِخنف بن سليم رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ولاړ وو

بِعَرَفَاتٍ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَّةٌ

په عرفات کي نو ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل يې: اې خلکو! پر هره کورنۍ باندي په کال کي اختری

وَعَتِيرَةٌ هَلْ تَدْرُونَ مَا الْعَتِيرَةُ هِيَ الَّتِي تُسَمُّونَهَا الرَّجَبِيَّةَ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب ضعيف الاسناد و قال ابوداؤد والعتيرة منسوخة.

او عتيره کول واجب دی تاسو ته څرگنده ده چي عتيره څه شي ده؟ عتيره هغه شی دی چي هغه ته تاسو رجبيه واياست. ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه. او ترمذي ويلي دي دا حديث ضعيف الاسناد دی، ابوداؤد ويلي دي چي عتيره منسوخه ده.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۲۲٦، رقم: ۲۷۸۸، والترمذي ۴\ ۸۳- ۸۴، رقم: ۱۵۱۸، والنسائي ۷\ ۱٦۷- ۱٦۸، رقم: ۴۲۳۵، وابن ماجه ۲\ ۱۰۴۵، رقم: ۳۱۲۵.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### پر مسکين باندي اختری واجب نه دی

﴿۱۳۹۴﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أُمِرْتُ بِيَوْمِ الْأَضْحٰى عِيْدًا جَعَلَهُ اللّٰهُ لِهٰذِهِ الْأُمَّةِ قَالَ لَهُ رَجُلٌ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ

ما ته حکم سوی دی چي د قرباني ورځ زه اختر و ټاکم دا ورځ الله تعالی د دې امت لپاره اختر ګرځولې ده، يو سړي عرض وکړ اې دالله رسوله !

أَرَأَيْتَ إِنْ لَّمْ أَجِدْ إِلاَّ مَنِيْحَةً أُنْثٰى أَفَأُضَحِّيْ بِهَا ؟ قَالَ لاَ وَلٰكِنْ خُذْ مَنْ

که د ما سره د منيحه (منيحه هغه اوښه چي د شېدو لپاره يو چا ته ورکول سوې وي) پرته نور هيڅ نه وي نو ايا هغه د دې اختری وکړي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل نه، مګر ته وخريه

شَعْرِكَ وَأَظْفَارِكَ وَتَقُصُّ شَارِبَكَ وَتَحْلِقُ عَانَتَكَ فَذٰلِكَ تَمَامُ أُضْحِيَّتِكَ عِنْدَ

اللّٰهِ . رواه أبو داود والنسائي .

خپل ورېښتان او يا يې کوچني کړه او نوکان پرې کړه او سنت واخله او د نامه لاندي ورېښتان وخريه دا د الله په نزد ستا پوره قرباني ده. ابوداؤد،نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۲۲۷، رقم: ۲۷۸۹، والنسائي ۷\۲۱۲، رقم: ۴۳۷۷.

**د لغاتو حل**: (مَنيحة): المراد بها الشاة . (پسه).

**تشريح** : منيحه د منح څخه مشتق دی د دې معنی د عطاء او بخښني ده، د اهل عرب دا عادت وو چي د همدردۍ او احسان له موخي به يې خپل شېدو والا اوښه اړو کسانو ته ورکول چي د هغه ورېړ او د هغه د بچيانو څخه د خپل ضرورت او احتياج وخت پوره فائده واخلي او کله چي د هغوی حاجت او ضرورت به پوره سو نو هغه به يې بيرته ور کړل نو د هغه صحابي سره د دې ډول حيوان وو چي هغه ته يې د يو ضرورت او حاجت له کبله ورکړی وو هغه په لوی اختر کي د هغه حيوان د قرباني اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ منعه وکړل ځکه چي اول خو د قاعدې مطابق خپل د ضرورت وروسته هغه حيوان خپل اصل مالک ته بيرته ورکول پکار دي دوهم دا چي د هغه حيوان څخه پرته د هغه سره بل يو داسي ذريعه نه وه چي په هغه سره يې خپل ضرورت پوره کړي وای نو د حديث د ښکاره مفهوم څخه دا خبره ثابتيږي چي قرباني پر تنګ دست او غريب باندي واجب نه ده په دې مسئله کي د علماؤ مختلف اقوال دي د علماء سلف د يوې ډلي

د ا قول دی چي قرباني پر تنګ دست او غریب باندي هم واجب ده د جمهور علماؤ قول دادی چي د تنګ دست لپاره قرباني کول مستحب ده مګر امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه فرمایي چي قرباني یوازي پر هغه سړي باندي واجب ده چي د نصاب خاوند وي.

# بَابُ صَلٰوةِ الْخُسُوْفِ

## د لمر او سپوږمۍ تندره نیولو دلمانځه بیان

د لغت پوهانو او عالمانو قول دادی چي خسوف د سپوږمۍ تندري نیولو او کسوف د لمر تندري نیولو ته وایي، په دغه باب کي چي څومره حدیثونه نقل کیږي هغه ټول د لمر تندري نیولو اړوند دي مګر یو حدیث چي د مخکني فصل دوهم حدیث دی د هغه په باره کي احتمال دی چي هغه د سپوږمۍ تندري نیولو اړوند دی، نو د مشکوة د مؤلف لپاره غوره داده چي هغه ددې باب نوم د صلوة الخسوف پر ځای باب الکسوف ایښی وای.

ځینو علماؤ لفظ د کسوف په دواړه ځایه کي استعمال کړی دی د لمر تندري نیولو کي هم او د سپوږمۍ تندري نیولو کي هم، همداسي ځیني حضرات لفظ د خسوف هم دواړه ځایه استعمالوي.

د لمر تندري نیولو لمونځ د جمهورو علماؤ په اتفاق سره سنت دی، د حنفیه په نزد د لمر تندري نیولو لمونځ دوه رکعته په جماعت سره بېله خطبې دی او د سپوږمۍ تندري نیولو لمونځ هم دوه رکعته دی مګر په دې کي جماعت نسته بلکه هر سړی دي جلا جلا لمونځ وکړي، د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په دواړو لمنځو کي جماعت او خطبه سته.

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ　(لومړی فصل)

### د لمر تندري نیولو لمونځ

| ﴿۱۳۹۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ الشَّمْسَ خَسَفَتْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى |
| --- |
| د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي لمر تندرې ونیوی |
| اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ مُنَادِيًا اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ فِيْ |

نو یو اعلان کوونکی یې ولیږی چې دا اعلان یې کوی (لمونځ تیار دی) کله چې خلک را ټول سول نو رسول الله ﷺ وړاندي سو او دوه رکعته یې وکړل چې په هغه کي یې څلور رکوعي

رَكْعَتَيْنِ وَأَرْبَعَ سَجْدَاتٍ قَالَتْ عَائِشَةُ مَا رَكَعْتُ رُكُوعًا قَطُّ وَلاَ سَجَدْتُ

او څلور سجدې یې وکړې، بي بي عائشه رضي الله عنها وایي چې ما هیڅکله یو رکوع او سجده

سُجُودًا قَطُّ كَانَ أَطْوَلَ مِنْهُ. متفق علیه

دومره اوږده نه وه کړې څومره چې په دې لمانځه کي مي وکړه. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۴۹، رقم: ۱۰۶۶، رقم ۱۰۵۱، ومسلم ۲\۶۲۰، رقم: ۴- ۹۰۱.

**تشریح**: په صلوة الخسوف کي د خلکو یوځای کولو لپاره الصلوة جامعة په زوره ویل سنت دی په خاصه توګه کله چې خلک ددې لمانځه لپاره نه وي را ټول سوي، د علماؤ پر دې خبره اجتماع ده چې دا لمونځ دې په جامع مسجد یا عیدګاه کي وکړل سي او دا لمونځ دې په مکروه وختونو کي نه کول کیږي.

(فصلی اربع رکعة .........الخ) : ددې څخه دا معلومیږي چې رسول الله ﷺ څلور رکوعي او څلور سجدې وکړې یعني په هر رکعت کي دوې رکوعي او دوې سجدې یې وکړې مګر د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په مذهب کي د نورو لمنځونو په ډول په دغه لمانځه کي هم په رکعت کي یوه رکوع ده د هغوی دلیل هغه حدیثونه دي چې د هغه څخه یوه رکوع کول ثابت دي مګر په دې اړه یو حدیث قولی هم نقل دی او دا کلیه ده چې چیري قول او فعل ثابتیږي نو پر فعل باندي قول ته ترجیح ورکول کیږي.

## د سپوږمۍ تندري نیولو لمونځ

﴿۱۳۹۶﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ جَهَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ صَلاَةِ الْخُسُوْفِ بِقِرَاءَتِهِ. متفق علیه

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د سپوږمۍ تندري نیولو په لمانځه کي په لوړ آواز سره قرائت وو ایه. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۴۹، رقم: ۱۰۶۵، ومسلم ۲\۶۲۰، رقم: ۵- ۹۰۱.

## د لمر تندري نيولو سبب

﴿۱۳۹۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْخَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ

د عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي لمر تندري ونيوی ،

اللهِ ﷺ فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ ﷺ وَالنَّاسُ مَعَهُ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلاً قَدْرَ نَحْوِ

نو رسول الله ﷺ او خلکو په لمانځه کي اوږده ولاړه وکړه يعني دومره وخت په څومره وخت کي چي

سُورَةِ الْبَقَرَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلاً ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلاً وَهُوَ دُونَ

سورة بقرة ويل کيږي ، بيا يې اوږده رکوع وکړل بيا يې د رکوع څخه سر پورته کړ او تر ډيره وخته پوري ولاړ وو چي د قرائت تر ولاړي کم وو

الْقِيَامِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلاً وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ

بيا يې اوږده رکوع وکړه او دا رکوع تر لومړۍ رکوع کمه وه بيا يې سر پورته کړ بيا يې

سَجَدَ ثُمَّ قَامَ قِيَامًا طَوِيلاً وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلاً وَهُوَ

سجده وکړه بيا ودريدی او تر ډيره وخته پوري ولاړ وو مګر دا دريدل تر لومړي دريدو کم وو بيا يې اوږده رکوع وکړه او دا رکوع

دُونَ الرُّكُوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلاً وَهُوَ دُونَ الْقِيَامِ الأَوَّلِ ثُمَّ

تر لومړۍ رکوع کمه وه بيا يې د رکوع څخه سر پورته کړ او تر ډيره وخته پوري ولاړ وو او دا ولاړه تر لومړۍ ولاړي کمه وه بيا يې

رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلاً وَهُوَ دُونَ الرُّكُوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ انْصَرَفَ

اوږده رکوع وکړه او دا رکوع تر لومړۍ رکوع کمه وه بيا يې د رکوع څخه سر پورته کړ بيا يې سجده وکړه بيا يې لمونځ ختم کړې ،

وَقَدْ انْجَلَتْ الشَّمْسُ فَقَالَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ لاَ

په دې دوران کي لمر هم ځلانده سوی وو ، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل چي لمر او سپوږمۍ د الله تعالی د نښو څخه دوې نښې دي نه

يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلاَ لِحَيَاتِهِ فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذَلِكَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ قَالُوا يَا

د يو چا پر مرگ او نه د يو چا پر پيدا کېدو تندره نيسي هر وخت چي تاسو تندره نيول ووينئ نو الله تعالی يادوی ، صحابه کرامو عرض وکړ

رَسُولَ اللّٰهِ رَأَيْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِي مَقَامِكَ هٰذَا ثُمَّ رَأَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ فَقَالَ

اې د الله رسوله ! موږ تاسو په دې حالت کي وليداست چي تاسو پر خپل ځای ولاړ د يو شی نيولو اراده مو کول بيا موږ دا وليدل چي تاسو لږ وروسته سواست، رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنِّي رَأَيْتُ الْجَنَّةَ فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُودًا وَلَوْ أَخَذْتُهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتْ

ما جنت وليدی او د هغه د درختي څخه مي د انگورو وانبکی شکولو اراده کړې وه که ما هغه وانبکی راشکولي وای نو تر څو پوري چي دنيا آباده وای تر هغو به مو خوړل ،

الدُّنْيَا وَرَأَيْتُ النَّارَ فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ مَنْظَرًا قَطُّ أَفْظَعَ وَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ

بيا ما دوږخ وليدی او هيڅ داسي يو خوفناک منظر زما تر نظر نه دی تير سوی څنگه چي ما نن وليدی، په دې کي ما زياتي ښځي وليدې،

قَالُوا بِمَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ بِكُفْرِهِنَّ قِيلَ أَيَكْفُرْنَ بِاللّٰهِ قَالَ بِكُفْرِ الْعَشِيرِ

صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! ددې سبب څه دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغوی د نعمت ناشکري له کبله ، صحابه کرامو پوښتنه وکړه ايا ښځي د الله څخه انکار کوي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل د خپل خاوند نافرماني کوي

وَبِكُفْرِ الْإِحْسَانِ لَوْ أَحْسَنْتَ إِلَى إِحْدَاهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ

او د احسان ناشکري کوي که ته ورسره ټول عمر احسان کوې خو که هغه ستا د لوري د خپل مرضۍ خلاف يو خبره ووينې نو وايي چي

مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ. متفق عليه

ما هیڅ چیري ستاسو څخه خیر لیدلی نه دی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري)؛ ۱۲\۵۴۰، رقم: ۱۰۵۲، ومسلم ۱۲\۶۲۶، رقم: ۱۷- ۹۰۷.

**د لغاتو حل**: (تَکَعکَعتَ): احجمت وتاخرت الی وراء (تر شا ځنډېدل).

**تشریح** : د (آیتان من آیات الله) مطلب دادی چي لمر او سپوږمۍ د الله تعالی د الوهیت او ربوبیت او د هغه د قدرت د نښو څخه دي چاته د ګټي او تاوان رسولو خو څه په دوی کي دومره طاقت هم نسته چي په خپل ځان کي پیدا سوی یو تاوان او عیب ختم کړي نو څومره بې عقله او کم بخته دي هغه خلک چي ددې شي په لېدو سره لمر او سپوږمۍ معبود ګرځوي او د هغوی مخکي خپل تندی کښته کوي، ددې وروسته رسول الله ﷺ د اهل جاهلیت هغه عقیده ختمه کړل کوم چي د یو عظیمي پیښي مثلاً د یو لوی سړي مرګ یا عامه وباء یعني وچ کالۍ وغیره په وجه لمر او سپوږمۍ تندره ونیسي، رسول الله ﷺ وفرمایل دا خیالات او عقیدې فاسدي دي په حقیقت کي ددې هیڅ تعلق نسته، الله تعالی د دواړو په تندره نیولو کي یوازي د خپل قدرت اظهار کوي او خلک د خپل غیظ او غضب څخه بیروي.

د (فاذکروا الله) مطلب دادی چي د لمر او سپوږمۍ په تندره نیولو سره که د لمانځه مکروه وخت نه وي نو د کسوف او خسوف لمونځ کوئ او که چیري مکروه وختونه وي نو لمونځ مه کوئ مګر د الله تعالی په تسبیح، تهلیل، تکبیر او استغفار کي مصروف سئ، په دې خبره پوه سئ چي دا حکم د امر استحبابي په توګه دی د وجوب په توګه نه دی ځکه چي د کسوف او خسوف لمونځ واجب نه دی بلکه د ټولو علماؤ په اتفاق سنت دی.

ددنیا تر پاته کېدو پوري به مو خوړلای : یعني څرنګه چي د جنت د میوو خاصیت دی د انګورو د هغه غونچې څخه چي کومه دانه مو خوړلې ده د هغه پر ځای به دوهمه دانه پیدا کیدل همداسي هغه غونچه به د دنیا تر پاته کېدو پوري چلیدلای.

د جنت د انګورو د وانښکي نه اخیستو سبب دا وو که چیري رسول الله ﷺ هغه اخیستی وای او خلکو هغه لیدلی وای نو د ایمان بالغیب هیڅ حقیقت او اهمیت به نه وای پاته سوی.

﴿۱۳۹۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ نَحْوَ حَدِيْثِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَقَالَتْ ثُمَّ سَجَدَ فَأَطَالَ

بي بي عائشې ﷞ هم د ابن عباس ﷠ په دول حدیث بیان کړی دی بیا یې دا بیان هم کړی دی چي رسول الله ﷺ سجده وکړه او اوږده سجده یې وکړه

السُّجُوْدَ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدِ انْجَلَتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ النَّاسَ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنٰى

بیا یې لمونځ ختم کړو او لمر ځلانده سو ، بیا رسول الله ﷺ خلکو ته خطبه وویل لومړی یې د الله تعالی حمد او ثناء وکړه

عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ لاَ يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ

بیا یې وفرمایل : لمر او سپوږمی د الله تعالی دوې نښې دي نه د چا پر مرګ

اَحَدٍ وَلاَ لِحَيَاتِهِ فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذٰلِكَ فَادْعُوا اللهَ وَكَبِّرُوْا وَصَلُّوْا وَتَصَدَّقُوْا ثُمَّ

او نه د چا پر پیدا کېدو دا تندره نیسي هر کله چي تاسو تندره نیول وويئ نو د الله څخه (دخیر) دعاء غواړئ، تکبیر وایاست لمونځ کوئ او خیرات کوئ ، بیا

قَالَ يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَاللهِ مَا مِنْ أَحَدٍ أَغْيَرَ مِنَ اللهِ أَنْ يَزْنِيَ عَبْدُهُ أَوْ تَزْنِيَ أَمَتُهُ

رسول الله ﷺ وفرمایل اې د محمد امته ! په الله دي مي قسم وي د الله ﷻ څخه زیات غیرتمند هیڅوک نسته چي زنا به کوي بنده دده یا زنا به کوي مینځه دده ،

يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَّاللهِ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلاً وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا . متفق عليه

اې د محمد ﷺ امته ! په الله دي مي قسم وي که تاسو ته هغه شي څرګند سي کوم چي زما په علم کي دی نو خندا به ډیره کمه او ژړا به ډیره زیاته کوئ. بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۲۹، رقم: ۱۰۴۴، ومسلم ۲\۶۱۸، رقم: ۱- ۹۰۱.

**تشريح** : په دغه روایت کي د سجدې د اوږدوالي، خطبې، دعا، تکبیر او خیرات کولو ذکر او حکم دی او د حدیث اخري الفاظ مزید نقل دي چي د ابن عباس ؓ په روایت کي ددې ذکر نسته.

د غیرت اصل معنی په خپل حق کي د غیر شرکت بد ګڼل او د الله تعالی د غیرت مطلب دادی چي په خپلو احکامو کي د بندګانو نافرماني او د امر او نهي خلاف کول بد ګڼل، د ارشاد حاصل دادی چي د الله تعالی یو بنده چي په زنا کي اخته سي نو په دې معامله کي چي تاسو ته څومره غیرت محسوس کیږي او هغه د دواړو څخه چي ستاسو څومره نفرت وي د الله تعالی

غیرت د هغه څخه ډیر زیات سخت او د هغه نفرت ستاسو تر نفرت زیات سخت دی.

## د لمر او سپوږمۍ تندري نیولو علت

﴿۱۳۹۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د ابوموسی رضي الله عنه څخه روایت دی چې لمر تندري ونیوی نو رسول الله ﷺ په بیره کې ولاړ سو

وَسَلَّمَ فَزِعًا يَخْشَى أَنْ تَكُوْنَ السَّاعَةُ حَتَّى أَتَى الْمَسْجِدَ فَصَلَّى بِأَطْوَلِ قِيَامٍ

او د قیامت بیره وربانديي خپره سول بیا رسول الله ﷺ مسجد ته تشریف راوړ او لمونځ یې وکړ
چي ولاړه،

وَرُكُوعٍ وَسُجُودٍ مَا رَأَيْتُهُ يَفْعَلُهُ قَطُّ وَ قَالَ إِنَّ هٰذِهِ الْاٰيَاتِ الَّتِيْ يُرْسِلُ اللّٰهُ لَا

رکوع او سجده یې دومره اوږده وکړه چي وړاندي ما هیڅکله نه وه لیدلي، بیا رسول الله ﷺ
وفرمایل: دا نښې الله تعالی رالیږي

تَكُونُ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَلٰكِنَّ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهَا عِبَادَهُ فَإِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا

دا نه د چا د مرګ له کبله دی او نه د چا د زیږېدني له کبله، مګر له دې کبله الله تعالی خپل
بندګان بیروي له دې کبله هر کله چي تاسو دا ډول نښې ووینئ

مِنْ ذَالِكَ فَافْزَعُوا إِلَى ذِكْرِهِ وَدُعَائِهِ وَاسْتِغْفَارِهِ. متفق عليه

نو دالله څخه بیره وکړئ د هغه ذکر کوئ دعاء کوئ او د هغه څخه بخښنه غواړئ. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۴۵، رقم: ۱۰۵۹، ومسلم ۲\۶۲۸، رقم: ۲۴- ۹۱۲.

**تشریح**: د (یخشی ان تکون الساعة) الفاظ راوي د تمثیل په توګه استعمال کړي دي، ددې قول مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به په دغه وخت کي خوف زده وو څرنګه چي یو سړی پر قیامت کیدو باندي خوف زده وي د رسول الله ﷺ دا بیره په دې وجه نه وه چي رسول الله ﷺ دا ګڼل چي قیامت شروع سوی دی ځکه چي رسول الله ﷺ ښه پوهیدی چي تر څو پوري زه په خلکو کي موجود یم قیامت نسي راتلای.

په هرحال رسول الله ﷺ به د الله تعالی د نښو په لیدو سره مثلاً د لمر او سپوږمۍ تندره نیول، زلزلې، سیلاب، طوفان، برېښنا او تالندي په وخت کي چي به بیریدی نو په هغه کي

يوازې پر مځکه سربيره اوسيدونکو انسانانو د شفقت جذبه وه نو رسول الله ﷺ د خپل ذات لخوا نه بلکه د نړيوالو له خوا خوف زده کيدی چي په خپل لمن کي د دنيا والا لپاره د تباهي او بربادي پيغام نه وي راوړی او په دې صورت کي پر هغوی د الله تعالی عذاب نازل نسي.

وقال هذه الايات :مطلب دادی چي د سپوږمۍ او د لمر د تندري نيولو او د زلزلې سيلابو او طوفانو راتلل او د بريښنا آواز وغيره دا ټول د الله تعالی د قدرت نښې دي په دې سره هغه خپل بندګان بيروي او انسانانو ته دا ښودل غواړي چي وګورئ زه تغير حالت قسمت په اخيستو او پر عذاب نازلولو باندي قادر يم.

## په صلوة خسوف او کسوف کي رکوعي

﴿۱۴۰۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي

وَسَلَّمَ يَوْمَ مَاتَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى بِالنَّاسِ

کومه ورځ چي د رسول الله ﷺ زوی ابراهيم رضي الله عنه وفات سوی وو نو لمر هم تندري ونيوی، رسول الله ﷺ خلکو ته لمونځ ورکړ

سِتَّ رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ. رواه مسلم

چي په هغه کي يې شپږ رکوعي او څلور سجدې وکړې. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۲۳، رقم: ۱۰- ۹۰۴.

**تشريح** : حضرت ابراهيم رضي الله عنه د رسول الله ﷺ زوی وو چي د بي بي ماريه قبطيه رضي الله عنها څخه په اتم هجري کال کي پيدا سوی وو او په لسم هجري کال کي د تي رودلو په زمانه کي وفات سو د هغه عمر يوازې اتلس مياشتي يا تر دې زيات وو، په کومه ورځ چي هغه وفات سو په هغه ورځ لمر تندري ونيوی، خلکو وويل چي د هغه د وفات په وجه لمر تندري ونيوی چي د هغه رسول الله ﷺ ترديد وکړ لکه څرنګه چي د تيرو روايتو څخه معلومه سوې ده.

د شپږ رکوعو او څلورو سجدو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ دوه رکعته لمونځ وکړ لکه څرنګه چي ددې باب د حديثو څخه معلوميږي چي ددغه لمانځه د رکوعو شمير مختلف بيان سوی دی، امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه هغه حديثو ته ترجيح ورکړې ده چي په هغه کي

یوازي د یوې رکوع ذکر سوی دی ځکه نه یوازي دا چي اصل خبره داده چي په هر رکعت کي یوه رکوع وي بلکه په دې باره کي قولا او فعلا دواړه ډوله حدیثونه نقل دي او بیا دا چي د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه د مستدل روایت څخه پرته نور روایتونه مضطرب دي چي په هغه کي د یو شمېر تعین ډیر ګران دی، امام شافعي رحمة الله علیه د دوو رکوع والا حدیث ته ترجیح ورکړې ده د امام شافعي رحمة الله علیه او نور اکثر اهل علمو حضراتو په نزد دا مسئله هم ده که د تندري نیولو تر وخته پوري وي نو دا جائز ده چي په هر رکعت کي درې، څلور یا پنځه رکوعي هم کیدای سي.

﴿۱۴۰۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللهِ ﷺ حِيْنَ كَسَفَتِ الشَّمْسُ ثَمَانَ رَكَعَاتٍ فِيْ أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ. وعن علي مثل ذلك. رواه مسلم.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د لمر تندرې نیولو پر وخت رسول الله ﷺ د اته رکوعو او څلورو سجدو لمونځ ورکړ یعني دوه رکعته چي په هغه کي یې څلور رکوعي او دوې دوې سجدې وکړې. حضرت علي رضي الله عنه هم داسي روایت کړی دی. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۶۲۷، رقم: ۱۸- ۹۰۸.

**تشریح**: (وعن علی مثل ذالک) مطلب دادی چي یا خو حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه دا روایت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ همداسي لمونځ اداء کړ یا دا چي د حضرت علي رضي الله عنه په باره کي دا نقل سوي دي چي هغه هم داسي لمونځ اداء کړ.

## د لمر تندري نیولو پر وخت د نبي کریم ﷺ طریقه

﴿۱۴۰۲﴾: وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كُنْتُ أَرْتَمِي بِأَسْهُمٍ لِي بِالْمَدِينَةِ

د حضرت عبد الرحمن بن سمرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما په مدینه کي په غشو سره ویشتل کول

فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ كَسَفَتْ الشَّمْسُ فَنَبَذْتُهَا

د رسول الله ﷺ په زمانه چي لمر تندري ونیوی نو ما خپل غشي وغورزوی

فَقُلْتُ وَاللهِ لَأَنْظُرَنَّ إِلَى مَا حَدَثَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

او په زړه کي مي وویل په الله جل جلاله دي مي قسم وي چي زه به د رسول الله ﷺ حالت وینم

كُسُوفِ الشَّمْسِ قَالَ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ رَافِعٌ يَدَيْهِ فَجَعَلَ يُسَبِّحُ

د تندري نيولو پر وخت ، ويلي دي راوي نو زه رسول الله ﷺ ته راغلم او وه مي ليدل چي رسول الله ﷺ پر لمانځه ولاړ وو د تكبير لاسونه يې پورته كړي وه نو رسول الله ﷺ تسبيح،

وَيَحْمَدُ وَيُهَلِّلُ وَيُكَبِّرُ وَيَدْعُو حَتَّى حُسِرَ عَنْهَا قَالَ فَلَمَّا حُسِرَ عَنْهَا قَرَأَ

حمد ، تهليل ، تكبير او دعاء ويل پيل كړل تر څو چي لمر ځلانده سو نو رسول الله ﷺ دوه ركعته وكړه چي په هغو كي يې

سُورَتَيْنِ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ . رواه مسلم في صحيحه عن عبدالرحمن بن سمرة وكذا في شرح السنة و في نسخ المصابيح عن جابر بن سمرة .

دوه سورتونه وويل . مسلم، .شرح السنة .

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۲۹، رقم: ۲۶- ۹۱۳، وشرح السنة ۴\۳۷۹، رقم: ۱۱۴۴.

**د لغاتو حل** : (فنبذتُها) : اى رميتُ السهام. (غشى ويشتل).

**تشريح** : (وهو قائم في الصلوة) ددې مطلب دادى چي رسول الله ﷺ دواړه لاسونه پورته كړل د لمانځه په انداز كي مخ پر قبله ولاړ وو او خلكو صفونه تړلي وه ، يا دا ويل كيږي چي دلته صلوة يعني د لمانځه څخه مراد دعاء ده دا تاويل ځكه كيږي چي د هيڅ مذهب څخه دا نه معلوميږي چي رسول الله ﷺ د لمر تندري نيولو پر وخت د لمانځه په حالت كي د اذكارو پر وخت خپل دواړه لاسونه پورته كړي وه .

څرنگه چي مخكي ښودل سوي دي چي د لمر تندري نيولو د لمانځه د ركوع د شمېر په باره كي جلا حديثونه روايت دي په كومو روايتونو كي چي په هر ركعت كي د څو څو ركوع اثبات دى هغه ټول مضطرب دي دا وجه ده چي په دې باره كي خپله راويان هم مضطرب دي چي ځينو درې درې ركوعي بيان كړي دي او دا قاعده ده چي اضطراب موجب ضعف دى نو د دې روايتونو پرېښودل واجب سول چي تعدد ركوع ثابتوي ځكه امام ابو حنيفه رحمة الله عليه هغه روايات خپل مستدل گرځولي دي چي د هغه څخه په هر ركعت كي يوه يوه ركوع كول ثابت ده .

## د تندري پر وخت د غلام ازادول

﴿۱۴۰۳﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ لَقَدْ أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعِتَاقَةِ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ. رواه البخاري.

د حضرت اسماء بنت ابوبکر ﷞ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته د لمر تندري نیولو پر وخت د غلام آزادولو حکم راکړ. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۴۳، رقم: ۱۰۵۴.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د کسوف په لمانځه کي قرائت

﴿۱۴۰۴﴾: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِي كُسُوْفٍ لاَ نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا. رواه الترمذي وأبو داود والنسائي وابن ماجه.

د حضرت سمرة بن جندب ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته د لمر تندري نیولو لمونځ راکړ موږ دده مبارک آواز نه سو اوریدلای. ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۷۰۰، رقم: ۱۱۸۴، والترمذي ۲\ ۴۵۱، رقم: ۵۶۲، والنسائي ۳\ ۱۴۰، رقم: ۱۴۸۳، وابن ماجه ۱\ ۴۰۲، رقم: ۱۲۶۴.

**تشریح**: دغه حدیث او دا دول نور حدیثونه پر دې خبري دلالت کوي چي د لمر تندري نیولو په لمانځه کي امام په لوړ اواز سره قرائت نه کوي، د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه او د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی، په بخاري، مسلم او نورو کتابونو کي داسي روایتونه هم نقل دي چي د هغه څخه د صلوة کسوف د قرائت په لوړ اواز سره ویل ثابتیږي، د روایاتو د دغه ټکر له کبله ابن همام ﷫ هغه روایتونو ته ترجیح ورکول ضروري سول چي د هغه څخه قرائت په کرار اواز سره ویل ثابتیږي ځکه چي د ورځي په لمانځه کي د قرائت کرار ویل اصل دی.

## د عجیبه پېښه پر وخت سجده کول

﴿۱۴۰۵﴾: وَعَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ قِيلَ لاِبْنِ عَبَّاسٍ مَاتَتْ فُلاَنَةُ بَعْضُ أَزْوَاجِ

د حضرت عکرمة رحمه الله څخه روايت دی چي ابن عباس رضي الله عنهما ته وويل سول چي د رسول الله ﷺ فلانۍ بي بي وفات سوې ده (يعني بي بي صفيه)

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَّ سَاجِدًا فَقِيلَ لَهُ تَسْجُدُ فِيْ هَذِهِ السَّاعَةَ

نو ابن عباس رضي الله عنهما پر سجده پريوتی ، د هغه څخه پوښتنه وسول ايا ته په داسي حالت کي هم سجده کوې ؟

فَقَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمْ آيَةً فَاسْجُدُوا فَأَيُّ

هغه وويل: رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي کله تاسو د الله جل جلاله يو نښنه ووينئ نو سجده کوئ او

آيَةٍ أَعْظَمُ مِنْ ذَهَابِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ ﷺ. رواه ابوداؤد والترمذي

تر دې لويه نښنه به بله څه وي چي د رسول الله ﷺ بي بي وفات سوه . ابو داؤد ، ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۷۰٦، رقم: ۱۱۹۷، والترمذي ۵\٦٦۵، رقم: ۳۸۹۱.

**تشريح** : ابن عباس رضي الله عنهما ته د خلکو د وينا مطلب دا وو چي تاسو دا وخت بېله سببه سجده ولي کوئ حال دا چي بېله سببه سجده کول ممنوع ده، نو هغه دا جواب ورکړ چي د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک دی کله چي تاسو د بلاګانو او مصيبتونو د راتلو په صورت کي د الله تعالی د کارنامو څخه چي د هغه په ذريعه الله تعالی خپل بندګان بيروي يو کارنامه ووينئ نو د الله تعالی په دربار کي سمدستي سجده کوئ او ښکاره خبره ده چي د الله تعالی کومه کارنامه به تر دې زياته بيرونکې او سخته وي چي د رسول الله ﷺ بيبياني مبارکي ددې دنيا څخه رخصت سوې ځکه چي دې مقدسو ميندو ته د رسول الله ﷺ په زوجيت کيدو او د رسول الله ﷺ سره د ډير زيات ارتباط او اختلاط په وجه چي کوم عظمت او فضيلت حاصل وو هغه نورو ته حاصل نه وو څرنګه چي د هغوی ژوند د نړۍ او نړيوالو لپاره د امن او برکت سبب او د نيکۍ او خير باعث وو همداسي د هغوی وفات دنيا او د اهل دنيا لپاره د امن او برکت او د نيکۍ او خير د تلو سبب او د انسانانو په عذاب کي د اخته کيدو د بيري باعث دی ځکه د هغوی د برکت څخه د منقطع په وخت د الله تعالی په ياد کي مصروف کيدل او د الله تعالی په دربار کي سجده کول غوره دي چي د الله تعالی ذکر او د سجدې د برکته د الله تعالی عذاب پورته سي .

علماء ليکي چي د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک ( فاسجدوا ) سجده کوئ مطلب دا دی چي

لمونځ وکړئ، ځیني حضرات وايي چي ددې ارشاد څخه یوازي سجده کول نه دي مراد لکه څرنګه چي ابن عباس رضی الله عنه وکړل.

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمائي چي د رسول الله ﷺ ارشاد مطلق دی ځکه که چیري دا سپوږمۍ او لمر پر تندري نیولو باندي محمول کړي نو د سجدې څخه مراد به لمونځ وي او که د دې څخه پرته نوري نښې مثلاً طوفان، سیلاب، یا پر زلزلو وغیره باندي اطلاق وکړل سي نو بیا د سجدې څخه به سجده مراد وي په دې صورت کي هم لمونځ مراد کیدای سي ځکه نقل سوي دي چي کله به یو داسي صورت راغلی نو رسول الله ﷺ به لمونځ کوی.

ابن همام رحمة الله علیه فرمايي چي دا نقل سوي دي چي د سخت طوفان، سیلاب او تیارې پر راتلو باندي لمونځ کول غوره دي د ابن عباس رضی الله عنه په باره کي هم روایت دی چي هغه په بصره کي د زلزلې پر وخت لمونځ کړی وو.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دریم فصل)

### د صلوة کسوف رکوع او سجده تلاوت

﴿۱۴۰۶﴾: عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي لمر تندري ونیوی،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى بِهِمْ فَقَرَأَ سُوْرَةً مِنَ الطُّوَلِ ثُمَّ رَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ

نو رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته لمونځ ورکړ او په اوږدو سورتو کي یې یو سورت وواية او پنځه رکوعي

وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ قَامَ الثَّانِيَةَ فَقَرَأَ بِسُوْرَةٍ مِّنَ الطُّوَلِ ثُمَّ رَكَعَ خَمْسَ

او دوې سجدې یې په لومړي رکعت کي وکړې بیا د دوهم رکعت لپاره ولاړ سو او یو اوږد سورت یې وواية بیا یې پنځه رکوعي

رَكَعَاتٍ وَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ كَمَا هُوَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُوْ حَتّٰى انْجَلٰى كُسُوْفُهَا. رواه أبو داود.

او دوه سجدې وکړې ، وروسته مخ پر قبله کښېنستی او دعاء یې کول تر څو چي لمر ځلانده سو . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱۱ ۶۹۹، رقم: ۱۱۸۲.

**د حنفيه مستدل حديث**

﴿۱۴۰۷﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ

د نعمان بن بشیر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي لمر تندري ونیوی

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ وَيَسْأَلُ عَنْهَا حَتّٰى

نو مبارک ﷺ دوه دوه رکعته لمونځ پیل کړ او د خلکو څخه به یې پوښتنه کول ایا لمر ځلانده سو؟ تر څو چي

انْجَلَتِ الشَّمْسُ . رواه أبو داود . وفي رواية النسائي أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلّٰى حِيْنَ

لمر ځلانده سو . ابوداؤد ، د نسائي په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي د لمر تندري نیولو په وخت کي رسول الله ﷺ داسي لمونځ کوی

انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ مِثْلَ صَلَاتِنَا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ ، وَلَهُ فِيْ أُخْرٰى أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ

لکه څرنګه چي موږ یې کوو ، یعني رکوع او سجده به یې هم کول ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي لمر تندري ونیوی نو رسول الله ﷺ

خَرَجَ يَوْمًا مُسْتَعْجِلًا إِلَى الْمَسْجِدِ وَقَدِ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فَصَلّٰى حَتّٰى انْجَلَتْ

په تلوار د کور څخه راووتی او مسجد ته ولاړی لمونځ یې پیل کړ او تر هغه وخته پوري یې لمونځ کوی تر څو چي لمر ځلانده سوی نه وو ،

ثُمَّ قَالَ إِنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوْا يَقُوْلُوْنَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْخَسِفَانِ إِلَّا

رسول الله ﷺ وفرمایل : د جاهلیت په وخت کي به خلکو دا وویل چي لمر او سپوږمی هغه وخت تندره نیسي چي

لِمَوْتِ عَظِيْمٍ مِنْ عُظَمَاءِ أَهْلِ الْأَرْضِ وَإِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْخَسِفَانِ

د دنیا د سردارانو څخه یو څوک مړ سي (زه تاسو ته ښيم چي) لمر او سپوږمۍ تندره نه نیسي

لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَلٰكِنَّهُمَا خَلِيقَتَانِ مِنْ خَلْقِهِ يُحْدِثُ اللّٰهُ فِيْ خَلْقِهِ

د یو چا پر مرګ او نه د یو چا پر زیږېدني او دا دواړه هم د الله تعالی مخلوقات دي په خپل مخلوق کي چي الله ﷻ څنګه غواړي هم هغسي بدلون کوي

مَا شَاءَ فَأَيُّهُمَا انْخَسَفَ فَصَلُّوْا حَتّٰى يَنْجَلِيَ أَوْ يُحْدِثَ اللّٰهُ أَمْرًا. رواه النسائي

هر کله چي په دوی کي یو تندره ونیسي نو تاسو تر هغو لمونځ کوئ تـــر څو پوري چي څلانده نه سي او یا الله تعالی یو حکم څرګند کړي. نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۷۰۴، رقم: ۱۱۹۳، والنسائي ۳\۱۴۵، رقم: ۱۴۸۸.

**تشریح**: د حدیث الفاظ: (زموږ په ډول لمونځ) مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د صلوة کسوف یعني د لمر تندري نیولو د لمانځه په هر رکعت کي څو څو رکوعي نه دي کړي مګر څرنګه چي موږ هره ورځ لمونځ کوو همداسي رسول الله ﷺ هم هغه وخت لمونځ کړی دی او په هر رکعت کي یوه یوه رکوع او دوې دوې سجدې دي وکړي.

دا حدیث د حنفیه مذهب دلیل دی ددې څخه پرته نور حدیثونه هم نقل دي چي په دې مسئله کي د حنفیه د مذهب تائید کوي.

## بَابُ فِيْ سُجُوْدِ الشُّكْرِ

## د شکر د سجدې بیان

د علماؤ په نزد په دې خبره کي اختلاف دی چي د لمانځه څخه دباندي یوازي سجده کول جائز، مسنون او د تقرب الی الله ذریعه ده که یا؟ د ځینو حضراتو رایه داده چي د لمانځه څخه پرته په نورو وختو کي یوازي سجده کول بدعت او حرام دی او په شریعت کي ددې هیڅ حقیقت نسته له دې کبله د وتر لمانځه وروسته د دواړو سجدو حرمت بیانیږي، دوهم د ځینو حضراتو په نزد جائز او په کراهت سره مشروع دی.

د دې مسئلې حقیقت او تفصیل دادی چي د لمانځه څخه وتلې سجده پر څو ډوله وي یو خو سجده سهوه ده او دا د لمانځه په حکم کي ده د دې په باره کي هیڅ اختلاف نسته، دوهمه

سجده تلاوت ده او ښکاره خبره ده چي ددې په باره کي هم هيڅ اختلاف نسته، دريمه سجده مناجات ده چي د لمانځه څخه دباندي ده د دې په باره کي د اکثرو علماؤ د ښکاره اقوالو څخه دا معلوميږي چي دا سجده مکروه ده، څلورمه سجده شکر ده چي پر حصول نعمت او خاتمه مصيبت او پر بلا باندي کيږي په دې سجده کي د علماؤ په نزد اختلاف دی، د امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په نزد دا سجده سنت ده، په حنفيه کي د امام محمد رحمة الله عليه هم دا قول دی، ددغه مذهب په تائيد کي اثار او حديثونه هم په کثرت سره نقل دي د امام مالک رحمة الله عليه او امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد دا سجده مکروه ده دا حضرات د خپل دليل په توګه دا وايي چي د الله تعالی نعمتونه بې شميره دي د هغه شمېر نسي کيدای نو څرګنده ده چي په بنده کي دومره طاقت نسته چي هغه د الله تعالی د هر نعمت پر حصول باندي سجده شکر وکړي هغه داسي تکليف او په مصيبت کي اخته کيدل دي چي د هغه زغمل د هغه د طاقت څخه وتلی دی.

مګر کوم حضرات چي د سجده شکر قائل دي هغوی وايي چي د نعمتونو څخه مراد هغه نعمتونه دي چي نوي وي او کله کله حاصليږي هغه نعمتونه ځيني مراد نه دي چي مستقل او دائمي وي که هغه خپله د انسان وجود د هغه توابع او د هغه لوازمات چي د اهم په حقيقت کي د الله تعالی لوی لوی نعمتونه دي چي بنده ته په مستقله توګه سره حاصل دي.

د رسول الله ﷺ په باره کي روايت دی چي کله رسول الله ﷺ ته د ابو جهل لعين د قتل کيدو خبر ورسيدی نو رسول الله ﷺ سجده شکر وکړل، د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په باره کي نقل دي چي هغه د مسيلمه کذاب په باره کي ويلي دي چي کوم وخت ذي الثديه خارجي قتل کړل سو نو هغه سجده شکر ادا کړل همداسي د مشهور صحابي حضرت کعب رضي الله عنه او ابن مالک رضي الله عنه په باره کي نقل کړي دي چي هغه د توبې قبلېدو د زيري پر وخت سجده وکړل.

**په نوموړي باب کي لومړی او دريم فصل نسته**

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د خوشحالۍ پر وخت سجده

﴿۱۴۰۸﴾: عَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاءَهُ أَمْرٌ

د حضرت ابوبکرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ ته

سُرُوْرًا أَوْ يُسَرُّ بِهِ خَرَّ سَاجِدًا شَاكِرًا لِلّٰهِ تَعَالٰى . رواه أبو داود والترمذي وقال هذا حديث حسن غريب .

د خوشحالي يو پېښه وړاندي سول يا په يو خبره به خوشحاله سو نو د الله ﷻ د شکر ادا کولو لپاره به پر سجده پرېوتی . ابوداؤد، ترمذي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۲۱٦، رقم: ۲۷۷۴، والترمذي ۴\۱۲۰، رقم: ۱۵۷۸.

**تشريح**: علامه تورپشتي رحمة الله عليه فرمايي چي د علماء يو ډله د حديث ښکاره مفهوم په ليدو سره وايي چي پر حصول د نعمت باندي سجده شکر مشروع ده حال دا چي نورو علماؤ د دې سره اختلاف کړی دی او د حديث د مفهوم په باره کي ېې ويلي دي چي دلته په اصل کي د سجدې څخه مراد لمونځ دی د دې تاويل دليل دا حديث دی چي رسول الله ﷺ د څاښت پر وخت دوه رکعته لمونځ وکړ کله چي په جنګ کي د فتح زيری ورکړل سو، يا دا چي د ابو جهل لعين سر پر ېکړی را وړل سو .

امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمايي که بنده پر هر نوي حاصليدونکي نعمت باندي سجده لازمه وګرځوي نو په دې کي هيڅ شک نسته چي د هغه د ژوند يوه يوه لحظه هم د سجدې څخه خالي نه وي ځکه چي د انساني ژوند هيڅ يوه لحظه داسي نه راځي چي په خپلو لمحاتو کي د الله تعالی نعمت نه راوړي بيا دا چي د انسان ژوند خپله د الله تعالی تر ټولو لوی نعمت دی الحمدلله چي د هري ساه دباندي راوتل او دننه تلل او راتلونکې هره لحظه او هر دم يو نعمت دی همداسي نه يوازي دا چي ډير زيات مشقت او په تکليف کي به اخته سي بلکه د انساني ژوند پوره نظام به معطل پاته سي ځکه د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد سجده شکر سنت نه ده .

## سجده شکر

﴿۱۴۰۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ جَعْفَرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأٰى رَجُلاً مِنَ النُّغَاشِيْنَ فَخَرَّ سَاجِدًا . رواه الدارقطني مرسلا وفي شرح السنة لفظ المصابيح

د حضرت ابو جعفر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يو نغاشي (لنډ کتی، ضعيف، ناقص خلقتي) سړی وليدی نو پر سجده پرېوتی . دار قطني .

**تخريج**: سنن الدار قطني ۱\۴۱۰، رقم: ۷۷۲.

**د لغاتو حل**: (النغاشين): هو القصير جدا، الناقص خلقة. (ډېر لنډ سړی).

**تشريح** : نغاش او نغاشي هغه سړي ته وايي چي ډير زيات ناقص الخلقت او ضعيف الحركت وي رسول الله ﷺ چي داسي سړی وليدی نو د الله تعالی په دربار کي پر سجده پرېوتی.

مظهر رحمة الله عليه فرمايي دا سنت دی چي څوک يو داسي سړی ووينې چي په مصيبت کي اخته وي نو د الله تعالی په دربار کي سجده شکر وکړئ چي الله تعالی زه د مصيبت څخه ساتلی يم مگر په دې اړه دا خاص ادب دی چي دا سجده شکر دې په پټه توگه سره وکړل سي چي په هغه کي په بلا کي اخته غمجن نسي مگر د يو فاسق په ليدو سره دا شکر کول چي الله تعالی زه د دغه فسق څخه وساتلم په ښکاره د فاسق مخکي سجده کول پکار ده چي هغه ته شرمندگي وي او هغه د خپل فسق څخه منعه سي.

د حضرت شبلي رحمة الله عليه په باره کي نقل دي هغه چي يو داسي سړی وليدی چي ددنيا په لذتونو کي ېې ځان ورک کړی وو نو د هغه مخکي ېې وفرمايل: (الحمدلله الذي عافاني مما ابتلاک به) يعني هغه الله لره دي تعريف وي چي زه ېې د بلا څخه وساتلم په کومه کي چي ته اخته يې.

## د رسول الله ﷺ شفقت

﴿۱۴۱۰﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت سعد بن ابو وقاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره روان سوو

وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ نُرِيْدُ الْمَدِيْنَةَ فَلَمَّا كُنَّا قَرِيْبًا مِّنْ عَزْوَزَاءَ نَزَلَ ثُمَّ رَفَعَ

د مکې څخه د مدينې په اراده، کله چي موږ د مکې او مدينې درمياني ځای (عزوزا) ته ورسيدو نو رسول الله ﷺ د اوښې څخه را تا سو بيا يې دواړه لاسونه پورته کړل

يَدَيْهِ فَدَعَا اللهَ سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيْلاً ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ

د يو څه وخت لپاره يې د الله تعالی څخه وغوښتل او بيا پر سجده پريوتی او تر ډيره وخته پوري پر سجده پروت وو، بيا ودريدی دواړه لاسونه يې پورته کړل

سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيْلاً ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا

او دعا يې وکړل يو څه وخت او بيا پر سجده پريوتی او تر ډيره وخته پوري پر سجده پروت وو بيا

ودریدی لاسونه یې پورته کړل یو څه وخت بیا پر سجده پریوتی

قَالَ إِنِّيْ سَأَلْتُ رَبِّيْ وَشَفَعْتُ لِأُمَّتِيْ فَأَعْطَانِيْ ثُلُثَ أُمَّتِيْ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّيْ

بیا یې سر پورته کړی او وه یې فرمایل: ما د خپل رب څخه د خپل امت لپاره د شفاعت دعاء وغوښتل، یعني د هغوی د ګناهو د بخښنيي، ما ته دریمه برخه امت راکړل سو، زه پر سجده پریوتم او د الله ﷻ

شُكْرًا ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِيْ فَسَأَلْتُ رَبِّيْ لِأُمَّتِيْ فَأَعْطَانِيْ ثُلُثَ أُمَّتِيْ فَخَرَرْتُ

شکر مي ادا کړ بیا ما د سجدې څخه سر راپورته کړ د خپل رب څخه مي دعاء وغوښتل او د امت د بخښني غوښتونکی سوم نو الله تعالی ما ته دریمه برخه امت راکړ (یعني د دریمي برخي د امت بخښنه یې راته وکړه) زه بیا د الله ﷻ

سَاجِدًا لِرَبِّيْ شُكْرًا ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِيْ فَسَأَلْتُ رَبِّيْ لِأُمَّتِيْ فَأَعْطَانِيْ الثُّلُثَ

د شکر ادا کولو لپاره د خپل امت د بخښني غوښتونکی سوم نو الله تعالی پاته دریمه برخه امت هم ما ته راکړ

الْآخِرَ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّيْ شُكْرًا. رواه أحمد وأبو داود.

او زه د شکر ادا کولو لپاره بیا پر سجده پریوتم. احمد، ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۳\۲۱۷، رقم: ۲۷۷۵، ولم نجده عند الامام.

**تشریح**: په اول وارد سابقینو یعني هغه خلکو مغفرت وکړل سو چي په نیکي کولو کي سبقت او وړاندي والي کوي او په اعمالو کي هیڅ ډول کوتاهي نه کوي دوهم وار د مقتصدین یعني د منځنۍ درجو والا خلکو مغفرت وکړل سو او په دریم وار د هغه خلکو مغفرت وکړل سو چي پر خپل نفس باندي ظلم کوي یعني په معصیت او ګناه کي اخته وي.

دلته یو مشکل پیدا کیږي او هغه دا چي د څومره ایاتونو او حدیثونو څخه دا ثابته سوې ده چي کوم خلک په ګناه کبیره کي اخته وي هغوی ته به په اخرت کي عذاب ورکول کیږي مګر دلته د دې حدیث څخه دا معلومیږي چي دغه خلکو ته به عذاب نه ورکول کیږي ځکه چي ټول امت ته مغفرت سوی دی. (الحمدلله)

د دې جواب دادی چې دلته د شفاعت ددعاء او د الله تعالی له خوا د مغفرت څخه مراد دادی چې د رسول الله ﷺ امت ته د خسف او مسخ دواړو عذابو څخه امن ورکړی دیلکه څرنګه چې د مخکنیو امتونو خلک به د خپل بدۍ او بد عملۍ په وجه په همداسې دردناک عذاب کې په دنیا کې اخته کول کیږي امت محمدي ته په دې دنیا کې دا عذاب نه ورکول کیږي البته د مغفرت تعلق د هغه عذاب سره نه دی کوم چې هر ګناه کار ته د هغه د بدعملۍ او بدۍ په مناسبت سره ورکول کیږي.

ځیني حضرات وایي چې دلته مراد دادی چې د رسول الله ﷺ دعا او په سفارش سره امت مرحومه ته د دائمي عذاب څخه د امن پروانه ورکړل سوې ده چې د امت ګناه کار او بدعمله خلک په دائمي توګه سره په عذاب کې نه دي مګر د خپل جرم په مناسبت سره د سزا په ترلاسه کولو سره او د رسول الله ﷺ په سفارش سره به د جهنم څخه را وایستل سي او بیا به په دائمي توګه سره جنت ته داخلیږي.

==========

# بَابُ صَلٰوةِ الْاِسْتِسْقَاءِ

## د استسقاء دلمانځه بیان

د استسقاء لغوي معنی د باران غوښتل او د شریعت په اصطلاح کې د دې مطلب دادی چې په وچ کالۍ کې د باران غوښتلو لپاره د ښودل سوو طریقو سره سم لمونځ کول او دعاء غوښتل.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نبي کریم ﷺ د استسقاء لمونځ

﴿۱۴۱۱﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ بِالنَّاسِ إِلَى الْمُصَلّٰى

د حضرت عبد الله بن زید رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د خلکو سره د استسقاء (د باران غوښتني) لپاره عیدګاه ته تشریف یووړ،

يَسْتَسْقِيْ فَصَلّٰى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ جَهَرَ فِيْهِمَا بِالْقِرَاءَةِ وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ يَدْعُوْ

رسول الله ﷺ خلکو ته دوه رکعته لمونځ ورکړ چې په هغه کې یې په لوړ آواز سره قرائت ووایه

او بیا مخ پر قبله سو او دعاء یې وکړه

وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِيْنَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ. متفق علیه .

او دواړه لاسونه یې د دعاء لپاره پورته کړل بیا یې مخ پر قبله څادر واړوی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري) ۲\ ۵۱۴، رقم: ۱۰۲۴، ومسلم ۲\ ۶۱۱، رقم: ۲- ۸۹۴.

**تشریح**: د امام شافعي رحمة الله علیه او صاحبینو یعني امام ابویوسف رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله علیه په نزد د استسقاء لمونځ د اختر د لمانځه په ډول دی او د امام مالک رحمة الله علیه مذهب دادی چي د استسقاء دوه رکعته لمونځ دی، د استسقاء لمونځ هم هغسي کیږي لکه څرنګه چي نور لمنځونه کیږي .

## د استسقاء د لمانځه په اړه د حنفیه مذهب

د استسقاء د لمانځه په اړه خپله د حنفیه په نزد دوه قوله دي: امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه خو دا فرمایي چي د استسقاء لپاره لمونځ نسته مګر دعاء او استغفار سته، هغه فرمایي چي په کومو حدیثو کي د استغفار ذکر راغلی دی په هغه کي لمونځ نه دی ذکر سوی بلکه یوازي دعا کول ذکر دي، او بیا د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په باره کي صحیح روایت نقل دی چي هغه د استسقاء لپاره یوازي پر دعا او استغفار باندي اکتفاء وکړل لمونځ یې نه وکړی، که په دې اړه لمونځ مسنون وای نو هغه به نه پرېښودای او د داسي ضروري پیښنو هغوی ته نه معلومیدل کله چي د نبوت د زمانې زیاتي ورځي نه وې تیري سوي، او د معلومیدلو په صورت کي پرېښودل د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د شان څخه لیري خبره ده .

د صاحبینو مذهب ددې خلاف دی، ددې حضراتو په نزد نه یوازي دا چي د استسقاء لپاره لمونځ نقل او مسنون دی بلکه جماعت او خطبه هم مشروع ده .

ځینو حضراتو لیکلي دي چي د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه قول ( لا صلوة في الاستسقاء ) یعني د استسقاء لپاره لمونځ نسته، ددې څخه مراد دادی چي ددغه لمانځه لپاره جماعت، خطبه او نوري ځانګړتیاوي سنت او شرط نه دي که چیري هر سړی جلا نفل لمونځ وکړي او دعا او استغفار وکړي نو بهتره ده دا وخت د حنفیه په نزد فتاوی د صاحبین پر قول ده ځکه چي صلوة استسقاء د رسول الله ﷺ څخه ثابت او نقل دی چي د هغه یو واضح ثبوت دا پورتنی حدیث دی . د استسقاء د لمانځه په اړه دا افضل ده چي په دغه دواړو رکعتو کي په اول رکعت کي سورة ق یا سبح اسم ربک الاعلی او په دوهم رکعت کي اقتربت الساعة یا د سورة

غاشيه قرائت دي وكړل سي .

پټو ګرځول په اصل کي د تغير حالت لپاره د ښه فال اخيستو په درجه کي دي لکه څرنګه چي پټو اړول را اړول سوی دی همداسي په موجوده حالت کي هم تبديل او تغير وسي په دې توګه چي د وچ کالي په بدله کي ارزاني سي او د خشک کالي پر ځای د رحمت په باران سره دنيا اوپاشي سي .

د پټو ګرځولو طريقه داده چي خپل دواړه لاسونه د شا له خوا څخه په رايستلو سره په راسته لاس سره د پټو د چپه خوا پلو ونيسي او په چپه لاس سره د پټو لاندي پلو ونيسي بيا دواړه لاسونه د ملا خواته داسيْ وګرځوي چي په چپه لاس کي د پټو نيولي پلو پر چپه وړه باندي راسي او په چپه لاس کي د پټو نيول سوي پلو پر چپه اوږه راسي په دې طريقې سره به د پټو چپه پلو راسته سي او راسته پلو به چپه سي او پورته خوا به لاندي راسي او لاندي خوا به پورته سي . د رسول الله ﷺ د پټو په باره کي په کتابونو کي ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ پټو څلور لاسه اوږد او دوه لاسه يوه لويشت پلن وو .

## لاسونه ډير پورته کول

﴿۱۴۱۲﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لاَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ شَيْءٍ مِّنْ دُعَائِهِ إِلاَّ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ فَإِنَّهُ يَرْفَعُ حَتّٰى يَرٰى بَيَاضَ إِبْطَيْهِ . متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د استسقاء د دعاء پرته په هيڅ يو دعاء کي لاسونه نه پورته کول (يعني ډير زيات به يې نه پورته کول) ، په دې دعاء کي به رسول الله ﷺ لاسونه دومره پورته کړل چي د بغلو سپين والی به يې څرګند سو. بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) ۲\۵۱۷، رقم: ۱۰۳۱، ومسلم ۲\۶۱۲، رقم: ۵- ۸۹۵.

**تشريح** : د حضرت انس رضي الله عنه مراد د استسقاء څخه پرته په بل وخت کي د دعا پر وخت د لاس پورته کولو نفي نه وه ځکه چي د استسقاء څخه پرته پر نورو وختونو باندي هم د دعا پر وخت د رسول الله ﷺ څخه دواړه لاسونه پورته کول ثابت سوي دي مګر مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به پر نورو وختونو باندي د دعا پر وخت خپل دواړه لاسونه دومره زيات او د سر څخه نه پورته کول چي د رسول الله ﷺ د مبارکو بغلونو سپين والي به معلوميدی هو د استسقاء پر وخت د دعاء لپاره به رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه مبارک دومره زيات پورته کول که چيري جامه به

ېې نه وه اغوستې نو د بغلونو مبارکو سپین والی به ېې معلومیدی، علماء لیکي چي د کوم مقصداو مراد لپاره دعا غوښتل کیږي هغه مقصد چي څومره زیات ارزښتناک او عظیم وي د دعاء پر وخت دواړه لاسونه هغومره زیات پوره کول پکار دي.

**د دعاء پر وخت د لاسو کیفیت**

﴿۱۴۱۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَسْقٰى فَأَشَارَ بِظَهْرِ كَفَّيْهِ إِلَى السَّمَاءِ. رواه مسلم.

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د باران لپاره دعاء وکړه او په دعاء کي د لاسو د ورغوي شا یې د آسمان په لور کړل. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۶۱۲، رقم: ۶– ۸۹۶.

**تشریح**: علماء لیکي چي د باران لپاره د دعا غوښتلو پر وخت د لاسونو شا د اسمان خواته کول هم د فال اخیستو په درجه کي دي څرنگه چي د پټو په اړولو سره ښه فال اخیستل کیږي د لاسونو شا د اسمان خواته کول په اصل کي دې ته اشاره ده چي الله تعالی دي وکړي همداسي د وریځو نس هم د مځکي خوا ته سي او هغه په ځان کي د اوبو ذخیره پر مځکه را و اوروي.

د دعاء پر وخت د پورته سوو لاسونو د هیئت په باره کي علماء لیکي چي په دې اړه دا طریقه اختیارول پکار ده چي کوم سړی په بلاء مثلا وچ کالی وغیره لیري کولو لپاره دعا وغواړي نو هغه دي د خپلو لاسونو شا د اسمان خواته کړي او کوم سړی چي د الله تعالی څخه د بل یو نعمت د غوښتلو لپاره دعاء کوي نو هغه دي د لاس ورغوي د اسمان خوا ته کړي.

**د باران دعاء**

﴿۱۴۱۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى الْمَطَرَ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا. رواه البخاري.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ باران ولیدی نو فرمایل یې:

(اَللّٰهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا) اې الله! و اوروه باران نفع رسونکی. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۵۱۸، رقم: ۱۰۳۳.

**د لغاتو حل**: (صیبا): الصیب هو المطر الذي یصوب اي ینزل.

## د باران پر وخت د رسول الله ﷺ عمل

﴿۱۴۱۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أَصَابَنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره وو

مَطَرٌ قَالَ فَحَسَرَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ ثَوْبَهُ حَتّٰى أَصَابَهُ مِنَ الْمَطَرِ فَقُلْنَا يَا

چي باران پيل سو، د انس رضی اللہ عنہ بيان دی چي رسول الله ﷺ د خپل بدن مبارک څخه جامه ايسته کړل او په باران کي لوند سو، موږ عرض وکړ

رَسُولَ اللّٰهِ لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا قَالَ لِأَنَّهُ حَدِيثُ عَهْدٍ بِرَبِّهِ. رواه مسلم

اې د الله رسوله! داسي مو ولي وکړل؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د باران او به اوس اوس د خپل پروردګار څخه راغلي دي. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۲/۶۱۵، رقم: ۱۳- ۸۹۸.

**تشريح:** د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادی چي دا اوبه د خپل رب په حکم سره همدا اوس د لوړي څخه را کښته سوي دي او د دغه عالم کثيف په اجزاء سره تر اوسه پوري لړل سوي نه دي او نه تر اوسه پوري د ګناه کارانو لاسو ته رسيدلي دي ځکه دا اوبه متبرک دي چي د هغه يو برخه زه پر خپل بدن باندي اخلم، علماء ليکي چي د باران پر وخت خپل يو مقصد او مطلب غوښتل سنت دي ځکه چي د دغه وخت دعا قبليږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د څادر اړولو طريقه

﴿۱۴۱۶﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن زيد رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ

إِلَى الْمُصَلّٰى فَاسْتَسْقٰى وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْمَنَ

عيدګاه ته او د باران دعاء يې وغوښتل بيا مخ پر قبله کېدو سره يې څادر واړوی (يعني د څادر راسته خوا يې

عَلٰى عَاتِقِهِ الْأَيْسَرِ وَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْسَرَ عَلٰى عَاتِقِهِ الْأَيْمَنِ ثُمَّ دَعَا اللّٰهَ .

رواه أبو داود

د چپې اوږې خواته يوړل او چپه خوا يې د راسته اوږې خواته) بيا يې دالله څخه دعاء وغوښتل . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۸۸، رقم: ۱۱۶۳.

**د لغاتو حل**: (عطافه): اى ردائه (څادر).

**تشريح** : په دغه حديث شريف كي د استسقاء لپاره د لمانځه كولو ذكر نه دى سوي يوازي د دعاء ذكر سوى دى .

﴿۱۴۱۷﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ اسْتَسْقٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د باران لپاره دعاء وغوښتل

خَمِيْصَةٌ لَّهُ سَوْدَاءُ فَأَرَادَ أَنْ يَّأْخُذَ أَسْفَلَهَا فَيَجْعَلَهُ أَعْلَاهَا فَلَمَّا ثَقُلَتْ قَلَّبَهَا عَلٰى عَاتِقَيْهِ . رواه أحمد وأبو داود .

نو څادر يې پر سر كړى وو ، رسول الله ﷺ اراده وكړل چي د څادر زړېدلي څوكي پورته كړي مګر رسول الله ﷺ ته تكليف سو نو پر اوږو يې څادر واړوى . احمد ، ابوداؤد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۴۲، رقم: ۱۱۶۴.

**تشريح** : مطلب دادى چي د پورتني طريقې سره سم كله چي په پټو ګرځولو كي تكليف محسوس سو نو رسول الله ﷺ يوازي دا وكړل چي د پټو چپه څوكه يې پر راسته وږه باندي كړل او راسته څوكه يې پر چپه اوږه باندي كښېښودل، رسول الله ﷺ پټو مبارك په دويمي خطبي كي ګرځولى وو ځكه چي د پټو ګرځولو وخت او ځاى دغه دى .

﴿۱۴۱۸﴾: وَعَنْ عُمَيْرٍ مَّوْلٰى آبِي اللَّحْمِ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ ﷺ يَسْتَسْقِيْ عِنْدَ

د حضرت عمير چي د ابي اللحم آزاد كړى غلام وو څخه روايت دى چي ده ليدلي وو نبي كريم ﷺ چي باران يې غوښتى

أَحْجَارِ الزَّيْتِ قَرِيْبًا مِنَ الزَّوْرَاءِ قَائِمًا يَّدْعُوْ يَسْتَسْقِيْ رَافِعًا يَدَيْهِ قَبْلَ

په مقام احجار الزيت سره نژدې زوراء ته چي ولاړ وو دعاء يې كول د باران غوښتونكى وو لاسونه يې پورته كړي

وَجْهِهٖ لَا يُجَاوِزُ بِهِمَا رَأْسَهٗ. رواه أبو داود وروى الترمذي والنسائي نحوه.

د لاسو ورغوي يې د مخ طرف ته وه او لاسونه يې تر سر نه وه لوړ كړي. ابوداؤد، ترمذي او نسائي هم دا ډول روايت كړى دى.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\۶۹۱، رقم: ۱۱۶۸، والترمذي ۲\۴۴۳، رقم: ۵۵۷، والنسائي: ۳\۱۵۹، رقم: ۱۵۱۳.

**تشريح**: (احجار الزيت) د مدينې د يوځاى نوم وو د دې وجه تسميه داده چي هلته تورې ډبرې وې او دومره ځلانده وې چي په كتلو سره به محسوس كيده ګويا پر هغه ډبرو باندې د زيتون تيل موږل سوي دي، زوراء هم د مدينې منورې په بازار كي د يو ځاى نوم وو.

په دې حديث كي د دعاء پر وخت د لاسونو دا هيئت بيانيږي چي د رسول الله ﷺ دواړه تلي د مخ خوا ته يعني پورته خواته وه په دې بناء دا روايت د هغه روايت خلاف نه دى چي د هغه څخه معلوميږي چي د دعا پر وخت رسول الله ﷺ د خپل پورته سوي لاسونو تلي د ځمكي خواته كړي وه ځكه چي كله به رسول الله ﷺ داسي دعاء وغوښتل چي تلى به اسمان خوا ته وو څرنګه چي د دې روايت څخه معلومه سوه همداسي دلته په دې روايت كي دا ښودل سوي دي چي د رسول الله ﷺ پورته سوي لاسونه د سر مبارك څخه پورته نه وه نو دا هم د حضرت انس رضي الله عنه د هغه روايت خلاف نه دى چي د هغه څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د باران غوښتلو پر وخت خپل لاس مبارك ډير زيات پورته كول دلته هم دا خبره ده چي كله به رسول الله ﷺ خپل لاس مبارك ډير زيات پورته كوى لكه څرنګه چي انس رضي الله عنه بيان كړي دي او كله به يې ډير زيات نه پورته كوى لكه څرنګه چي دلته عمير رضي الله عنه يې بيانوي.

## د استسقاء پر وخت خشوع او عاجزي

﴿۱۴۱۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِيْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د باران د غوښتني لپاره ووتى

فِي الْاِسْتِسْقَاءِ مُتَبَذِّلًا مُّتَوَاضِعًا مُّتَخَشِّعًا مُّتَضَرِّعًا. رواه الترمذي وأبو

داود والنسائي وابن ماجه .

په داسي حال کي چي زينت يې پرې اېښى وو ډيره عاجزي او زاري کونکى وو. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۶۸۸، رقم: ۱۱۶۵، والترمذي ۲\ ۴۴۵، رقم: ۵۵۹، والنسائي ۳\ ۱۵۶، ۱۵۷، رقم: ۱۵۰۷، وابن ماجه ۱\ ۴۰۳، رقم: ۱۲۶۶.

**تشريح**: د باران لپاره د دعا کولو او د الله تعالى څخه د رحمت غوښتلو لپاره چي به کله رسول الله ﷺ دباندي راووتى نو د رسول الله ﷺ پټ او ښکاره، ژبه او زړه ګويا پوره بدن مبارک به يې په ډيره بيچارګۍ او عجز کي مصروف وو نه يوازي دا چي رسول الله ﷺ په دغه وخت کي د بنده ډيره زياته اړتيا او بيچارګي د اظهار لپاره رسول الله ﷺ په ظاهري توګه سره زيب او زينت يعني جامې وغيره کي خوش سليقي په پرېښودلو سره سر تر پايه عاجز او منکسر وو مګر په باطني توګه سره د رسول الله ﷺ زړه مبارک د الله تعالى د بيري څخه لړزان او ژبه مبارکه به يې په زارۍ کي مصروفه وه .

## د باران لپاره دعاء

﴿۱۴۲۰﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ به

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَسْقَى قَالَ اللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهِيمَتَكَ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ وَأَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ . رواه مالك وأبو داود .

کله د باران لپاره دعاء کول نو ويل به يې (اې الله ! خپل بندګان او خپل حيوانان اوبه کړې او خپل رحمت خپور کړې او خپل مړه ښارونه آباد کړې .) مالک ، ابوداؤد .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۱۹۰، رقم: ۲، وابوداؤد ۱\ ۶۹۵، رقم: ۱۱۷۶.

﴿۱۴۲۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوَاكِئُ فَقَالَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليدی چي لاسونه يې پورته کړل او دا دعاء يې غوښتل

اللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا مَرِيئًا مُرِيعًا نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ قَالَ

فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءَ. رواه أبو داود.

(اې الله! د باران په اوبو موږ اوبه کړې، زموږ فریاد واورې او زموږ انجام ښه کړې ارزانې کړې چې دا باران ګټور وي تاوان رسونکی نه وي ژر راتلونکی وي وروسته راتلونکی نه وي) جابر ﷺ وايي ددې دعاء وروسته پر هغوی وريځ راغلل. ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱/ ۶۹۰، رقم: ۱۱۶۹.

**د لغاتو حل:** (يُواكِئُ): المواكاة هي الاعتماد والتحامل على الشئ والمراد انه يتحامل على يديه اي يرفعهما. مرقات.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۱۴۲۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ شَكَا النَّاسُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی چې خلکو رسول الله ﷺ ته د باران نه کېدو شکايت وکړ،

قُحُوْطَ الْمَطَرِ فَأَمَرَ بِمِنْبَرٍ فَوُضِعَ لَهُ فِي الْمُصَلّٰى وَوَعَدَ النَّاسَ يَوْمًا يَّخْرُجُوْنَ

رسول الله ﷺ حکم وکړ چې په عيدګاه کې دې منبر کېښېښودل سي، په عيدګاه کې منبر کېښېښودل سو او د خلکو څخه يې وعده واخيستل چې هغوی يوه ورځ عيدګاه ته ولاړ سي،

فِيْهِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ بَدَا حَاجِبُ

بي بي عائشة ﷺ وايي رسول الله ﷺ يوه ورځ د لمر ښکاره کېدو سره عيدګاه ته تشريف يووړ،

الشَّمْسِ فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَكَبَّرَ وَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ قَالَ إِنَّكُمْ شَكَوْتُمْ جَدْبَ

او پر منبر باندې کېښېنستی الله اکبر يې وويه بيا يې د الله حمد او ثناء وکړه بيا يې وفرمايل: تاسو شکايت کړی دی

دِيَارِكُمْ وَاسْتِيْخَارَ الْمَطَرِ عَنْ إِبَّانِ زَمَانِهِ عَنْكُمْ وَقَدْ أَمَرَكُمُ اللهُ أَنْ

په خپلو ښارو کې د باران نه کېدو، الله جل جلاله تاسو ته حکم درکړی چې تاسو

تَدْعُوْهُ وَوَعَدَكُمْ أَنْ يَّسْتَجِيْبَ لَكُمْ ثُمَّ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

د هغه څخه دعاء وغواړئ او هغه وعده کړې ده چې ستاسو دعاء قبلوي، بیا رسول الله ﷺ دا دعاء وکړه: (ټول تعریفونه الله لره دي چې د دواړو جهانو پروردګار دی

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ اَللّٰهُمَّ أَنْتَ

بخښونکی او مهربان دی مالک د ورځې د قیامت دی د هغه څخه پرته بل د عبادت وړ نسته هغه چې څه غواړي کوي، ای الله! ته

الغني لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْغَنِيُّ وَنَحْنُ الْفُقَرَاءُ أَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ وَاجْعَلْ مَا

معبود يې ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته ته غني يې او موږ فقيران يو پر موږ باران و اوروې او کوم شي چې

أَنْزَلْتَ لَنَا قُوَّةً وَّبَلَاغًا إِلٰى حِيْنٍ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَلَمْ يَتْرُكِ الرَّفْعَ حَتّٰى بَدَا

ته نازل کړې هغه تر یو زمانې پورې زموږ لپاره د خوراک او ګټې سبب جوړ کړې) دديې وروسته رسول الله ﷺ دواړه لاسونه پورته کړل او تر ډیره وخته پورې یې لوړ کړي وه تر دې چې څرګند سو

بَيَاضُ إِبْطَيْهِ ثُمَّ حَوَّلَ إِلَى النَّاسِ ظَهْرَهُ وَقَلَّبَ أَوْ حَوَّلَ رِدَاءَهُ وَهُوَ رَافِعٌ يَّدَيْهِ

د رسول الله ﷺ د بغلو سپین والی بیا رسول الله ﷺ خلکو ته خپله شا کړل او څادر یې واړوی د رسول الله ﷺ لاسونه هم پورته وه

ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ وَنَزَلَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ فَأَنْشَأَ اللهُ سَحَابَةً فَرَعَدَتْ وَبَرَقَتْ

بیا د خلکو په لور متوجه سو د منبر څخه راکښته سو او دوه رکعته لمونځ یې وکړ، الله تعالی هغه وخت وریځ څرګنده کړه بیا اوازونه یې وکړل بریښنا وسول

ثُمَّ أَمْطَرَتْ بِإِذْنِ اللهِ فَلَمْ يَأْتِ مَسْجِدَهُ حَتّٰى سَالَتِ السُّيُوْلُ فَلَمَّا رَأٰى

او ددې وروسته د الله تعالی په حکم سره باران پیل سو، رسول الله ﷺ لا مسجد ته نه وو تللی چې نالی وبهېدلې،

سُرْعَتَهُمْ إِلَى الْكِنِّ ضَحِكَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ وَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّ اللهَ عَلٰى كُلِّ

هر كله چي رسول الله ﷺ وليدل چي خلک د ديوالو او سرايو پناه لټولو کي تلوار کوي نو رسول الله ﷺ په خندا سو او د مخ غاښونه يې ښکاره سول بيا يې وفرمايل : (زه شاهدي ورکوم چي الله ﷻ پر هر شي

شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَّأَنِّيْ عَبْدُ اللهِ وَرَسُوْلُهُ . رواه أبو داود .

توان لري او زه د الله بنده او رسول يم .) ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱\ ۶۹۲، رقم: ۱۱۷۳.

**د لغاتو حل**: (يُواكئ): الكِن هو ما يرد به الحر والبرد من المساكن.

**تشريح** : د امام مالک رحمة الله عليه ، امام شافعي رحمة الله عليه او د يوه روايت سره سم امام احمد رحمة الله عليه فرمايي چي د استسقاء د لمانځه وروسته دوې خطبې ويل سنت دي او د خطبې شروع په تکبير سره کيږي او د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او د يوه بل روايت سره سم د امام احمد رحمة الله عليه په نزد خطبه مشروع نه ده يوازي پر دعا او استغفار باندي اکتفاء کول پکار ده .

ابن همام رحمة الله عليه فرمايي چي اصحاب سنن اربعة د حضرت اسحاق ابن عبد الله ابن کنانه څخه يو روايت نقل کړی دی د هغه حاصل دادی چي رسول الله ﷺ د استسقاء لپاره عيدګاه ته د تلو سره ستاسو په ډول خطبه نه ويل مګر رسول الله ﷺ دعا، ژړا او زاری کول او د الله تعالی عظمت او لويي يې بيانول او رسول الله ﷺ دوه رکعته لمونځ وکړ لکه څرنګه چي يې په اختر کي کوی.

### په وسيله سره د باران دعاء

﴿۱۴۲۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ إِذَا قُحِطُوْا اَسْتَسْقٰى بِالْعَبَّاسِ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي کله به وچ کالي راغلل نو عمر بن خطاب ﷺ به د حضرت عباس بن

بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّا كُنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا فَتَسْقِيْنَا وَإِنَّا

عبد المطلب په ذريعه د باران لپاره دعاء کول او ويل به يې (اې الله : موږ به مخکي خپل نبي ستا په لور وسيله کوی نو موږ به او به سوو او اوس هم

نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا قَالَ فَيُسْقَوْنَ . رواه البخاري .

د خپل نبي ﷺ اکا تا ته وسیله کوو نو مونږ په اوبو اوبه کړې ) انس وايي د دې دعاء په کولو سره به باران وسو . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\ ۴۹۴، رقم: ۱۰۱۰.

**تشريح**: ويل کيږي چي حضرت عمر ؓ او نور صحابه کرام چي د هغه سره ملګري وه د حضرت عباس ؓ په وسيله سره به يې دعاء غوښتل نو حضرت عباس ؓ وفرمايل اې پروردګاره! ستا د پيغمبر امت زما وسيله اختيار کړې ده ،اې الله زما دغه سپين ږيرتوب رسوا مه کړې او ما د دوى مخکي شرمنده مه کړې، نو د حضرت عمر ؓ او نورو صحابه کرامو او حضرت عباس ؓ په دغه الفاظو کي دومره تاثير وو چي هغه وخت به باران پيل سو .

## د استسقاء په اړه د يو نبي پيښه

﴿۱۴۲۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ خَرَجَ نَبِيٌّ مِّنَ

د حضرت ابو هريرة ؓ څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي يو نبي

الْأَنْبِيَاءِ بِالنَّاسِ يَسْتَسْقِيْ فَإِذَا هُوَ بِنَمْلَةٍ رَّافِعَةٍ بَعْضَ قَوَائِمِهَا إِلَى السَّمَاءِ

په انبياؤ کي د خلکو سره د باران د دعاء لپاره ووتى هغه نبي يو ميږى وليدى چي د خپلو پښو څخه يې ځيني د آسمان لور ته پورته کړي وې

فَقَالَ ارْجِعُوْا فَقَدِ اسْتُجِيْبَ لَكُمْ مِنْ أَجْلِ هٰذِهِ النَّمْلَةِ . رواه الدار قطني .

(د دې په ليدو سره) هغه نبي خلکو ته وويل راځئ بيرته ولاړسئ ستاسو دعاء د دې ميږي په ذريعه قبوله سول . دارقطني

**تخريج**: سنن الدار قطني ۲\ ٦٦، رقم: ۱.

**تشريح** ويل کيږي چي دا نبي حضرت سليمان عليه السلام وو، د دې پيښي څخه مقصد په حقيقت کي د الله تعالى عظمت او د هغه د قدرت اظهار دى او دا ښودل دي چي نه يوازي دا چي د الله تعالى رحمت پر ټول مخلوقات باندي يو ډول دى بلکه د هغه علم د ټولو موجوداتو پر احوالو او کوائفو باندي خپور دى او دا چي د الله تعالى ذات مسبب او قاضي الحاجات دى .

ددغه پیښې په اړه دا هم نقل دي چي هغه میږي دا دعا کول: (اللهم انا خلق من خلقک لا غني بنا عن رزقک فلا تهلکنا بذنوب بني آدم) یعني اې پروردګاره! ستا په مخلوقات کي موږ هم یو مخلوق یو ستا د رزق څخه موږ مستغفی نه یو نو موږ د انسانانو د ګناهونو په وجه هلاک مه کړې.

==========

## بَـــابُ فِي الرِّيَـــاحِ (د بادونو بیان)

د مشکوة په زیاتو نسخو کي یوازي لفظ د باب لیکل سوی دی لکه څرنګه چي د مشکوة د مولف عادت دی چي هغه پر ځینو ځایو باندي یوازي لفظ د باب په لیکلو سره یو باب قائموي چي په حقیقت کي یو بېل او ځانته باب نه وي بلکه بیان سوی د مخکني باب لواحق او پر متمات باندي مشتمل وي مګر په یوه صحیح نسخه کي دلته باب في الریاح، او همداسي په یوې بلي نسخې کي باب الریاح لیکل سوي دي چي د هغه مطلب دی د هواوو بیان، ګویا په دې باب کي د هواګانو په اړه حدیثونه نقل کیږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### هواء رحمت هم دی او عذاب هم

﴿۱۴۲۵﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُوْرِ. متفق علیه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ما ته د جنوب د لوري د هواء سره مرسته راکړل سوې ده او د عادیانو قوم په باد سره هلاک کړل سو. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۵۲۰، رقم: ۱۰۳۵، ومسلم ۱۲\۶۱۷، رقم: ۱۷- ۹۰۰.

**تشریح**: د خندق دغزا پر وخت کله چي کفارو په پوره قهرماني طاقت سره د مدینې سخته محاصره وکړه نو د الله تعالی له خوا د مسلمانانو داسي مرسته وسول چي د جنوب د غاړي هوا ډېره زیاته چلیدل شروع سول چي دومره سخته وه چي د کفارو خېمې ونړول سوې د هغوی کټوي پې نسکوري کړي او وه یې غورځول او پر هغوی یې د ډبرو باران شروع کړی همداسي

الله تعالی د هغوی په زړونو کي د رعب او دهشت داسي هيبت ناکه څپه وځغلول چي هغوی حواس باخته وار خطا سول او د ماتي په ليدو سره ميدان يې پرېښودی او وه تښتېدل ګويا دا پر مسلمانانو د الله تعالی يو لوی فضل او د رسول الله ﷺ يوه عظيمه معجزه وه.

د عاد قوم په تېرو امتونو کي يو سخت او سرکښ امت تير سوی دی ددې امت د خلکو قد دوولس ګزه وو کله چي د دې قوم سرکښي او بدي د حد څخه په تجاوز کولو سره د الله تعالی عذاب ته دعوت ورکړ نو د قبلې له لوري سخته هوا وچليدل چي هغوی يې داسي پر مځکه را وويشتل چي سرونه يې مات مات سول، نسونه يې څيري سول او کولمې يې دباندي را ووتلې.

نو د دغه ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مقصد دا ښودل وو چي هوا د الله تعالی تابعداره ده کله خو هغه د رحمت په شکل کي د مرستي په جوړيدو سره راځي او کله هغه هوا د الله تعالی په حکم سره د عذاب الهي په صورت کي د يو قوم لپاره د هلاکت او بربادی پيغام راوړي.

## د وريځ او هواء په ليدو سره د رسول الله ﷺ حالت

﴿۱۴۲۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ ضَاحِكًا حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ هيڅکله په زوره خندا کولو سره نه دی ليدلی،

لَهَوَاتِهِ إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ فَكَانَ إِذَا رَأٰى غَيْمًا أَوْ رِيْحًا عُرِفَ فِيْ وَجْهِهِ. متفق عليه

کله چي ده مبارک خندل نو يوازي تبسم به يې کوی او کله چي به يې وريځ يا تيزه هواء وليدل نو مخ مبارک به يې متغير سو . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۷۸، رقم: ۴۸۲۹، ومسلم ۲\۶۱۶، ۶۱۷، رقم: ۱۶- ۸۹۹.

**تشريح**: مطلب دا دی چي کله به رسول الله ﷺ وريځ يا هوا وليدل نو په فکر کي به سو او پر مخ مبارک به يې د بيري او خوف اثار را ښکاره سول چي دا وريځ يا هوا په خپله لمن کي د تاوان سامان نه وي راوړی.

په دې روايت کي د بي بي عائشې رضي الله تعالی عنها مقصد دا ښودل دي چي هسي خو به رسول الله ﷺ د شهود يعني د جلال کبريايي د مشاهدې په وجه هميشه بيريدونکي او لړزان وو او په هيڅ وخت کي هم د رسول الله ﷺ زړه مبارک د بيري او خشيت څخه خالي نه پاته کيدی په خاصه توګه کله چي به وريځ يا هوا يې ليدل نو زيات په فکر کي به سو .

## د تيز باد پر وخت د نبي كريم ﷺ دعاء

﴿۱۴۲۷﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا عَصَفَتْ الرِّيحُ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دى چي كله به سخت باد چلېدى نو رسول الله ﷺ به فرمايل :

قَالَ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا فِيهَا وَخَيْرَ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ وَأَعُوذُ بِكَ

(اې الله ! زه ستا څخه ددې خير غواړم او د هغه شي خير چي په دې كي دى او خير د هغه شي چي د هغه لپاره تا راليږلې ده او ستا په ذريعه پناه غواړم

مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا وَشَرِّ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ وَإِذَا تَخَيَّلَتْ السَّمَاءُ تَغَيَّرَ لَوْنُهُ

ددې د شر څخه او د هغه شي د شر څخه چي په دې كي دى او د هغه شي د شر څخه چي د هغې لپاره راليږل سوې ده ) او كله چي به پر آسمان وريځ وه نو د رسول الله ﷺ د مخ رنګ به بدل سو

وَخَرَجَ وَدَخَلَ وَأَقْبَلَ وَأَدْبَرَ فَإِذَا مَطَرَتْ سُرِّيَ عَنْهُ فَعَرَفْتُ ذٰلِكَ فِي وَجْهِهِ

او د خفګان په حالت كي به كله كور ته ننوتى او كله به راوتى كله به دې خوا تلى او كله به آخوا تلى بيا چي به باران پيل سو نو د رسول الله ﷺ پرېشاني به لېري سول ، يو ځل بي بي عائشې ﷺ د رسول الله ﷺ دا بدلون محسوس كړ

قَالَتْ عَائِشَةُ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ لَعَلَّهُ يَا عَائِشَةُ كَمَا قَالَ قَوْمُ عَادٍ فَلَمَّا رَأَوْهُ

او ددې په اړه يې پوښتنه وكړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې عائشې ! كيداى سي دا وريځ داسي وي چي د هغې په نسبت قوم عاد ويلي وه ، يعني كله چي پر هغوى وريځ راغلل

عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا . و في رواية و يقول اذا راى المطر رحمة . متفق عليه

نو هغوى به ويل دا وريځ ده پر موږ به و اوريږي، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي كله به رسول الله ﷺ باران وليدى نو دا به يې فرمايل : (اې د الله! دا د رحمت باعث جوړ كړې ) بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱٦\۳۰۰، رقم: ۳۲۰٦، ومسلم ۱۲\٦۱٦، رقم: ۱۴، ۱۵- ۸۹۹.

**د لغاتو حل**: (تخيلت): تهيات (وريځناكه).

**تشريح**: په پورتني آيت كي د قوم عاد د هلاكت د ابتدا ذكر سوى دى چي د الله تعالى عذاب كله چي د وريځ په شكل كي پر هغوى څرګند سو نو هغوى په دې خوش فهمۍ كي وه چي دا وريځ به پر موږ باران اوروي خو الله تعالى د هغوى خوش فهمي ژر د هغوى په هلاكت او تباهۍ كي بدله كړل چي د هغه اظهار د دې ايت د نورو الفاظو (بل هو ما استعجلتم الايه) په ذريعه په دې توګه سوى دى چي نه مګر دا هغه شى دى چي د هغه لپاره تاسو تلوار كوى يعني طوفان چي هغه د تكليف وركونكى عذاب څخه ډك دى چي هر څه به د خپل رب په حكم سره تباه كړي بيا هغوى سبا ته داسي پاته سول چي د هغوى د كورونو پرته بل هيڅ شى نه معلوميدى ګناه كارانو خلكو ته موږ داسي سزا وركوو.
نو د حديث مقصد دادى چي كله به رسول الله ﷺ وريځ وليدل نو وبه بيريدى چي په داسي سره قوم عاد د وريځ په ليدو سره دا ګڼلې وه چي پر موږ به باران وسي او بيا هغه وريځ به پر هغوى باران څه ورولى وو مګر په داسي تيزي سره طوفان راغلى چي هغه په يو دم كي ټول قوم د هلاكت په وادي كي وغورځوى ځكه نو زموږ لپاره هم دا وريځ د هلاكت او بربادي باعث نه وي.

## د غيبو خزانې

﴿۱۴۲۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَفَاتِيْحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ ثُمَّ قَرَأَ (إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ) الاية. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د غيبو پنځه كلياني دي بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ: (يعني د قيامت علم د الله سره دى او هغه باران اوري.....) بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۲۹۱،

**تشريح**: د غيب پنځه خزانې دي چي د هغه علم يوازي د الله تعالى سره دى بل هيڅوك په هغه خبر نه دى د هغه پنځو خزانو په دغه ايت كي بيان سوى دى ( ان الله عنده علم الساعة وينزل الغيث ويعلم مافي الارحام وما تدري نفس ما ذا تكسب غدا وما تدري نفس باى ارض تموت ان الله عليم خبير ) ژباړه: بېشكه الله تعالى ته د قيامت قائميدو او د باران اوربدو علم دى او هغه پوهيږي چي د مور په نس كي څه وي يعني هلك دى كه انجلى سپين دى كه تور يا نيمګړى

وغیره، او هیڅ چاته معلومه نه ده چي سبا به هغه څه کوي یعني په دنیا کي به بدي کوي که نیکي او په اخرت کي به ثواب ترلاسه کوي که عذاب،او نه څوک په دې پوهیږي چي پر کومه مځکه به مړ کیږي بېشکه الله تعالی پوهیږي.

دا د غیب پنځه خبري دي چي د هغه کلیات بېله الله تعالی بل هیڅوک نه پیژني هو د الله تعالی ځیني نېک بندګان د هغو په ځینو جزئیاتو باندي پوهیږي خو هغه هم هغه وخت کله چي الله ﷻ هغوی ته یو ذریعه وښیي.

**سخته وچ کالي څه ته وايي ؟**

﴿۱۴۲۹﴾:وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَيْسَتِ السَّنَةُ بِأَنْ لاَّ تُمْطَرُوْا وَلٰكِنِ السَّنَةُ أَنْ تُمْطَرُوْا وَتُمْطَرُوْا وَلاَ تُنْبِتُ الْأَرْضُ شَيْئًا . رواه مسلم

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: سخته وچ کالي دا نه ده چي پر تاسو باران نه کیږي بلکه وچ کالې دا ده چي پر تاسو باران وسي او بنه باران وسي مګر مځکه هیڅ شي شین نه کړي.مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۲۲۸،رقم: ۴۴- ۲۹۰۴.

**تشریح** : قاضي ویلي دي لکه څرنګه چي د حدیث څخه معلومه سوه چي سخته وچ کالي دا نه ده چي باران نه وي مګر سخته وچ کالي د دې نوم دی چي باران خو وي مګر د مځکي حاصلات بالکل بند سي ځکه چي د فائدې او خیر امید او بیا د هغه د اسباب او وسائل څرګنده کیدو وروسته په غیر متواقع طریقې سره تاوان د مځکي څخه د متوقع او نا امیدې څخه ډیر زیات سخت او شدید ږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

**هواء ته د بدویلو څخه منعه**

﴿۱۴۳۰﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې:

الرِّيحُ مِنْ رُّوحِ اللهِ تَأْتِيْ بِالرَّحْمَةِ وَبِالْعَذَابِ فَلاَ تَسُبُّوْهَا وَسَلُوْا اللهَ مِنْ

هواء د الله ﷻ رحمت دی چي رحمت او عذاب دواړه راولي نو تاسو دې ته بد مه وایاست او د الله ﷻ څخه

خَيْرِهَا وَعُوْذُوْا بِهِ مِنْ شَرِّهَا . رواه الشافعي وأبو داود وابن ماجه والبيهقي في الدعوات الكبير .

ددې خير غواړئ او ددې د ضرر او شر څخه پناه غواړئ . ابوداؤد ، ابن ماجه ، بيقهي

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۱\ ۱۷۵ – ۱۷۶، رقم: ۵۰۴، وابوداؤد: ۵\ ۳۲۸، رقم: ۵۰۹۷، وابن ماجه: ۲\ ۱۲۲۸، رقم: ۳۷۲۷.

**تشريح** : تېزه هوا او طوفان چي د الله تعالى د سرکښو او نافرمانو بندګانو لپاره د عذاب ذريعه جوړيږي هغه هم په حقيقت كي رحمت دی ځکه چي د الله تعالى نېک او فرمانبرداره بندګان د هغه د تباهۍ څخه خوندي وي .

﴿۱۴۳۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلاً لَعَنَ الرِّيْحَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي یو سړي د رسول الله ﷺ په وړاندي هوا ته بد وویل

وَسَلَّمَ فَقَالَ لاَ تَلْعَنُوْا الرِّيْحَ فَإِنَّهَا مَأْمُوْرَةٌ وَإِنَّهُ مَنْ لَّعَنَ شَيْئًا لَّيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ رَّجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : پر هواء لعنت مه وایه هغه د الله د لوري امر سوې ده او څوک چي پر یو شي لعنت وايي او هغه د لعنت مستحق نه وي نو هغه لعنت بيرته راستنيږي پر ده باندي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۳۰۹، رقم: ۱۹۷۸.

**تشريح** : امام غزالي رحمة الله عليه فرمايي د لعنت باعث درې شيان کيږي اول: کفر، دوهم بدعت او دريم فسق، او بنکاره خبره ده چي په هوا کي په درو شيانو کي یو شی هم نسي تر لاسه کیدای ځکه رسول الله ﷺ پر هوا باندي د لعنت ويلو څخه منعه وکړه .

﴿۱۴۳۲﴾: وَعَنْ أُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

لاَ تَسُبُّوا الرِّيحَ فَإِذَا رَأَيْتُمْ مَا تَكْرَهُونَ فَقُولُوا اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ

هواء ته بد او رد مه وایاست هر کله چي تاسو وويني چي هواء ستاسو د خوښي خلاف ده نو دا کلمات وایاست (اې الله ! موږ ددې هواء خير غواړو

هَذِهِ الرِّيحِ وَخَيْرِ مَا فِيهَا وَخَيْرِ مَا أُمِرَتْ بِهِ وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ هَذِهِ الرِّيحِ وَشَرِّ مَا فِيهَا وَشَرِّ مَا أُمِرَتْ بِهِ . رواه الترمذي

او هغه خير چي په دې کي دی او د کوم کار لپاره چي دا ماموره سوې ده د هغه خير غواړو او ستا په ذريعه موږ ددې د شر او څه چي په دې کي دي د هغې د شر څخه او په کوم کار چي دا ماموره سوې ده د هغه د شر څخه پناه غواړو) . ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۴\۴۵۱، رقم: ۲۲۵۲.

## د تيز باد پر وخت د نبي کريم ﷺ دعاء

﴿۱۴۳۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَا هَبَّتْ رِيحٌ قَطُّ إِلاَّ جَثَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي کله به تيزه هواء چليدل نو رسول الله ﷺ به

وَسَلَّمَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَقَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا رَحْمَةً وَّلاَ تَجْعَلْهَا عَذَابًا اَللّٰهُمَّ

پر زنګنو کښېنستی او فرمايل به يې (اې الله ! دا هواء رحمت وګرځوې او عذاب يې مه جوړوې اې الله !

اجْعَلْهَا رِيَاحًا وَّلاَ تَجْعَلْهَا رِيحًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالَى (إِنَّا

دا هواء رياح يعني رحمت جوړ کړې ريح يعني زحمت يې مه جوړوې) ابن عباس رضي الله عنهما وايي په قرآن مجيد کي راغلي دي چي : (موږ

أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا) وَ(أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ) (وَأَرْسَلْنَا

پر هغوی تيزه هواء راوليږل او داسي هواء مو پر راوليږل چي درختي به يې د بېخه کښلې ، او ليږلي دي موږ

الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ ) وَ( أَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتَ ) . رواه الشافعي والبيهقي في الدعوات الكبير .

بادونه ميوه پيدا كونكي او الله زيری ليږونكي هواوي ليږي (يعني د باران هوا). شافعي، بيهقي.

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۱۱ ۱۷۵، رقم: ۵۰۲.

**تشريح** : مشهور او صحيح حديث دادی چي لفظ د ريح چي مفرد دی د عذاب پر وخت استعماليږي څرنګه چي په دغه روايت کي ذكر سوی دی، د اولو دوو اياتونو څخه معلومه سوه چي لفظ د رياح چي جمع ده د رحمت پر وخت استعماليږي څرنګه چي د اخري دوو اياتونو څخه ثابته سوه . نو د ابن عباس ﷺ په دغه روايت كي په پورتنۍ دعا كي د رياح څخه مراد عذاب دی مګر ابو جعفر طحاوي رحمة الله عليه په دې صورت كي ظاهر کړی دی ځکه چي په قرآن كريم كي هم دا ارشاد دی چي ( و جرين بهم بريح طيبة ) چي د هغه څخه معلوميږي چي ريح د رحمت او د ذخيرې لپاره استعماليږي .

همداسي په ځينو حديثو كي هم لفظ د ريح چي مفرد دی د خير او شر دواړو لپاره استعماليږي د مثال په توګه د حضرت ابوهريره ﷺ د تير روايت الفاظ ( الريح من روح الله........الخ ) وواياست نو د دې اشکال له کبله خطابي رحمة الله عليه د دغه حديث توجيه دا کړې ده چي کله ډيري هواوي راسي نو هغه وريځ او باران راولي او په فصلونو كي زرغون والی پيدا كوي کله چي په يوه هوا کي دا تاثير کم وي ځکه رسول الله ﷺ دا دعا وفرمايل چي اې الله! دا هوا رياح جوړ کړه، ريح يې مه جوړوه.

## دوريځي ليدلو دعاء

﴿۱۴۳۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَبْصَرْنَا شَيْئًا

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ يو شی وليدی

مِّنَ السَّمَاءِ تَعْنِي السَّحَابَ تَرَكَ عَمَلَهُ وَاسْتَقْبَلَهُ وَقَالَ اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ

پر آسمان يعني وريځ نو کار به يې پرېښودی او وريځي ته به متوجه سو او ويل به يې (اې الله! زه ستا په ذريعه پناه غواړم

مِنْ شَرِّ مَا فِيْهِ فَإِنْ كَشَفَهُ حَمِدَ اللهَ وَإِنْ مَطَرَتْ قَالَ اللّٰهُمَّ سُقْيًا نَافِعًا .

رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه والشافعي واللفظ له .

د هغې د شر څخه چې په دې کې دننه ده) که الله به هغه وريځ صافه کړه نو د الله حمد او ثناء به يې کول او که باران به پيل سو نو فرمايل به يې (اې الله ! ګټه رسونکې اوبه و اوروې).
ابوداؤد، ابن ماجه، نسائي، شافعي

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۱\ ۱۷۴، رقم: ۵۰۱، وابوداؤد: ۵\ ۳۳۰، رقم: ۵۰۹۹، والنسائي ۱۳ ۱۶۴، رقم: ۱۵۲۲، وابن ماجه ۲\ ۱۲۸۰، رقم: ۳۸۸۹.

## د برېښنا پر وخت دعاء

﴿۱۴۳۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَمِعَ صَوْتَ

دحضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې کله به رسول الله ﷺ واوريدی آواز

الرَّعْدِ وَالصَّوَاعِقِ قَالَ اَللّٰهُمَّ لاَ تَقْتُلْنَا بِغَضَبِكَ وَلاَ تُهْلِكْنَا بِعَذَابِكَ وَعَافِنَا

قَبْلَ ذٰلِكَ . رواه أحمد والترمذي وقال هذا حديث غريب .

د برېښنا او برېښنا به يې وليدل نو فرمايل به يې : (اې الله ! موږ په خپل غيظ او غضب سره مه وژنې او په خپل عذاب سره مو مه هلاکوې او دد ې مخکې موږ په امن ولرې) .احمد ،ترمذي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۱۰۰ – ۱۰۱، والترمذي ۵\ ۴۶۹، رقم: ۳۴۵۰.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

﴿۱۴۳۶﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَمِعَ الرَّعْدَ تَرَكَ الْحَدِيْثَ

د حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه څخه روايت دی چې کله به هغه د برېښنا آواز واوريدی نو خبري کول به يې پرېښودلې

وَقَالَ سُبْحَانَ الَّذِيْ يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَالْمَلائِكَةُ مِنْ خِيْفَتِهِ . رواه مالك

او ويل به يې : (هغه ذات پاک دی چې ثناء د هغه په تعريف سره او ملائکې د هغه د ويرې د هغه تسبيح کوي) . مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۹۹۲، رقم: ۲۶.

**تشريح** : رعد د ملائکې نوم دی چې د وريځې پر شړلو باندې ټاکل سوې ده او تالنده د هغه د تسبيح آواز دی، د ابن عباس رضي الله عنه دا روايت نقل دی چې هغه فرمايي يو وار لښکر د حضرت عمر رضي الله عنه سره په سفر کې ملګري وو چې برېښنا او يخ موږ راونيولو، حضرت کعب رضي الله عنه (د دې په لېدو) وويل کوم سړی چې تالندې د اواز په اوريدو سره درې واره دا کلمات ووايي (سبحان من يسبح الرعد بحمده والملائكة من خيفته) نو هغه د دې شيانو څخه محفوظ او مامون وي نو موږ دا کلمات ويل پيل کړل او الله تعالی موږ محفوظ وساتلو د دې څخه معلومه سوه چې پر داسې وخت باندې کله چې وريځ، برېښنا او تالندې ويره راسي نو ددغه الفاظو ويل د زړه د اطمينان او ساتنې لپاره ډېر تاثير کوونکي دي .

============

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَابُ الْجَنَائِز

## د جنازې بيان

د (جنائز) لفظ د جنازې جمع ده او جنازه د لغت په اعتبار د جيم په زير او زور دواړو سره استعماليږي مګر زيات فصيح د جيم په زبر سره دی، کله چې مړی پر تخت باندي وي نو دې ته جنازه وايي ځينو حضراتو ويلي دي چي لفظ د جَنازه يعني د جيم په زور سره د مړي په معنی استعماليږي او جِنازه يعني د جيم په زير سره تابوت او هغه تخت يا چارپايي ته وايي چي پر هغه باندي د مړی په ايښودو سره هغه پورته کوي ځينو حضراتو ددې برعکس ويلي دي يعني جَنازه د جيم په زور سره تابوت يا تخت ته وايي او جِنازه د جيم په زير سره مړي ته وايي.

## بَابُ عِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَ ثَوَابِ الْمَرِيْضِ

### د ناروغ پوښتنه او د ناروغۍ ثواب

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

#### د ناروغ پوښتنه

﴿۱۴۳۷﴾: عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَعُودُوا الْمَرِيضَ وَفُكُّوا الْعَانِيَ. رواه البخاري

وږي ته ډوډۍ ورکړئ د ناروغ پوښتنه وکړئ او بندي خلاص کړئ. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۲\۱۰، رقم: ۵۶۴۹.

**تشريح:** په دغه حديث کي د درو خبرو حکم ورکول کيږي، دا حکم د وجوب على الكفايه په توګه دی ددې مطلب دادی که يو سړی دا احکام پوره کړي نو د پاته خلکو لپاره ددې پوره کول ضروري نه دي مګر د ټولو لپاره په دغو احکامو عمل کول سنت او د ثواب باعث دی هو که

چيري يو سړی هم دا احکام پوره نه کړي نو بيا ټول خلک به د نافرمانۍ په ګناه کي اخته سي.
شيخ عبد الحق دهلوي رحمة الله عليه ليکلي دي چي وږي ته ډوډۍ ورکول هغه وخت سنت ده چي هغه د اضطرار په حالت کي نه وي يعني د هغه د لوږي حالت داسي نه وي که چيري په هغه باندي ډوډۍ نه وخوړل سي نو مړ به سي خو په دې صورت کي هغه ته ډوډۍ ورکول فرض ده چي هغه د اضطرار حالت ته رسيدلی وي، همدارنګه که يو وږی په يو داسي ځای کي وي چيري چي يو نه بلکه څو خلک د هغه وږي د ډوډۍ ورکولو وس و لري نو پر ټولو باندي د هغه په ډوډۍ مړول فرض کفايه دي که په هغوی کي يو چا هم په وږي ډوډۍ وخوړل نو د ټولو خلکو ذمه به خلاصه سي. هو که وږی په يو داسي ځای کي وي چي هلته يوازي يو سړی د قدرت خاوند وي او پاته ټول خلک مفلس او غريبان وي نو پر هغه قدرت والا باندي په وږي ډوډۍ خوړل فرض عين دي همدارنګه د هغه ناروغ سړي پوښتنه سنت ده چي د هغه پوښتنه کونکی وي او د هغه ناروغ پوښتنه کول واجب دي د چا چي هيڅوک پوښتنه کوونکی نه وي.

## د مسلمان پر مسلمان حق

﴿۱۴۳۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقُّ

دحضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حقوق

الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ خَمْسٌ رَدُّ السَّلَامِ وَعِيَادَةُ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ وَ

ديوه مسلمان پر بل مسلمان پنځه دي. ۱- دسلام جواب ورکول ۲- دناروغ پوښتنه کول ۳- دجنازې سره تلل

اِجَابَةُ الدَّعْوَةِ وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ. متفق عليه

۴- بلنه قبلول ۵- دترېچي جواب ورکول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۱۲، رقم: ۱۲۴۰، ومسلم ۴\۱۷۰۴، رقم: ۴- ۲۱۶۲.

**تشريح**: پورتني ياد سوي پنځه شيان فرض کفايه دي، سلام کول سنت دی او هغه د اسلام د حقوق څخه دی څرنګه چي د راتلونکي حديث څخه به معلومه سي مګر سلام کول داسي سنت دی چي د فرض څخه هم افضل دی ځکه چي د سلام کولو څخه نه يوازي دا چي د تواضع (خاکسارۍ) او انکسارۍ اظهار کيږي بلکه دا سنت د واجب ادا کولو سبب هم دی.

د ناروغ پوښتنه او د جنازې سره د تللو د حکم څخه اهل بدعت مستثنی دي يعني د روافض او داسي نور نه خو د هغوی د ناروغۍ پوښتنه کېږي او نه دي څوک د هغوی سره جنازې ته ځي.

د بلني قبلولو څخه مراد دادی که يو سړی پړ د خپلي مرستي لپاره راوبولي نو د هغه بلنه دي قبوله کړل سي او د هغه مرسته دي وکړل سي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د دعوت قبلولو مطلب دادی که يو سړی د مېلمستيا لپاره وبلل سي نو د هغه د بلني په قبولو سره دي د هغه خوا ته ورسي او په مېلمستيا کي دي ګډون وکړي په دې شرط چي ميلمستيا د هيڅ يو داسي حيثيت څخه نه وي چي په هغه کي شرکت د ګناه باعث وي لکه چي امام غزالي رحمة الله عليه فرمايي کومه مېلمستيا چي يوازي د فخر او د نامه له کبله وي په هغه کي دي ګډون نه کوي، د سلفو صحابه کرامو يعني د مخکنۍ زمانې د علماؤ په اړه نقل سوي دي چي هغوی به داسي ميلمستيا غوره نه ګڼل.

د ترچي د جواب ورکولو مطلب دادی که چيري ترچي کونکی الحمد لله ووايي نو د هغه په جواب کي دي يرحمک الله ووايي، په شرح السنة کي ليکلي دي چي د اسلام د دې ټولو حقوقو تعلق د ټولو مسلمانانو سره دی که نېک مسلمان وي او که بد، يعني داسي مسلمان وي چي ګناه کار خو وي مګر بدعتي نه وي نو دا احتياط او امتياز دي په نظر کي ونيول سي چي په ورين تندي سره يو ځاي کيدل او مصافحه کول يوازي د يو نېک مسلمان سره خاص کيدل پکار دي فاجر يعني دبدو او ګناه کوونکو مسلمانانو سره چي په ډاګه ګناه کوي ورين تندی او مصافحه کول ضروري نه ده.

﴿۱۴۳۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى

د حضرت ابو هريره ﷜ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حقونه ديوه مسلمان پر

الْمُسْلِمِ سِتٌّ قِيلَ مَا هُنَّ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ إِذَا لَقِيتَهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَإِذَا دَعَاكَ

بل مسلمان شپږ دی: پوښتنه وسول چي هغه کوم کوم دي. رسول الله ﷺ وفرمايل: ۱- هر کله چي ديو مسلمان سره ووينئ نو سلام اداء کوئ ۲- کله چي څوک بلنه درکړي

فَأَجِبْهُ وَإِذَا اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ وَإِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللهَ فَشَمِّتْهُ

نو دهغه بلنه قبلوه. ۳- څوک چي درڅخه نصيحت يا خيرخواهي وغواړي نو هغه ته خيرخواهي

ورسوه . ۴- كله چي څوک وترچي او الحمد لله ووايي نو دهغه جواب ورکوه (يرحمک الله ووايه)

وَإِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ وَإِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ . رواه مسلم

۵- څوک چي ناروغ سي نو دهغه پوښتنه کوه ٦- څوک چي مړ سي نو دهغه دجنازې سره ځه . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۰۵،رقم: ۵- ۲۱٦۲.

**تشريح** : (و اذا مرض ......الخ ) : مطلب دادی چي کله يو مسلمان ناروغ سي نو د هغه عيادت او پوښتنه کول پکار دي که څه هم پوښتنه او عيادت يو وار وکړل سی، په دې اړه دا فکر کول پکار دی چي ځيني خلک دا وايي چي په ځينو ورځو کي د ناروغ پوښتنه کول نه دي پکار نو د دې هيڅ اصل نسته دا بالکل غلطه خبره ده .

په دغه حديث کي د اسلام شپږ حقوق ښودل سوي دي، په تېر حديث کي د حقوقو شمېر پنځه بيان سوی دی ګويا په دغه حديث کي د خيرخواهۍ نور هم ذکر سوی دی نو په دې باره کي په دې پوهيدل پکار دي چي په حديث کي د حقوقو چي کوم شمير ذکر سوی دی هغه د احاطه کولو په توګه نه دی بلکه حقيقت دادی چي د يو مسلمان پر بل مسلمان ډير زيات حقوق دي چي هغه درجه پر درجه په مختلفو حديثو کي لږ لږ بيان سوي دي، دا هم کيدای سي چي دا احکام د وحي په ذريعه همداسي درجه په درجه نازل سوي وي يعني مخکي خو د پنځو حقوقو حکم نازل سوی وه او بيا د شپږو حقوقو احکام نازل سول .

﴿۱۴۴۰﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ

دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبی کريم ﷺ موږ ته داوو شيانو امر راکړئ

وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ أَمَرَنَا بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ

او د اوو شيانو څخه ئې منعه کړو. موږ يې امر کړو :۱- دناروغه د پوښتني ۲- دجنازې سره دتلو ۳- دترچي دجواب ورکولو

وَرَدِّ السَّلَامِ وَإِجَابَةِ الدَّاعِي وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَنَصْرِ الْمَظْلُومِ نَهَانَا عَنْ خَاتَمِ

۴- دسلام دجواب ورکولو ۵- د بلونکي د بلني قبلولو ۶- دقسم خوړونکی دقسم دربښتيا کولو ۷- او دمظلوم سره د مرستي کولو. او منعه ئې کړو :۱- د ګوتمۍ څخه

الذَّهَبِ وَ عَنْ الْحَرِيرِ وَالْإِسْتَبْرَقِ وَالدِّيبَاجِ وَالْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ وَالْقَسِّيِّ

د سرو زرو، ۲- دريښمنو جامو داغوستلو څخه ۳- د سره څين دپوښ داستعمالولو څخه ۴- دقسي جامو څخه چي دوريښمو او كتان څخه جوړ سوي وي

وَآنِيَةِ الْفِضَّةِ . و في رواية وعن الشرب في الفضة فانه من شرب في الفضة

۵- دسپينو زرو دلوښو داستعمال څخه ۶- داطلس جامو داستعمال څخه ۷- دوريښمنو جامو داغوستلو څخه. او په يو بل روايت كي داالفاظ هم سته چي نبي كريم ﷺ منعه كړې ده دسپينو زرو په لوښي كي داوبو چيښلو څخه،

فانه من شرب فيها في الدنيا لم يشرب فيها في الاخرة . متفق عليه

ځكه چي يو څوک په دنيا كي دسپينو زرو په لوښي كي اوبه چيښي نو په اخرت كي به اوبه دسپينو زرو په لوښي كي ورپه برخه نه سي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۱۲، رقم: ۱۲۳۹، ومسلم: ۱۶۳۵\۱۳، رقم: ۳- ۲۰۶۶.

**د لغاتو حل**: (الاستبرق): الديباج، الحرير، الغليظ (وريښم). (الميثرة): نوع من مراكب العجم تعمل من حرير او ديباج. (القسي): ضرب من كتان مخلوط بحرير.

**تشريح**: د قسم كوونكي د قسم پوره كولو مطلب دادی كه چيري يو سړی ديو پيښېدونكي خبري په باره كي قسم واخلي او هغه د قسم په پوره كولو باندي قادر وي او په هغه كي گناه هم نه وي نو تاته هغه قسم پوره كول پكار دي د مثال په توگه يو سړی تا په مخاطب كولو سره تا ته قسم واخلي چي زه به ستا څخه نه جلا كېږم تر څو تا فلانی كار نه وي كړی نو اوس كه چيري ته په هغه كار باندي قادر وې نو هغه كار وكړه تر څو د هغه قسم مات نه سي .

ځيني حضرات فرمايي چي ددې مطلب دادی كه يو سړی چاته دا قسم وركړي چي قسم په خدای ته دا كار وكړه نو د هغه سړي لپاره هغه كار مستحب دی چي د پروردگار د نامه د تعظيم له كبله هغه كار وكړي كه څه هم واجب نه دی .

د مظلوم د مرستي كولو په تشريح كي علماؤ ليكلي دي چي د مظلوم سره مرسته كول واجب ده او په دې حكم كي مسلمان او ذمي دواړه برابر شريک دي يعني څرنگه چي د يو مظلوم مسلمان مرسته كول واجب ده همداسي د هغه ذمي مرسته كول هم واجب ده كوم چي د

اسلامي رياست تابعدار اوسېدونكى وي او محصول ادا كوي، او بيا د مرستي لفظ هم عام دى كه د ژبي د مرستي ضرورت وي نو په ژبه او قول دوارو سره دي مرسته وكړل سي او كه د فعلي مرستي ضرورت پې وي نو د فعل او عمل په ذريعه دي د هغه مرسته وكړل سي.

(ميثره) : د هغه زين پوښ ته وايي چي هغه د پمبوو څخه ډک سوى وي او هغه چي د آس او داسي نورو په زين اچول كيږي او پر هغه كښيني هغه ته (نمد زين) هم وايي د دنيا لرونكو دا يو عادت دى چي هغوى دغه د زين پوښ د تكبر او غرور له مخي د ريښمو او داسي نورو څخه جوړوي ددې مسئلې حكم دادى كه هغه زين پوش د ريښمو وي كه د هر رنګ لرونكى وي نو هغه حرام دى هو كه چيري د رېښمو نه وي بلكه د سره رنګ وي نو د هغه استعمال مكروه دى كه د سره رنګ نه وي نو د هغه په استعمال كي څه پرواه نسته.

(قسي) د يو جامې نوم دى چي د ريښمو او كتانو څخه به جوړيدل او د (قس) خواته به منسوب كيدل چي د مصر د يوې سيمي نوم دى.

په حديث شريف كي د سپينو زرو د لوښي د استعمال څخه منعه راغلې ده همداسي د سروزرو د لوښي استعمال هم منعه دى بلكه د سروزرو د لوښي په استعمالولو كي د سپين زرو د لوښي تر استعمالولو زياته ګناه ده، په دې حديث كي چي د كومو شيانو څخه منعه سوې ده د هغو اړه يوازي د خلكو سړه ده د ښځو سره نه ده مګر د سپينو زرو د لوښي د استعمال ممانعت د خلكو او ښځو دواړو لپاره يو ډول دى.

د حديث اخري الفاظ چي په آخرت كي به هغوى ته د سپينو زرو په لوښو كي څښښل نه په برخه كيږي ددې صحيح وضاحت دادى چي كوم سړي په دنيا كي د سپينو زرو لوښي استعمال كړل نو هغه ته به په اخرت كي تر هغه وخته پوري چي د هغه د عذاب وخت ختم نسي د سپينو زرو په لوښي كي څښښل نه په برخه كيږي، يا د وقوف او حساب په وخت به هغه ته د سپينو زرو په لوښي كي څښښل نه نصيب كيږي يا دا هم ويل كيداى سي چي په جنت كي د داخليدو وروسته به هم هغه تر يو څه وخته پوري د دغه لوښو څخه محروم وي او بيا وروسته به دا پابندي د هغه څخه ختمه سي، او همدارنګه ددې حديث شريف څخه مراد دادى چي نارينه يې د وريښمو د اغوستلو څخه منع كړي دي، فرمائي چي (من لبسه في الدينا لم يلبسه في الآخرة) يعني كوم سړى چي په دنيا كي رېښم واغوست د هغه به په آخرت كي ريښم اغوستل نه نصيب كيږي همداسي ددې حديث هم دا وضاحت دى چي په هغه كي د شرابو په باره كي فرمايل سوي دي چي (من شربها في الدنيا لم يشربها في الآخرة) يعني چاچي په دنيا كي شراب وڅيښل د هغه

به په اخرت کي شراب څيښل نه په برخه کيږي .

## د ناروغ د پوښتني ثواب

﴿۱۴۴۱﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا عَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ لَمْ يَزَلْ فِي خُرْفَةِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَرْجِعَ . رواه مسلم

د حضرت ثوبان ﷛ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي يو مسلمان د بل مسلمان ورور د ناروغی پوښتنه کوي نو هميشه د جنت د ميوې په خوړو کي وي (د جنت د مېوو د خوړلو اهل وی) تر څو چي د هغه ناروغ د پوښتني څخه بيرته راوګرځي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم : ۴\۱۹۸۹، رقم: ۴۱- ۲۵۶۸.

**د لغاتو حل**: (خُرفة الجنة): ای روضتها.

**تشريح** : مطلب دادی چي کله يو مسلمان د خپل ناروغ ورور پوښتني ته ځي نو تر څوپوري چي هغه د ناروغ د پوښتني د فارغه کيدو سره بيرته ستون نسي نو تر هغو پوري د الله تعالی د رحمتونو او برکتونو څخه فيضياب کيږي، او د هغه ثمره دا وي چي هغه د خپل انساني او اخلاقي همدردی له کبله د جنت او د جنت د ميوو خوړلو وړ ګرځي .

## د ناروغ د پوښتني ثواب

﴿۱۴۴۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله ﷻ به

عَزَّ وَجَلَّ يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَا ابْنَ آدَمَ مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِي قَالَ يَا رَبِّ

د قيامت په ورځ وفرمايي : اې انسانه ! زه ناروغ سوم ، مګر تا زما پوښتنه ونه کړه ، هغه به جواب ورکړي ، اې زما پروردګاره !

كَيْفَ أَعُودُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ قَالَ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ عَبْدِي فُلَانًا مَرِضَ

ما څنګه ستا پوښتنه کړې وای ، ته په خپله د دواړو جهانو پالونکی يې ، خدای ﷻ به ورته ووايي چي ايا ستا په ياد نه دي چي زما فلانی بنده ناروغ سو

فَلَمْ تَعُدْهُ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ عُدْتَهُ لَوَجَدْتَنِي عِنْدَهُ يَا ابْنَ آدَمَ اسْتَطْعَمْتُكَ

او تا دهغه پوښتنه ونه کړه، که تا دهغه پوښتنه کړې وای نو زه به دي هلته پیدا کړې وای (زما رضا به دي هلته پیدا کړې وای) بیا به خدای ﷻ پوښتنه وکړي چې اې انسانه! ما ستا څخه ډوډۍ وغوښته

فَلَمْ تُطْعِمْنِي قَالَ يَا رَبِّ وَكَيْفَ أُطْعِمُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ قَالَ أَمَا عَلِمْتَ

او تا ډوډۍ رانه کړه، هغه به په جواب کي ووايي : اې پروردګار! ما تا ته څنګه ډوډۍ درکړې وای ته خو د دواړو جهانو پالونکی يې. خدای ﷻ به وفرمايي : ستا په یاد نه دي چې

أَنَّهُ اسْتَطْعَمَكَ عَبْدِي فُلاَنٌ فَلَمْ تُطْعِمْهُ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ أَطْعَمْتَهُ لَوَجَدْتَ

زما فلانی بنده تاته د ډوډۍ غوښتلو لپاره راغلی وو تا هغه ته ډوډۍ ورنه کړه، که تا هغه ته ډوډۍ ورکړې وای نو دهغې ثواب به دي

ذَلِكَ عِنْدِي يَا ابْنَ آدَمَ اسْتَسْقَيْتُكَ فَلَمْ تَسْقِنِي قَالَ يَا رَبِّ كَيْفَ أَسْقِيكَ

زما سره موندلی وای. بیا به خدای ﷻ پوښتنه وکړي چې اې انسانه ! ما ستا څخه اوبه وغوښتلې او تا اوبه رانه کړې. هغه به عرض وکړي چې اې پروردګاره! ما تاته اوبه څنګه درکړې وای،

وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ قَالَ اسْتَسْقَاكَ عَبْدِي فُلاَنٌ فَلَمْ تَسْقِهِ أَمَا عَلِمْتَ إِنَّكَ

ته خو د دواړو جهانو پالونکی يې. خدای ﷻ به وفرمايي زما فلاني بنده ستا څخه اوبه وغوښتلې اوتاهغه ته اوبه ورنه کړې، تا ته معلومه نه ده که چیري تا

لَوْ سَقَيْتَهُ وَجَدْتَ ذَلِكَ عِنْدِي. رواه مسلم

هغه ته اوبه ورکړې وای نو دهغه ثواب به دي زما سره موندلی وای. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۹۹۰\۱۴، رقم: ۴۳- ۲۵۶۹.

**تشریح**: په حدیث شریف کي ذکر سوي دي چې په دغه صورتونو کي په اول صورت یعني د عیادت کولو او په وروسته دواړو صورتونو کي دا فرق دی چې الله تعالی به د ناروغ د پوښتني په باره کي دا فرمايي که تا د ناروغ عیادت کړی وای نو زه به دي د هغه سره پیدا کړی وای، د ډوډۍ خوړلو او اوبه څښلو په باره کي به فرمايي که تا ډوډۍ باندي خوړلې وای یا دا که تا اوبه باندي څښلي وای نو د هغه ثواب به دي زما سره وای ددې څخه معلومه سوه چې د ناروغ پوښتنه کول، وږي ته د ډوډۍ ورکولو او تږي ته د اوبو ورکولو غوره دي.

## ناروغ ته تسلي ورکول

﴿۱۴۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى اَعْرَابِيٍّ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دي چي نبي کريم ﷺ د صحرايي د پوښتني لپاره ولاړی،

يَعُوْدُهُ وَكَانَ اِذَا دَخَلَ عَلٰى مَرِيْضٍ يَعُوْدُهُ فَقَالَ لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ

د نبي کريم ﷺ عادت مبارک دا وو چي ديو ناروغ د پوښتني لپاره به ورتلی نو د هغه سره به کښېنستئ او فرمايل به يې : لاباس طهور ان شاء الله (څه اندېښنه نسته، ته په ناروغۍ مه خفه کېږه داستا پاکوونکې ده)

فَقَالَ لَهُ لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ قَالَ كَلَّا بَلْ حُمًّى تَفُوْرُ عَلٰى شَيْخٍ كَبِيْرٍ

نو هغه صحرايي ته يې هم داسي وفرمايل: لاباس طهور ان شاء الله (څه اندېښنه نسته په ناروغۍ مه خفه کېږه داستا پاکوونکې ده) ، صحرايي چي د نبي کريم ﷺ دا الفاظ واورېدل نو يې وويل داسي نه ده بلکه دا يوه داسي تبه ده چي په ډېر سپين ږيری سړی جوش وهی ،

تُزِيْرُهُ الْقُبُوْرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَعَمْ اِذَنْ. رواه البخاري.

او هغه به قبر ته ورسوی ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : او داسي به کيږی . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۰\۱۲۱، رقم: ۵۶۶۲.

**تشريح** : دا حديث د رسول الله ﷺ د کمال تواضع او مساوات عملي نمونه ده چي رسول الله ﷺ د يو صحرائي د عيادت لپاره تشريف يووړ گويا رسول الله ﷺ خپله په دې ښه عمل سره امت ته تعليم ورکړ چي يوازي د هغو خلکو د پوښتني لپاره تلل نه دي پکار چي تر ځان لوړ وي يا هم مرتبه وي بلکه د هغو خلکو پوښتنه هم پکار ده چي په يو حيثيت سره تر ځان کم او د ادنی درجې وي .يعني رسول الله ﷺ هغه صحرائي ته د خپل ناراضگۍ اظهار وفرمايه چي زه خو ستا مخکي د ناروغۍ ثواب وړاندي کوم او ته د دې نعمت څخه انکار کوې که ستا دا خيال وي نو بيا پوه سه چي همداسي به وي ځرنگه چي ته وايې ځکه چي د نعمت د ناشکري کولو سزا داده چي هغه د هغه نعمت څخه محروم سي .

د صحرائي دا رويه او د هغه د خبرو په وجه کيداى سي چي هغه کافر وي خو علماؤ ليکلي دي چي صحيح خبره داده چي هغه مسلمان وو خو بې عقل او ناپوه وو ځکه د ناروغۍ د تکليف

او د سخت درد په وجه يې دا دول الفاظ د ژبې څخه را وايستل.

**د ناروغ لپاره دعاء**

﴿۱۴۴۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اشْتَكٰى مِنَّا

دحضرت عائشې ﷺ څخه روايت دي چي كله به په موږ كي يو څوک ناروغ سو

اِنْسَانٌ مَسَحَهُ بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ قَالَ أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي

نو نبي كريم ﷺ به خپل راسته لاس پر هغه را تير كړئ او فرمايل يې: اَذهِب ...... سَقَمًا (اې دخلكو پروردګاره، ناروغي ليري كړې او شفا وركړې ته شفا وركونكى يې،

لَا شِفَاءَ اِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا. متفق عليه

نسته شفا خو شفا ستا هغه شفا چي هيڅ ناروغي نه پرېږدي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۳۱، رقم: ۵۶۷۵، ومسلم ۱۴\۱۷۲۱، رقم: ۴۶- ۲۱۹۱.

---

﴿۱۴۴۵﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ اِذَا اشْتَكٰى الْاِنْسَانُ الشَّئُ مِنْهُ اَوْ كَانَتْ بِهٖ قَرْحَةٌ

دحضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی: كله چي به د يو چا په خپل بدن كي ديوه ځايه څخه شكايت وكړئ د درد يا يوې ناروغۍ له كبله

اَوْ جُرْحٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاِصْبَعِهٖ بِسْمِ اللّٰهِ تُرْبَةُ اَرْضِنَا

او يا د يو بل شي څخه د هغه په بدن كي، د ننكي يا د زخم له كبله، نو رسول الله ﷺ به خپله ګوته پورته كړل او وبه يې فرمايل. بسم الله .......... باذن ربنا (دخداى ﷻ په نامه سره بركت ترلاسه كوم، موږ دمځكي دا خاوره

بِرِيقَةِ بَعْضِنَا يُشْفَى سَقِيْمُنَا بِاِذْنِ رَبِّنَا. متفق عليه

زموږ دځينو خلكو دخولې دناوړو لړلې ده زموږ چي دپروردګار په امر زموږ ناروغ لره شفاء وركړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۰۶، رقم: ۵۷۴۳، ومسلم ۱۴\۱۷۲۴، رقم: ۵۴- ۲۱۹۴.

**تشريح** : ويل كيږي چي په دې اړه د رسول الله ﷺ دا طريقه وه چي رسول الله ﷺ به خپلې ناړې مباركي په خپله گوته لگولې او هغه به يې پر خاورو ايښوولې بيا به يې هغه په خاورو لړلې گوته د هغه درد پر ځاي په ايښودو سره پر هغه اندام ايښودل او ذكر سوې دعا يعني ( بسم الله ......الخ ) به يې ويل .

د دانو او زخمو د علاج په اړه د رسول الله ﷺ دا طريقه او دعاء په حقيقت كي د رموز الهي څخه يو راز دی چي رسول الله ﷺ په پوهيدی او زموږ عقلونه ددغه راز حقيقت ته د رسيدو څخه عاجز دي بيا هم قاضي بيضاوي د احتمال له مخي ليكلي دي چي د طبي نقطې د نظره دا خبره ثابته ده چي د مزاج بدلولو په اړه د خولې ناړي ډيري موثري دي همداسي مزاج پر خپل حالت د برقرار ساتلو لپاره د وطن خاوره ډير تاثير لري تر دې چي حكيمان، عالمان، طبيبان، ساينس پوهان ليكي چي مسافر ته پكار ده چي د خپل ځان سره د خپل وطن څه خاوره د اوبو په لوښي كي واچوي او د هغه لوښي څخه د سفر په دوران كي اوبه څښي .نو كيداي سي چي رسول الله ﷺ په دې وجه دا طريقه اختيار كړې وي او نورو شارحينو هم د دې توجيهات بيان كړي دي خو هغه ټول د احتمال په درجه كي دي صحيح خبره داده چي دا د الله ﷻ يو نياز دی چي د هغه حقيقت ته زموږ د عقلو رسېدل ممكن نه دي يعني زمونږ عقلونه دې ته نسي رسېدلاي .

مولانا اشرف علي رحمة الله عليه ويلي دي چي دا حديث رقيه يعني د جادو پر جائز كيدو دلالت كوي په شرط ددې چي په هغه جادو كي د كفر گډون نه وي لكه جادو يا كلمه كفر او شرك او داسي نور، او په دې اړه مسئله داده چي منتر كه څه هم د كومي ژبي وي د هندي ،اردو، عربي، فارسي، تركي او پښتو وغيره وي د هغه ويل تر هغه وخته پوري نه دی صحيح تر څوپوري چي د هغه معنی نه وي معلومه سوې ځكه چي كيداي سي چي په دې كي د كفر الفاظ وي هو په حديث كي يوورد ( بسم الله شجة قرنية ......الخ ) د لړم د چيچلو لپاره منقول دی كه څه هم د دې معنی نه ده معلومه مگر ويل يې جائز دي .

## په آياتونو سره دم كول

《۱۴۴۶》: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اشْتَكٰى نَفَثَ عَلٰى

دحضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ ناروغ سو

نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَمَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهِ فَلَمَّا اشْتَكَى وَجَعَهُ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ كُنْتُ

نو قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس (سورتونه) به يې پر ځان دم كول او پر بدن به يې لاس تيروی . تر كوم ځايه پوری به چي د نبی كريم ﷺ لاس رسېدی ، نبی كريم ﷺ چي كوم وخت په هغه ناروغی كي پرېوتی په كوم كی چي وفات سو

اَنْفُثُ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ الَّتِيْ كَانَ يَنْفُثُ وَاَمْسَحُ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

نو دا دواړه سورتونه به ما لوستل ، د نبی كريم ﷺ په لاسونو به مې دم كول او بيا به مې د نبی كريم ﷺ لاسونه د هغه پر بدن را تيرول .

وَسَلَّمَ . متفق عليه ، وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَتْ كَانَ اِذَا مَرِضَ اَحَدٌ مِّنْ اَهْلِ بَيْتِهِ نَفَثَ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ .

بخاري او مسلم . او د مسلم په يوه روايت كي دا الفاظ راغلي دي چي عائشې (رض) وفرمايل د كور په خلكو كی به چي څوک ناروغه سو ، نو نبی كريم ﷺ به دواړه سورتونه پر چف كول .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۱۳۱، رقم: ۴۴۳۹، ومسلم ۴\ ۱۷۲۴، رقم: ۵۴- ۲۱۹۴.

**تشريح** : د معوذات څخه مراد قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس سورتونه دي په حديث كي معوذات د جمعې په صيغه د اياتو په اعتبار فرمايل سوي دي يا دا چي اقل جمع تر ټولو كمه درجه دوه دي ځكه د دې دواړو سورتونو لپاره د جمع صيغه استعمال سوې ده او دا هم ويل كيداى سي چي د معوذات څخه مراد درې سورتونه دي يعني قل اعوذ برب الفلق قل اعوذ برب الناس او قل هو الله احد ، او دې درو ته د معوذات نوم غالبا وركړل سوی دی دا خبره زياته د اعتماد وړ ده ، ځينو حضراتو ويلي دي چي په معوذاتو كي د دې درو سورتونو څخه ماسيوا قل يا ايها الكافرون هم داخل دی والله اعلم .

د مسلم په دوهم روايت كي د لاس ګرځولو ذكر نسته په دې هكله دا هم احتمال سته چي رسول الله ﷺ به دم كولو سره لاس هم ګرځوی ، مګر دلته د دې ذكر ځكه نه وسو چي په دم كولو سره د لاس ګرځول خپله مفهوم كيږي هلته دا هم احتمال دی چي رسول الله ﷺ دم لاس هم ګرځوي همداسي په ځني وختونو كي يوازي په دم كولو باندي اكتفاء كړې وي او لاس بې نه

وي کړځولی مګر صحيح او حقيقت ته نژدې هغه وضاحت دی کوم چې مخکې بيان سوئ دی او اولي هم دادی چې دم هم وکړل سي او لاس هم پر راتېر کړي.
دا حديث شريف په دې خبره دلالت کوي چې د الله تعالى اياتونه ويل او په ناروغ دم کول سنت دي.

## د بدن د درد لپاره دعاء

﴿۱۴۴۷﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ ابْنِ اَبِي الْعَاصِ اَنَّهُ شَكَا اِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

دحضرت عثمان بن ابو العاص رضي الله عنه څخه روايت دی چې هغه نبي کريم ﷺ ته شکايت وکړ

وَسَلَّمَ وَجَعًا يَجِدُهُ فِي جَسَدِهِ مُنْذُ أَسْلَمَ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د هغه درد کوم چې دهغه پر بدن وو . رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل ،

وَسَلَّمَ ضَعْ يَدَكَ عَلَى الَّذِي تَأَلَّمَ مِنْ جَسَدِكَ وَقُلْ بِاسْمِ اللّٰهِ ثَلَاثًا وَقُلْ

کوم ځای چې ستا په بدن کي درد کوي هلته لاس کښېږده . درې واره (بسم الله) ووايه او

سَبْعَ مَرَّاتٍ أَعُوذُ بِاللّٰهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَأُحَاذِرُ قَالَ فَفَعَلْتُ فَأَذْهَبَ اللّٰهُ مَا كَانَ بِي . رواه مسلم .

اووه واره (اعوذ بعزة الله و قدرته من شر ما اجد واحاذر) ووايه، عثمان رضي الله عنه وايي ما داسي وکړل خدای جل جلاله زما څخه هغه درد بوتلی يعني جوړ سوم . مسلم .

**تخريج:** صحيح مسلم ۱۴\۱۷۲۸، رقم: ۶۷- ۲۲۰۲.

## د جبرائيل عليه السلام دعاء

﴿۱۴۴۸﴾: وَعَنْ اَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ جِبْرِيلَ أَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ يَا

دحضرت ابو سعيد خدری رضي الله عنه څخه روايت دي چي جبرئيل عليه السلام د نبی کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او ويې ويل :

مُحَمَّدُ اشْتَكَيْتَ فَقَالَ نَعَمْ قَالَ بِاسْمِ اللّٰهِ أَرْقِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ

ای محمده ! ایا ته ناروغ یې ؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل : هو . جبرئیل ؑ ورته وویل : بسم الله ارقیک .... (دخدای ﷻ په نامه پر تا دم کوم د هر هغه شي څخه چي تا ته تکلیف درکوي

مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ اللَّهُ يَشْفِيكَ بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ . رواه مسلم

د هر هغه چا د بدۍ څخه او د هر حاسد د نظر څخه ، الله تعالی دي تا ته شفا درکړي، دخداي ﷻ په نامه پر تا دم کوم) مسلم.

**تخریج** : صحیح مسلم ۴\۱۷۱۸، رقم: ۴۰- ۲۱۸۶.

## د ناوړه پیښي څخه د پناه لپاره

﴿۱۴۴۹﴾ : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَوِّذُ الْحَسَنَ

د حضرت ابن عباس ؓ څخه روایت دی چي نبی کریم ﷺ به خپل لمسیان حسن او حسین رضی الله عنهما په دې الفاظو سره دخدای ﷻ په پناه کي ورکول :

وَالْحُسَيْنَ أُعِيذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ وَمِنْ كُلِّ

اعیذ کما ... (یعنی ای حسن او حسین زه تاسو د خدای ﷻ د پوره کلماتو په پناه کي ورکوم ، د هر شیطان د بدی څخه ، او د هر زهرجن حیوان څخه ، او د هر

عَيْنٍ لَامَّةٍ وَيَقُولُ إِنَّ أَبَاكُمَا كَانَ يُعَوِّذُ بِهَا إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ. رواه البخاري

و في اكثر نسخ المصابيح بهما على لفظ التثنية.

نظر لګونکی دسترګو څخه) او نبی کریم ﷺ به دا هم فرمایل : چي ستاسو پلار یعنی حضرت ابراهیم ؑ به ددې کلماتو په ذریعه خپل زامن اسماعیل ؑ او اسحق ؑ (دخدای ﷻ) په پناه کي ورکول ،دمصابیح په اکثرو نسخو کی د((بها)) پر ځای ((بهما)) دئ . بخاري .

**تخریج** : صحیح البخاري (فتح الباري): ۶\۴۰۸، رقم: ۳۳۷۱.

**د لغاتو حل** : (لَامَّة): ای جامة للشر.

**تشریح** : د کلمات الله تعالی څخه مراد یا خو د الله تعالی معلومات دی یا د هغه اسماء مبارک همداسي د هغو کتابونو څخه هم مراد کیدای سي .د هر شیطان د بدي څخه مطلب دی هر

سرکش او دتر حد تير د بدۍ څخه که هغه د خلکو څخه وي او که د پيريانو څخه وي يا د حيوانانو څخه.

(هامه) هغه زهروالا حيوان ته وايي چي د هغه په چيچلو سره انسان مړسي لکه مار او داسي نور، د کم زهروالا حيوان په چيچلو سره چي سړی نه مړکيږي هغه ته هامه وايي لکه لړم، مچ موچۍ، سمساره او داسي نور او په ځينو وختونو کي هوام د هامه جمع ته وايي د روايت د آخري الفاظو مطلب دادی چي دلته کوم حديث نقل سوئ دی د هغه الفاظ (ان ابا کما کان يعوذ بها) کي د لفظ بها ضمير مفرد سره نقل سوی دی حال داچي د مصابيح په اکثرو نسخو کي پر دې ځای باندي بهما ضمير په تثنيه سره دی د دې مطلب دادی چي ددې ضمير تثنيه به د حديث د دواړو جملو من شر کل شيطان او من کل عين لامة خوا ته راجع دی مگر په دې کي خامخا تکلف دی ځکه علامه طيبي رح ويلي دي چي په کمو نسخو کي چي بهما د تثنيه د ضمير سره ليکل سوي دي هلته د کاتب څخه خطا سوې ده صحيح بها يعني د مفرد په ضمير سره دی.

**تکليف او ستونزه د الله ﷻ رحمت دی**

﴿۱۴۵۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدُ اللّٰهُ بِهِ خَيْرًا يُصِبْ مِنْهُ. رواه البخاري

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا سره چي الله تعالی د ښو کولو اراده وکړي نو هغه په ستونزه کي و اچوي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۰۳، رقم: ۶۵۴۵.

**تشريح**: مصيبت هر هغه شي ته وايي چي زړه يې قبول او خوښ نه کړي، ددغه حديث څخه معلومه سوه چي مصيبت که د تکليف او ناجوړۍ په شکل کي وي يا ديو پيښي يا د صدمې په شکل کي وي هميشه د الله د قهر او عذاب په توگه نه راځي بلکه داسي هم کيږي چي په کوم بنده باندي الله تعالی د خپل فضل او کرم سايه کول غواړي او هغه د خير او نيکۍ پر لار روانول غواړي نو هغه په يو مصيبت کي اخته کوي چي په هغه سره نه يوازي د هغه گناه ليري کيږي بلکه د هغه زړه او د ماغ د مصيبت سختي سره مجلي او مصفا کولو سره د خير او نيکي نور صلاحيت پکښي پيدا کوي ددې څخه معلومه سوه که يو بنده پر يو مصيبت او تکليف باندي صبر وکي او راضي سي نو دا به ددې خبري نښه وي چي دا مصيبت به د هغه لپاره په لمن کي د

الله ﷻ رضا او رحمت راوړي.

هو که یو بنده پړ یو مصیبت باندي د صبر او توکل لمن نه پریښودو سره ژړا او فریاد کول شروع کړي او خفه سي نو ددې صاف مطلب به دا وي چي دا مصیبت د هغه په حق کي رحمت نه بلکه د الله تعالی عذاب دی.

## د تکلیف له کبله ګناه معافیدل

﴿۱۴۵۱﴾: وَعَنْهُ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت ابو سعید خدری ﷺ څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

قَالَ مَا يُصِيبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلَا وَصَبٍ وَلَا هَمٍّ وَلَا حُزْنٍ وَلَا أَذًى وَلَا

مسلمان ته چي کوم رنځ، تکلیف، فکر، غم او څه ضرر رسیږي

غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا إِلَّا كَفَّرَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ. متفق علیه

تر دې چي یو اغزی ئې پکښي مات سي نو الله تعالی د هغه له کبله د هغه ګناه لیری کوي.

بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۰۳، رقم: ۵۶۴۱، ومسلم ۴\۱۹۹۳، رقم: ۵۲- ۲۵۷۳.

**تشریح**: د (هم او حزن) معناوي تقریبا یو دي لیکن دومره فرق دی چي هم د راتلونکي واقع کیدونکي سره اړه لري یعني که یو داسي مشکل کار پېښېدونکی وي چي د هغه په کولو یا نه کولو سره خفګان رسیږي نو هلته (هم) استعمالیږي او د غم تعلق د تیري سوي واقعې سره وي.

په هر حال د حدیث حاصل دا دی که یو مسلمان ته څه ډول تکلیف او غم ورسیږي نو هغه د صغیره ګناهونو د لیري کېدو ذریعه جوړیږي.

## پر رسول الله ﷺ د ناروغۍ سختي

﴿۱۴۵۲﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روایت دي چي زه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُوعَكُ فَمَسَسْتُهُ بِيَدِي فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّكَ لَتُوعَكُ

هغه وخت د نبي کریم ﷺ تبه وه، ما د نبي کریم ﷺ پر بدن باندي لاس کښېښودئ او عرض مي

وكړ . اې د الله رسوله! ستاسو هم سخته تبه كيږي ؟

وَعْكًا شَدِيدًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجَلْ إِنِّي أُوعَكُ كَمَا يُوعَكُ

نبي كريم ﷺ وفرمايل : هو ! زما هم تبه كيږي ، دومره تبه كوم چي تاسو دوو كسانو ته راځي .

رَجُلَانِ مِنْكُمْ قُلْتُ ذَلِكَ لِأَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ فَقَالَ أَجَلْ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ

ابن مسعود رضي الله عنه وايي ، ما عرض وكړ ، اې د الله رسوله! د دې غالبه وجه داده چي تاسو دوه چنده ثواب تر لاسه كړئ؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل : هو ! او د دې وروسته يې وفرمايل : هيڅ يو مسلمان داسي نسته

يُصِيبُهُ أَذًى مِّنْ مَّرَضٍ فَمَا سِوَاهُ اِلاَّ حَطَّ اللهُ بِهِ سَيِّئَاتِهِ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا . متفق عليه

چي هغه ته د يو ناروغي څخه تكليف ورسيږي ، يا د دې څخه پرته بل يو تكليف ترڅو چي الله جل جلاله دهغه په وجه د هغه ګناهونه ليرى كړي لكه د درختي څخه چي وچي پاڼى رژيږى . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ١١١\١٠، رقم: ٥٦٤٨، ومسلم ١٩٩١\٤، رقم: ٤٥- ٢٥٧١.

﴿١٤٥٣﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَشَدَّ عَلَيْهِ الْوَجَعُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه

د بى بى عائشي رضي الله عنها څخه روايت دئ چي ما دهيچا ناروغي دومره سخته نه وه ليدلې ، څومره چي د رسول الله ﷺ ناروغي وه .مسلم او بخاري

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ١١٠\١٠، رقم: ٥٦٤٦، ومسلم ١٩٩٠\٤، رقم: ٤٤- ٢٥٧٠.

## د مرګ سختي د درجو لوړي ده

﴿١٤٥٤﴾ : وَعَنْهَا قَالَتْ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ حَاقِنَتِي وَذَاقِنَتِي

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زما دغاړي او زني په مينځ (غيږ)

كي وفات سو ،

فَلَا أُكْرَهُ شِدَّةَ الْمَوْتِ لِأَحَدٍ أَبَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه البخاري

له دې كبله د نبی كريم ﷺ څخه وروسته دهیچا د مرگ سختي بده نه گنم . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) : ۸/ ۱۴۰، رقم: ۴۴۴۶.

**د لغاتو حل**: (الحاقنة) : الوهدة المنخفضة بين الترقوتين، والذاقنة : الذقن.

**تشريح** : د بي بي عائشې رضي الله عنها په ارشاد كي د مخكنيو خبرو مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ وفات په داسي حال كي وسو چي د رسول الله ﷺ سر مبارک زما د سينې او غاړي په منځ كي پروت وو نو زه ښه پوهيدم چي هغه وخت رسول الله ﷺ د زكندن په څومره سخت حالت كي وو او د رسول الله ﷺ مرگ څومره سخت وو .

د حديث دوهم جزء (فلا اكره شرة الموت ) مطلب دادی چي مخكي خو ما دا گڼله چي د زكندن د حالت تكليف او د مرگ سختي د گناهونو د كثرت په وجه وي مگر ما چي د رسول الله ﷺ مرگ وليدلو نو ماته معلومه سوه چي د مرگ سختي د گناهونو د كثرت او د بنې خاتمې د نه كيدو علامت دی بلكه د مرگ سختي او د سكرات الموت شدت د درجاتو د لوړوالي لپاره وي .

ددې څخه معلومه سوه چي د مرگ اساني د بزرگۍ او فضيلت خبره نه ده كه داسي وي نو رسول الله ﷺ ته به دا افضليت په طريق اولی سره تر لاسه وای .

## د مؤمن او منافق د ژوند مثال

﴿۱۳۵۵﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت كعب بن مالک ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ تُفَيِّئُهَا الرِّيحُ تَصْرَعُهَا مَرَّةً وَتَعْدِلُهَا

د مسلمان مثال ديو فصل د تازه پاڼو په ډول دی چي هوا حركت وركوي ، كله ئې هوا غورځوی او كله يې دروي ،

أُخْرٰى حَتّٰى يَأْتِيَهِ اَجَلُهُ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ الْأَرْزَةِ الْمُجْذِيَةِ الَّتِيْ

تر دې چي د هغه د مرگ وخت راځي ، او د منافق مثال د صنوبر د درختي په شان دی ، چي

مضبوطه او سخته وي ،

لَايُصِيْبُهَا شَيْئٌ حَتّٰى يَكُوْنَ انْجِعَافُهَا مَرَّةً وَاحِدَةً . متفق عليه

دهوا په وجه هيڅ يو ضرر نه ورسيږي ، همداسي منافق دحادثې پروا نه ساتي او خوشحاله وي بيا ناڅاپه (دصنوبر ددرختي په شان) غورځي (مري) بخاري اومسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۰۳، رقم: ۵۶۴۳، ومسلم ۴\۲۱۶۳، رقم: ۵۹- ۲۸۱۰.

**د لغاتو حل**: (المُجذية): اى الثابتة القائمة. (انجعافُها): اى انقطاعها وانقلاعها (قطع کېدل).

**تشريح** : د مومن مثال خو د تازه کښت او نرمي څانګي سره ورکول کيږي څرنګه چي د هوا څپې پر هغه شاخ باندي اثر اچوي داسي چي کله هغه څانګه يا شاخ راولويږي کله ېې سيده کوي خو هغه ښاخ د هوا او سختي څپو په خوړلو سره پر خپل ځاي تر آخري وخته پوري ولاړ وي همداسي د مومن حال دی چي کله خو د مشکلاتو او ضعف او ناجوړي سختي ېې راغورځوي کله د صحت او خوشحالي او مسرت چې د هغه په ژوند کي خوشحالي پيدا کوي همداسي د هغه خپل ژوند ورځي پوره کوي.

د منافق مثال د صنوبر د درختي سره ورکړل سوی دی چي څنګه د صنوبر درخته په ښکاره پر يو ځاي ولاړه وي او پر هغه د هوا اثر نه پرېوزي خو کله چي د هغه وخت پوره سي نو هغه يودم پر مځکه راولويږي همداسي د منافق مثال دی چي هغه په دنيوي ژوند کي په ښکاره معلوميږي نه پر هغه د مصيبتونو باران کيږي او نه د ناجوړي او ضعف اثر پر لويږي تر دې چي هغه ناڅاپه بېله کومي ناروغۍ او کمزوري د مرګ خولې ته ورسوي.

د حديث حاصل دا سو چي د مومن او مسلمان ژوند په مصائبو او پريشانيو کي تيريږي کله هغه د ناجوړي او کمزورتيا په جال کي ومښلي کله دمال په کمي کي اخته سي کله په نورو دنيوي حادثاتو کي راچاپېره سي خو مومن مسلمان په داسي حالت کي ژوندئ اوسي او دا ټول شيان د هغه په حق کي د اخروي سعادت او خوش بختي علامت ګرځول کيږي په شرط د دې چي د صبر، زغم، رضا او خوشحالۍ څخه کار واخلي.

ددې په مقابله کي د منافق او فاسق ژوند دی چي پر هغه نه خو زياته د غم او تکليف سايه وي نه د ناروغي او تکليفو توره وريځ پر راځي او نه د بل څه دنيوي ذلت او مصيبت، بلکه هغه په ښکاره جوړ روغ او خوشحاله وي داسي نه هغه ته د هغه درجه حاصليږي چي په ناروغي او پريشاني کي په اخته کيدو سره د کفارې په توګه مومن او مسلمان ته حاصليږي او نه ورته هغه

ثواب او سعادت ملاویږي کوم چي په ناروغي او پریشاني کي د مومن او مسلمان د اخروي کامیابي او خلاصون ذریعه جوړه سي .

﴿۱۴۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ

دحضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مثال

الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الزَّرْعِ لَا تَزَالُ الرِّيحُ تُمِيلُهُ وَلَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ يُصِيبُهُ الْبَلَاءُ

دمؤمن دیو فصل په شان دي ، هواګانی هر وخت هغه ته حرکت ورکوي ، دغسي مؤمن ته تکلیفونه رسیږي

وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ شَجَرَةِ الْأَرْزِ لَا تَهْتَزُّ حَتَّى تَسْتَحْصِدَ . متفق عليه

او دمنافق مثال دصنوبر د درختي په شان دي ، چه هغه نه ښوري ، تر دې چي دیبخه څخه ووځي . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۰۳، رقم: ۵۶۴۴، ومسلم ۴\۲۱۶۳، رقم: ۵۸– ۲۸۰۹.

**تشريح** : مطلب دادی چي منافق په دنیوي ژوند کي په زیاتو مصیبتو او تکلیفو کي نه وي او نه یو درد پر هغه ډیر اثر کوي چي ددې ځاي د مصیبتونو په بدله کي د هغه لپاره د اخروي ژوند عذاب سپک نه سي بلکه د مسلمان په دنیا کي مصائب او په دردو کي اخته کیدل د دې خبري نښه ده چي هغه ته به په آخرت کي ډیر د سکون او راحت څخه ډک ژوند حاصلیږي .

**ناروغۍ ته بد مه وایاست**

﴿۱۴۵۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ دَخَلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ عَلَى أُمِّ السَّائِبِ فَقَالَ مَا لَكِ

دحضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ بی بی ام سائبې رضی الله عنها ته تشریف ورورئ او پوښتنه یې ځیني وکړه ،

تُزَفْزِفِينَ قَالَتِ الْحُمَّى لَا بَارَكَ اللهُ فِيهَا فَقَالَ لَا تَسُبِّي الْحُمَّى فَإِنَّهَا تُذْهِبُ

ولی رپیږې ؟ هغې ورته وویل ، تبه مي ده ، خدای ﷻ دي دې ته برکت ورنه کړي ، نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل : تبی ته بد مه وایه ، ځکه چي تبه

خَطَايَا بَنِي آدَمَ كَمَا يُذْهِبُ الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ . رواه مسلم

دانسان ګناهونه داسي ليري کوي څنګه چي بتيځ داوسپني ميل (خيري) ليري کوي . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم : ۱۹۹۳\۱۴، رقم: ۵۳- ۴۵۷۵.

**د لغاتو حل**: (تُزفزفِينَ): ای مالک ترتعدين (رپېدل).

**تشريح**: په يو روايت کي نقل دي چي الله تعالی د مومن ټولي ګناوي د هغه د يوې شپې د تبي په خاطر ليري کوي همداسي ابوداود په يوه روايت کي نقل کړي دي چي د يوې شپې تبه د يوه کال ګناه تويوي .

## په ناروغۍ کي نيک عملونه

﴿۱۴۵۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَرِضَ الْعَبْدُ أَوْ سَافَرَ كُتِبَ لَهُ مِثْلُ مَا كَانَ يَعْمَلُ مُقِيمًا صَحِيحًا. رواه البخاري

دحضرت ابو موسی ﷺ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي يو بنده ناروغه سي يا سفر کوي (او دهغه څخه دهغه نفلونه او اذکار پاته کيږي) نو دهغه په حساب کي ليکل کيږي ، څنګه چي به هغه د روغتيا او اقامت په حالت کي کول . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳۶\۶، رقم: ۲۹۹۶.

## په طاعون سره مرګ

﴿۱۴۵۹﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ . متفق عليه

دحضرت انس ﷺ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (په) طاعون (کي مړ کېدل) دهر مسلمان لپاره شهادت دی . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۸۰\۱۰، رقم: ۵۷۳۲، ومسلم ۱۵۲۲\۳، رقم: ۱۶۶- ۱۹۱۶.

**تشريح** : مطلب دادی چي په کومه سيمه کي که چيري د طاعون ناروغي خپره سي نو کوم مسلمان چي د صبر او زغملو لمن ونيسي او د ناجوړی څخه د بيريدو څخه بل ځای ته نه وتښتي بلکه په الله ﷻ باندي په باور او توکل کولو سره هلته اوسي او د طاعون په مرض مړ سي نو هغه ته د شهيد مرتبه ورکول کيږي طاعون د يوې ناجوړي نوم دی په کمه علاقه کي چي

دا ناجوړي پيدا سي د هغه ځاي آب هوا عام ژوند د انسانانو او حيوانانو ټول ددې ناروغۍ د جراثيم او فساد څخه متاثره کيږي.

ځينو خلکو ويلي دي چي طاعون هغه خاص نا جوړي ته وايي چي په هغه سره د بدن پر نرمه برخه باندي زخم کيږي لکه ترخ او هغه زخمونه شاوخوا تور سره او شنه وي.

## د شهيد ثواب

﴿۱۴۶۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الشُّهَدَاءُ خَمْسَةٌ الْمَطْعُوْنُ وَالْمَبْطُوْنُ وَالْغَرِيْقُ وَصَاحِبُ الْهَدْمِ وَالشَّهِيْدُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ. متفق عليه

دحضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: شهيدان پنځه دي. يو طاعون ځپلي. دوهم چي دنس دناروغي څخه مړ سي، دريم چي په اوبو کي بې اختياره مړ سي، څلورم چي د دېوال يا بام لاندي مړ سي، پنځم چي دخداى ﷻ په لاره کي شهيد سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٢، رقم: ٢٨٢٩، ومسلم ١٣\١٥٢١، رقم: ١٦٤- ١٩١٤.

**تشريح**: په اوبو کي مړ سړي ته د شهادت ثواب حاصليږي چي بې اختياره او بې پامه په اوبو کي ډوب سوی وي همداسي که په درياب کي کښتۍ ډوبه سي يا ماته سي او ټول خلک يا څه خلک په درياب کي ډوب سي نو په هغوی کي ډوبيدونکي ته به د شهادت ثواب حاصليږي په شرط ددې چي د څه گناه او معصيت په ارادې سره په کشتۍ کي ناست نه وي.

په دې حديث کي د پنځو ډولو شهيدانو ذکر سوی دی په دې اړه په دې خبره پوهيدل پکار دي چي حقيقي شهيديوازي هغه سړی دی چي د الله ﷻ په لار کي خپل ځان قربان کي، د شهيدانو قسمونه حکمي دي مړ کيدونکی چي حقيقي شهيد خونه وي هو د هغوی بېکسي او بې بسي د مرگ په وجه ده ته د شهادت ثواب حاصليږي.

په دې وخت ددې خبري وضاحت هم ضروري دی چي دلته په دې حديث کي د څلور قسمه شهيدانو ذکر سوی دی ددې څخه ماسيوا د حکمي شهيدانو نور هم ډير زيات قسمونه دي چي د هغوی په باره کي په نورو مشهورو حديثو کي ذکر دي چي ځيني علماء مثلا سيوطي رح وغيره هغوی په يو ځاي کي راجمع کړي دي په دې حديث کي چي د حکمي شهداء ذکر سوي دي ددې ماسيوا نور حکمي شهداء دا دي.

ذات الجنب: يعني د نمونيه په ناجوړي کي مړ کيدونکی، په سوزيدو سره مړ کيدونکي، د

حمل په حالت کي مړه کيدونکې ښځه يا پيغله مړه کيدونکې هغه ښځه چي د حمل کيدو وروسته د بچي د پيدائش پوري يا د بچي د شېدو ورکولو په وخت کي مړه سي يعني په دق مرض کي مړکيدونکې د سفر په حالت کي مړکيدونکی د جهاد په سفر کي د سورلئي څخه د راغورځيدو په وخت کي مړکيدونکی مرابط يعني د اسلامي مملکت د سرحدونو د حفاظت په دوران کي مړکيدونکی په کنده کي په غورځيدو سره مړکيدونکی د درنده ګانو يعني زمري او داسي نورو د حملې څخه مړ کېدونکی ، خپل مال خپل اهل وعيال خپل دين خپله وينه او د حق له خاطره قتليدونکی د جهاد په دوران کي خپل د مرګ مړکيدونکی او هغه سړی چي د شهادت پر خوله آرزو لري خو د شهادت موقع نه سي ورته نصيب او د هغه وخت پوره سي او د شهادت خواهش يې په زړه کي پاته سي او ددې دنيا څخه ولاړ سي .

د حضرت علي رح څخه روايت دی کوم سړی چي حاکم وخت د ظلم او تشدد په توګه په قيد خانه کي واچول سي او هغه هلته مړ سي نو هغه شهيد دی کوم سړی چي په ظالمانه طريقې سره ووهل سي او د هغه په نتيجه کي مړ سي نو هغه شهيد دی او کوم سړی چي د توحيد په شاهدي ورکولو سره خپل سر خالق ته وروسپاري نو هغه شهيد دی .

د حضرت انس ﷛ څخه په مرفوع طريقې سره روايت دی چي حضرت ابو عبيده بن الجراح ﷛ روايت کوي ما عرض وکړ يا رسول الله ﷺ په شهداوو کي د الله په نزد تر ټولو زيات با فضيلت شهيد کوم يو دی رسول الله ﷺ وفرمايل هغه سړی چي د ظالم حاکم په مخکي ودريږي هغه ته د ښه او نيک کار کولو حکم ورکړي او د بد کار څخه يې منعه کي او هغه حاکم هغه سړی مړ کړی .

د حضرت ابو موسي ﷛ څخه روايت دی کوم سړی چي د آس يا اوښ د پښنولاندي سي او هغه مړ سي يا د زهرو لرونکو حيوانانو په چيچلو سره مړ سي نو هغه شهيد دی او د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دی د کوم سړي چي د چا سره عشق و سي او نه يوازي دا چي هغه په خپل عشق کي متقي پاته سو بلکه هغه خپل عشق هم پټ کړ او په دې حال کي مړ سو نو هغه شهيد دی .

د رسول الله ﷺ د ارشاد نقل دی چي کوم سړی په کښتی کي ناست د سر چکر او په قي مړ سو نو هغه ته د شهيد اجر ورکول کيږي .

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه مرفوعا روايت دی چي الله تعالی د ښځو په باره کي غيرت او خودداري لازمه کړې ده او د خلکو لپاره يې جهاد ضروري ګرځولی دی نو کمي ښځي چي د خپلي ښې موجودګي کي د صبر او زغم څخه کار واخلي نو هغې ته به د شهيد اجر حاصليږي.

بي بي عائشه ﷺ مرفوعا روايت کوي چي کوم سړی هره ورځ پنځوس واره دا دعا ووايي (اللهم بارک لي في الموت وفيما بعد الموت) او د مرګ پر بستره وفات سي نو الله تعالی هغه ته د شهيد اجر ورکوي.

حضرت ابن عمر ﷺ مرفوعا روايت کوي کوم سړی چي د اشراق او څاښت لمونځ کوي او په مياشت کي درې روژې نيسي او وتر لمونځ نه د سفر په حالت کي پرېږدي نه د قيام په حالت کي نو د هغه لپاره د شهيد اجر ليکل کيږي.

همداسي په امت کي په عامه توګه د اعتقادي او عملي ګمراهي وخت سنتو باندي په ټينګه سره قائم اوسيدونکی او د علم په غوښتني کي مړکيدونکی شهيد دی د علم په غوښتني کي د مړکيدونکي څخه مراد هغه سړی دی چي د علم په حاصلولو او درس وتدريس کي مصروفه وي يا په تصنيف وتاليف يا ترجمه کي مصروفه وي لکه فقير چي د دې کتاب مترجم دی يا يوازي په څه علمي مجلس کي حاضر وي او کوم سړي چي خپل ژوند داسي تير کړي چي د خلکو ميلمستيا او خاطر تواضع د هغه طريقه وي نو هغه شهيد دی مرتث يعني هغه سړی چي د جنګ په ميدان کي په زخمي کيدو سره سمدستي نه سي مړ بلکه کم نه کم تر دومره وخته پوري ژوندی وي چي د دنيا د څه شي فائده واخلي نو هغه هم شهيد دی کوم سړی چي د مسلمانانو غله ورسوي او کوم سړی چي خپل اهل وعيال او د خپل غلام او مينزي لپاره يو څه وګټي نو هغه شهيد دی همداسي هغه جنب سړی چي کافر يې د جنګ په ميدان کي قتل کي او او شريق يعني هغه سړی چي په غاړه کي يې اوبه ومښلي او ساه يې بنده سي او مړ سي نو هغه هم شهيد دی.

په حديث کي راغلي دي چي کوم مسلمان په خپل مرض کي د حضرت يونس ﷺ دا دعا (لااله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمين) څلويښت واري ووايي او په هغه مرض کي وفات سي نو هغه ته د شهيد ثواب ورکول کيږي او که د هغه مرض څخه خلاص سي نو هغه په هغه حال کي صحت منده کيږي چي د هغه مغفرت سوی وي.

دا هم په حديث کي وارد دي چي رېښتنی او امانت دار تاجر به د قيامت په ورځ د شهداوو سره وي او کوم سړی چي د جمعي په شپه مړ سي هغه شهيد دی.

او په حديث کي دا هم نقل دي چي بلا اجرت يوازي د الله تعالی د رضا د خاطره اذان کوونکی موذن د هغه شهيد په ډول دی چي په خپلو وينو کي لت پت سي او هغه موذن چي مړ سي نو د هغه قبر چينجي نه کوي .نقل دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :کوم سړی چي پر مايو واري درود ووايي نو الله تعالی پر هغه لس وراه درود وايي او کوم سړی چي پر ما لس واره

درود ووايي نو الله تعالى هغه د دوارو سترګو په مينځ کي نفاق او د اور څخه خلاصي ورته ليکي او الله تعالى به هغه بنده د قيامت په ورځ د شهيدانو ملګرى کړي.

نقل دي چي کوم سړى د سهار په وخت کي درې واره (اعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم) او د سورة حشر اخري درې اياتونه ووايي نو الله تعالى د هغه سره اويا زره ۷۰۰۰۰ ملائکي مقرري کوي او د هغه لپاره تر ماښامه پوري د بخښني لپاره دعا کوي او که هغه سړى په هغه ورځ مړ سي نو د هغه مرګ د شهيد مرګ وي او څوک چي دې په سهار کي ووايي نو هغه هم د دې اجر مستحق دي.

نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ يوه ورځ وصيت وکړ چي کله تاسو د شپې د خوب لپاره خپلي بسترې ته ورځئ نو د سورة حشر اخري اياتونه وايا ست او وې فرمايل که تاسو د شپې د دې ويلو وروسته بيده سى او د شپې مړه سئ نو د شهيد مرګ به درته حاصليږي.

نقل سوي دي چي کوم سړى چي د مرګي په مرض کي اخته وي نو هغه شهيد کيږي او کوم سړى چي د حج او عمرې په دوران کي مړ سي نو شهيد کيږي کوم سړى چي په اوداسه کي مړ سي نو هغه شهيد کيږي همداسي د روژې په مياشت کي په بيت المقدس کي په مکه مکرمه يا مدينه منوره کي مړ سي نو هغه شهيد دى د مانده توب په ناروغي کي چي څوک مړ سي نو هغه هم شهيد کيږي کوم سړى چي په افت او بلا کي اخته وي او هغه په هغه حالت ضرر او بلا باندې د صبر او رضا لمن نيولې مړ سي نو هغه شهيد دى او کوم سړى چي د سهار ماښام مقاليد السماوات والارض .........الخ) چي د هغه د ويلو د فضيلت تذکيره په يو حديث کي سوې ده چي دا ووايي نو هغه شهيد دى.

نقل دي چي کوم سړى د نوي کالو په عمر کي مړ سي يا په داسي حال کي مړ سي چي د هغه مور وپلار د هغه څخه خوشحاله وي يا نيک بخته ښځه چي په داسي حال کي مړه سي چي د هغې خاوند د هغې څخه راضي وي نو هغه شهيده ده همداسي عادل حکيم او بادشاه صدر ګورنر شرعي قاضي او داسي نور يعني هغه قاضي چي هغه هميشه د حق او انصاف په رڼا کي فيصلې کړي وي او چي هغه مړ سي نو هغه شهيد دى او هغه مسلمان هم شهيد دى چي د يو ضعيف مسلمان سره د ښو خبرو او نيکه معامله وکړي. والله اعلم.

### د طاعون په سيمه کي صبر

﴿۱۴۶۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُونِ

دبی بی عائشې (رض) څخه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه د طاعون حقیقت وپوښتئ

فَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ عَذَابٌ يَبْعَثُهُ اللّٰهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ وَأَنَّ اللّٰهَ جَعَلَهُ رَحْمَةً لِلْمُؤْمِنِينَ

، نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: طاعون يو عذاب دئ چې خدای ﷻ يې پر خپلو بندګانو وغواړي نازلوي يې، او خدای ﷻ دا د مؤمنانو لپاره رحمت ګرځوي

لَيْسَ مِنْ أَحَدٍ يَقَعُ الطَّاعُونُ فَيَمْكُثُ فِي بَلَدِهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا يَعْلَمُ أَنَّهُ

او کوم ځای چې طاعون وي، او هلته د خدای ﷻ يو مؤمن بنده پاته سي او د ښار او کلي څخه ونه تښتي، او صابر پاته سي او د خدای ﷻ څخه د ثواب غوښتونکی سي، او باور ولري چې

لَا يُصِيبُهُ إِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ شَهِيدٍ. رواه البخاري

هغه ته به څه ضرر نه رسيږي، مګر نه هغه چې خدای ﷻ ليکلي وي، نو هغه ته د شهيد ثواب ورکول کيږي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۵۲۱، رقم: ۱۶۴-۱۹۱۴.

## د طاعون د سيمي لپاره هدايت

﴿۱۴۶۲﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

الطَّاعُونُ رِجْسٌ أُرْسِلَ عَلَى طَائِفَةٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَوْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ

طاعون يو عذاب دئ چې د بني اسرائيلو پر يو ډلي نازل سوئ وو، يا نبي کريم ﷺ وفرمايل: په هغه خلکو کي چې ستاسو مخکي وه،

فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوا عَلَيْهِ وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ. متفق عليه

هر کله چې تاسو واورئ چې په يو ځای کي طاعون دئ، نو هلته مه ځئ او هر کله چې په يو ځای کي طاعون خپور سي کوم ځای چې تاسو اوسېږئ نو د هغه ځايه څخه بلي خوا ته مه تښتئ.

بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۹۲، رقم: ۶۹۷۴، ومسلم ۱۴\۱۷۳۶، رقم: ۹۲- ۲۲۱۸.

**تشريح**: د بني اسرائيلو د يو ډلي څخه مراد هغه ډله ده چي هغوی ته د الله تعالی حکم ورکړل سوی وو چي (ادخلوا الباب سجدا) يعني په دروازه کي په سجده کولو سره داخل سئ خو هغوی د سرکښۍ او نافرمانۍ څرګندونه وکړه الله تعالی فرمايي (فانزلنا عليهم رجزا من السماء) يعني مونږ د هغوی د سرکښۍ او نافرمانۍ په وجه پر هغوی باندي د اسمان عذاب رانازل کړی.

ابن مالک رحمه الله فرمايي چي هغه اسماني عذاب طاعون وو چي الله تعاليپر هغه بد بخت او سرکش قوم باندي نازل کړ د هغه نتيجه دا سوه چي په هغه عذاب کي په اخته کيدو سره د هغه قوم څلويشت زره غټ شپين ږيري آنا فآنا د مرګ خولې ته ورسول.

په دغه حديث کي د طاعون زده سيمي په باره کي دوې لارښووني ورکول کيږي يو خو دا چي په کمه علاقه کي طوفان راغلی وي او تاسو هلته د مخکي څخه نه ياست موجود نو اوس د طاعون د خپريدو په وجه هغه علاقې ته مه ځئ د دې څخه منعه ځکه فرمايل سوې ده چي په قصد سره ځان په هلاکت کي نه دي اچول پکار .دوهم هدايت دادی چي په کومه سيمه کي طاعون راغلی وي او تاسو هلته د مخکي څخه موجود ياست نو اوس يوازي د طاعون د خپريدو په وجه د هغه علاقې د وتلو څخه بل ځاي ته مه تښتئ ځکه چي همداسي د تکليف او پريشاني او د مرګ د بيريدو څخه د تښتيدو مطلب به دا وي چي د تقدير د ليکلي فيصلې څخه تيښته نه ده پکار ځکه دا بې فايدې دي .نو د څه عامي وبا د خپريدو د وخت په باره کي د اسلام د مقدس دين دا قاعده ده چي کوم ځاي وبا خپره سوې وي هلته تلل نه دي پکار او کوم ځاي چي د مخکي څخه موجود وو او هلته وبا خپره سوې وي نو بيا دي د هغه ځاي څخه نه تښتي کوم سړی چي وتښتي نو د ګناه کبيره مرتکب ګرځي او د الله تعالی د درګاه څخه شړل سوئ به وي هو د وبا څخه ماسوا پر نورو وختونو باندي چيري چي د هلاکت ګمان غالب وي د تښتيدو اجازت دی مثلا يو سړی په کور کي وي او زلزله راسي يا په کور کي اور ولګيږي يا همداسي يو څوک تر ديوال لاندي ناست وي چي د هغه د رايله کيدو بيره وي نو د هغه ځاي څخه تښتيدل جائز دي.

## پر ړوندوالي باندې صبر او اخروي ثواب

﴿۱۴۶۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللّٰهَ قَالَ

دحضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل : الله تعالی فرمايي :

إِذَا ابْتَلَيْتُ عَبْدِي بِحَبِيبَتَيْهِ ثُمَّ صَبَرَ عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ يُرِيدُ عَيْنَيْهِ.

رواه البخاري

كوم بنده چې زه په دوه خوښ شيانو کې اخته كوم، او هغه ور باندې صبر وكړي نو د هغو په بدله کې زه جنت وركوم او هغه دوه خوښ شيان ستر گې دي (يعني څوک چې زه ړوند كړم). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱٦\۱۰، رقم: ۵٦۵۳.

**تشريح**: د الله جل جلاله د ارشاد مطلب دادی چې كوم سړی زه ړوند کړم نو هغه ته د دواړو سترگو په بدله کې جنت وركوم يعني هغه د نجات حاصلونكو خلكو سره يوځای كوم يا دا چې هغه ته په جنت کې خاص ځای او درجات وركوم.

كله چې يو سړی د سترگو څخه محروم سي نو هغه ته پكار ده چې هغه د دې په وجه په ژبه شكايت نه راوړي او نه دې په زړه کې څه تنگي پيدا کوي بلكه په داسې صورت کې دې صبر او زغم څخه كار واخلي او پوه دې سي چې ړوند كيدل د خدای جل جلاله د غضب وجه نه ده بلكه د گناهونو د ليرې كولو او درجاتو لوړولو او د بدنظر څخه د بچ كيدلو لپاره حق تعالی په ازمائش کې اخته کې د يو بزرگ په باره کې نقل دي چې كله د عمر په اخري برخه کې ړوند سو نو وه يې فرمايل هغه خلوت چې ټول عمر مې غوښتی اوس مې تر لاسه کړ.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ناروغ د پوښتنې ثواب

﴿۱۴۶۴﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا

دحضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چې فرمايل يې:

مِنْ مُسْلِمٍ يَعُودُ مُسْلِمًا غُدْوَةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُمْسِيَ

كوم مسلمان چي د يو مسلمان وورور د ناروغي پوښتنه د سهار په وخت كي وكړي نو اويا زره ملائكي تر مابنامه پوري د هغه لپاره د رحمت او مغفرت دعاوي كوي ،

وَإِنْ عَادَهُ عَشِيَّةً إِلَّا صَلَّى عَلَيْهِ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتَّى يُصْبِحَ وَكَانَ لَهُ خَرِيفٌ فِي الْجَنَّةِ. رواه الترمذي وابوداؤد.

او څوك چي د مابنام په وخت كي د ناروغ پوښتنه وكړي ، نو د هغه لپاره اويا زره ملائكي تر سهاره پوري د رحمت او مغفرت دعاوي كوي او په جنت كي د هغه لپاره يو باغ تياكي . ترمذي ، ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۴۷۵، رقم: ۳۰۹۸، والترمذي: ۳\ ۳۰۰-۳۰۱، رقم: ۹۶۹.

**د لغاتو حل**: (خَرِيف): الحائط، اى البستان من النخل (د خرما باغ).

## د سترگو د ناروغۍ لرونكو د عيادت مسئله

﴿۱۴۶۵﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ عَادَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِعَيْنَيَّ . رواه أحمد وأبو داود .

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دي چي زما سترگي خوږېدې نو نبي كريم ﷺ زما پوښتنه وكړه. ترمذي ، ابوداؤد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\ ۳۷۵، وابوداؤد : ۳\ ۴۷۷، رقم: ۳۱۰۲.

**تشريح** : له دغه حديث څخه معلومه سوه چي د هغه سړي عيادت كول سنت دي كوم چي د سترگو په خوږ يا د سترگو په ناروغۍ اخته وي هر كله چي د يو روايت چي په جامع صغير كي نقل دي چي د هغه دا مفهوم دی چي درې ناروغه داسي دي چي په هغه كي د ناروغه سړي عيادت كول نه دي پكار اول د سترگو خوږ دوهم د زامي د غاش په درد كي دريم په غټو دانو كي .

په دغه دواړو حديثونو كي ټكر دی ځكه چي په دې دواړو كي به د دې تاويل په ذريعه مطابقت پيدا كولای سي چي په دې ناروغيو كي د ناروغه سړي پوښتنه دي هغه خلك نه كوي چي د هغوی لپاره ناروغه سړي ته تكليف رسيږي يا د هغوی راتلل د ناروغه لپاره مشكل وي ځكه خلك د اسي ناروغه سړي پوښتني ته ځي نو د سترگي په خوږېدو سره يا د سترگي د دويمي ناجوړي په شكل كي ناجوړی به خپلي سترگي په خلاصيدو باندي مجبوره كيږي يا د

زامي د غابن د درد کولو په صورت کي هغه ته به د خبرو په وجه ډير زيات تکليف وي همداسي
که غټه دانه وه نو هغه به د هغوی په وجه په صحيح توګه سره په ناستي باندي مجبوره وي او
ښکاره ده چي د دې دانې په وجه به د هغه لپاره په څه بل صحيح هيئت باندي ناسته د ډير زيات
تکليف باعث وي هو که داسي خلک عيادت ته ورسي چي د هغوی په وجه ناجوړي ته تکليف نه
وي يا د هغوی ورتلل پر ناجوړه سړي ډير بوج نه وي نو په دې ناجوړيو کي هم پوښتني ته ورتللو
کي څه حرج نسته حاصل دا چي دلته کوم حديث نقل کيږي هغه په اخري صورت باندي محمول
وي او د جامع صغير روايت به پر اول صورت باندي محمول کيږي .

### د عيادت لپاره اودس کول سنت دي

﴿۱۴۶۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ

دحضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ وفرمايل: چاچي اودس وکړ

فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ وَعَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ مُحْتَسِبًا بُوْعِدَ مِنْ جَهَنَّمَ مَسِيْرَةَ
سِتِّيْنَ خَرِيْفًا . رواه أبو داود .

او په ښه توګه يې اودس وکړ او هغه صرف د ثواب په نيت ديو مسلمان ورور پوښتنه وکړه ، نو
هغه د دوږخ څخه د شپيته کلو په مسافت ليري ساتل کيږي . ابو داؤد

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۳\۴۷۵ ، رقم: ۳۰۹۷.

**تشريح** : د دې حديث څخه معلومه سوه چي د عيادت لپاره اودس کول سنت دی او غالبا د دې
حکمت دا فرمايل سوی دی چي عيادت عبادت دی او ښکاره ده چي په اوداسه سره عبادت
کامل او افضل کيږي علماء ليکي که په داسي حالت کي دعا وکړل سي نو قبليږي .

### د ناروغ لپاره دعاء

﴿۱۴۶۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَعُوْدُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول اللهﷺ وفرمايل : کوم مسلمان چي د يو
مسلمان پوښتنه وکړي

مُسْلِمًا فَيَقُوْلُ سَبْعَ مَرَّاتٍ أَسْأَلُ اللهَ الْعَظِيْمِ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ أَنْ

او اووه واره دا کلمات ووايي ، اسال...... ان يشفيک (د لوی الله ﷻ څخه دعا غواړم چي دعرش عظيم خاوند دئ ، دا چي

يَشْفِيَكَ إِلاَّ شُفِيَ إِلاَّ أَنْ يَكُوْنَ قَدْ حَضَرَ أَجَلَهُ . رواه أبو داود والترمذي .

تاته شفاء درکړي) نو خدای ﷻ هغه ته شفاء ورکوي ، په شرط ددې چي دهغه دمرګ وخت نه وي راغلی . ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۴۷۹، رقم: ۳۱۰۶، والترمذي ۴\۳۵۷، رقم: ۳۰۸۳.

## دتبي او درد دعاء

﴿۱۴۶۸﴾ : وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهُمْ مِنَ الْحُمَّى وَمِنْ

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دي چي نبی کريم ﷺ به خپلو اصحابو ته ښودل چي هغوی دتبي او

الْأَوْجَاعِ كُلِّهَا أَنْ يَقُولَ بِسْمِ اللّٰهِ الْكَبِيرِ أَعُوذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيمِ مِنْ شَرِّ كُلِّ

درد په وخت کي دا کلمات وائي : بسم الله............حر النار ( دلوی خداي ﷻ په نامه زه د لوي خدای ﷻ په ذريعه پناه غواړم د شر څخه د هر

عِرْقٍ نَعَّارٍ وَمِنْ شَرِّ حَرِّ النَّارِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب لا يعرف الا من حديث ابراهيم بن اسماعيل وهو يضعف في الحدث .

رګ جوش وهونکي او د اور دګرمی د بدی څخه )( ترمذي ، دا حديث غريب دي) يوازي د ابراهيم بن اسماعيل څخه روايت دئ او دی ضعيف ګڼل سوی دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۵۳، رقم: ۲۰۷۵.

**دلغاتو حل**: (نعار) : ای فوار الدم.

**تشريح** : د هر رګ جوش وهونکي څخه مراد هغه وينه ده چي په رګ کي جوش وهي مطلب دادی چي زه د هغي ويني څخه پناه غواړم کومه چي په رګ کي جوش وهي ځکه چي وينه غالبه سي نو تکليف رسوي داسي چي د هغه څخه تبه او نور مرضونه پيدا کيږي دا حديث ابي شيبه،

ترمذي ابن ماجه، ابن ابي الدنيا ابن سني او حاكم روايت كړی دی او بيقهي په دعوات كبير كي د دې د صحت تصديق كړی دی.

## په ناروغۍ كي كومه دعاء پكار ده؟

﴿۱۴۶۹﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

دحضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي فرمايل يې

مَنِ اشْتَكَى مِنْكُمْ شَيْئًا أَوِ اشْتَكَاهُ أَخٌ لَهُ فَلْيَقُلْ رَبُّنَا اللهُ الَّذِيْ فِي السَّمَاءِ

په تاسو كي چي يو څوک ناروغ سي يا د هغه ورور ناروغ وي، نو هغه ته پكار ده چي دا كلمات ووايي: ربنا الله..... فيبرا (زموږ رب الله جل جلاله دئ، هغه الله جل جلاله چي په اسمان كي دئ،

تَقَدَّسَ اسْمُكَ أَمْرُكَ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ كَمَا رَحْمَتُكَ فِي السَّمَاءِ فَاجْعَلْ

ستاسو نوم پاک دئ، ستاسو حكم په اسمان او مځكه كي منل كيږي، څنګه چي ستا رحمت په اسمان كي دئ، همداسي

رَحْمَتَكَ فِي الْأَرْضِ اغْفِرْ لَنَا حُوْبَنَا وَخَطَايَانَا أَنْتَ رَبُّ الطَّيِّبِيْنَ أَنْزِلْ رَحْمَةً

رحمت په مځكه كي نازل كړئ، زموږ كوچني او لوی ګناهونه وبخښې، ته د پاكو خلكو پروردګار يې، نازل كړې رحمت

مِنْ رَّحْمَتِكَ وَشِفَاءً مِّنْ شِفَائِكَ عَلَى هٰذَا الْوَجْعِ فَيَبْرَأُ. رواه أبو داود.

دخپل رحمت څخه و دخپلي شفاء څخه شفاء پر دغه ناروغۍ نو هغه به ښه سي) ابو داؤد.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱۴\۲۱۸، رقم: ۳۸۹۲.

**د لغاتو حل:** (حُوبنا): ای ذنبنا (زموږ ګناه).

**تشريح:** څرنګه چي ستا رحمت په اسمان كي دی: د دې مطلب دادی چي په اسمان كي خو ستا رحمت په هر ځای كي دی او د هغه ځای پر هر اوسيدونكي دی خلاف د مځكي او د مځكي د اوسيدونكو چي دلته رحمت خو خاص پر ځينو باندي وي او پر ځينو باندي نه وي يعني خاص رحمت سره يوازي مومن فيضياب كيږي نه چي كافر كه څه هم عام رحمت د ټولو لپاره يو ډول دی خواه مومن وي يا كافر څنګه چي ارشار رباني دی:

رحمتي وسعت كل شيء : زما رحمت پر هر شي باندي دی د پاکيزه خلکو څخه مراد مومن دی چي د شرک څخه پاک وي يا هغه متقي مسلمانان څني مراد دي چي خپل ځان د فاسدو اعمالو او اقوالو څخه ژغوري.

## د عيادت پر وخت دعاء

﴿۱۴۷۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا جَاءَ الرَّجُلُ يَعُوْدُ مَرِيْضًا فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا أَوْ يَمْشِيْ لَكَ إِلٰى جَنَازَةٍ. رواه أبو داود.

کله چي يو سړی د ناروغ پوښتني ته راسي ، نو هغه ته پکار ده چي دا کلمات ووايي : اللهم ......... إلى جنازة: (يا الله دې خپل بنده ته شفاء ورکړه چي ستا د دښمن سره جنګ وکړي يا ستا د رضا د تر لاسه کولو لپاره د جنازې سره ولاړ سي) ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۴۸۰، رقم: ۳۱۰۷.

**دلغاتو حل**: (يَنكا) : يجرح (ژوبل کيږي).

## ستونزي او تکليفونه کفاره ده

﴿۱۴۷۱﴾: وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أُمَيَّةَ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ عَنْ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى

حضرت علی بن زيد د اميه رضی الله عنهما څخه روايت کوي چي هغې د عائشې رضی الله عنها څخه د دې اياتو مطلب وپوښتئ.

إِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْ أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللهُ، وَعَنْ قَوْلِهِ مَنْ يَعْمَلْ

ان تبدوا .....به الله (څه چي ستاسو په زړونو کي دي ، هغه که ظاهر کړي يا ئې پټ کړي، خدای به در څخه د هغه حساب وکړي) او ومن يعمل

سُوْءًا يُجْزَ بِهِ. فَقَالَتْ مَا سَأَلَنِيْ عَنْهَا أَحَدٌ مُنْذُ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ

سوء يجزبه (او څوک چي بدي وکړي د هغه بدله به ورکول سي). بی بی عائشې رضي الله عنها وفرمايل :

کله چي دا مسئله ما د رسول الله ﷺ څخه وپوښتل،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَذِهِ مُعَاتَبَةُ اللّٰهِ الْعَبْدَ فِيمَا يُصِيبُهُ مِنَ الْحُمَّى وَالنَّكْبَةِ

زما څخه هيچا دا مسئله نه ده پوښتلې (ستا د سوال په جواب کي) نبي کريم ﷺ فرمايلي وه چي دا محاسبه او جزاء (چي په دې اياتو کي ذکر ده) پر بنده د خداى عتاب (زورونه) ده، چي هغه ته د تبي او رنځ په صورت کي رسيږي،

حَتَّى الْبِضَاعَةُ يَضَعُهَا فِي يَدِ قَمِيصِهِ فَيَفْقِدُهَا فَيَفْزَعُ لَهَا حَتَّى إِنَّ الْعَبْدَ

تردې چي د هغه شي په ورکېدو سره چي هغه يې د قميص په لستوڼي (يا جيب) کي لري، او هغه بيا پيدا نه کړي، او د هغه په نه پيدا کيدو ناراضه کيږي،

لَيَخْرُجُ مِنْ ذُنُوبِهِ كَمَا يَخْرُجُ التِّبْرُ الْأَحْمَرُ مِنَ الْكِيرِ. رواه الترمذي

نو هغه د ګناهونو څخه داسي پاکيږي، څنګه چي سره او سپين زر د بټي وتلو سره صاف او پاک سي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۳۵۲، رقم: ۳۲۵۲،

**د لغاتو حل**: (النكبة): اى المحنة (خواري). (التبر): بالكسر أي: الذهب والفضة قبل أن يضربا دراهم ودنانير (سپين او سره زر چي ويلي سوي نه وي).

**تشريح**: د دغه دواړو اياتونو د پوښتني کولو وجه داوه چي اول ايت پر دې خبري دلالت کوي چي بندګان به د هغوى د زړونو د خطرو او وسوسو او خرابو خيالاتو باندي محاسبه کولاى سي او د دوهم ايت څخه دا معلوميږي چي بندګانو ته به په هر عمل باندي سزا ورکول کيږي خواه هغه عمل کوچنى وي يا لويي لږ وي يا زيات نو په دې سره صحابه ډير پريشانه سوه چي څه وکړي ځکه چي د دې څخه ځان ساتل نا ممکن دي حضرت اميه رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه د آياتو مطلب وپوښتى نو هغې د دې اياتو وضاحت وکړ چي د هغه حاصل دادى چي د دې اياتونو مطلب دانه دى چي الله تعالى به د قيامت په ورځ مومنان د هغوى د زړه ټولو خبرو او د هغوى د ټولو کوچنيو ګناهونو په وجه په عذاب کي اخته کړي بلکه په اياتونو کي محاسبه او د سزا څخه مراد دادى چي الله تعالى مومنان د هغوى څخه د سوو ګناهونو په وجه په دنيا کي په خپل عتاب کي اخته کي داسي چي څوک د څه ناجوړي په تکليف کي او

ځوک څه بل رنج او غم کي اخته کوي چي دا شيان د هغوی د ګناهونو کفاره سي.

د عتاب معني داده چي يو سړی د خپل يو دوست څخه د هغه د څه غلطي روېي او بې ادبي په وجه ښکاره پر هغه د خپلي غصې اظهار وکړي خو په زړه کي يې د هغه محبت پاته وي.

﴿۱۴۷۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُصِيبُ

د حضرت ابوسی ﷛ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بنده ته چي کوم معمولي ضرر هم ورسيږي

عَبْدًا نَكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إِلاَّ بِذَنْبٍ وَمَا يَعْفُو اللّٰهُ عَنْهُ أَكْثَرُ قَالَ وَقَرَأَ

يا بل څه تکليف که کم وي او که زيات، دا د هغه د ګناهونو پايله وي، او هغه ګناه چي خدای ﷻ ئې په دنيا او اخرت کي معافوي، د دې ګناهونو څخه ډير زيات دي، په کومو چي سزا ورکوي، بيا نبی کريم ﷺ دا ايت ولوستئ.

وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ . رواه الترمذي

وما اصابکم ....عن کثير (کوم مصيبت چي تاسو ته رسيږي، هغه ستاسو دلاسه وي او خدای ﷻ ډېر ګناهونه معافوي) ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۳۵۲، رقم: ۳۲۵۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي تاسو ته کوم مصيبت تکليف او ناروغي وغيره ورسيږي هغه ستاسو د خپلو بدو اعمالو نتيجه ده ګويا دلته ګنهګار مخاطب کولای سي چي په خپلو بدو اعمالو او د غلطو کارونو څخه منعه سي او پر نيکه لار تلل د خپل ديني او دنيوي راحت او د سکون ذريعه وګڼي هو هر کله چي هغه خلک په څه مصيبت کي اخته سي چي ګناه کار نه وي نو د هغه څخه د هغوی ازمائش او امتحان مقصود دی چي د هغه په وجه د هغوی په درجو کي لوړوالی کيږي که څه هم د الله پاک نيک او بزرګ بندګان څه معمولي تکليف او پريشاني کي هم اخته کيږي نو د خپل عجز او بېچارګي د احساس په وجه هغوی هم دا وايي چي دا زموږ د بدو اعمالو وجه ده، د يو بزرګ په اړه ويل کيږي چي يو وار يو مږي د هغه د څپلۍ تسمه وخوړل نو هغه دومره متاثر سو چي ژړل يې او ويل يې آه معلومه نه ده چي زه په کومه ګناه کي اخته سوی يم چي د هغې سزا ما داده تر لاسه کړه.

## د ناروغۍ په حالت کي د روغتيا نيک اعمال

﴿۱۴۷۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا كَانَ عَلَى طَرِيْقَةٍ حَسَنَةٍ مِّنَ الْعِبَادَةِ ثُمَّ مَرِضَ قِيْلَ لِلْمَلَكِ الْمُوَكَّلِ

کله چي يو بنده په ښه توګه عبادت کوي او بيا ناروغ سي نو خداى تعالى هغې ملائکي ته چي دهغه داعمالو په ليکلو مامورہ وي ، حکم ورکوي ،

بِهِ اكْتُبْ لَهُ مِثْلَ عَمَلِهِ إِذَا كَانَ طَلِيْقًا حَتّٰى أُطْلِقَهُ أَوْ أَكْفِتَهُ إِلَيَّ . شرح السنة

چي هغه د صحت په حالت کي کوم نيک کار کوئ ، همهغه اعمال ليکه ترڅو چي زه هغه ته روغتيا ورکوم يا زه هغه ځان ته راوغواړم . (شرح السنة) .

**تخريج** : البغوي في شرح السنة ۵\۲۴۰ – ۲۴۱، رقم: ۱۴۲۹.

﴿۱۴۷۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا ابْتُلِيَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : چي کله يو مسلمان

الْمُسْلِمُ بِبَلَاءٍ فِيْ جَسَدِهٖ قِيْلَ لِلْمَلَكِ اكْتُبْ لَهُ صَالِحَ عَمَلِهِ الَّذِيْ كَانَ يَعْمَلُ

په بدني ناروغۍ اخته سي ، نو ملائکو ته ويل کيږي چي دده په اعمال نامه کي هغه نيک عمل ليکئ ، کوم چي به ده د روغتيا په وخت کي کول ،

فَإِنْ شَفَاهُ غَسَّلَهُ وَطَهَّرَهُ وَإِنْ قَبَضَهُ غَفَرَ لَهُ وَرَحِمَهُ . رواهما في شرح السنة

بيا که خداى جل جلاله هغه ته شفاء ورکړه ، نو د هغه ګناهونه رژوي او هغه پاکوي او که هغه واخلي (وفات کړي) نو هغه ته بخښنه کوي او رحم پر کوي . (شرح السنة)

**تخريج** : البغوي في شرح السنة ۵\۲۴۱، رقم: ۱۴۳۰.

## د شهادت نور ډولونه

﴿۱۴۷۵﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيْكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت جابر بن عتيک رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اَلشَّهَادَةُ سَبْعٌ سِوَى الْقَتْلِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اَلْمَطْعُوْنُ شَهِيْدٌ وَالْغَرِيْقُ شَهِيْدٌ

شهادت پر اووه ډوله دئ : دهغه شهادت څخه پرته کوم چي دالله تعالی په لاره کي وي:۱- هغه څوک چي دطاعون (وباء) په ناروغی کي مړ سي شهيد دي، ۲- کوم چي ډوب سي او مړ سي شهيد دئ،

وَصَاحِبُ ذَاتِ الْجَنْبِ شَهِيْدٌ وَالْمَبْطُوْنُ شَهِيْدٌ وَصَاحِبُ الْحَرِيْقِ شَهِيْدٌ

۳- ذات الجنب (يو مرض دی) کي چي مړ سي ، شهيد دئ، ۴- دنس په ناروغی کي چي مړ سي شهيد دئ، ۵- په اور کي چي وسوزي ، مړ سي ،

وَالَّذِيْ يَمُوْتُ تَحْتَ الْهَدْمِ شَهِيْدٌ وَالْمَرْأَةُ تَمُوْتُ بِجُمْعٍ شَهِيْدٌ . رواه مالك وأبو داود والنسائي .

۶- تر يو ودانی لاندي سي او مړ سي، ۷- کومه ښځه چي د حمل په حالت کي مړه سي، يا باکره (پېغله) وي مړه سي ، شهيده ده . مالک ، ابوداؤد ، نسائي .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۲۳۳، ۲۳۴، رقم: ۳٦، وابوداؤد : ۳\ ۴۸۲، رقم: ۳۱۱۱، والنسائي ۴\ ۱۳- ۱۴، رقم: ۱۸۴۵.

**د لغاتو حل**: (بجُمع): ای تموت و في بطنها ولد (په نس کي يې ماشوم وي او مړه سي).

**تشريح** : مطلب دادی چي حقيقي شهيد خو هغه دی چي د الله تعالی په لار کي د دين د دښمنانو سره په مقابله کولو کي قتل سي د دې څخه ماسيوا اووه قسمه نور شهيدان دي چي حقيقي شهيدان خو نه دي مګر د شهيدانو په حکم کي داخل دي بلکه د دې څخه ماسيوا نور هم ډير قسمونه دي چي په مختلفو حديثو کي مذکور دي او هغه په تفصيل سره په تيرو صفحو کي ذکر سوي دي . ذات الجنب يوه مشهوره ناروغي ده د دې ناروغي په څنګ کي د ننه زړه او د سينې سره نژدې دانې پيدا سي او د هغه علامت دا وي چي د ناروغ ساه بنديږي او تبه او ټوخی پې کيږي .

## په سخت تکلیف کې کوم خلک وي؟

﴿۱۴۷۶﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ النَّاسِ أَشَدُّ

د حضرت سعد رضي الله عنه ځخه روايت دي چي د نبی کريم ﷺ ځخه پوښتنه وسوه چي: کوم خلک په سختو ستونزو اخته کيږي؟

بَلاَءً ؟ قَالَ اَلْأَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْاَمْثَلُ فَالْأَمْثَلُ يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلٰى حَسَبِ دِيْنِهٖ

نبي کريم ﷺ وفرمايل: انبياء عليهم السلام، بيا هغه خلک چي انبياءو سره زيات مشابه وي ،بيا هغه خلک چي دهغوی سره زيات مشابه وي، بيا هغه انسان چي پر دين ډير سخت وي،

فَإِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ صُلْبًا اِشْتَدَّ بَلاَؤُهٗ وَإِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ رِقَّةٌ هُوِّنَ عَلَيْهِ فَمَا زَالَ

هغو مره مصيبت يې سخت وي، او څومره چي په دين کي نرم وي، هغو مره دهغه مصيبت نرم وي، تر دې چي

كَذٰلِكَ حَتّٰى يَمْشِيَ عَلَى الْأَرْضِ مَالَهٗ ذَنْبٌ . رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

په دين کي سخت انسان پر مځکه ګرځي، او د ګناه ځخه پاک وي. (ترمذي، ابن ماجه، دارمي) په ترمذي کي راغلي دي چي دا حديث حسن صحيح دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۲۰، رقم: ۲۳۹۸، وابن ماجه ۲\۱۳۳۴، رقم: ۴۰۲۳. والدارمي: ۲\۴۱۲، رقم: ۲۷۸۳.

**تشريح**: مطلب دادی چي انبياء کرام په مصيبت او بلاء کي تر ټولو زيات اخته وي ځکه چي هغوی په بلاء او مصيبت کي داسي لذت محسوسوي ځنګه چي عام انسان په نعمت او راحت کي لذت محسوسوي بيا د هغوی وروسته هغه خلک په مصيبت او سختي کي اخته سي چي د هغوی مشابه وي يعني اولياء الله او صلحاء دوی هم د مصيبت او تکليف په سخت ازمائش کي اخته دي چي د ډير زيات ثواب مستحق سي خو د دوی د مصيبت او بلا سختي د انبياء د مصيبت او بلاء تر سختي کمه وي د دې وروسته د هغه خلکو نمبر راځي چي د مرتبې او درجې ځخه د اولياء الله او صلحاء ځخه کم وي.

په اخر کي دا کليه بيانيږي چي کوم خلک پر خپل دين باندي په سختي سره قائم سي او په

هیڅ مرحله کي هم د هغه په قدم کي لړزه رانسي د هغه مصیبت او بلاء هم ډیره سخته ده ځکه چي هغه صاحب یقین وي نو هغه د خپل مصیبت او پر سختي صبر کوي او دا ګڼي چي زه د خپلو ګناهونو په وجه د دې اهل څخه یم نو د دې په وجه د هغه ایمان مکمل وي او د الله تعالی سره د هغه تعلق مضبوط کیږي د هغه نتیجه دا وي چي د هغه ګناه لیري کیږي او د هغه درجات لوړ کیږي د دې پر خلاف چي کوم سړی په خپل دین کي نرم خویه وي د هغه بلاء او مصیبت سختي هم کمه وي د بې صبري څرګندونه ونه کړل سي او د خپل ایمان او تعلق د الله ﷻ سره د قوي کیدو په وجه د دین څخه و نه وځي.

## د اخرت خیر

﴿۱۴۷۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا أَغْبِطُ أَحَدًا بِهَوْنِ مَوْتٍ بَعْدَ الَّذِي رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ مَوْتِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه الترمذي والنسائي.

د بی بی عائشې (رض) څخه روایت دئ، چي کله ما د رسول الله ﷺ د وفات سختي لیدلې ده، ما هیڅ کله د چا د مرګ داسانۍ امید نه دئ کړی. ترمذي، نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۰۹، رقم: ۹۷۹، والنسائي: ۴\۶-۷، رقم: ۱۸۲۹.

**تشريح**: د بي بي عائشې رضي الله عنها د ارشاد مطلب دادی چي مخکي به ما د مرګ د اساني آرزو کوله خو هر کله چي ما د رسول الله ﷺ د مرګ سختي ولیدله نو هغه آرزو مي شاته پاته کړه، بلکه اوس ما دا غوره ګڼلې ده چي اخروي سعادت او خیر د مرګ په سختي کي دی د مرګ په اساني کي نه دي.

## د نبي کریم ﷺ وفات

﴿۱۴۷۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْمَوْتِ

د بی بی عائشې ﵂ څخه روایت دي چي ما رسول الله ﷺ ولیدئ چي د مرګ حالت پر خپور وو

وَعِنْدَهُ قَدَحٌ فِيهِ مَاءٌ وَهُوَ يُدْخِلُ يَدَهُ فِي الْقَدَحِ ثُمَّ يَمْسَحُ وَجْهَهُ ثُمَّ يَقُولُ

د نبی کریم ﷺ ومخته یوه پیاله د اوبو پرته وه، نبي کریم ﷺ په اوبو کي لاس ډوبوئ او پر مخ به یې تیروئ او فرمایل به ئي:

اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى غَمَرَاتِ الْمَوْتِ أَوْ سَكَرَاتِ الْمَوْتِ. رواه الترمذي وابن ماجة

اللهم ..... او سكرات الموت (اې خدايه : دمرگ په سختي ليري كولو كي ته زما سره مرسته وكړې ، يا يې داسي وفرمايل: يا الله! دمرگ دڅپو په دفعه كولو كي زما مرسته وكړې) ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۰۸، رقم: ۹۷۸، وابن ماجه ۱۱\۵۱۹، رقم: ۱۶۲۳.

**تشريح** : سكرات الموت د زكندن يا د مرگ په سختي كي د رسول الله ﷺ خپل لاس مبارك په اوبو كي لندولو سره پر مخ مبارك څكه تير كړلو چي د مرگ سختي او شدت په وجه چي كوم حرارت او گرمي پيدا سوې وه په هغه كي كمي وسي.

د رسول الله ﷺ د مرگ د سختي په باره كي علماوو څو وجوهات بيان كړي دي په هغو كي يوه وجه داده چي په رسول الله ﷺ باندي د سكرات الموت دا كيفيت څكه خپور سوی وو چي د امت د خلكو په دې سبب سره د خپل مرگ په باره كي زياته پريشاني نه سي هر كله چي امي دا وويني چي د رسول الله ﷺ پاک روح څرنگه چي د جسم مبارک څخه بېلوالی حاصل كړ نو هغوی به د ځان په باره كي د صبر لمن كلكه ونيسي چي د هغه په وجه به د هغوی په زكندن كي اساني وي .والله اعلم.

### د دنيا سزا د آخرت تر سزا غوره ده

﴿۱۴۷۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ اللَّهُ

دحضرت انس ﷛ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي الله ﷻ اراده وكړي

بِعَبْدِهِ الْخَيْرَ عَجَّلَ لَهُ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِعَبْدِهِ الشَّرَّ أَمْسَكَ

دخپل يو بنده سره دنيكۍ ، نو دهغه سزا په دنيا كي ژر وركوي ، او كله چي يو بنده ته د بدۍ اراده وكړي ،

عَنْهُ بِذَنْبِهِ حَتَّى يُوَافِيَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي

نو دهغه دگناهونو سزا پرېږدي تر څو د قيامت په ورځ هغه ته دگناهونو پوره سزا وركړي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\۵۱۹، رقم: ۲۳۹۶.

**تشريح** : په هر حال د دنيا سزا د آخرت تر سزا غوره ده د دې وجي الله پاک هغه نيک بندگان چي په گناهونو كي اخته دي په دنيا كي الله تعالى د مصيبت او تكليف او يا ناروغي په صورت

کي سزا ورکوي او د دې وجه داده چې د دنيا عذاب کم وي په دې توګه د دنيا موده کمه ده په هر حال کي تيريږي او هغه کسان چې د خداي ج څخه مسلسل نافرماني د وجي څخه د الله تعالی عذاب ورته ورکول کيږي او په اخرت کي پر بد بختي کي اخته کيږي نو الله تعالی هغه ته په دنيا کي سزانه نه ورکوي بلکه هغه ته اوږد عمر ورکوي د دې لپاره چې په اخرت کي په عذاب اخته سي او د آخرت عذاب د دنيا تر عذاب ډير سخت دی .

**لويه بدله**

﴿۱۴۸۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ عِظَمَ الْجَزَاءِ

دحضرت انس ﷛ څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : لويه بدله

مَعَ عِظَمِ الْبَلَاءِ وَإِنَّ اللهَ إِذَا أَحَبَّ قَوْمًا ابْتَلَاهُمْ فَمَنْ رَضِيَ فَلَهُ الرِّضَا وَمَنْ سَخِطَ فَلَهُ السَّخَطُ. رواه الترمذي وابن ماجة .

په لوی مصيبت سره ده ، خدای ﷻ چي يو قوم خوښ ګرځوي ، نو هغوی په مصيبت کي اخته کوي ، تر څو چي په مصيبت او آزمائښت کي خوشحاله سو ، نو دهغه لپاره دخدای ﷻ رضا ده ، او څوک چي ناراضه سو ، نو دهغه دپاره دخدای ﷻ ناراضي ده . ترمذي ، ابن ماجه.

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۵۱۹، رقم: ۲۳۹۶، وابن ماجه: ۲\۱۳۳۸، رقم: ۴۰۳۱.

**تشريح** : کله چي الله تعالی د يوسړي څخه خوشحاله سي نو هغه په مصيبت کي اخته کوي همداسي د کوم سړي څخه چي خوابدی کيږي نو هغه هم په مصيبت کي اخته کوي که څه هم دوهم جزء په حديث کي په ښکاره نه دی ذکر سوی مګر د حديث الفاظ (فمن رضي .......الخ) څخه دا جزء هم مفهوم کيږي .

ګويا د حديث حاصل دا سو چي د بنده خوشحالي او ناخوشحالي د حق تعالی د خوشحالي او ناخوشحالي علامت دی کوم سړی چي په مصيبت او بلاء کي راضي او خوشحاله وي هغه د الله تعالی خوښ او محبوب وي په دې توګه چي الله هم د هغه څخه راضي او خوشحاله وي او کوم سړی چي د مصيبت او بلاء پر سختيو باندي شکايت په ژبه راوړي او د ناراضګي او ناخوشحالي اظهار کوي نو هغه د الله تعالی د دربار څخه شړل سوی دی په دې توګه چي د هغه څخه خوشحاله او راضي نه وي .

نقل دي چي صحابوو په خپلو کي دا سوال کوی چي څنګه معلومېږي چي الله تعالی د یوبنده څخه راضي او خوشحاله دی اود کوم بنده څخه ناراضه دی ، ددې مطلب دادی چي که بنده د الله څخه خوشحاله او راضي وي نو دا به وګڼل سي چي الله پاک د هغه بنده څخه خوشحاله او راضي دی او که بنده د الله پاک څخه ناراضه وي نو د دې صاف مطلب به دا وي چي الله پاک هم د هغه څخه ناراضه دی .

## مسلمان ته ستونزي راتلل

﴿۱۴۸۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَزَالُ

د حضرت ابوهریره ﷛ څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ داسي وفرمایل : همېشه

الْبَلاَءُ بِالْمُؤْمِنِ وَالْمُؤْمِنَةِ فِي نَفْسِهِ وماله وولده حَتَّى يَلْقَى اللّٰهَ وَمَا عَلَيْهِ خَطِيئَةٌ. رواه الترمذي و روی مالك نحوه وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

مسلمان سړی او مسلماني ښځي ته دهغه یا د هغې په ذات ، مال او اولاد کي مصیبت او آزمائښت رسیږي . تر دې چي هغوی د خدای ﷻ سره دګناهونو څخه پاک یو ځای سي . ترمذي ، مالک ، په ترمذي کي راغلي دي چي دا حدیث حسن او صحیح دئ .

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۲۰، رقم: ۲۳۹۹، ومالک في الموطا ۱\ ۲۳۶، رقم: ۴۰.

## د ستونزو زغمل مرتبې لوړوي

﴿۱۴۸۲﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ خَالِدِ السُّلَمِيّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ

حضرت محمد بن خالد سلمي ﷛ د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلاره څخه روایت کړی دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللّٰهِ مَنْزِلَةٌ لَمْ يَبْلُغْهَا

کله چي د خدای ﷻ سره دیو بنده څه داسي رتبه وټاکل سي چي هغه په خپلو نیکو اعمالو سره تر لاسه کولای نه سي

بِعَمَلِهِ ابْتَلَاهُ اللّٰهُ فِيْ جَسَدِهِ أَوْ فِيْ مَالِهِ أَوْ فِيْ وَلَدِهِ ثُمَّ صَبَّرَهُ عَلٰى ذٰلِكَ يُبْلِغَهُ

نو خدای ﷻ هغه په بدني، مالي، او د اولاد په ستونزه اخته کوي، (یا خو هغه ناروغ سي یا د هغه مال ضائع سي، یا اولاد ته ئې تاوان ورسي) بیا خدای ﷻ هغه ته صبر ورکوي،

الْمَنْزِلَةَ الَّتِيْ سَبَقَتْ لَهُ مِنَ اللّٰهِ. رواه أحمد وأبو داود.

ترڅو هغه هغې مرتبې ته ورسوي، کومه چي د هغه لپاره تاکل سوې وي. احمد، ابوداؤد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۲۷۳، وابوداؤد: ۳\۴۷۰، رقم: ۳۰۹۰.

**تشريح**: د دې حدیث څخه معلومه سوه چي بنده په مصیبت او تکلیف کي د صبر کولو په وجه د اخروي سعادت هغه عظیمي درجې او مرتبې ته رسیږي چي هغه ته د عبادت او د اطاعت په ذریعه نسي رسیدلای.

## دنيا د مؤمن لپاره بنديخانه او د کافر لپاره جنت دئ

﴿۱۴۸۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ شِخِّيْرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عبد الله بن شخير رضي الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مُثِّلَ ابْنُ آدَمَ وَإِلَى جَنْبِهِ تِسْعَةٌ وَتِسْعُوْنَ مَنِيَّةً إِنْ أَخْطَأَتْهُ الْمَنَايَا وَقَعَ

انسان په داسي حال کي پیدا سوئ دئ چي د هغه په اړخ کي نهه نیوي (۹۹) هلاکونکي بلاګاني ایښودل سوي دي، که دا بلاګاني ځیني لیري سوې یعني انسان یې په مصیبت کي اخته نه کړ، یا هغه برداشت کړې،

فِي الْهَرَمِ حَتّٰى يَمُوْتَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

نو په سپین ږیرتوب کي خو خامخا تاوان او نقصان ورسوي، تر دې پوري چي مړ سي. ترمذي. دا حدیث غریب دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۹۶، رقم: ۲۱۵۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي انسان د عدم څخه وجود ته راځي نو د هغه څلورو خواوو ته د بلاګانو د یوجال په ډول اوار سوی وی هغه په داسي داسي بلاګانو او په مصیبتونو کي راچاپیره وي چي د هغه څخه خلاصون نه وي او که اتفاقا یو سړی د هغو بلاګانو څخه نجات

درلاسه كي نو په آخر كي د سپين ږيرتوب په جال كي ومبتلي او سپين ږيرتوب هم داسي وي چي درد يې بې دوا او بلا يې بې انتهاء وي حاصل دا چي دنيا د مومن لپاره قيد خانه او د كافر لپاره جنت دی نو مسلمانانو ته لاميږي چي هغوی د دنيا د هر مصيبت او درد په وخت د صبر لمن په لاس كي كلكه ونيسي او الله تعالی څخه د هغوی په مقدر كي څه ليكلي دي پر هغه راضي او صبر كونكی سي او د اخروي كاميابۍ او سعادت ضامن سي.

په يو حديث قدسي كي نقل دي چي الله تعالی ارشاد فرمايي كوم بنده چي زما نازل كړي مصيبتونه او تكليفونه پر هغو باندي صبر ونه كي زما د وركړو نعمتونو شكر ادا نه كي او زما په فيصله نه سي راضي نو هغه دي زما څخه ماسيوا د ځان لپاره يو بل دوهم رب پيدا كي سوچ وكړئ چي د داسي سړي لپاره د الله تعالی ناراضگي څومره سخته ده چي د صبر او شكر پر لار گامزن نه وي د الله تعالی پر فيصله نسي راضي. اللهم احفظنا منه وفقنا للصبر والشكر والرضاء.

## د قيامت په ورځ آرزو

﴿۱۴۸۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوَدُّ أَهْلُ

دحضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْعَافِيَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِينَ يُعْطَى أَهْلُ الْبَلَاءِ الثَّوَابَ لَوْ أَنَّ جُلُودَهُمْ كَانَتْ

دقيامت په ورځ به هغو خلكو ته چي په دنيا كي په مصيبت كي اخته سوي وي، ثواب وركول سي، نو كوم خلك چي په دنيا كي په امن او عافيت سره وه، ددې خبري اميد به ساتي چي كاشكي په دنيا كي ئې خپل بدنونه

قُرِضَتْ فِي الدُّنْيَا بِالْمَقَارِيضِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

په غيچيانو سره پرې كړي واى (او نن د هغه په بدله كي ډېر ثواب ترلاسه سوي واى. (ترمذي) په ترمذي كي ويل سوي دي چي دا حديث غريب دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۲۱، رقم: ۲۴۰۲.

## ناروغي د گناهونو كفاره ده

﴿۱۴۸۵﴾: وَعَنْ عَامِرِ الرَّامِ قَالَ ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عامر ﷺ څخه روایت دي چي يو وار رسول الله ﷺ يادونه وکړه

الْأَسْقَامَ فَقَالَ إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَصَابَهُ السَّقَمُ ثُمَّ عَافَاهُ اللهُ مِنْهُ كَانَ كَفَّارَةً

دناروغیو ، او په دې اړه يې وويل : يو مؤمن چي كله په يوه ناروغي كي اخته سي او وروسته بیا خدای ﷻ هغه ته روغتیا ورکړي ، نو دا ناروغي دهغه لپاره كفاره ګرځي

لِمَا مَضَى مِنْ ذُنُوبِهِ وَمَوْعِظَةً لَّهُ فِيمَا يَسْتَقْبِلُ وَإِنَّ الْمُنَافِقَ إِذَا مَرِضَ ثُمَّ

دتيرو ګناهونو او آئنده د هغه لپاره نصيحت او عبرت جوړ سي ، او منافق چي كله ناروغ سي ،

أُعْفِيَ كَانَ كَالْبَعِيرِ عَقَلَهُ أَهْلَهُ ثُمَّ أَرْسَلُوهُ فَلَمْ يَدْرِ لِمَ عَقَلُوهُ وَلِمَ أَرْسَلُوهُ

بيا روغتيا ورکړل سي نو د هغه اوښ په شان سي چي مالک تړلی وي ، بيا يې ايله كړي ، او ښ ته د دې سبب څرګند نه وي ، چي ولي دهغه خاوند هغه وتړئ، او ولي يې پرېښودئ ،

فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا الْأَسْقَامُ ؟ وَاللهِ مَا مَرِضْتُ قَطُّ فَقَالَ قُمْ عَنَّا فَلَسْتَ مِنَّا . رواه أبو داود .

يو سړی د نبی كريم ﷺ دابيان واورېدئ نو هغه ته يې وويل : يا رسول الله ! ناروغي څه شي ده ؟ قسم په خدای زه خو هيڅكله نه يم ناروغ سوی . نبی كريم ﷺ وفرمايل : ته زموږ د ډلي څخه ولاړ سه ، ته زموږ څخه نه ئې . (ابوداؤد).

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۳\۴۶۸، رقم: ۳۰۸۹.

**تشريح** : مومن د ناروغي څخه د صحت تر لاسه كولو وروسته اګاه كيږي او هغه پوهيږي چي زه د خپلو ګناهونو په وجه په ناروغي كي اخته سوی وم ځكه هغه نه يوازي دا چي پر خپلو تيرو ګناهونو باندي پښيمان كيږي او توبه كوي بلكه آئنده هم د ګناهونو څخه ځان ساتي، د دې برعكس د منافق حال دادی چي كله هغه د ناروغي وروسته جوړ سي نو د هغه مثال د هغه اوښ په ډول دی كه مالک هغه وتړي نو په دې نه پوهيږي چي زه يې ولي وتړم او ولي يې پرېښودم .

منافق د ناروغي په وجه نه پوهيږي نه د هغه څخه عبرت اخلي او نه په ګناهونو پښيمانه كيدو سره توبه كاږي ځكه د هغه ناروغي نه خو د هغه د تيرو ګناهونو كفاره كيږي او نه په آئنده كي د هغه لپاره د نصيحت او عبرت باعث كيږي چي هغه د ګناهونو څخه وساتل سي (فاولآئک

كالانعام بل هم اضل اولآئک هم الغافلون ) مطلب دادی چي ته د اهل طريقه څخه نه يې ځکه چي څنګه مونږ په ناروغيو او مصيبتونو کي اخته کيږو همداسي ته نه يې اخته سوی .

## ناروغ ته ډاډ ورکول

﴿۱۴۸۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلْتُمْ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي تاسو ورسئ

عَلَى الْمَرِيضِ فَنَفِّسُوا لَهُ فِي أَجَلِهِ فَإِنَّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ شَيْئًا وَيَطِيبُ بِنَفْسِهِ.

رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب .

ديو ناروغ پوښتني ته ،نو هغه ته ډاډ ورکوئ او دهغه رنځ او غم ليري کړئ ، که څه هم دا ډاډ حکم الهي نه سي منعه کولاي ، مګر دناروغ زړه خامخا خوشحالوي(ترمذي ، ابن ماجه) ترمذي ويلي چي دا حديث غريب دي .

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۳۵۹، رقم: ۲۰۸۷، وابن ماجه: ۱\۴۶۲، رقم: ۱۴۳۸.

**تشريح** : ځينو علماوو ليکلي دي کوم وخت چي زکندن نژدې سي نو د مريض لپاره مستحب دي چي هغه مسواک ووهي په صحيح حديثونو کي د رسول الله ﷺ په اړه نقل دي چي د وفات په وخت يې مسواک وهلی وو او د دې حکمت ځينو حضراتو دا فرمايلی دی چي په دې سره روح وتل اسانه کيږي همداسي هغه وخت د ملائکو په وجه خوشبويي لګول مستحب دي او پاکي جامې اغوستل لمونځ کول او لمبيدل هم مستحب دي .

## د نس په ناروغۍ کي مړ کېدل

﴿۱۴۸۷﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَتَلَهُ بَطْنُهُ لَمْ يُعَذَّبْ فِيْ قَبْرِهِ .رواه أحمد والترمذي وقال هذا حديث غريب .

د حضرت سليمان بن صرد رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي دنس دناروغۍ څخه مړ سي ، هغه ته دقبر عذاب نه ورکول کيږي . (احمد ، ترمذي) ويل سوي چي دا حديث غريب دي .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۳\۲۶۲، والترمذي ۳\۲۷۷، رقم: ۱۰۶۴.

**تشريح** : د نس په ناروغۍ كي د مړ كيدونكي لپاره دا سعادت ځكه دى چي د دې مرض د سختي په وجه ګناه ليري كيږي او هغه شهيد مري څرنګه چي په تيرو صفحاتو كي ذكر سوى دى او د شهيد په باره كي په صحيح مسلم كي دا حديث نقل دى چي د شهيد ټولي ګناوي بېله د بندګانو د حقوقو څخه نور ټول بخښل كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د كافر پوښتنه

﴿۱۴۸۸﴾ : عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ غُلَامٌ يَهُودِيٌّ يَخْدُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت انس ﷛ څخه روايت دي چي يو يهودي هلك به د نبي كريم ﷺ خدمت كوئ ،

فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ ﷺ يَعُودُهُ فَقَعَدَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَقَالَ لَهُ أَسْلِمْ فَنَظَرَ إِلَى

هغه هلك ناروغ سو ، نو نبي كريم ﷺ دهغه دپوښتني لپاره تشريف يوور ، دهغه سره كښېناستئ ، او ويې ويل : اسلام قبول كړه.

أَبِيهِ وَهُوَ عِنْدَهُ فَقَالَ أَطِعْ أَبَا الْقَاسِمِ ﷺ فَأَسْلَمَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ ﷺ وَهُوَ

هلك دخپل پلار خواته وكتل ، چي دهغه سره نژدې ناست وو ، دهغه پلار وويل :دابو قاسم (نبى كريم ﷺ) اطاعت وكړه ، نو هغه هلك اسلام قبول كړ . نبى كريم ﷺ چي كله دهغه ځاى څخه وګرځېدى

يَقُولُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَنْقَذَهُ مِنَ النَّارِ . رواه البخاري .

نو فرمايل يې : هغه لوى خداى ﷻ د هر ډول تعريف وړ دئ چي دا هلك يې د دوږخ څخه خلاص كړ . (بخاري).

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۱۹\۱۳، رقم: ۱۳۵۶.

**تشريح** : د حديث د الفاظو : فقعد راسه څخه معلومه سوه چي د عيادت په وخت كي د مريض د سرخواته كښېنستل مستحب دي او د دې حديث څخه دا هم معلومه سوه چي د كافر ذمي څخه خدمت اخستل جائز دى او كه كافر ذمي ناروغه سي نو د پوښتني لپاره يې ورتلل جائز دي .

په كتاب خزانه كي ليكلي دي چي د يهوديانو د عيادت او پوښتني لپاره په تلو كي هيڅ حرج

نسته هو د مجوسيانو د پوښتني په باره کي د علماوو په اقوالو کي اختلاف دی همداسي د فاسق د پوښتني په باره کي که څه هم د علماوو اختلاف دی مګر صحیح دادی چي د فاسق پوښتني ته په تلو کي هیڅ حرج نسته دا حدیث د نابالغ اسلام د قبلولو په باره کي د حضرت امام اعظم ابو حنیفه رح تائید کوي ځکه چي امام موصوف فرمايي چي د نابالغ اسلام قبلول صحیح دی . علماوو لیکلي دي چي دلته په حدیث کي د کوم یهودي هلک ذکر کیږي د هغه نوم عبدالقدوس دی .

## د ناروغ د پوښتني لپاره پر پښو تلل غوره دي

﴿۱۴۸۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ عَادَ مَرِيضًا نَادٰى مُنَادٍ فِي السَّمَاءِ طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلاً . رواه ابن ماجه .

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي دیو ناروغ پوښتنه وکړي نو یوه ملائکه د اسمان څخه اواز کوي تاته دي په دنیا او اخرت کي خوشحالي وي ، او په دنیا او اخرت کي دي ستا تلل مبارک وي او په جنت کي دي درته لویه مرتبه حاصله وي .(ابن ماجه).

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۶۴، رقم: ۱۴۴۳.

**تشریح** : اصل مقصد خو د عیادت څخه ناروغ ته رسیدل دي که هر ډول وي او په هره ذریعه سره وي مګر علماء لیکي چي په دې حدیث کي دې ته اشاره ده چي د ناروغ سري پوښتني ته تلل پرپښو افضل دي .

## د ناروغ د خبر ورکولو طریقه

﴿۱۴۹۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنَّ عَلِيًّا خَرَجَ مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي د نبي کریم ﷺ د هغه ناروغی د حالت څخه په کوم کي چي وفات سو ، حضرت علي رضی الله عنه راستون سو ،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي وَجَعِهِ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ فَقَالَ النَّاسُ يَا أَبَا حَسَنٍ كَيْفَ أَصْبَحَ

نو خلکو پوښتنه وکړه ، چي اې ابو الحسن! رسول الله ﷺ په سهار کي څنګه وو ،

رَسُولُ اللهِ ﷺ فَقَالَ أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللهِ بَارِئًا . رواه البخاري

علي رضی الله عنه جواب ورکړ ، د خدای شکر دئ ، سهار وړ باندي ښه تیر سو .(بخاري).

**تخريج:** صحيح البخاري ۱۱\۵۷، رقم: ٦٢٦٦.

**تشريح:** كله چي خلكو د حضرت علي رضي الله عنه څخه د رسول الله ﷺ د روغتيا په باره كي پوښتنه وكړه نو حضرت علي رضي الله عنه د دې الفاظو په ذريعه جواب وركړ د هغه مطلب دا وو چي د الله تعالى شكر دى چي اوس رسول الله ﷺ صحت ته نژدې دى د حضرت علي رضي الله عنه دا جواب يا خو د هغوى د خپل گمان مطابق وو چي هغوى دا وگڼله چي رسول الله ﷺ ژر جوړيدونكى دى يا دا چي حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د ناروغي د احساس څخه د نااميدي باوجود دا جواب د نيک فال په توگه وركړ. علماء ليكي كله چي د عيادت كونكي څخه د مريض حال وپوښتل سي كه څه هم د ناروغه حالت خراب وي خو په دې باره كي ادب او طريقه داده چي د نيک فال په توگه همداسي د ښو اظهار يعني په خوشحالي سره جواب وركول پكار دى.

## علاج د توكل خلاف نه دى

﴿۱۴۹۱﴾: وَعَنْ عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ أَلَا أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ

دحضرت عطاء بن ابو رباح رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ماته ابن عباس رضي الله عنه وويل: ايا زه تاته يوه جنتي ښځه وښيم،

أَهْلِ الْجَنَّةِ قُلْتُ بَلَى قَالَ هَذِهِ الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

ما ورته وويل. هو! ابن عباس رضي الله عنه وويل: هغه توري ښځي چي د نبى كريم ﷺ په خدمت كي عرض كړى وو چي

وَسَلَّمَ فَقَالَتْ إِنِّي أُصْرَعُ وَإِنِّي أَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللَّهَ لِي قَالَ إِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَلَكِ

يا رسول الله! پر ما باندي د ميرگي ځپه راځي، او د هغه په وجه زما بدن ښكاره كيږي، تاسو ماته دعا وكړئ. نبى كريم ﷺ ورته وفرمايل: كه ته غواړې نو (پر دې ناروغى) صبر وكړه،

الْجَنَّةُ وَإِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ اللَّهَ أَنْ يُعَافِيَكِ فَقَالَتْ أَصْبِرُ فَقَالَتْ إِنِّي أَتَكَشَّفُ

خداى جل جلاله به درته جنت دركړي، او كه غواړې زه به درته دعا وكړم، خداى جل جلاله به د دې ناروغى څخه شفاء دركړي، هغې ښځي وويل: زه به صبر وكړم،

فَادْعُ اللَّهَ لِي أَنْ لَا أَتَكَشَّفَ فَدَعَا لَهَا. متفق عليه

مگر تاسو راته دعا وکړئ، چې د میرګي د حملې په وخت کې مې ستر ښکاره نه سي، نو نبی کریم ﷺ ورته دعا وکړه (بخاري).

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۱۱۴، رقم: ۵۶۵۲، ومسلم ۴\ ۱۹۹۴، رقم: ۵۴- ۲۵۷۶.

**تشریح**: د هغه ښځې نوم سعیره یا سقیره وو، د یو روایت سره سم دغه ښځې به د ام المومنین بي بي خدیجة الکبری سر ږمونځوی.

په دې حدیث کې دې ته اشاره ده چې پر مصیبت او تکلیف باندې صبر کول او د رضا په تقدیر د اوسیدو دواءاو دعاء پرېښول نه دي جائز بلکه د حدیث ښکاره مفهوم خو پر دې خبره دلالت کوي چې په صبر او رضا سره همیشه په ناروغي کې اخته کیدل د صحت مند او عافیت کیدو څخه بهتر دي مگر په دې نسبت د ځینو خلکو یعني دا د هغه سړي لپاره افضل دی چې د هغه ناروغي د الله تعالی د مخلوق د ګټې وررسولو د تعطل باعث جوړ نه سي او د حدیث ښکاره مفهوم هم په دې خبره دلالت کوي چې علاج معالجه کول د ابوداود د حدیث مطابق سنت دي په هغه کې یو روایت دی چې صحابه ﷺ رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې ایا مونږ په ناروغي کې دوا کولای سو رسول الله ﷺ وفرمایل هو دارو کوئ ځکه چې الله تعالی هیڅ داسې ناروغي نه ده پیدا کړې چې د هغه دارو بې نه وي پیدا کړي ماسیوا د سپین ږیرتوب ،علماء لیکي علاج معالجه د توکل خلاف نه دي ځکه چې علاج معالجه یوازې د اسبابو په درجه کې دي دا وجه ده چې رسول الله ﷺ په خپله هم علاج اختیاروی حال دا چې رسول الله ﷺ د توکل د مخه علاج معالجه پرېښود ل څرنګه چې ابوبکر ﷺ پرې ایښې وه د فضیلت باعث دی.

## ناروغي د ګناهو کفاره ده

﴿۱۴۹۲﴾: وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ إِنَّ رَجُلاً جَاءَهُ الْمَوْتُ فِيْ زَمَنِ رَسُوْلِ اللهِ

د حضرت یحي بن سعید ﷺ څخه روایت دي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې یو سړی مړ سو،

ﷺ فَقَالَ رَجُلٌ هَنِيْئاً لَهُ وَلَمْ يُبْتَلْ بِمَرَضٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَيْحَكَ

نو یوه سړي وویل، دده وفات دي مبارک وي (دا چې بې تکلیفه مړ سو) او په ناروغی اخته نه سو، په دې اوریدو سره نبی کریم ﷺ ورته وویل: پر تا دي افسوس دي،

وَمَا يُدْرِيْكَ لَوْ أَنَّ اللهَ ابْتَلَاهُ بِمَرَضٍ فَكَفَّرَ عَنْهُ مِنْ سَيِّئَاتِهِ. رواه مالك مرسلا

تا ته څه معلومه ده، که خدای ﷻ په ناروغي کې اخته کړی وای، نو دا ناروغي به دهغه د ګناهونو

كفاره سوې وای (مالک مرسلا)

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۹۴۲، رقم: ۸.

## د صابر ناروغ فضیلت

﴿۱۴۹۳﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ وَالصُّنَابِحِيِّ أَنَّهُمَا دَخَلاَ عَلٰى رَجُلٍ مَّرِيْضٍ

دحضرت شداد بن اوس او صنابحی رضی الله عنهما څخه روایت دي چي دوی دواړه ديو ناروغ پوښتني ته ورغلل،

يَّعُوْدَانِهِ فَقَالاَ لَهُ كَيْفَ أَصْبَحْتَ قَالَ أَصْبَحْتُ بِنِعْمَةٍ قَالَ شَدَّادٌ أَبْشِرْ

او هغه ته يې وويل: سهار در باندي څنګه تیر سو هغه ورته وویل دخدای شکر دئ ما په نعمت الهي باندي سهار کړ، شداد ورته وويل:

بِكَفَّارَاتِ السَّيِّئَاتِ وَحَطِّ الْخَطَايَا فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ إِنَّ اللهَ

دګناهونو په ليري کېدو او دخطاګانو په پاکېدو سره خوشحاله سه، ځکه چي ما د نبی کريم ﷺ څخه اورېدلی دي، خداوند تعالی

عَزَّ وَجَلَّ يَقُوْلُ إِذَا أَنَا ابْتَلَيْتُ عَبْدًا مِّنْ عِبَادِيْ مُؤْمِنًا فَحَمِدَنِيْ عَلٰى مَا

فرمايي: کله چي زه يو مؤمن بنده په يوه ناروغي باندي اخته کړم او هغه پر دې ازموينه زما تعريف وکړي

ابْتَلَيْتُهُ فَإِنَّهُ يَقُوْمُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذٰلِكَ كَيَوْمٍ وَّلَدَتْهُ أُمُّهُ مِنَ الْخَطَايَا وَيَقُوْلُ

نو هغه دخپلي بسترې څخه داسي پاک ولاړسي لکه چي دموره نن پيدا سوی وي او هيڅ ګناه دهغه پاته نه سي، او خدای ﷻ فرمايي:

الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى أَنَا قَيَّدْتُّ عَبْدِيْ وَابْتَلَيْتُهُ فَأَجْرُوْا لَهُ مَا كُنْتُمْ تُجْرُوْنَ

لَهُ وَهُوَ صَحِيْحٌ. رواه احمد.

ما خپل بنده بندي کړ، په مصيبت کي مي واچوی، او ازمائښت مي په وکړ. نو (ای) ملائکو،

تاسو دهغه په اعمال نامه کي هغه عمل وليکئ چي دهغه دروغتيا په حالت کي به مو ليکئ (اعمال صالحه). (احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۱۲۳.

## ناروغي گناهونه ختموي

﴿۱۴۹۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا كَثُرَتْ ذُنُوْبُ الْعَبْدِ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ مَا يُكَفِّرُهَا مِنَ الْعَمَلِ ابْتَلَاهُ اللهُ بِالْحُزْنِ لِيُكَفِّرَهَا عَنْهُ. رواه أحمد

دحضرت بی بی عائشې رضی الله عنها څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي دیو بنده گناهونه زيات سي، دهغه په اعمالو کي څه داسي شي پاته نه وي ،چي د هغه د گناهونو کفاره سي، نو خدای ﷻ يې په درد غم او مصيبت کي اخته کوي، چي په دې سره دهغه دگناهونو کفاره سي (احمد).

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\۱۵۷.

**تشريح**: په يو روايت کي چي طبراني او حاکم نقل کړی دی دا نقل دي چي الله تعالی هر غمجن زړه خوښوي.

## د ناروغ د پوښتني ثواب

﴿۱۴۹۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ عَادَ مَرِيْضًا لَّمْ يَزَلْ يَخُوْضُ الرَّحْمَةَ حَتّٰى يَجْلِسَ فَإِذَا جَلَسَ اغْتَمَسَ فِيْهَا. رواه مالك وأحمد.

دحضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي ديوه ناروغ پوښتنه کوي، هغه درحمت په درياب کي داخليږي، تر دې چي کښيني، کله چي دناروغ سره کښيناستي نو درحمت په درياب کي ډوب سي. (مالک، احمد)

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۹۴٦، رقم: ۱۷، والامام احمد في مسنده ۲\۳۰۴.

## دتبي علاج

﴿۱۴۹۶﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ إِذَا أَصَابَ أَحَدَكُمُ الْحُمّٰى فَإِنَّ الْحُمّٰى

ثوبان رضي الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چي دچا تبه سي، او تبه

قِطْعَةٌ مِنَ النَّارِ فَلْيُطْفِئْهَا عَنْهُ بِالْمَاءِ فَلْيَسْتَنْقِعْ نَهْرًا جَارِيًا لِيَسْتَقْبِلَ

د اور یوه ټوټه ده، نو هغه ته پکار ده، چي په اوبو سره یې یخه کړي یعني روانو اوبو ته دننه ورسي او د اوبو دبهېدو پر لور ودرېږي،

جِرْيَتَهُ فَيَقُولُ بِسْمِ اللهِ اللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ وَصَدِّقْ رَسُولَكَ بَعْدَ صَلَاةِ

بیا دي دا کلمات ووائي: بسم الله......رسولک (زه دخدای جل جلاله په پاک نامه سره شفاء غواړم. ای الله ته دي بنده ته شفاء ورکړې او دخپل رسول قول ریښتینی کړې) او دا عمل دسهار دلمانځه څخه وروسته

الصُّبْحِ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ فَلْيَغْتَمِسْ فِيهِ ثَلَاثَ غَمَسَاتٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَإِنْ

دلمر ختو څخه مخکي وکړي او په دریاب کي درې غوټې ووهي، او درې ورځي دي دا کار وکړي

لَمْ يَبْرَأْ فِي ثَلَاثٍ فَخَمْسٍ وَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي خَمْسٍ فَسَبْعٌ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِي سَبْعٍ

که ددرو ورځو پوري ارام نه راغي نو تر پنځو ورځو دي دا کار وکړي، که پنځه ورځو کي ارام او سکون رانه غي نو اوو ورځو پوري دي دا کار کوي او که تر اوو ورځو پوري سکون حاصل نه سي

فَتِسْعٍ فَإِنَّهَا لَا تَكَادُ تُجَاوِزُ تِسْعًا بِإِذْنِ اللهِ عَزَّوَجَلَّ. رواه الترمذي و قال

هذا حديث غريب

نو تر نهو ورځو پوري دي دغه کار وکړي، دخدای جل جلاله په فضل او مهرباني سره به تبه دنهو ورځو څخه زیاته نه پاته کیږي (ترمذي) په ترمذي کي ویل سوي چي دا حدیث غریب دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴/۳۵۷، رقم: ۲۰۸۴.

**تشريح**: لفظ ولینغمس په اصل کي (فليستنقع) په ویاله کي د غورځیدو بیان دی نو د دې عبارت څخه دا معني هم اخیستل کیږي چي درې غوټې په درو ورځو کي ووهي او دا معنی هم

محتمل كيداى سي چي هره ورځ درې درې غوټې ووهي.

په پورتني حديث كي د تبي لپاره چي كوم علاج تجويز كړل سوى دى هغه علاج مخصوص دى يعني د هري تبي لپاره دا علاج كاركونكى نه دى بلكه د دې تعلق د ځړي تبي د ځينو اقسامو سره دى چي په هغه كي اهل حجاز اخته وي په ځني تبو كي د اوبو د استعمال څخه نه يوازي دا چي مضر وي بلكه د هلاكت باعث وي ځكه په هري تبي كي د علاج دا طريقه اختيارول نه ده پكار هو كه په يوې تبي كي مسلكي طبيب او باوري ډاكټر اجازت وركړي نو بيا پر هغه طريقه باندي عمل كول پكار دي.

په دې اړه خطابي رحمة الله عليه يوه واقعه ليكلې ده چي يو سړى په داسي تبي كي اخته سو چي په هغه كي د اوبو استعمال ضرر مند وو خو هغه په ناپوهي كي په اوبو كي غوټه ووهله نتيجه دا سوه چي حرارت يې په بدن كي ودريدى نو هغه دومره سخت ناروغه سو چي هلاكت ته نژدې سو بيا چي په څه نا څه طريقه ښه سو نو ظالم په دې نه سو پوه چي د حديث په معني د نه پوهيدو په وجه خپله په مصيبت كي ومښتلو البته پخپله د حديث په باره كي كه هغه په دې پوهيدى چي دا حكم د هر قسم تبي لپاره نه دى بلكه د ځينو خاصو تبو لپاره دى.

**تبي ته بد مه وايا ست**

﴿۱۴۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ ذُكِرَتِ الْحُمَّى عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي د رسول الله ﷺ په حضور كي د تبي ذكر وسو،

وَسَلَّمَ فَسَبَّهَا رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبَّهَا فَإِنَّهَا تَنْفِي

يوه سړي تبي ته بد وويل، نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: تبي ته بد مه وايه، دا نسان ګناهونه داسي پاكوي،

الذُّنُوبَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْحَدِيدِ. رواه ابن ماجه.

څنګه چي اور او سپنه د خيرو څخه پاكوي. (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۱۴۹، رقم: ۳۴۶۹.

**تشريح**: مطلب دادى هر كله چي تبه ګناهونه ليري كوي نود عقل او دانش تقاضا دا پكار ده چي د تبي په معامله كي د شكر څخه كار اخيستل پكار دي، دانه چي نا شكري وكړل سي مشائخو رح ليكلي دي چي په درد او مصيبت كي هم داسي د الله تعالى شكر پكار دى څنګه

چي په نعمت او راحت كي د الله تعالى شكر ادا كول كيږي ځكه چي خداوند قدوس كله پر چا يوه بلا نازلوي نو په هغه بلاء كي هم د هغه څه نا څه رحمت پټ وي .

**تبه د دوږخ د اور بدله ده**

﴿۱۴۹۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَادَ مَرِيْضًا فَقَالَ أَبْشِرْ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ ديوه ناروغ پوښتنه وكړه ، او ورته يې وفرمايل : تا ته دي زيرى وي ،

فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُوْلُ هِيَ نَارِيْ أُسَلِّطُهَا عَلَى عَبْدِيَ الْمُؤْمِنِ فِي الدُّنْيَا لِتَكُوْنَ

خداى جل جلاله فرمايي : تبه زما اور ده ، زه هغه پر خپل يوه بنده په دې وجه ور ولم چي هغه تبه

حَظَّهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه أحمد وابن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان

د قيامت په ورځ د هغه لپاره د دوږخ د اور بدله وګرځيږي .(احمد ، ابن ماجه ، بيهقي شعب الايمان)

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۴۴۰، وابن ماجه ۲\ ۱۱۴۹، رقم: ۳۴۷۰، والبيهقي في شعب الايمان ۷\ ۱۶۱، رقم: ۹۸۴۴.

**تشريح** : مطلب دادى چي په قرآن مجيد كي د الله تعالى دا ارشاد دى (وان منكم الا واردها ) يعني په تاسو كي هيڅ څوک داسي نسته چي د قيامت په ورځ په دوږخ كي نه واچول سي خو مومن بنده د دې د داخليدو په بدله كي د دنيا په تبه كي اخته كيږي همداسي هغه به د تبي په وجه د عذاب څخه چي دوږخ كي د داخليدو په وجه وي كه څه هم داخليدل بې په دې توګه د ټولو لپاره وي چي پل صراط به د دوږخ پورته قائم كړل سي او پر هغه به ټول خلک تيريږي .

د پورتني تشريح سره سم په حديث كي لفظ مومن سره د كامل قيد لګول پكار دي د دې مطلب به دا وي چي د حديث مفهوم تعلق د كامل مومن سره دى ځكه چي ځيني ګنهګاران مومنان به هم د دوږخ د اور په عذاب كي اخته كول كيږي همداسي هغه مومن چي د خپلو ګناهونو په وجه د دوږخ په عذاب كي اخته كيږي د حديث مفهوم او د مصداق څخه به خارج وي .

**ناروغي د ګناهو د بخښني ذريعه ده**

﴿۱۴۹۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ إِنَّ الرَّبَّ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى يَقُوْلُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى فرمايي :

وَعِزَّتِيْ وَجَلاَلِيْ لاَ أُخْرِجُ أَحَدًا مِنَ الدُّنْيَا أُرِيْدُ أَغْفِرُ لَهُ حَتّٰى أَسْتَوْفِيْ كُلَّ

زما دي په خپل عزت او لويي سره قسم وي ، څوک چي زه د دنيا څخه پاک صاف او بې ګناه پورته کول غواړم هغه ته د هغه د ګناهونو په دنيا کي پوره بدله ورکوم

خَطِيْئَةٍ فِيْ عُنُقِهِ بِسَقَمٍ فِيْ بَدَنِهِ وَإِقْتَارٍ فِيْ رِزْقِهِ . رواه رزين .

د ګناهونو چي د ده پر غاړه وي . يعنى هغه په ناروغي کي اخته کوم او د هغه په رزق کي کمي راولم . (رزين) .

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح** : د الله تعالى د ارشاد مطلب دادى چي کوم بنده زه د آخرت په ابدي سعادت سره پالل ېې غواړم نو د هغه د ګناهونو سزا په دنيا کي په دې توګه ورکوم چي کله خو هغه په ناروغي کي اخته کوم کله د مال او رزق تنګي پر هغه مسلطوم نو هغه به بخښل کيږي او د آخرت د عذاب څخه به ساتل کيږي حاصل دا چي فقر او ناروغي او درد او مصيبت ګناهونه ليري کوي .

**د ابن مسعود ﷛ واقعه**

﴿۱۵۰۰﴾ : وَعَنْ شَقِيْقٍ قَالَ مَرِضَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَعُدْنَاهُ فَجَعَلَ يَبْكِيْ

د حضرت شقيق ﷛ څخه روايت دي چي عبد الله بن مسعود ﷛ ناروغ سو ، موږ د هغه پوښتني ته ورغلو ، نو هغه موږ ته په ژړا سو ،

فَعُوْتِبَ فَقَالَ إِنِّيْ لاَ أَبْكِيْ لِأَجْلِ الْمَرَضِ لِأَنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ

خلکو هغه ملامت کړ ، هغه وويل . زه د ناروغى له کبله نه ژاړم ، ځکه چي ما د نبى کريم ﷺ څخه اورېدلي دي ،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْمَرَضُ كَفَّارَةٌ وَإِنَّمَا أَبْكِيْ أَنَّهُ أَصَابَنِيْ عَلٰى حَالِ فَتْرَةٍ وَّ

چي فرمايل يې : ناروغي د ګناهونو کفاره کيږي ، بلکه په دې ژاړم چي د سپين ږيرتوب په ورځو کي زه ناروغ سوم ،

لَمْ يُصِبْنِيْ فِيْ حَالِ اِجْتِهَادٍ لِأَنَّهُ يُكْتَبُ لِلْعَبْدِ مِنَ الْأَجْرِ إِذَا مَرِضَ مَا كَانَ

دځواني په ورځو کي ناروغ نه سوم، چي د اعمالو دپاره بهترينه زمانه وه، او انسان چي ناروغه سي،

يُكْتَبُ لَهُ قَبْلَ أَنْ يَّمْرِضَ فَمَنَعَهُ مِنْهُ الْمَرَضُ . رواه رزين .

نو دهغه دناروغي په ورځو کي دهغه هغه اعمال ليکل کيږي کوم چي هغه دصحت په وخت کي کول، دې ناروغي زه ددې ثواب ځخه محرومه کړي يم . (رزين) .

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د ځواني په ورځو کي د صحت او روغتيا په حالت کي نيک عمل ډيرزيات وي ځکه چي د دې بشارت مطابق چي الله تعالى په خپل فضل او کرم سره د ناروغي په حالت کي د ناروغه بنده په اعمالنامه کي ملائکو ته د هغه اعمالو د ليکلو حکم ورکوي کوم چي د هغه د جوړتيا په حالت کي کول او اوس د ناروغي په وجه يې نه سي کولاي د ځواني د ورځو په ناروغيو کي چي د کوم ثواب اعمالو ثواب ليکل کيږي ځکه ابن مسعود ﷺ فرمايي کاشکي چي زه د ځواني په ورځو کي ناروغه سوی واي چي زما په اعمال نامه کي زيات ثواب ليکل کيداي .

## عيادت کله کول پکار دي

﴿۱۵۰۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَعُوْدُ مَرِيْضًا إِلَّا بَعْدَ ثَلَاثٍ . رواه ابن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان .

دحضرت انس ﷺ ځخه روايت دي چي رسول الله ﷺ به درې ورځي وروسته دمريض پوښتنه کول . (ابن ماجه ، بيهقي درشعب الايمان)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۶۲، رقم: ۱۴۳۷، والبيهقي في شعب الايمان ۶\ ۵۴۳، رقم: ۹۲۱۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي د ناروغ کيدو درې ورځي وروسته د مريض د پوښتني لپاره به رسول الله ﷺ تشريف وړی په دې اړه تر ټو پوري چي د دې مسئلې سره تعلق دی جمهور علماء په دې خبره متفق دی چي عيادت په زمانه سره نه دی مقيد کله چي غواړي ودې يې کړي که مخکي يې وکړي يا وروسته ځيني حضرات خو وايي چي دا حديث ضعيف دی بلکه ځينو حضراتو خو دا حديث د ځان ځخه جوړ سوی بولي .

## د ناروغ څخه دعاء وغواړئ

﴿۱۵۰۲﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا دَخَلْتَ عَلٰى مَرِيْضٍ فَمُرْهُ يَدْعُوْ لَكَ فَإِنَّ دُعَاءَهُ كَدُعَاءِ الْمَلَائِكَةِ. رواه ابن ماجه.

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي ته ديوه ناروغ پوښتني ته ورسې نو هغه ته دا ووايه چي ما ته دعا وكړه، ځكه چي د هغه دعا د ملائكو د دعا په ډول وي. (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۶۳، رقم: ۱۴۴۱.

**تشريح**: د مريض دعاء د ملائكو د دعاء په ډول گرځول سوى دى ځكه چي د ناروغه سړي خو د ملائكو سره ډير مشابهت وي په دې توگه چي څنگه ملائكي د گناهونو څخه پاكي وي هميشه د الله تعالى په ياد كي اخته وي او هروخت په بارگاه رب العزت كي دعاء مناجات او التجاء كوي همداسي ناروغه هم د گناهونو څخه ساتل كيږي هر وخت د الله تعالى خواته متوجه وي او دعاء، زارئ، او التجاء كي مصروفه وي.

## د ناروغ په مخكي شور مه كوئ

﴿۱۵۰۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ تَخْفِيْفُ الْجُلُوْسِ وَقِلَّةُ الصَّخَبِ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي: دا كار سنت دئ چي د ناروغ سره كم كښېنئ او شور مه كوئ،

فِي الْعِيَادَةِ عِنْدَ الْمَرِيْضِ قَالَ وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا كَثُرَ

د رسول الله ﷺ د ناروغي په زمانه كي هر كله چي خلكو شور جوړ كړ او اختلاف يې وكړ، نو نبى كريم ﷺ وفرمايل:

لَغَطُهُمْ وَاخْتِلَافُهُمْ قُوْمُوْا عَنِّيْ. رواه رزين.

زما څخه ولاړ سئ. (رزين)

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د ابن عباس رضي الله عنه د ارشاد څخه دا معلومه سوه چي د پوښتني د ادبونو څخه يو ادب دادى چي د ناروغه سره د پوښتني په وخت كي يوازي دومره وخت كښېنستل پكار دي چي په

هغه کي د ناروغه سړي احوال معلوم کړل سي او د هغه د حالاتو او کیفیاتو علم وسي ګویا د هغه سره خامخا تر زیات وخته پوري په کښېنستلو سره د ناروغه سړي پر مزاج بوج راوړل نه دي پکار هلته دا هم معلومه سوه چي د ناروغه سره په کښېنستلو سره شور کول هم مکروه دي د روایت د دوهم جز تفصیل د ابن عباس رضی الله عنه د روایت په رڼا کي چي په بخاري کي روایت دي دادي چي رسول الله ﷺ د خپل ژوند په اخري ورځو کي هر کله چي په مرض اخته سو او د وفات وخت یې رانژدې سو په دې وخت کي د رسول الله ﷺ سره ډیر خلک جمع وه چي په هغوی کي حضرت عمر رضی الله عنه هم وو رسول الله ﷺ وفرمایل قلم او سیاهي راوړئ زه تاسو ته یوه وصیت نامه لیکم چي زما وروسته په ګمراهي کي اخته نه سئ د دې په اوریدو سره حاضرین په مخاطب کولو سره حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل معلومیږي چي دا وخت په رسول الله ﷺ د مرض شدت ډیر غالب دی ځکه چي رسول الله ﷺ د وصیت نامه لیکلو لپاره فرمایي کنې د وصیت نامه څه ضرورت دی ځکه چي ستاسو سره قرآن کریم موجود دی او کتاب الله ستاسو لپاره کافي دی د دې وروسته اهل بیت او نورو خلکو خپله خپله خبره شروع کړل چابه ویل قلم او سیاهي راوړل پکار دي چي رسول الله ﷺ ستاسو لپاره وصیت نامه ولیکي ځینو خلکو به د حضرت عمر رضی الله عنه د خبري تائید کولو غرض په دې اړه کي څه بحث مباحثه زیاته سوه او د خلکو رایې شور اختیار کړ نو رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو ټول خلک زما څخه لیري سئ د دې صورت واقعه څخه روافض دا نتیجه اخلي چي رسول الله ﷺ په هغه وصیت نامه کي د خلافت په باره کي څه لیکل غوښتل (مثلاً زما وروسته په خلیفه اول علي رضی الله عنه مقرر کړل سي) مګر حضرت عمر رضی الله عنه رسول الله ﷺ د دې څخه منعه کړل.

علامه ابن حجر رحمة الله علیه د دې جواب دا ورکړی دی چي د روافضو دا نتیجه اخذ کول صحیح نه ده ځکه چي د دې واقعې حقیقت خو دا وو چي رسول الله ﷺ چي د وصیت نامه لیکلو لپاره اراده وکړله او په حاضرینو کي اختلاف پیدا سو نو د رسول الله ﷺ په زړه کي دا خبره راغله مصلحت دادی چي څه وصیت نامه ونه لیکل سي رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضی الله عنه د ویلو په وجه نه بلکه خپله په خپل اختیار سره نه یوازې دا چي هغه وخت وصیت نامه ونه لیکله بلکه د لیکلو اراده یې هم پرېښوله ځکه که رسول الله ﷺ د یو شي لیکلو پخه اراده کړې وای نو د حضرت عمر رضی الله عنه بل څه مجال وو چي د رسول الله ﷺ د فیصلې په لاره کي خنډ جوړ نسي رسول الله ﷺ د دې واقعې وروسته تر درو ورځو پوري ژوندئ وو او په دا درو ورځو کي د رسول الله ﷺ سره حضرت عمر رضی الله عنه او نور صحابه موجود نه وه بلکه اهل بیت مثلاً حضرت علي رضی الله عنه حضرت عباس رضی الله عنه

وغيرهما په بارگاه رسالت كي موجود وه كه رسول الله ﷺ په دې وخت د خلافت په باره كي څه وصيت نامه ليكلو كي مصلحت گڼي نو خامخا به يې ليكلي واى بيا دا چي رسول الله ﷺ د خلافت په باره كي داسي طريقه اختيار كړله چي په هغه كي د څه شک او شبهې او تاويل گنجائش نه و پاته رسول الله ﷺ په خپلو اخري ورځو كي حضرت ابوبكر ؓ ته په لمانځه كي د خلكو امام مقرر كړ په دې وجه حضرت علي ؓ د صديق اكبر ؓ په لاس د بيعت كولو لپاره د خلكو په مخكي تقرير وفرمايه چي د رسول الله ﷺ حضرت ابوبكر ؓ زموږ د دين لپاره منتخب كړ يعني په لمانځه كي زموږ امام يې مقرر كړ نو ايا مونږ دې هغوى د خپلې دنيا لپاره ولي منتخب نه كړو، رسول الله ﷺ چي ابوبكر ؓ په لمانځه كي د خلكو د امام جوړولو لپاره راوغوښتي نو هغه وخت زه د رسول الله ﷺ سره ناست وم او رسول الله ﷺ زه ليدم خو رسول الله ﷺ زه امام نه كړم مقرر حضرت ابوبكر ؓ د هغو خلكو څخه نه دى چي د هغوى په باره كي د حق تعالى دا ارشاد دى (لايخافون لومة لائم) يعني دا خلک د ملامت كونكي د ملامتيا څخه نه بيريږي.

نقل دي چي ابوسفيان ابن حرب پر يوه موقع باندي حضرت علي ؓ ته وويل كه ته غواړې نو زه به د ابوبكر ؓ سره د جنگ لپاره د مديني ميدان د آسونو او پيادو څخه ډک كړم نو حضرت علي ؓ د ابوسفيان په دې خبره خوابدى سو او هغه ته يې ډير بدو رد وويل چي نه يوازي ابوسفيان بلكه نور خلک هم پوه سي چي د ابوبكر ؓ خلافت د منشاء نبوت د مطابق كيدو په وجه دومره مستحكم او حقيقي دى چي په دې كي يوه ذره برابر د شک او گمان گنجائش نسته.

د دې څخه معلومه سوه چي نه خو هغه وخت رسول الله ﷺ د حضرت علي ؓ د خلافت په باره كي د څه ليكلو اراده فرمايلې وه او نه خپله د حضرت علي ؓ په ذهن كي دا خبره وه چي زه د حضرت ابوبكر ؓ څخه مخكي يم او خلافت زما حق دى كه حضرت علي ؓ پر حضرت ابوبكر ؓ فضيلت درلود او د خلافت مخكي د هغه حق دى نو رسول الله ﷺ به ضرور د دې وصيت كړى واى خو دې خوا ته يې اشاره هم نه ده فرمايلې هر كله چي حضرت ابوبكر ؓ په لمانځه كي د خلكو امام په مقررولو سره دې خوا ته څرگنده اشاره فرمايلې وه چي زما وروسته به ابوبكر ؓ خليفه وي.

## د ناروغ سره ډير مه کښينئ

﴿۱۵۰۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْعِيَادَةُ فَوَاقُ نَاقَةٍ، وَفِيْ رِوَايَةِ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ مُرْسَلاً أَفْضَلُ الْعِيَادَةِ سُرْعَةُ الْقِيَامِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

دحضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: دناروغه دپوښتني وخت داوښي دلوشلو په ډول دئ (څومره وخت چي داوښي دلويشلو څخه وروسته تر دوهم وار لوښلو پوري وي هغومره وخت دئ. او دسعيد بن مسيب په روايت کي دا الفاظ سته. چي تر ټولو افضله دناروغه پوښتنه هغه ده، چي په هغه کي ژر ولاړ سي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان١٦\٥٤٣، رقم: ٩٢٢٢.

**د لغاتو حل**: (فُواق ناقة): اى مقدار مابين الحلبتين، لانها تحلب ثم تترک سويعة يرضعها الفصيلل لتدر ثم تحلب.

**تشريح**: د اول حديث حاصل دادی چي د اوښي شيدې دوه يا درې واره لوښل کيږي د هغه طريقه دا ده چي يو وار شيدې لويشل بيا لږ دريدل او بچی يې د تيانو سره لګول چي شيدې ښه را ايله سي بيا د هغه وروسته لوښل شروع کړي همداسي دوه واره په منځنی وقفه ډيره لږه وي نو د عيادت يعني پوښتني په باره کي فرمايل سوي دي هر کله چي څوک ډير زيات مريض ته ورسي نو د هغه لپاره افضل دادی چي هغه د مريض سره تر زيات وخته پوري نه کښيني بلکه دوه واره د شدو لوښلو د منځنی وقفې په اندازه کښيني چي ناروغه ته تکليف نه وررسيږي.

په کتابونو کي د يوسړي واقعه نقل ده وايي موږ د حضرت سري سقطي رحمه الله پوښتني ته ورغلو چي هغه د مرګ په مرض اخته وو مونږ د هغه سره تر ډيره وخته پوري ناست وو هغه وخت د هغه پر نس ډير زيات درد وو مونږ هغه ته وويل چي زموږ لپاره دعا وکړه هغه وفرمايل اې الله دې خلکو ته د ناروغه د پوښتني کولو اداب او طريقه ورونبوېې ګويا هغه د دې دعا څخه دې خواته اشاره وفرمايله چي د ناروغه پوښتني ته ولاړ سئ نو تر زيات وخته پوري مه ورته کښېنئ بلکه لږ ساعت په ناستي سره په پوښتني کولو سره بيرته ولاړ سئ.

هو که څوک پوښتنه کونکی په دې پوه سي چي پر ناروغه سړي باندي د هغه زيا ته ناسته بوج کيږي نه بلکه د انډيوال کيدو په حيثيت سره يا د برکت حاصلولو په غرض يا د خدمت او

ديندارې په وجه د مريض خپل خواهش داوې چې دى دې د هغه سره تر زياته وخته پورې کښيني نو په دې اړه ژر پورته کيدل به افضل نه وي.

## ناروغ ته د هغه د خوښې شی ورکول

﴿۱۵۰۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ عَادَ رَجُلاً فَقَالَ لَهُ مَا تَشْتَهِي؟ قَالَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دې چې نبی کريم ﷺ ديوه ناروغ پوښتنه وکړه، د هغه څخه يې پوښتنه وکړه، څه ته دې هوا کيږي هغه عرض وکړ

أَشْتَهِي خُبْزَ بُرٍّ. قَالَ النَّبِيُّ ﷺ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ خُبْزُ بُرٍّ فَلْيَبْعَثْ إِلَى أَخِيهِ

دغنمو ډوډۍ ته، رسول الله ﷺ وفرمايل: دچا سره چې دغنمو ډوډۍ وي خپل ورور ته دې راوغواړي.

ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا اشْتَهَى مَرِيضُ أَحَدِكُمْ شَيْئًا فَلْيُطْعِمْهُ. رواه ابن ماجه

ددې څخه وروسته نبي کريم ﷺ وفرمايل: په تاسو کې چې کله ديوه ناروغ ديوه شي خواهش وي نو هغه په وخورئ. (ابن ماجه)

**تخريج:** سنن ابن ماجه ۱/۴۶۳، رقم: ۱۴۳۹.

**تشريح:** د خواهش څخه مراد خواهش صادق (ريښتونی خواهش) دی او هغه د روغتيا نښه وي، څينو ناروغانو ته د هغه شي خوړل چې تاوان کونکي نه وي او په اندازه کې لږ وي او داسې نه وي چې د هغه د تاوان او ضرر اړخ غالب وي، نو خلاصه داده چې ددغه حديث دا حکم (اذا اشتهی فليطعمه) په کلي او عامه توګه باندې نه دی بلکه په جزئي او انفرادي توګه دی، ددې مطلب دادی چې د هر ناروغ سره دا معامله کول نه دي پکار چې هغه څه غواړي که څه هم د روغتيا لپاره تاواني وي هغه دې ورکړل سي بلکه په څينو خاصو حالاتو کې که يو ناروغ د يو داسې شي خواهش وکړي چې په هغه کې د تاوان او ضرر اړخ غالب نه وي او دا چې د اکتر د هغه خلاف نه وي نو هغه شی ناروغ ته ورکول پکار دي.

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چې دا حکم پر توکل يا د ژوند څخه پر مايوسۍ باندې مبني دی يعني د کوم ناروغ چې د ژوند اميد پاته نه وي نو د هغه په اړه فرمايل سوي دي چې څه غواړي هغه ورکول پکار دي.

## د مسافرۍ په حالت کي مرګ

﴿۱۵۰۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ تُوُفِّيَ رَجُلٌ بِالْمَدِيْنَةِ مِمَّنْ وُلِدَ بِهَا

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي په مدينه کي يو سړی مړ سو ،او په مدينه کي پيدا سوئ وو ،

فَصَلَّى عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَالَيْتَهُ مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ قَالُوْا

نبی کريم ﷺ هغه ته د جنازې لمونځ ورکړ، او بيا ئې وفرمايل: کاشکي دی په خپل پيدائشي ځای کي مړ سوی نه وای !صحابه کرامو عرض وکړ،

وَلِمَ ذَالِكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهِ قِيْسَ لَهُ مِنْ

يا رسول الله ! ولي؟ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل :کله چي يو سړی د خپل وطنه څخه دباندي مړ سي ،

مَّوْلِدِهِ إِلَى مُنْقَطَعِ أَثَرِهِ فِي الْجَنَّةِ . رواه النسائي وابن ماجه .

نو د مرګ د ځايه څخه بيا تر پيدائشي ځايه پوري هغه ته په جنت کي ځاي په برخه کيږي (نسائي ،ابن ماجه)

**تخريج**: سنن النسائي ۴\۷-۸، رقم: ۱۸۳۱، وابن ماجه ۱\۵۱۵، رقم: ۱۶۱۴.

**تشريح** : مطلب دادی چي کوم سړی د وطن څخه ليري د سفر په حالت کي مړ کيږي نو د هغه د وطن او د هغه د مرګ تر ځايه پوري په مابينځ کي چي څومره مسافت وي د هغه په اندازه ځاي هغه ته په جنت کي ورکول کيږي مګر د دې په باره کي صحيح دا معلوميږي چي د سفر څخه مراد د اطاعت سفر يعني جهاد وغيره دی د دې مطلب دادی چي دا اجر او انعام هغه سړي ته ورکول کيږي چي د جهاد لپاره يا د ديني تعليم حاصلولو لپاره يا دا ډول د يو بل بامقصد او بامطلب کار لپاره د وطن څخه ليري راوتلی وي .

﴿۱۵۰۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَوْتُ غُرْبَةٍ شَهَادَةٌ . رواه ابن ماجه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : په سفر کي مرګ شهادت دئ (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ١\٥١٥، رقم: ١٦١٣.

﴿١٥٠٨﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي مړ سي

مَرِيْضاً مَاتَ شَهِيْدًا وَ وُقِيَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَغُدِيَ وَرِيْحَ عَلَيْهِ بِرِزْقِهِ مِنَ الْجَنَّةِ.

رواه ابن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان.

د ناروغۍ په حالت، نو د شهادت درجه حاصلوي، د قبر د فتنې څخه محفوظ کيږي او سهار او ماښام هغه ته همېشه د جنت رزق حاصليږي. (ابن ماجه، بيهقي).

**تخريج**: سنن ابن ماجه ١\٥١٥، رقم: ١٦١٥، والبيهقي في شعب الايمان ١٧\١٧٤، رقم: ٩٨٩٧.

**تشريح**: د مشكوة شريف په صحيح نسخو كي لفظ د مريضا ليكل سوى دى مگر په ځينو نسخو كي په تغير كولو سره د مريضا پر ځاي لفظ غريبا ليكل سوى دى مگر صحيح په ابن ماجه كي لفظ مرابطا نقل دى ځكه ميرک رح د مشكوة د خپلي نسخې په حاشيه كي دا لفظ صوابه مرابطا يعني صحيح لفظ مرابطا دي ليكلو سره د هغه لاندي ليكلي دي چي كذا في سنن ابن ماجه في باب ماجاء من مات مرابطا مات شهيدا بيا دا چي د لفظ مريضا په باره كي علماوو خو ليكلي دي چي د مرض څخه مراد عام مرض دى هر كله چي ځينو حضراتو په خاص مرض سره لكه استسقاء مراد اخستى دى مگر ملا علي قاري رح فرمايي چي دلته ددې قيد اېښولو ضرورت نسته بلكه دا ويل كيداي سي چي دلته د راوي څخه غلطي سوې ده ځكه چي د حديث الفاظ من مات مرابطا دى نه چي من مات مريضا.

### د طاعون مرگ د شهادت مرگ دى.

﴿١٥٠٩﴾: وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

دحضرت عرباض بن ساريه رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَخْتَصِمُ الشُّهَدَاءُ وَالْمُتَوَفَّوْنَ عَلَى فُرُشِهِمْ إِلَى رَبِّنَا فِي الَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنَ

شهيدان او هغه خلک چي پر خپله بستره مړه سي، د دواړو به د خداى جل جلاله په حضور كي سره

جگړه سي، کوم چي په طاعون مړه سوي وي

الطَّاعُونِ فَيَقُولُ الشُّهَدَاءُ إِخْوَانُنَا قُتِلُوا كَمَا قُتِلْنَا وَيَقُولُ الْمُتَوَفَّوْنَ إِخْوَانُنَا

شهيدان به وايي چي دا زموږ وروڼه دي يعني زموږ مشابه دي، زموږ په شان د طاعون د لاسه شهيدان سوي دي،

مَاتُوا عَلَى فُرُشِهِمْ كَمَا مُتْنَا فَيَقُولُ رَبُّنَا انْظُرُوا إِلَى جِرَاحَتِهِمْ فَإِنْ أَشْتَبَهَتْ

او کوم خلک چي په خپلو بسترو مړه سوي وي، هغوی به وايي، چي دا زموږ وروڼه دي، څنګه چي موږ په بسترو مړه سوي يو، همدغسي دوی هم په خپلو بسترو مړه سوي دي. د دې جګړو په اورېدو سره الله ﷻ به وفرمائي: ښه ده، د دوی زخمونه وګورئ،

جِرَاحُهُمْ جِرَاحَ الْمَقْتُولِينَ فَإِنَّهُمْ مِنْهُمْ وَمَعَهُمْ فَإِذَا جِرَاحُهُمْ قَدْ أَشْبَهَتْ جِرَاحَهُمْ: رواه أحمد والنسائي.

که د دوی زخمونه د شهيدانو د زخم په شان وي نو دوی په شهيدانو کي دي او د هغوی په شان د ثواب ور دي، وبه کتل سي، نو د هغوی (طاعون والا) زخمونه به د شهيدانو د زخم په ډول وي. (احمد، نسائي).

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۲۸\۴، ۱۲۹، والنسائي ۳۶\۶، ۳۷، رقم: ۳۱۶۲.

**تشريح**: د الله تعالی په دربار کي د طاعون څخه د مړه کېدونکو په باره کي د شهداوو دليل دادی چي څرنګه موږ قتل کړل سو همداسي دوی هم قتل کړل سوي دي د دې مطلب دادی چي څنګه موږ د دين د دشمنانو او د کفارو د لاسه په زخمي کېدو سره مړه سوي يو همداسي دوی هم د پيريانو د لاسه په زخمي کېدو سره مړه سوي دي ځکه چي علماوو ليکلي دي ډېر واره طاعون زده ته دا محسوسيږي لکه څوک چي هغه په نېزو سره وهي ځکه دې مرض ته د طاعون نوم ورکول سوی دی چي د طعن څخه مشتق دی چي د هغه معني ده نېزه وهل د دې حديث څخه معلومه سوه چي کوم سړی د طاعون په ناروغۍ مړ سي هغه د شهيدانو څخه دی ځکه چي د قيامت په ورځ به د هغوی سره وي.

## د طاعون څخه تېښته

﴿۱۵۱۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْفَارُّ مِنَ الطَّاعُوْنِ كَالْفَارِّ مِنَ الزَّحْفِ وَالصَّابِرُ فِيْهِ لَهُ أَجْرُ شَهِيْدٍ. رواه أحمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۳۵۲.

**تشريح**: طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي مشابهت د گناه كبيره په اعتبار دى يعني څنگه چي د كفارو د مقابلې څخه تښتېدونكى په گناه كبيره كي اخته كيږي همداسي د طاعون څخه تښتېدونكى هم په گناه كبيره كي اخته كيږي او ددې عقيدې په درلودلو سره د طاعون زده علاقې څخه تښتيدل كه زه دلته وتښتم نو سلامت به سم كه و نه تښتم مړ به سم كفر دى په ښكاره د حديث څخه معلومېږي چي په طاعون كي صبر كونكي ته د شهيد ثواب حاصليږي كه څه هم په هغه كي مړ نه سي.

==========

# بَابُ تَمَنِّي الْمَوْتِ وَ ذِكْرِهِ

## د مرگ غوښتنه او د هغه يادونه

د بدني تكليف، مصيبت او دنيوي ضرر او تاوان مثلاً تنگدستي او د نورو بلاگانو او پريشانيو په وجه د مرگ خواهش كول مكروه دي ځكه چي دا د بې صبرۍ او په تقدير الهي باندي د نه راضي كېدو نښه ده، د الله تعالى د ديدار شوق او ددې فاني دنيا او د هغې سره محبت د پيدا كېدو څخه نجات دارالبقاء ته د رسيدو ارزو او هلته د نعمتونو په ارمان كي د مرگ خواهش د ايمان او كمال ايمان نښه ده همداسي د دين تاوان او ضرر د بيري څخه هم د مرگ خواهش كول مكروه نه دي.

مرگ ياد ساتل په اصل كي كنايه ده د دې خبري څخه چي د الله رب العزت بيره بې په زړه كي وي د هغه د رضا او د هغه اطاعت او فرمانبرداري هر وخت په نظر كي نيولې وي د رسول الله ﷺ محبت او د هغوى راوړلي شريعت باندي عمل وي د توبه استغفار ورد وي او دنيوي نفع او تاوان باندي د آخرت گټه او تاوان مقدم كړل سي كنې مرگ ياد ساتل او يادول او په عملي توگه بې لاري توب اختيارول څه دومره فائده مند نه دي بلكه د زړه د سختي وجه ده څنگه چي په غفلت سره الله رب العزت يادول څه حيثيت نه لري نسئل الله العافية.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مرګ غوښتنه مه کوئ

﴿۱۵۱۱﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَمَنَّيَنَّ

دحضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ارزو دي نه كوي

أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ إِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَزْدَادَ خَيْرًا وَإِمَّا مُسِيئًا فَلَعَلَّهُ أَنْ

يَسْتَعْتِبَ . رواه البخاري

په تاسو كي هيڅوک دمرګ، څکه که هغه نېک كاره وي نو ممكنه ده، چي دهغه په صالحو اعمالو كي زياتي وسي، او كه بد كاروي نو ممكنه ده، چي هغه په ائنده كي خداى ﷻ راضي كړي .(بخاري)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲۷\۱۰، رقم: ۵۶۷۳.

﴿۱۵۱۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ

دحضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي دي هيڅوک ارزو نه كوي

الْمَوْتَ وَلَا يَدْعُ بِهِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَهُ إِنَّهُ إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمُ انْقَطَعَ اَمَلُهُ وَإِنَّهُ

دمرګ، او نه دي دمرګ دراتلو دعا كوي، څکه چي كله يو انسان مري، نو دهغه اميد ونه ختم سي

لَا يَزِيدُ الْمُؤْمِنَ عُمْرُهُ إِلَّا خَيْرًا . رواه مسلم .

او دمؤمن دعمر په زياتوالي كي دنيكيو اضافتوب راځي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۰۶۵\۱۴، رقم: ۱۳- ۲۶۸۳.

**تشريح** : ښكاره ده چي د انسان ژوند ختم سي نو د نيكي او خير لاري هم قطع كيږي څکه كه ژوند وي نو نيک اعمال به وي او هر كله چي نيک اعمال وي نو په سعادت او خير كي به اضافه توب وي همدا سي فرمايل سوي دي چي د مومن بنده ژوند د راز سي نو د هغه په وجه د هغه په

خير او سعادت كي اضافه توب كيږي ځكه چي مومن بنده په درد او مصيبت باندي صبر كوي د نعمتونو شكر اداء كوي د تقدير الهي څخه راضي وي او د الله تعالى او رسول الله ﷺ د احكامو فرمانبرداري كوي چي د هغه په وجه د هغه ثواب زياتيږي .

## د مرګ د غوښتني منعه

﴿۱۵۱۳﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَمَنَّيَنَّ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : آرزو دي نه كوي

أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ اَصَابَهُ فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَاعِلاً فَلْيَقُلْ اللّٰهُمَّ أَحْيِنِي مَا

په تاسو كي يو څوک د مرګ كله چي هغه ته تكليف ورسيږي ، كه چيري د دغه قسم ارمان ولري نو دا كلمات دي ووايي اللهم ..... خيرالی ( ای الله جل جلاله! ما تر هغه وخته پوري ژوندی وساتي

كَانَتْ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتْ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي . متفق عليه

تر څو پوري چي زما ژوند غوره وي ، او هر وخت چي مرګ راته غوره وي نو ماته مرګ راولي ) بخاري ، مسلم).

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۲۷، رقم: ۵۶۷۱، ومسلم: ۱۴\۲۰۶۴، رقم: ۱۰- ۲٦۸۰.

**تشريح** : امام نووي رحمة الله عليه فتوى وركړې ده چي د ديني فتنې او فساد د بيري څخه د مرګ خواهش كول مكروه نه دي بلكه مستحب دي په دې اړه هغه د امام شافعي رحمة الله عليه او عمر بن عبد العزيز رحمة الله عليه او داسي نورو په باره كي نقل كړي دي چي دې حضراتو د ديني فتنې او فساد د بيري څخه د مرګ خواهش كړی وو ځكه چي حضرت عمر رضی الله عنه او داسي نورو څخه ثابت او منقول دي بلكه د حضرت معاذ رضی الله عنه په باره كي تر دې اندازې نقل دي چي هغه د طاعون عمواس په وخت د مرګ خواهش كړی وو د دې څخه دا معلومه سوه چي د شهادت خواهش كول كه څه هم د طاعون او داسي نورو د اقسامو څخه نه دی مستحب دی .

په مسلم كي دا روايت نقل دی چي كوم سړی چي د زړه په صدق سره او د نيت په خلوص سره د شهادت خواهش وكړ نو هغه ته د شهادت ثواب حاصليږي كه څه هم هغه ته شهادت نه سي حاصل .په مدينه كي د مرګ خواهش كول مستحب دی په بخاري كي نقل دي چي حضرت عمر رضی الله عنه دا دعا كړې وه

(اللهم ارزقني شهادة في سبيلک واجعل موتي ببلد رسولک) : ترجمه : اې الله په خپله لار کي زما شهادت نصيب کړې او د خپل د رسول الله ﷺ په ښار کي ماته مرگ راپه نصيب کړې.

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي تر هغه وخته پوري ژوند د مرگ څخه بهتره دی تر څو پوري چي د گناه په مقابله کي اطاعت زيات وي او زمانه د ديني فساد او فتنې څخه خالي وي هو کله چي زمانه بالکل برعکس وي په دې توگه چي د طاعات په مقابله کي گناوي زياتي وي او که زمانه د دين د فتنې او فساد څخه خالي وي نو بيا ژوند تر مرگ بهتر دی.

## مرگ او د خپل مولی ملاقات

﴿۱۵۱۴﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عباده بن صا مت ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللّٰهِ أَحَبَّ اللّٰهُ لِقَاءَهُ وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللّٰهِ كَرِهَ اللّٰهُ لِقَاءَهُ قَالَتْ

څوک چي د خدای ﷻ سره ملاقات کول خوښوي ، خدای ﷻ د هغه سره يو ځای کېدل خوښوي ، او څوک چي د خدای ﷻ سره ملاقات کول نه خوښوي ، نو خدای ﷻ د هغه سره ملاقات کول نه خوښوي ، وويل

عَائِشَةُ أَوْ بَعْضُ أَزْوَاجِهِ إِنَّا لَنَكْرَهُ الْمَوْتَ قَالَ لَيْسَ ذَاكِ وَلَكِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا

بی بی عائشې ﷺ يا د نبي کريم ﷺ يوې بلي بي بي (يا رسول الله ﷺ) موږ مرگ بنه نه گڼو ، نبی کريم ﷺ وفرمايل : دا خبره نه ده ، بلکه واقعه دا ده ، کله چي يو مؤمن ته

حَضَرَهُ الْمَوْتُ بُشِّرَ بِرِضْوَانِ اللّٰهِ وَكَرَامَتِهِ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ

مرگ راسي ، نو هغه ته دا زېري ورکول کيږي چي خدای ﷻ د هغه څخه راضی دي او هغه بنه گڼي ، د غه وخت د هغه په خيال کي د خدای ﷻ رضا ،

فَأَحَبَّ لِقَاءَ اللّٰهِ وَأَحَبَّ اللّٰهُ لِقَاءَهُ وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا حُضِرَ بُشِّرَ بِعَذَابِ اللّٰهِ

او د خدای ﷻ په نظر کي د هغه د عظمت څخه بهتره شي نه وي ، بيا داسي وي چي هغه مؤمن بنده د خدای ﷻ سره د ملاقات د پاره بې ارامه سي ، او خدای ﷻ هم د هغه سره ملاقات عزيز گڼي . او کافر بنده ته چي کله ملائکه راسي ، نو هغه د خدای ﷻ د عذاب او سزا څخه وېروي ،

وَعُقُوبَتِهِ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَهَ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ كَرِهَ لِقَاءَ اللّٰهِ وَكَرِهَ اللّٰهُ لِقَاءَهُ.

متفق عليه ، و في رواية عائشة والموت قبل لقاء الله .

نو دهغه په خيال کي هغه وخت تر مرگ څخه بد بل هيڅ نه ښکاري، هغه د الله ﷻ سره ملاقات کول بد گڼي او خداى ﷻ د هغه سره ملاقات بد گڼي (بخاري) د بي بي عائشې څخه روايت دي چي مرگ د الله ﷻ د ملاقات څخه مخکي دي .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري)، ۱۱\۳۵۷، رقم: ۶۵۰۷، ومسلم ۴\۲۰۶۵، رقم: ۱۴- ۲۶۸۳.

**تشريح** : مشهوره خو داده چي لقاء مولى يعني د الله تعالى ملاقات څخه مراد مرگ دى مگر په دې باره کي تحقيقي خبره داده چي د لقاء مولي څخه مرگ مراد نه دى بلکه مراد دادى چي د اخرت خواته متوجه کيدل د حق تعالى رحمت او مغفرت او د هغه د رضا غوښتونکى کيدل د دنيا خواته نه مائل کيدل او د دنيا د ژوند په محبت کي نه گرفتارکيدل نو کوم سړي چي دنيا پرېښوده اودنيا او د دينا هغه شيان يې پرېښول نو هغه گويا مولى خوښ کړ او کوم سړي چي دنيا اختيارکړه د دنيا د شيانو سره يې په محبت کي راگير سو او د دنيا خواته يې خپل ميلان وساتى هغه گويا لقاء مولي ناخوښه کړ د مرگ محبت او د هغه شوق لازم دى يعني کوم سړى چي لقاء مولي خوښوي هغه به مرگ هم خوښوي ځکه چي د لقاء مولى لپاره مرگ وسيله ده .

ام المومنين دا گڼلې وه چي د لقاء مولي څخه مراد مرگ دى ځکه رسول الله ﷺ خپل ارشاد (ليس الامر کذالک ) په ذريعه وضاحت وفرمايه چي د لقاء مولى څخه مراد مرگ نه دى او نه دا مراد دى چي د بشريت د تقاضا سره سم د مرگ سره محبت وي او او بالفعل د مرگ خواهش کول وي بلکه مراد دادى چي کوم سړى د رضايي حق طالب او د لقاې مولي شائق وي هغه د لقاې مولي لپاره د وسيله کيدو په وجه مرگ هميشه په عقلي توگه محبوب گڼي د هغه اثر دا کيږي چي کله د ژوند وخت پوره سي او د مرگ وخت رانژدې سي او هغه ته د حق تعالى رضا خوشخبري ورکول سي نو بيا هغه وخت هغه په طبعي توگه مرگ خوښوي او د لقاې مولى شوق د هغه طبعي خواهش جوړيږي د حديث الفاظ(ولكن المومن .......الخ ) يعني هر کله چي مومن ته مرگ راسي نو د دې خبري خوشخبري ورکول کيږي چي الله تعالى د هغه څخه راضي دى د دې خبري وضاحت کوي .

د بي بي عائشې ﷺ د روايت الفاظ مرگ د الله تعالى د ملاقات څخه مخکي دى د دې

مطلب دادی چي د الله تعالی دیدار د مرگ څخه مخکي ممکن نه دی او دا چي د لقاء الاهي وجود د مرگ د وجود څخه مخکي مقصور نه دی د دې څخه معلومه سوه چي لقاء الهي او مرگ دواړه یو شی نه دي بلکه دواړه د جلا جلا مفهوم لرونکی دي.

## د مؤمن او فاجر د مرگ پایله

﴿۱۵۱۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت ابوقتاده ﷺ څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ ته

مُرَّ عَلَيْهِ بِجِنَازَةٍ فَقَالَ مُسْتَرِيحٌ وَمُسْتَرَاحٌ مِنْهُ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا

جنازه راوړل سوه ،نبي کریم ﷺ وفرمایل :دی راحت موندونکي دی، یا به راحت ځیني ترلاسه سي. اصحابو عرض وکړیا رسول الله!

الْمُسْتَرِيحُ وَالْمُسْتَرَاحُ مِنْهُ قَالَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا

راحت موندونکي څوک دی، او هغه څوک دی چي دهغه څخه به نورو ته راحت حاصلیږي. نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل: مؤمن بنده دمرگ څخه وروسته د دنیا درنځ او تکلیف څخه او ددنیوي تکلیفو څخه بیا راحت مومي،

وَأَذَاهَا إِلَى رَحْمَةِ اللّٰهِ وَالْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيحُ مِنْهُ الْعِبَادُ وَالْبِلَادُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ . متفق علیه

او دخدای ﷻ رحمت ته به ولاړ سي ، او فاجر او بدکاره بنده د مرگ سره به دخدای ﷻ بندگان، ښارونه ، درختي او حیوانان دهغه دشر څخه بیا راحت مومي .(بخاري ، مسلم).

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۶۲، رقم: ۶۵۱۲، ومسلم ۲\۶۵۶، رقم: ۶۱ – ۹۵۰.

**تشریح** : مطلب دادی چي مومن بنده وفات سي نو هغه د دنیا د رنځ څخه په دې توگه راحت ترلاسه کوي چي په دنیا کي د اعمالو او احوالو په وجه هغه په کم مشقت او محنت کي اخته وو د هغه څخه خلاصون ورته و سو او د دنیا د تکلیف څخه په دې توگه راحت ېې ترلاسه کړو چي دنیوي تکلیف او پریشاني مثلا گرمي، یخ، تنگدستي ، مفلسي او داسي نورو څخه یا دا چي د اهل دنیا د تاوان څخه هغه ته خلاصون وسي ځکه مسروق رح ویلي دي چي ماته په هیڅ شي هم

د څه شي په وجه دومره شک نه راځي يعني څومره شک چي ماته پر هغه مومن راځي کوم چي په قبر کي بيده کړل سي ځکه چي هغه د الله د عذاب څخه په امان سي او د دنيا څخه راحت او سکون تر لاسه کي او ابوداود فرمايي زه خپل رب ته د تلو په شوق کي مرگ خوښوم د گناهونو د کفارې لپاره مرض خوښوم او د خپل رب په مخکي د تواضع او انکساري له خاطره فقر خوښوم.

کله چي يو گناه کار بنده مري نو د هغه څخه بندگان داسي راحت تر لاسه کوي چي هغه به په خپل ژوند کي د شرعي په خلاف خبري کولې هغه به خلک منعه کوله، هغوی ته به يې تکليف رسوی او که خاموشي به يې اختيارول نو خپل دين او دنيا ته به يې تاوان رسوی او کوم وخت چي هغه گناه کار مړ سي نو خلک د هغه څخه خلاصون تر لاسه کي او ښاروالا د هغه په مرگ په دې توگه راحت تر لاسه کوي چي د گناه او ظلم کيدو په وجه په عالم کي فساد کيږي د دين په ارکانو کي خلل راځي او الله تعالی گنهگار او ظالم غضب وهلي ليري کوي نو د هغه په وجه مځکه او هغه ټوله شيان کوم چي په مځکه کي دي تاوان ورته پيښيږي بيا دا چي د هغه د گناه په وجه الله تعالی باران نه اوروي اوس چي هغه مړ سو نو وريځو خپله خوله خلاصه کړه او د مځکي وني شنې سوې او همداسي ټولو راحت تر لاسه کړ.

## په دنيا کي مسافر اوسئ

﴿۱۵۱۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ أَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ ونيول

بِمَنْكِبِي فَقَالَ كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ

زما اوږه، او ويې فرمايل: په دنيا کي داسي اوسه، لکه ته چي مسافر يې، يا پر لاره تېرېدونکی لاروی، او ابن عمر رضي الله عنه به ويل:

إِذَا أَمْسَيْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ وَإِذَا أَصْبَحْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ وَخُذْ مِنْ

چي ماښام سي، نو د سهار انتظار مه کوه، او چي سهار سي نو د ماښام انتظار مه کوه،

صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ وَمِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ . رواه البخاري

او صحت د ناروغی څخه مخکی او ژوند تر مرگ مخکی غنيمت گڼه. (بخاري)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۳، رقم: ٦٤١٦.

**تشريح** : په حديث کي لفظ د (بمنکبي) د (ي) په سکون سره د مفرد په صيغه سره نقل کړل سوی دی حال دا چي د مشکوة په يوې بلي نسخې کي حرف يا په تشديد سره بصيغه تثنيه نقل ده.

فانک غريب: لکه ته چي مسافر يې، د دې مطلب دادی چي ته د دنيا خواته رغبت مه کوه ځکه چي ته دې دنيا ته د آخرت سفر کونکی يې نو ته دا دنيا خپل وطن مه جوړوه د دنيا د لذتونو سره الفت او محبت مه ساته دنيادارو خلکو او د هغوی د ملګري کيدو څخه ځان وساته ځکه چي ته د دې ټولو خلکو څخه جلا کيدونکی يې په دې دنيا کي د خپلي بقاء وهم او ګمان هم مه ساته د هغو کارو څخه قطعا پرهيز وکړه چي د هغه څخه يو مسافر په جلا وطني کي پرهيز کوي او په هغو شيانو کي نه مصروفه کيږي چي په هغه کي مسافر اهل وعيال او خپل وطن ته دتلو اراده ولري، ته بالعموم په دې دنيا کي داسي اوسه څرنګه چي يو مسافر په خپل وطن او د خپل اهل وعيال څخه ليري په وطن کي اوسي بيا مخکي نور په مبالغې سره يې وفرمايل بلکه د يوراه ګير پر لار تلونکی په ډول اوسه ځکه مسافر د خپل سفر په دوران کي په مختلفو طريقو سره په مختلفو ښارو کي قيام کوي په خلاف د لار تلونکي چي هغه چيري خو قيام هم نه کوي.

نو د دنيا څخه نه يوازي دا چي د سفر ځاي ګڼل پکار دي بلکه دا خيال کول پکار دي چي پر لار روان يم نه خو په وطن کي يم او نه چيري د سفر په حالت کي چيري دربدلی يم.

هر کله چي سهار سي نو د ماښام انتظار مه کوه الخ. د دې ارشاد مطلب دادی چي هيڅ سړي ته د خپل مرګ د وخت علم نسته معلومه نه ده چي د مرګ په پنجه کي کله راګېر سي د يوې لمحې لپاره هم د ژوند څه باور نسته د سهار په وخت کي دا هيڅ چاته نه وي معلومه چي ماښام ليدل به ورته په نصيب سي که نه حاصل دا چي د سهار او ماښام هر وخت مرګ خپل مخ ته حاضر ګڼه د ژوند ارزوګاني مه اوږدوه د خير په عمل کولو کي وړاندي والی کوه او نيک اعمال ورځ ته مه پريږده ځکه چي:

| | |
|---|---|
| غنيمتي شمراي شمع وصل پروانه | که اين معامله تا صبح دم نه خواهد ماند. |

صحت د ناروغۍ مخکي غنيمت ګڼه، د دې مطلب دادی چي د روغتيا په حالت کي څومره چي ممکنه وي ډېر تر ډېر نيک اعمال کوه چي د ناروغي په حالت کي هر کله چي ته په نيکو اعمالو باندي قادر نه يې هغسي ثواب تر لاسه کوه يعني ستا چي څومره هم ژوند دی په هغه کي عمل کوه هر کله چي ژوند خپل وخت پوره کي او ته د مرګ غيږ ته ورسيږي نو بيا د دې وروسته ستا د ژوند د هغه د اعمالو ثواب تا ته نه رسيږي.

غنیمت دان جوانا دولت حسن جواني را : نه پنداري که ایام جواني جاودان باشد

په ښکاره معلومیږي چي د حدیث الفاظ (اذا مسیت ترمن حیاتک لموتک... پوري) د ابن عمر رضي الله عنه ارشاد موقف دی مګر په احیاء العلوم کي دا مرفوعا یعني د رسول الله ﷺ ارشاد نقل سوی دی .والله اعلم.

## د الله جل جلاله څخه د رحمت امید ساتل

(۱۵۱۷): وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ مَوْتِهٖ بِثَلَاثَةِ أَيَّامٍ يَقُولُ لَا يَمُوتَنَّ أَحَدُكُمْ إِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللّٰهِ . رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دي چي ما د رسول الله ﷺ څخه درې ورځي مخکي تر وفات دا اوریدلي دي، په تاسو کي دي څوک نه مري، خو دا چي د خدای جل جلاله په اړه نېک ګمان لري، یعني د مرګ څخه مخکي دی د هغه په فضل و کرم او بخښني پوره باور ولري. (مسلم)

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۲۰۵، رقم: ۸۱ – ۲۸۷۷.

**تشریح**: مطلب دا چي هر مؤمن مسلمان د الله تعالی په فضل، کرم او د هغه په عفوي باندي پوره امید ولري او د هغه په وعدو چي د مؤمن مسلمان سره کړي دي باور ولري او مسلمان باید د الله جل جلاله په وړاندي د ښه معاملې کولو فکر وکړي، داسي نه وي چي د هغه د رحمت څخه د مایوسی په حالت کي مړ سي او سبب د الله جل جلاله د قهر او غضب وګرځي.

علماوو لیکلي دي چي د الله پاک سره د نیک ګمان ساتلو څخه مراد نیک اعمال کول دي یعني په خپل ژوند کي نیک اعمال کول پکار دي چي د مرګ په وخت د الله پاک سره ښه ګمان وي د چا ژوند چي د الله تعالی د اطاعت او فرمانبرداري او د هغه د رضاء او خوشحالي له خاطره په عباداتو او نیکو اعمالو کي تیرسوی وي هغه د مړکیدو په وخت کي د الله پاک سره نیک ګمان وساتي چي انشاءالله زما سره به ښه معامله کیږي د دې پرخلاف د چاژوند چي د الله پاک په نافرماني او په خرابو اعمالو کي تیر سوی وي هغه د مرګ په وخت کي د الله پاک سره بد ګمان ساتي هر کله چي مرګ ېې پر سر ودریږي نو هغه ته د خپل ژوند خراب اعمال رایاد سي هغه وخت د هغه سره دا خیال پیدا سي چي زما سره به نیکه ښه معامله نه کیږي.

او علماء لیکي چي د امید حقیقت دادی چي عمل کوي او امید ساتي د مولي اطاعت کوي او نظر هغه پر عطاء ساتي نه چي درواغ امید چي د عمل څخه ېې ممنوع کوي او د ګناهونو

باعث وي د امید څخه نه دی بلکه دا ارزو او غرور دی د امام حسن بصري رح دا قول نقل دی که په تاسو کي څوک سړی بې عمله دا ووايي چي زه د خپل پروردګار څخه ښه ګمان لرم نو هغه دروغ وايي ځکه که هغه د خپل پروردګار سره ښه ګمان لري نو ښک عمل به يې هم کولای .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قيامت په ورځ تر ټولو لومړۍ پوښتنه

﴿۱۵۱۸﴾: عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ

دحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

شِئْتُمْ أَنْبَأْتُكُمْ مَا أَوَّلُ مَا يَقُوْلُ اللّٰهُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ؟ وَمَا أَوَّلُ مَا

ايا تاسو ديوې خبري څخه اګاه کړم ، چي دقيامت په ورځ به خدای جل جلاله دمؤمنانو سره تر ټولو مخکي کمه خبره کوي ؟ او مؤمن به اولني خبره

يَقُوْلُوْنَ لَهُ ؟ " قُلْنَا نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ هَلْ أَحْبَبْتُمْ

دخدای جل جلاله سره کومه کوي ؟ اصحابو عرض وکړ . هو يا رسول الله ! نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل : خدای جل جلاله به دقيامت په ورځ دټولو څخه مخکي داپوښتنه کوي ، ايا تا زما سره ملاقات کول خوښول ؟

لِقَائِيْ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ يَا رَبَّنَا فَيَقُوْلُ لِمَ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ : رَجَوْنَا عَفْوَكَ وَ مَغْفِرَتَكَ

مؤمن به جواب ورکوي ، هو ! پروردګاره ، خدای جل جلاله به ور څخه پوښتنه وکړي ، چي تا زما سره ملاقات کول ولي خوښول ؟ مؤمن به جواب ورکړي ، په دې وجه چي موږ ستا څخه دمعافی او بخښني امید درلودي ،

فَيَقُوْلُ قَدْ وَجَبَتْ لَكُمْ مَغْفِرَتِيْ . رواه في شرح السنة وأبو نعيم في الحلية

خدای جل جلاله به په دې او ريدلو سره وفرمائي ، زما بخښنه ستاسو دپار واجب سوه .(شرح السنة ،

**تخريج** : البغوي في شرح السنة ۵\۲۶۸، رقم: ۱۵۴۲، وابونعيم في حلية الاولياء ۸\۱۷۹، رقم: ۳۹۷.

**تشريح** : کيدای سي چي د ملاقات څخه مراد د آخرت خوا ته رجوع کول وي او دا هم احتمال

لري چي د ملاقات څخه مراد د حق تعالی دیدار وي ابن مالک رح ویلي دي په حدیث کي د لفظ څخه وروسته د الفاظ کیدل پکار دي (لاي سبب اذ نبتم) یعني حق تعالی به فرمایي چي تاسو ولي گناهونه کړي دي مگر صحیح الفاظ دادی لم احببتم لقائي، یعني زما ملاقات مو ولي خوښوی څنگه چي په ترجمه کي ښکاره سو.

## مرگ په یاد لرئ

**(۱۵۱۹)**: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثِرُوْا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ. رواه الترمذي والنسائي وابن ماجه.

د حضرت ابو هریره ﷛ څخه روایت دي چي رسول اللهﷺ وفرمایل: د خوندو لیري کوونکي ،یعني مرگ ذکر په یاد لرئ (ترمذي، نسائي، ابن ماجه)

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۴۷۹، رقم، ۲۳۰۷، والنسائي ۴\۴، رقم، ۱۸۲۳، وابن ماجه ۲\۱۴۲۲، رقم، ۴۲۵۸.

**د لغاتو حل**: (هاذِم): ای قاطع (قطع کوونکی، ختموونکی).

**تشریح**: صحیح لفظ دادی چي هاذم په ذال سره دی د دې معنې ده قطع کونکی، کومو خلکو چي په دال سره یعني لفظ هادم بمعني اچوونکي نقل دي صحیح نه دی کیداي سي چي په دې باره کي د راوي خطا سوې یې په هر حال د حدیث حاصل دادی چي مرگ په کثرت سره یادول پکار دی څکه چي په مرگ یادولو سره غفلت چي د نیکو اعمالو په لار کي خنډ لیري کیږي د مرگ یا د دنیا د خرابو کارونو مشغولیت څخه هم منعه کوي او مرگ یادونکی د طاعاتو او عباداتو خواته موتوجه وي چي د آخرت توښه ده .نسائي دا روایت په دې اضافه الفاظو سره نقل کړی دی (فانه لایذکر في کثیر الا قلله ولا في قلیل الا کثره) هر کله چي د مال په زیاتي کي مرگ را یاد سي نو هغه مال کموي یعني د مرگ دیاد د راتلو په وجه د مال خواته هم څه رغبت نه پاته کیږي او مال فاني گڼي څکه هغه وخت زیات مال هم په نظر کي راځي د حقیر کیدو په وجه کم محسوسیږي او هر کله چي د مال په کمي کي مرگ را یاد سي نو هغه مال زیاتوي یعني هر کله چي مرگ را یادېږي نو دنیا په فاني گڼلو سره پر کم مال باندي قناعت کوي څکه لږ مال هم زیات ور معلومیږي.

## د الله ﷻ څخه شرم او حیاء کول

﴿۱۵۲۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ یوه ورځ اصحابو ته وفرمایل:

يَوْمٍ اسْتَحْيُوا مِنَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ حَقَّ الْحَيَاءِ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا

د الله ﷻ څخه د شرم او حیا په کولو کي د شرم او حیا حق ادا کړئ، اصحابو عرض وکړ، ای د خدای ﷻ رسوله!

نَسْتَحِي وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ قَالَ لَيْسَ ذٰلِكَ وَلٰكِنْ مَنِ اسْتَحَى مِنَ اللّٰهِ حَقَّ الْحَيَاءِ

د خدای تعالی شکر دي، موږ د الله ﷻ څخه شرم او حیا کوو، یعني د هغه څخه بېرېږو، نبي کریم ﷺ وفرمایل: حیا کول دا نه دي کوم چي تاسو وایاست، بلکه د خدای ﷻ څخه د حیا یو مطلب دا دي چي

فَلْيَحْفَظِ الرَّأْسَ وَمَا حَوَى وَلْيَحْفَظِ الْبَطْنَ وَمَا وَعَى وَلْيَذْكُرِ الْمَوْتَ وَالْبِلَى

سر او څه چي په سر کي دننه دي، د هغوي ساتنه وکړئ، او ساتي دي نس او هغه څه چي جمع کړي دغه نس، او پکار دي چي مرګ یاد لرئ، او د هډوکو وراسته کېدل هیر نه کړئ،

وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ تَرَكَ زِينَةَ الدُّنْيَا فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدِ اسْتَحْيَا مِنَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ حَقَّ الْحَيَاءِ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث غريب.

او څوک چي د اخرت د نیکۍ خیال ساتئ، دغه د دنیا زینت پرېږدئ، چا چي په دې خبرو عمل وکړ، هغه د خدای ﷻ څخه حیا وکړه، او د حیا حق ئې ادا کړ (احمد، ترمذي، دا حدیث غریب دي) د سر د حفاظت څخه مراد غرور او تکبر څخه منعه کول دي، او په سر کي دننه د شیانو مراد، ژبه، سترګي، او غوږونه د بدو خبرو څخه ځان ساتل دي، د نس څخه مراد حرام خوړل او په نس کي د دننه شیانو څخه مراد ستر، لاسونه، پښې او زړه دي د هغوی حفاظت کول. احمد او ترمذي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۲۸۷، والترمذي ۱۴\۵۵۰، رقم: ۲۴۵۸.

**تشريح**: د سر ساتنه: د دې مطلب دا دی چي سر الله تعالی په شرف او کرامت سره نازولی دی

د الله تعالی څخه ماسوا د بل چا لپاره دي په کار وا نه چول سي . سر ته الله تعالی انساني تقدس ور کړی دی د انسان د لاسونو تراشلي بتانو او خپله د انسانانو مخکي په کښته کولو سره دي ذليل نه کړل سي او خلکو ته د دينداری په خاطر په لمانځه کي کښته سي، سر دي د الله ماسوا بل چاته نه کښته کوي او سر د غرور او تکبر له مخي دي پورته نه کړل سي .په سر سره د شيانو څخه مراد په ژبه سترګي او غوږونه دي اود دې شيانو د ساتني مطلب دادی چي دا اندامونه دي د ګناهونو څخه بچ کړل سي ژبه دي په غيبت کي نه سي اخته نه دي دروا غ وويل سي په سترګو سره دي نامحرومو شيانو ته نه وکتل سي او په غوږو سره دي د چاغيبت او درواغ قصې دي نه واوريدل سي د نس د ساتني مطلب دادی چي حرام او مشتبه شيان دي نه وخوړل سي په نس سره شيان د جسم هغه حصې او اندامونه مراد دي چي د نس سره لګېدلي وي مخصوص اندامونه لاس پښې او زړه او داسي نور د دې مطلب دادی چي د جسم د اندامونو او حصو هم دي د ګناه څخه محفوظ وساتل سي مثلاً ستر يعني خاص اندامونه دي په حرام کار کي اخته نه کړل سي د ګناه او خواهش ځاي لکه مېلې تماشې ، ډولونه ، سرناوي او غزلو ته دي نه ورځي همداسي پښې دي د ګناه څخه محفوظ وساتل سي په لاسونو سره دي چاته هيڅ تکليف نه وررسوي نه دي څوک ووهي او وټکوي نه دي د چا مال غلا کړل سي نه دي په زوره واخستل سي نه دي نامحرم ته لاس وروړل سي همداسي زړه دي د خرابو عقيدو ګنده خيالاتو او د الله پاک څخه ماسيوا د بل چا د ياد څخه پاک وساتل سي . په اخر کي د انسان د خاکي جسم د فاني کيدو احساس ورکړل سوی دی فرمايل سوي دي دا خبره هيڅ کله هيرول نه دي پکار چي اخر به يوه نه يوه ورځ د دې دنيا څخه سترګي پټي سي او دا فاني جسم خواه هر څومره ښائسته وي د قبر په غېږ کي به بيده کړل سي چي هلته به غوښه چي څه هډوکي هم وراسته او خاوري سي .

بيا د دې وروسته ( ومن اراد الآخرة ........الخ ) په فرمايلو سره يوه قاعده بيان کړه سوې ده چي کوم سړی پوهيږي چي دنيا فاني ده هغه دنيا او د دنيا لذتونه پرېږدي او دا چي کوم سړی د اخرت ثواب او د هغه د ابدي نعمتونو او سعادتونو خواهش ولري هغه دي د دنيا ښکاره زيب و زينت پرېږدي ځکه چي دا دواړه شيان په پوره کمال سره په يوه سړي کي تر دې چي په اولياء کي هم نسي جمع کيدای .

دا حديث د خلکو په وړاندي زيات بيانول د دې خپرول او دې مفهوم او د غوښتنو څخه عوام خبرول د لوئ سعادت او فضيلت خبره ده امام نووي رحمة الله عليه فرمايي دا حديث په کثرت سره بيانول مستحب دی .

## مرگ د مؤمن تحفه ده

﴿۱۵۲۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُحْفَةُ الْمُؤْمِنِ الْمَوْتُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مؤمن تحفه مرگ دي (بيهقي په شعب الايمان كي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۷\۱۷۱، رقم: ۹۸۸۴.

## د مؤمن مرگ

﴿۱۵۲۲﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُؤْمِنُ يَمُوْتُ بِعَرَقِ الْجَبِيْنِ. رواه الترمذي والنسائي وابن ماجه.

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مؤمن د تندي د خُولي سره مري (يعني مؤمن ته د زكندن پر وخت سخت تكليف وي چي په هغه سره پر تندي خُوله راځي او دا د نيكي نښه ده) (ترمذي، نسائي، ابن ماجه)

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۱۰، رقم: ۹۸۲، والنسائي ۴\۶، رقم: ۱۸۲۷، وابن ماجه ۱\۴۶۸، رقم: ۱۴۵۲.

**تشريح**: ځيني حضرات وايي چي د تندي په خولو سره مركيدل د ځكندن د شدت څخه كنايه ده چي د هغه په وجه ځينو ويلي دي دا د دې خبري كنايه ده چي مومن تر مرگ پوري د حلالي روزي په طلب كي مشقت او محنت كوي او په عباداتو كي كوښښ كوي، ځيني علماء وايي چي د مرگ په وخت په تندي د خولو راتلل د سعادت او خير نښه ده ځينو علماء ويلي دي چي د دې څخه مراد دادی چي مرگ د مومن لپاره د تكليف سبب نه دی، دا چي د هغه په تندي خوله راسي، والله اعلم.

## ناڅاپي مرگ

﴿۱۵۲۳﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبيد الله بن خالد رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَوْتُ الْفُجَاءَةِ أَخْذَةُ الْأَسَفِ . رواه أبو داود وزاد البيهقي في شعب الإيمان ورزين في كتابه أخذة الأسف للكافر ورحمة للمؤمن

ناڅاپه مرګ دخدای ﷻ دغضب نيول دي (ابو داؤد) په بيهقي او رزين په دې روايت کي دا الفاظ زيات کړي دي چي د خدای ﷻ غضب نيول دکافر دپاره دي ، او مؤمن دپاره رحمت دی.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۴۸۱، رقم: ۳۱۱۰.

**تشريح** : مطلب دادی چي ناڅاپه مرګ د الله تعالی د غضب نښه ده ځکه چي د ناپامه مرګ واقع کيدونکي صورت کي دومره هم فرصت نه ترلاسه کيږي چي د آخرت د سفر تياري وکي په دې توګه چي توبه او په استغفار کولو سره د خپلو ګناهونو بخښنه وغواړي او نيک او صالح عمل په اختيارولو سره په بارګاه رب العزت کي سرلوړی سي مګر علماء ليکي چي د ناپامه مرګ د کافر لپاره د غضب ګرفت فرمايلي دي او د هغو خلکو لپاره دي چې پر نيکه لار نه وي لکه چي د حديث د آخري الفاظو څخه چي بيقهي او رزين نقل کړي معلوميږي ګويا حاصل د کلام دا سو چي په ناڅاپه مرګ نيکو او د ښو خلکو لپاره ښه دی او د خرابو اوبدکارو خلکو لپاره بد دی.

## د الله ﷻ څخه د رحمت امید

﴿۱۵۲۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى شَابٍّ وَهُوَ فِي

دحضرت انس ﷺ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ يو ځوان ته ورغلی ،

الْمَوْتِ فَقَالَ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَ ارجو الله يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَإِنِّي أَخَافُ ذُنُوبِي فَقَالَ

چي ساه يې په ختو وه ، نبی کريم ﷺ ورڅخه پوښتنه وکړه چي ته په ځان کي کوم حالويني (يعني ستا په زړه کي دخدای درحمت اميد دی يا دغضب الهي ويره) هغه ورته وويل : يا رسول الله ! زه په خپل زړه کي دخدای ﷻ درحمت اميد لرم ، او دخپلو ګناهونو څخه خوفزده يم.

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي قَلْبِ عَبْدٍ فِي مِثْلِ هٰذَا

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ديوه بنده په زړه کي چي په دې وخت کي دا دوه حالاته يو ځای سي

الْمَوْطِنِ إِلَّا أَعْطَاهُ اللّٰهُ مَا يَرْجُو وَآمَنَهُ مِمَّا يَخَافُ. رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب

نو الله جل جلاله دهغه دا اميد پوره كوي، او دويري څخه يې په امن كوي (ترمذي، ابن ماجه) په ترمذي كي دا حديث غريب ښوول سوى دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۱۱، رقم: ۹۸۳، وابن ماجه ۲\۱۴۲۳، رقم: ۴۲۶۱.

**تشريح**: د داسي وخت څخه مراد يا خو په خاصه توګه د سكرات الموت وخت دى يا داسي وختونه هم ځني مراد دي چي د سكرات الموت د وخت په ډول وي چي په هغه كي انسان حكما بالكل د مرګ پر غاړه وي لكه د جنګ د وخت لپاره يا د قصاص وخت يا دا ډول نور وختونه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د عمر د اوږدوالي سعادت

﴿۱۵۲۵﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَمَنَّوُا الْمَوْتَ

دحضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دمرګ غوښتنه مه كوئ

فَإِنَّ هَوْلَ الْمُطَّلَعِ شَدِيْدٌ وَإِنَّ مِنَ السَّعَادَةِ أَنْ يَّطُوْلَ عُمَرَ الْعَبْدِ وَيَرْزُقَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ الْإِنَابَةَ. رواه أحمد.

ځكه چي دزكندن وېره سخته ده او دا كار په نېک بختي كي داخل دي چي دبنده عمر زيات وي او خداى جل جلاله خپل بنده دخپل اطاعت ولور ته متوجه كوي. (احمد).

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۳۳۲.

**د لغاتو حل**: (مطلع): بتشديد الطاء وفتح اسم مكان الاطلاع أو زمانه. (د اعلان لوړ ځاى).

**تشريح**: مطلع هغه لوړ ځاي ته وايي چي د هغه په ختلو سره يو شي ويني دلته د حديث په الفاظو كي د مطالع څخه مراد سكرات الموت او د هغه سختي ده چي مخكي انسان په هغه كي راونيول سي بيا مركېږي. د حديث حاصل دادى چي د مرګ په خواهش كي هيڅ فائده او نيک بختي نسته كوم سړى چي د مرګ خواهش كوي هغه غم سختي او د صبر د كمي په وجه داسي

كول نو د مړكيدو وخت د هغه نااميدي به نوره زياته وي او همداسي د غضب خداوندي هم مستحق وي ځكه د مرګ د خواهش څه فائده د دې څخه معلومه سوه چي د بې صبري او نااميدي په وجه د مرګ ارزو منعه ده هو د ديدار الهي شوق او عالم آخرت د محبت په وجه د مرګ خواهش جائز دی .

د حديث الفاظ (ان من السعادة) څخه د مرګ خواهش د ممانعت دوهم علت بيانوي چي د مرګ خواهش مه كوئ ځكه چي مرګ خو خپله يوه نه يوه ورځ خامخا راځي د دنيا دا څو ورځي د ژوند غيمت وګنړئ او په ژوند كي د آخرت لپارچي كمه توبنه تيارولاي سئ تياره يې كړئ يعني نيک اعما ل كوئ هر كله چي مرګ راسي او تاسو د دې دنيا څخه دارالبقاء ته روان سئ نو ستاسو لمن دي په نيكو او صالحو اعمالو سعادت څخه ډكه كړل سي (الدنيا مزرع الآخرة) يعني دا دنيا د آخرت كښت دی چي دلته نيک اعمال كوئ نو هلته به مو پكار راسي .

﴿۱۵۲۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ قَالَ جَلَسْنَا إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دي چي موږ د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر وو او ټول نبي كريم ﷺ ته متوجه وو ،

فَذَكَّرَنَا وَرَقَّقَنَا فَبَكَى سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ فَأَكْثَرَ الْبُكَاءَ فَقَالَ يَا لَيْتَنِي مِتُّ

رسول الله ﷺ موږ ته نصيحت كوئ ، او (په خپل بيان سره يې) زموږ زړونه نرم كړل ، سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه خو د نبی كريم ﷺ په بيان سره دومره متاثره سو ، چي ډېر يې وژړل ، او بيائې وويل : كاشكي زه مړ سوی وای په كوچنيوالي كي ،

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا سَعْدُ أَعِنْدِي تَتَمَنَّى الْمَوْتَ فَرَدَّدَ ذَلِكَ

رسول الله ﷺ وفرمايل : سعده ! زما په مخكي د مرګ ارزو كوې ؟ دا جمله نبی كريم ﷺ

ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ يَا سَعْدُ إِنْ كُنْتَ خُلِقْتَ لِلْجَنَّةِ فَمَا طَالَ عُمُرُكَ أَوْ

درې واره وويل ، او د دې څخه وروسته يې وفرمايل : اې سعده ! كه ته د جنت د پاره پيدا سوي يې ، نو څونه چي ستا عمر زيات وي

حَسُنَ مِنْ عَمَلِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ . رواه احمد

او ستا عمل نیک وي هغو مره به ستا لپاره بهتره وي . (احمد) .

**تخریج** : الامام احمد في مسنده ۵\۲٦۷.

**تشریح** : د رسول الله ﷺ ارشاد دی: ایا ته زما مخکي د مرګ خواهش کوې د دې مطلب دادی چي زما وروسته د مرګ د خواهش څه وجه کیداي سي خو زما په موجودګي کي د مرګ خواهش ولي کوئ ځکه چي زما د جمال باکمال دیدار او زما د صحبت عظیم شرف ستا لپاره د هر نعمت څخه بهتر او اعلي دی اګر که زما مخکي د مړکیدونکي وروسته تاته د هغه ځاي اعلي مراتب او نعمتونه حاصل وي او په دې کي هیڅ شک نسته چي د رسول الله ﷺ د مقدس او مبارک مخ د دیدرا عظیم مرتبې ته بل هیڅ شئ نسي رسېدلاي د یومرد عارف څخه چا پوښتنه وکړه که د مومن لپاره ژوند بهتر دی که مرګ هغه عارفا جواب ورکړ ، د نبوت په زمانه کي چي د رسول الله ﷺ د داسي لوړه هستۍ او شخصیت او لوی نعمت په موجودګۍ کي د مومن لپاره ژوند بهتر وو او اوس د هغوی وروسته مرګ بهتر دی د حدیث د اخري الفاظو وروسته د دوهم شق ذکر ېې نه وو فرمایلو چي ګویا دلته محذوف دی او هغه دادی چي (وان کنت خلقت للنار فلا خیر في موتک ولا یحسن الاسراع الیه) یعني که ته نعوذبالله د اور لپاره پیدا سوی ېې نو بیا هم په نه مړکیدو کي خیر دی او نه د مرګ لپاره تلوار کول ښه خبره ده .

## د حضرت خباب رضی الله عنه واقعه

﴿۱۵۲۷﴾ : وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى خَبَّابٍ وَقَدِ اكْتَوَى سَبْعًا

د حضرت حارثه بن مضرب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي زه خباب رضی الله عنه ته ورغلم ، چي هغه خپل بدن اووه ځایه داغلی وو ،

فَقَالَ لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ لَتَمَنَّيْتُهُ

او هغه وویل که ما د نبي کریم ﷺ څخه دا نه وای اورېدلي چي په تاسو کي دي څوک د مرګ غوښتنه نه کوي، نو ما به خامخا د مرګ ارزو کړې وای ،

وَلَقَدْ رَأَيْتُنِي مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ مَا أَمْلِكُ دِرْهَمًا وَإِنَّ فِي جَانِبِ بَيْتِي الْآنَ

ما ځان د نبی کریم ﷺ په وخت کي لیدلي وو چي زه دیوه درهم خاوند نه وم او نن زما په کور کي

لَأَرْبَعِينَ أَلْفَ دِرْهَمٍ قَالَ ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهِ فَلَمَّا رَآهُ بَكَى قَالَ لَكِنَّ حَمْزَةَ

ځلوېښت زره درهم ستـه ، حارثه وايي : ددې ځخه وروسته د خباب مخکې دهغه کفن راوړل سو ، هغه چې کفن وليدئ ،نو په ژړا سو او وه يې ويل : آه حمزه

لَمْ يُوجَدْ لَهُ كَفَنٌ إِلَّا بُرْدَةٌ مَلْحَاءُ إِذَا جُعِلَتْ عَلَى رَأْسِهِ قَلَصَتْ عَنْ قَدَمَيْهِ

هغه ته داسي کفن تر لاسه سو ، چې په هغه کي سپيني او توري ليکي وې ، ليکن دومره کوچنی وو ، که به يې سر ورپټ کړ نو پښې به يې لوڅې سوې ،

وَإِذَا جُعِلَتْ عَلَى قَدَمَيْهِ قَلَصَتْ عَنْ رَأْسِهِ حَتَّى مُدَّتْ عَلَى رَأْسِهِ وَجُعِلَ عَلَى

او که به يې پښې ورپټې کړې نو سر به يې لوڅ سو ، اخر يې سر ورپټ کړ ، او په پښو يې

قَدَمَيْهِ الْإِذْخِرُ. رواه احمد والترمذي الا انه لم يذكر ثم اتي بكفنه الى اخره

اذخر (يو قسم وابنه دي چې په مدينه کي پيدا کېدل) ورواچول. (احمد او ترمذي) خو ترمذي. ثم اتي بکفنه څخه تر اخره پوري ذکر نه کړ.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۱۱، والترمذي ۳\۳۰۱-۳۰۲، رقم: ۹۷۰.

**د لغاتو حل**: (ملحاء): اى فيها خطوط سود وبيض. (سپيني او توري کرښي لرونکی).

**تشريح** : حضرت خباب بن ارت ﷺ يو جليل القدر صحابي وو د اولينو اسلام راوړونکو ځخه شميرل کيږي دا هغه کس دی چې د کفارو د ظلم او ستم په ماحول کي يې تر ټولو مخکي د خپل اسلام اظهار وکړ د هغه نتيجه دا سوه چې د ډېرو تکليفونو ، کړاوونو او ظلم سره مخامخ سو، حضرت خباب په بدر او نورو غزاوو کي شريک سوی دی او په درو ځلوېښت هجري کال کي په حق ورسېدی .پر بدن باندي داغ لګول په هغه زمانه کي د ډېرو امراضو يو معروف علاج وو يو وخت د دې ځخه منعه وفرمايل سوه خو ځينو علماوو وضاحت کړی دی چې دا ممانعت ځکه فرمايل سوئ دی چې په دغه طريقه علاج اختيارونکو داعقيده درلودل چې په دې سره شفاء کېږي که دا صورت نه وي بلکه عقيده دا وي چې د علاج دا طريقه خو يوازي د يو ښکاره سبب درجه کي شفاء ورکونکی الله دی نو بيا د علاج په دې طريقې سره پرواه نه لري يا داسي به وويل سي چې دا ممانعت په هغه صورت کي دی هر کله چې في الواقع د علاج د دې طريقې ضرورت او حاجت نه وي . د حضرت خباب ﷺ د خوا د مرګ خواهش ځکه وو چې هغه د دې مرض د شدت ځخه چې د هغه لپاره داغ لګولی وو ډير زيات ناقراره وو يا د دې وجه د هغه مالداري وه

ي هغه ته دا احساس وو چي مال او زر د ډير والي چيري زما په استقامت کي لړزه نه کي پيدا ي د هغه په وجه د اخرت په عذاب کي اخته سم او دا وجه زياته صحيح ده ځکه چي د هغه دا لفاظ (ولفد رايتني .......الخ) په دې دلالت کوي. حضرت حمزه رضي الله عنه د عبدالمطلب زوئ او رسول الله ﷺ اکا وو په جنګ احد کي په شهادت ورسېدی او په سيد الشهداء لقب سره يادېږي.

اذخر: د يو وابښه نوم وو چي خوښبوداره وو دا وابښه د چت پر تختو اچول سوي وه او په ورو ډيرو ضروریاتو کي هم استعمالېږي دا حديث په دې خبره دلالت کوي چي صبر کونکی مفلس او تنګ دست د شرک کونکي مالدار څخه افضله دی ځکه حضرت خباب رضي الله عنه په ډول جليل القدر صحابي پر خپل حال باندي چي هغه ته مالداري حاصله وه او ښکاره ده چي د هغه په شاکر کيدو کي هيڅ شبه نه وه افسوس ېې وکړ.

# بَابُ مَا يُقَالُ عِنْدَ مَنْ حَضَرَهُ الْمَوْتُ

## د زکندن پر وخت ښودنه\تلقين ورکول

د قريب الموت څخه مراد هغه ناروغ دی چي پر هغه د مرګ نښني ښکاره سي او علماوو ليکلي دي چي د مرګ نښني دادي چي د ناروغ پښې سستي سي که هغه درېدل وغواړي نو درېدلاي نه سي د پزي سر ېې کوږ سي، کوناټي ېې کښيني او د بيضتين (خايو) پوست ېې زوړند سي. د زکندن نيوونکي کس ته د تلقين ورکولو څخه مراد کلمه طيبه ده يعني لااله الا الله محمد رسول الله تلقين د سورة ياسين تلاوت، انا لله وانا ليه راجعون ويل، د خير دعاوي کول او مغفرت غوښتل او داسي نور.......

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د کلمې تلقين کول

﴿۱۵۲۸﴾: عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَّاَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالاَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ. رواه مسلم

دحضرت ابو سعيد رضي الله عنه او ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دمړ کيدونکي ومخته لا اله الا الله وايا ست.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۲\۶۳۱، رقم: ۱-۹۱۶.

**تشریح**: د تلقین معني ده ویل دلته د تلقین څخه مراد د زکندن په وخت کي د مړ کېدونکي په مخ کي کلمه لا اله الا الله ویل چي هغه هم په اوریدو سره ووایي خو قریب الموت کس ته دا نه ویل پکار دي چي ته یې هم ووايه، داسي نه وي چي د مرض د شدت یا د بد حواسي په سبب د هغه د خولې څخه انکار صادر سي د جمهور علماء په نزد دا تلقین مستحب دی.

## د خیر کلمې ویل

﴿۱۵۲۹﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا حَضَرْتُمُ الْمَرِيضَ أَوِ الْمَيِّتَ فَقُولُوا خَيْرًا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ. رواه مسلم

دبی بی ام سلمه رضی الله عنها څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي تاسو یو ناروغ یا مرګ ته نژدې کس ته ورسئ نو د هغه مخته د خیر کلمه وایاست، ځکه چي تاسو څه وایاست، ملائکي پر هغه باند آمین وایي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۲\۶۳۳، رقم: ۶-۹۱۹.

**تشریح**: په حدیث کي د میت څخه مراد میت حکمي یعني قریب الموت هم مراد اخیستل کیداي سي او میت حقیقي یعني مړی هم مراد اخستل کېږي که میت حقیقي مراد وي نو لفظ (او) به د راوي د شک د اظهار لپاره ورکول سوئ وي او که میت حقیقي مراد وي نو لفظ (او) به د تنویع لپاره وي .د حدیث حاصل دادي چي مریض او د قریب المرګ مخکي په خپلي ژبي سره د خیر او نیکي کلمات ادا کوي په دې توګه چي د ځان لپاره خو د خیر د مریض لپاره شفاء او د مړي لپاره د بخښني دعاء وکړي.

## د مصیبت په وخت کي صبر

﴿۱۵۳۰﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ

د حضرت ام سلمه ؓ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل.چي کله یو مسلمان ته

تُصِيبُهُ مُصِيبَةٌ فَيَقُولُ مَا أَمَرَهُ اللّٰهُ بِهِ { إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ } اللّٰهُمَّ

مصیبت ورسیږي، او هغه د لوی خدای ﷻ د حکم مطابق په هغه مصیبت کي دا الفاظ ووایي انا لله ..... خیر منها (موږ د خدای یو او د هغه وطرفته زموږ وروسته ورتلل دي، ای الله!

أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي وَأَخْلِفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا أَخْلَفَ اللّٰهُ لَهُ خَيْرًا مِنْهَا فَلَمَّا

زما په مصيب ما ته ثواب راكړې او كوم حالت چې دې دهغه څخه بهتر راكړې) نو خداى ﷻ هغه ته دهغه څخه بهتره شى وركوي،

مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ قُلْتُ أَيُّ الْمُسْلِمِينَ خَيْرٌ مِنْ أَبِي سَلَمَةَ أَوَّلُ بَيْتٍ هَاجَرَ إِلَى

حضرت ام سلمه ﷞ وايي چې كله ابو سلمه ﷜ (يعني دهغې خاوند) وفات سو نو ما وويل: دابو سلمه ﷜ څخه به غوره كوم مسلمان وي، هغه داسې سړى وو چې تر ټولو مخكې يې دخپل اهل وعيال سره هجرت كړې وو.

رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ ثُمَّ إِنِّي قُلْتُهَا فَأَخْلَفَ اللّٰهُ لِي رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ . رواه مسلم

ما دغه كلمات وويل، نو خداى ﷻ ماته د ابو سلمه ﷜ په عوض كې حضرت رسول الله ﷺ راكړ (يعني زما سره نبى كريم ﷺ نكاح وكړل). (مسلم) يعني دابو سلمه ﷜ په وفات كې ما دغه كلمات وويل چې پورته بيان سول. نو الله ﷻ ماته بهتر خاوند (حضرت محمد ﷺ) راكړ. مسلم.

تخريج: صحيح مسلم ۲/۶۳۱، رقم: ۳-۹۱۸.

تشريح: انا لله و انا اليه راجعون: د دې مطلب دادى چې موږ او كوم شيان چې موږ ګڼلې دي دا ټول د الله پاک ملكيت او د هغه پيدا سوي دي او موږ هغه خواته ورګرځېدونكي يو، ګويا په دې ايت كې دا تسليم او اقرار دى چې خپله زموږ ځان او زموږ ذات او هغه شيان چې د هغه موږ ځان مالكان ګڼو او هغه زموږ په تيوازي او اختيار كې دي او زموږ خواته د هغه نسبت كيږي هغه ټول په حقيقت كې د الله پاک ملكيت دى زموږ سره خو يوازې عاريتا دي د الله پاک د خوا څخه زموږ ابتداء سوې ده او هغه خواته زموږ انتهاء هم ده، كوم سړى چې دا مضمون په خپل زړه او دماغ كې راسې او په كوم مصيبت كې چې هغه اخته وي په هغه مصيبت د صبر او رضا لمن يې نيولې وي نو د هغه لپاره هغه مصيبت څه چې هر مصيبت اسانه كيږي مګر په دومره خبره باندې پوهيدل پكار دي چې په مصيبت او تكليف باندې جزع او فزع د آيت صرف په ژبې سره اداء كول څه دومره فائده منده نه دى كه يو سړي ته دا مشكل پيدا سي چې د مذكوره ايت او كلماتو د ويلو حكم يې نه دى بيان كړى نو بيا د ارشاد دا جزء فيقول ما امره الله به د الله تعالى د حكم مطابق دي يې ووايي د دې څه مطلب دى نو د دې جواب به په مختصره توګه دا

وي چي هر کله د آيت او د مذکوره کلماتو د ويلو فضيلت بيان سو دا حکم فرمايل سوی دی لفظ اجرني همزه الف جزم او د جيم په پيش سره هم نقل دی او د همزه زور او جيم زير هم نقل دی خو د دواړو معني او مراد يو دی د بي بي ام سلمه ﷺ ارشاد : فلما مات ابو سلمه يعني کوم وخت چي ابو سلمه ﷛ وفات سو الخ د دې مطلب دادی چي ما د رسول الله ﷺ دا حديث مبارک د مخکي څخه اوريدلی وو هر کله چي زما خاوند ابو سلمه ﷛ د رسول الله ﷺ مخکي وفات سو نو د رسول الله ﷺ د حکم پر ځای د راوړلو له امله او دا فضيلت د حاصلولو لپاره ما وغوښتل چي دا کلمات ووايم نو بيا زما په زړه کي دا خيال پيدا سو چي ابو سلمه ﷛ څخه بهتر کوم سړی کيداي سي چي الله تعالی به يې د ابو سلمه ﷛ په بدله کي عطاء کړي وه نو ام سلمه ﷛ د ابو سلمه ﷛ فضيلت بيانوي چي کوم خلک په هجرت کي مديني شريفي ته تللي وه په هغوی کي ابو سلمه تر ټولو اول کس وو چي د خپل اهل وعيال سره يې هجرت وکړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو بيا دا چي ابو سلمه ﷛ د رسول الله ﷺ د اکا زوی او رضاعي ورور هم وو د دې وروسته ام سلمه ﷛ فرمايي باوجود د دې تردد ما مذکوره کلمات وويل چي د هغه په وجه ما ته د دنيا او آخرت د ټولو عظيم لوئي سعادت او فضيلت حاصل سو يعني د رسول الله ﷺ په نکاح کي راغلم چي افضل البشر دی .

## د مړي لپاره د نبي کريم ﷺ دعاء

﴿۱۵۳۱﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي سَلَمَةَ

د بي بي ام سلمه ﷛ څخه روايت دي چي کله د ابو سلمه ﷛ (يعنی د هغې د خاوند) سترګي (د مرګ په وخت کي) غړيدلي پاته سوې نو رسول الله ﷺ تشريف راوړ،

وَقَدْ شَقَّ بَصَرُهُ فَأَغْمَضَهُ ثُمَّ قَالَ إِنَّ الرُّوحَ إِذَا قُبِضَ تَبِعَهُ الْبَصَرُ فَضَجَّ

او په خپل لاس سره يې د هغه سترګي بندي کړی ، بيا ئې وفرمايل : کله چي روح قبض کيږي ، نو د هغه ديد هم د هغه د روح سره ولاړ سي ،(د ابو سلمه ﷛ د کور خلک پوه سول چي

نَاسٌ مِنْ أَهْلِهِ فَقَالَ لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ

ابو سلمه وفات سوي دي) هغوی په ژړا سول، نبی کريم ﷺ وفرمايل ، د ځان د پاره د خير څخه ماسوا بله دعا مه کوئ ، ځکه چي په دې وخت کي څه چي ستاسو د ژبې څخه وځي ، ملائکي په

عَلَى مَا تَقُولُونَ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِي سَلَمَةَ وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ

هغه آمین وایي ، ددې څخه وروسته نبی کریم ﷺ وفرمایل : اللهم اغفر ....ونور له فیه . (اې الله ! ابو سلمه وبخښې ، او د هغه درجه لوړه کړي ، هغه په هغو خلکو کې شامل کړي چې هغوی ته سیده لاره ښوول سوي ده

وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِينَ وَافْسَحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ وَنَوِّرْ لَهُ فِيهِ . رواه مسلم

او د هغه وروسته پاتو کارسازسي ، او اې ددواړو جهانو پروردګاره! موږ او دی وبخښې او قبر یې وړپراخ کړی او منور یې کړي) (مسلم) .

**تخریج** : صحیح مسلم ۲\۶۳۴ ، رقم: ۷- ۹۲۰.

**تشریح** : د حدیث د الفاظو (ان الروح اذا قبض ..........الخ ) په ذریعه ګویا د اغماض یعني د سترګو بندولو علت بیان سوی دی د هغه مطلب دادی چې ما د هغه سترګي ځکه وربندي کړې چې کله بې روح قبض کیږي نو د هغه سره د سترګو نور هم ځي نو د سترګود خلاصي پاته کیدو څه فائده نسته .

## د نبي کریم ﷺ وفات

﴿۱۵۳۲﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ سُجِّيَ بِبُرْدٍ حِبَرَةٍ . متفق عليه

د حضرت بی بی عائشې ﷺ څخه روایت دي کوم وخت چې رسول الله ﷺ وفات سونو په یمني څادر باندي یې بدن مبارک پټ کړل سو . (بخاري او مسلم)

**تخریج** : صحیح البخاري (فتح الباري) ۳\۱۱۳ ، رقم: ۱۲۴۱ ، ومسلم ۲\۶۵۱ ، رقم: ۴۸- ۹۴۲.

**د لغاتو حل** : (حبرة) : ای مخطط . (کرښه لرونکی) .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مرګ په وخت کي اخري خبره

﴿۱۵۳۳﴾: عَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ آخِرُ كَلَامِهِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ. رواه ابوداؤد

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ديو چا اخيري خبره چي لااله الاالله سوه، هغه په جنت کي داخليږي ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۴۸۶\۳، رقم: ۳۱۱۶.

**تشريح**: مراد دادی چي کوم سړی په آخري وخت کي پوره کلمه طيبه (لااله الا الله محمد رسول الله) ووايي هغه به په جنت کي داخليږي اوس دا احتمال خواه دا دخول جنت څخه د عذاب مخکي دخول خاص دی يا د خپلو ګناهونو په اندازه عذاب ورکولو وروسته به وي مګر اول احتمال صحيح معلوميږي چي په هغه کي مومنين کوم چي په کلمه طيبه ويلو سره خپل ځان الله پاک ته وروسپاري او هغه مؤمنان چي د هغوی آخري کلام کلمه طيبه نه وي امتياز پيدا سي.

### د زکندن پر وخت ياسين ويل

﴿۱۵۳۴﴾: وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَءُوا يس عَلَى مَوْتَاكُمْ. رواه احمد و ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مړ کيدونکي ته سورة يس واياست. (احمد، ابوداؤد، ابن ماجه)

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲۷\۵، وابوداؤد: ۴۸۹\۳، رقم: ۳۱۲۱، وابن ماجه ۴۶۶\۱، رقم: ۱۴۴۸

**تشريح**: د مړو څخه مراد مرګ ته نژدې کسان دي په دې اړه د سورة ياسين ويلو حکم په ښکاره دا معلوميږي چي مرګ ته نژدې کس په دې سورة کي ذکر سوي مضامين مثلا د الله تعالی ذکر، د قيامت حال او د دې قسم نور عجيب او غريب مضامينو څخه باخبر سي.

دا هم احتمال لري چي په حديثو کي لفظ د (موتکم) څخه قريب الموت مراد نه وي بلکه حقيقي مړی خني مراد وي په دې صورت کي د دې کلمې مطلب به دا وي چي سورة ياسين مړي

ته د هغه په کور کي يا د ښخېدو وروسته د قبر د سر خواته وويل سي .

ابن مردويه رح او ځينو نورو يو حديث روايت کړی دی چي رسول اللهﷺ وفرمايل د کوم سړي يعني قريب المرگ سر ته چي سورة ياسين شريف وويل سي نو الله تعالی مرگ پر هغه اسانه کوي .

ابن عدي رحمة الله عليه وغيره دا حديث نقل کړی دی کوم سړی چي د خپل مور وپلار يا يوازي د مور يا د پلار قبر ته هره جمعه ورسي بيا هلته سورة ياسين ووايي نو د قبر دصاحب لپاره د سورة ياسين د ټولو حروفو د تعداد په اندازه مغفرت ورته عطاء کيږي علماء فرمايي په دې حديث کي د جمعې څخه مراد حسب ظاهر په خاصه توگه د جمعې ورځ هم مراد کيداي سي او پوره اونۍ هم مراد اخيستل کيږي .

## مسلمان مړی مچول جائز دي

﴿۱۵۳۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَ

دبی بی عائشې ﷺ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ دعثمان بن مظعون بدن دوفات څخه وروسته مچ کړ

عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُوْنٍ وَّهُوَ مَيِّتٌ وَهُوَ يَبْكِيْ حَتّٰى سَالَ دُمُوْعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى وَجْهِ عُثْمَانَ . رواه الترمذي و أبو داود وابن ماجه

او دهغه په مړی يې وژړل ، تر دې چي د نبی کريم ﷺ اوښکي مبارکي دعثمان پر مخ وبهېدلي . (ترمذي ، ابو داؤد ، ابن ماجه)

**تخريج** : سنن ابي داؤد ۳\ ۵۱۳، رقم: ۳۱۶۳، والترمذي ۳\ ۳۱۴، رقم: ۹۸۹، وابن ماجه: ۱\ ۴۶۸، رقم: ۱۴۵۶.

**تشريح** : په مهاجرينو کي عثمان ابن مظعون تر ټولو اول په مدينه کي وفات سو تر ټولو مخکي دی په بقيه هديره کي ښخ کړل سو ددې وروسته بقيع ته د هديرې حيثيت ورکړل سو رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک سره ډبري را پورته کړې او د هغه پر قبر يې د نښې په توگه کښېښولې د دې حديث څخه معلومه سوه چي مسلمان مړي د ښخولو څخه مخکي مچول او په مسلمان مړي باندي په اوښکو سره ژړل جائز دي .

﴿۱۵۳۶﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مَيِّتٌ.

رواه الترمذي وابن ماجه

د عائشې رضي الله عنها څخه روايت دي چي حضرت ابوبکر رضي الله عنه رسول الله ﷺ دوفات څخه وروسته پر مخ باندمچ کړ. (ترمذي، ابن ماجه)

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۱۴، رقم: ۹۸۹، وابن ماجه ۱\۴۶۸، رقم: ۱۴۵٦.

## په تجهيز او تکفين کي تلوار

﴿۱۵۳۷﴾: وَعَنْ حُصَيْنِ بْنِ وَحْوَحٍ أَنَّ طَلْحَةَ بْنَ الْبَرَاءِ مَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ

دحضرت حصين بن وحوح رضي الله عنه څخه روايت دي چي طلحه بن براء ناروغه سو، نو رسول الله ﷺ دهغه پوښتني ته راغي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ فَقَالَ إِنِّي لَا أَرَى طَلْحَةَ إِلَّا قَدْ حَدَثَ فِيهِ الْمَوْتُ فَآذِنُونِي بِهِ وَعَجِّلُوا

او ويې فرمايل: زه وينم چي د طلحه مرګ راغلي دي، کوم وخت چي دی وفات سو، نو ما سمدستي خبر کړئ او تاسو دده په کفن و دفن کي د تلواري څخه کار واخلئ،

فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِجِيفَةِ مُسْلِمٍ أَنْ تُحْبَسَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ أَهْلِهِ. رواه ابوداؤد

ځکه چي مسلمان مړي دکور په مينځ کي زيات ساتل مناسب نه دي. (ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۱۰، رقم: ۳۱۵۹،

**تشريح**: که چيري د مړي په ښخېدو کي چي ځنډ وسي نو د مړي د خرابېدو بيره وي او ښکاره خبره ده چي د مړي په خرابېدو سره به خلک د هغه څخه نفرت کوي په دې اړه د مړي حقارت او سپکاوی کيږي الله تعالی مومن ډير معظم او مکرم پيدا کړی دی چي د هغه په تکفين (کفن ورکولو) او تدفين (ښخولو) کي تلوار کوئ چي پورتني صورتونه پيدا نسي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### مړي ته تلقين وركول

﴿۱۵۳۸﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دحضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ

تاسو مړ كيدونكي كس ته ددې كلماتو ښوونه كوئ : لا اله الا الله .... رب العالمين (دالله څخه ماسوا بل څوك دعبادت لائق نسته ، چي حليم او كريم دي ، دلوی عرش پروردګار دي ،

الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ لِلْأَحْيَاءِ قَالَ أَجْوَدُ وَأَجْوَدُ .

رواه ابن ماجه .

ټوله تعريفونه دهغه دپاره دي ، چي دداورو جهانو پالونكي دي ) اصحابو عرض وكړ : يا رسول الله ﷺ ! ددې كلمو ښوول وصحتمندو خلكو ته څنګه دي؟ نبی كريم ﷺ ورته وفرمايل : بهتر او ډېر بهتر دي . (ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۶۵، رقم: ۱۴۴۶.

**تشريح** : ابن عساكر رحمه الله د حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل كړي دي ما د رسول الله ﷺ څخه څو كلمات اوريدلي دي كوم سړی چي دا د خپل وفات په وخت كي ووايي هغه به په جنت كي داخليږي او هغه كلمات دادي (لااله الا الله الحليم الكريم ) درې واره الحمد لله رب العالمين درې واره او د دې وروسته تبارك الذي بيده الملك يحيي ويميت وهو علي كل شيء قدير ووايي .

### د مؤمن او فاسق روح

﴿۱۵۳۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَيِّتُ

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مرګ ته نژدې انسان ته

تَحْضُرُهُ الْمَلَائِكَةُ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَالِحًا قَالُوا اخْرُجِي أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ

ملائكي راځي ، كه هغه صالح بنده وي ، نو ملائكي ورته وايي ، اې پاک روحه

كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ اخْرُجِي حَمِيدَةً وَأَبْشِرِي بِرَوْحٍ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ

چي په پاک بدن كي وې ، راووځه . په داسي حال كي چي دخداى ﷻ او مخلوق په نيز ستا تعريف سوي دي ، او خوشحاله په راحت ، دجنت پاک رزق ، او تا ته دي دخداى ﷻ دملاقات زيري وي ، چي په تا باندي

غَضْبَانَ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذَلِكَ حَتَّى تَخْرُجَ ثُمَّ يُعْرَجُ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ

غضب ناكه نه دي ، (بلكه ستاڅخه خوشحاله دي) دا ملائكي مخامخ دهغه سړي ومخته داكلمات وايي . تر دې چي روح يې په خوشحالي سره دبدن څخه په خوشحالي راووځي ، او ملائكي يې داسمان ولور ته يوسي ،

فَيُفْتَحُ لَهَا فَيُقَالُ مَنْ هَذَا فَيَقُولُونَ فُلَانٌ فَيُقَالُ مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الطَّيِّبَةِ

او بيا دهغه ومخته داسمان دروازه خلاصه سي ، دربان ورڅخه پوښتنه كوي ، چي څوک دي؟ ملائكي وايي چي دا فلانكى بنده دي ، نو ورته وايي چي دا پاک روح دى هر كله راسي ،

كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ ادْخُلِي حَمِيدَةً وَأَبْشِرِي بِرَوْحٍ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ

چي په پاک بدن كي وو . اې پاكه روحه ! په اسمان كي په داسي حال كي داخل سه چي ستا تعريف سوي دي ، او تا ته دي دراحت ، دجنت رزق او دخوشحالي زيري وي .

غَضْبَانَ فَلَا يَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذَلِكَ حَتَّى يُنْتَهَى بِهَا إِلَى السَّمَاءِ الَّتِي فِيهَا اللهُ

داجملې وهغه ته مخامخ ويل كيږي . تر دې چي دهغه روح هغه اسمان ته راورسيږي چي په هغه كي خداى ﷻ دى ،

عَزَّ وَجَلَّ وَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ السُّوءُ قَالَ اخْرُجِي أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيثَةُ كَانَتْ

او كه هغه بدكاره انسان وي نو ملائكي هغه ته وايي اى خبيثه نفسه! چي

فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ اخْرُجِي ذَمِيمَةً وَأَبْشِرِي بِحَمِيمٍ وَغَسَّاقٍ وَآخَرَ مِنْ

په خبيث او ناپاک بدن کي وې ، دباندي راووځه ، په داسي حال کي چي ستا بد ويل سوي دي ، او تا ته دي دنو په شان دګرمو اوبو ،

شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذَٰلِكَ حَتَّى تَخْرُجَ ثُمَّ يُعْرَجُ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ

او درنګارنګ عذابونو زيري وي ، ملائکي ورته مخامخ دا الفاظ وايي ، تر دې چي دهغه روح دبدن څخه راووځي ، او ملائکي هغه داسمان ولور ته يوسي ،

فيفتح لَهَا فَيُقَالُ مَنْ هَذَا فَيُقَالُ فُلَانٌ فَيُقَالُ لَا مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الْخَبِيثَةِ

داسمان دروازه ورته خلاصه سي ، پوښتنه وسي چي څوک دي ؟ ورته وويل سي ، فلاني بنده دي ، داسمان دربان ورته وايي ، ناپاکه روح ته دي زيري نه وي ،

كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ ارْجِعِي ذَمِيمَةً فَإِنَّهَا لَا تُفْتَحُ لَكِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ

چي په ناپاک بدن کي وو ، په داسي حال کي چي ستا بدی ويل سوي ده ، او ستا دپاره داسمان دروازې نه خلاصيږي

فَيُرْسَلُ بِهَا مِنَ السَّمَاءِ ثُمَّ تَصِيرُ إِلَى الْقَبْرِ. رواه ابن ماجة.

نو هغه د آسمان څخه را وشړل سي او دقبر وطرفته ولاړ سي . (ابن ماجه)

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۲\ ۱۴۲۳، رقم: ۴۲۶۲.

**تشريح** : هغه ته ملائکي راځي : د دې څخه په ښکاره دا معلوميږي چي مړ کېدونکي ته د هغه روح قبضولو لپاره د رحمت ملائکي او د عذاب ملائکي دواړي راځي که مړ کېدونکی نيک او صالح وي نو د رحمت ملائکي خپل کار کوي او که بد کار وو نو د عذاب ملائکي خپل کار کوي .

د نيک او صالح څخه په عمومي توګه مومن مراد دی يا هغه نيک بخت مراد دی چي د الله ﷻ او د بندګانو د دواړو د حقوقو مراعت ساتي او د هغه ژوند د اطاعت او فرمانبرداري په لار تير سوی وي .

په حديث شريف کي د نيک صالح او د کافر د روح د قبضولو په باره کي خو په تفصيل سره ښودنه سوې ده مګر د فاسق په باره کي باالکل سکوت اختيار سوی دی د هغه څه ذکر نه دی

سوی څکه چي د فاسق په باره کي د کتاب او سنت دا طریقه ده چي د هغه په باره کي سکوت اختیارول کیداي سي چي هغه د بیري او امید د دواړو په مابینځ کي وي د مومن او کافر د روح په مابینځ کي دا امتیاز او فرق هم واضح سوی دی چي د کافر روح د اسمان څخه را شړل کیږي او هغه د همیشه لپاره اسفل السافلین کي قید کیږي پر خلاف د صالح مومن د روح چي هغه ته ازادي حاصلیږي او په اسمان او مځکي کي چیري چي غواړي سیل کولای سي په جنت کي مېوې خوړلای سي، د عرش لاندي د قندیلونو خواته خپل ځاي اختیارولای سي بیا دا چي په قبر کي د خپل جسم سره د هغه تعلق وي په دې توګه چي مړی په قبر کي د قرآن کریم تلاوت کولای سي، لمونځ کولای سي، د سکون او راحت څخه خوندي اخلي، د واده د زلمي په ډول خوب کوي او خپل حسب مراتب او د جنت په درجاتو کي خپل ځایویني او ګوري یې.

په دې هکله دي دا خبره په نظر کي ونیول سي چي د روح معامله او د برزخ او د آخرت احوال که څه هم خوارق عادت نه دي دا چي زموږ په دنیوي ژوند کي هغه احوال په ظاهره نه معلومیږي مګر د دې امورو د وقوع په باره کي په هیڅ ډول شک او شبهه کي اخته کیدل نه دي پکار.

﴿۱۵۴۰﴾: وَعَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا خَرَجَتْ رُوحُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ و فرمایل: کله چي د مؤمن روح ووځي

الْمُؤْمِنِ تَلَقَّاهَا مَلَكَانِ يُصْعِدَانِهَا قَالَ حَمَّادٌ فَذَكَرَ مِنْ طِيبِ رِيحِهَا وَذَكَرَ

نو دوې ملائکي هغه د اسمان ولور ته وړي، حماد راوي وایي، د دې څخه وروسته ابو هریره رضي الله عنه د روح د خوشبو او مشکو ذکر وکړ (یعني دا چي د دې څخه د مشکو بوئ راځي)

الْمِسْكَ قَالَ وَيَقُولُ أَهْلُ السَّمَاءِ رُوحٌ طَيِّبَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ صَلَّى

د دې څخه وروسته راوي د رسول الله ﷺ دا قول بیان کړ: د اسمان ملائکي چي دا روح ویني نو وایي: یو پاک روح د مځکي لخوا څخه راځي،

اللهُ عَلَيْكِ وَعَلَى جَسَدٍ كُنْتِ تَعْمُرِينَهُ فَيُنْطَلَقُ بِهِ إِلَى رَبِّهِ عَزَّ وَجَلَّ ثُمَّ يَقُولُ

بیا اسمان والا هغه مخاطب کړي ورته وایي، د خدای رحمت دی پر تا او ستا پر بدن باندي نازل وي، چي تا به اباد ساتي، بیا ملائکي هغه و پروردګار ته بیوسي، او پروردګار دا حکم ورکړي

انْطَلِقُوا بِهِ إِلَى آخِرِ الْأَجَلِ قَالَ وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا خَرَجَتْ رُوحُهُ قَالَ حَمَّادٌ

د قیامت تر ورځي پوري معطل کړي، او کله چي د کافر روح وځي، حماد وويل:

وَذَكَرَ مِنْ نَتْنِهَا وَذَكَرَ لَعْنًا وَيَقُولُ أَهْلُ السَّمَاءِ رُوحٌ خَبِيثَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ

ابو هريرة رضي الله عنه د دې روح د بدبوي ذکر وکړ، او بيا يې د لعنت، د دې څخه وروسته يې وفرمايل:
د دې روح په ليږدو سره د اسمان والا وايي، چي يو ناپاک روح د ځمکي د لور څخه راغي،

الْأَرْضِ فَيُقَالُ انْطَلِقُوا بِهِ إِلَى آخِرِ الْأَجَلِ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَرَدَّ رَسُولُ اللهِ

بيا وويل سي، چي د ايوسئ، او د قيامت تر ورځي پوري مهلت ورکړئ، حضرت ابو هريرة رضي الله عنه
فرمائي: د دې څخه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَيْطَةً كَانَتْ عَلَيْهِ عَلَى أَنْفِهِ هَكَذَا. رواه مسلم

د خپل پټو څوکه پر خپله پزه کښېښودل (لکه چي د کافر د روح بدبوئ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته
محسوسه سول) (مسلم).

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۲۰۲\۴، رقم: ۷۵- ۲۸۷۲.

**د لغاتو حل**: (رِيطَة): وهي بفتح الراء وسكون الياء التحتانية، كل ملاءة على طاقة واحدة ليست لفقتين أي: طرف ريطة. (د ځادر څوکه).

**تشريح**: کله چي د مؤمن روح د الله تعالى په دربار کي وړاندي کيږي نو الله رب العزت د هغه په باره کي فرمايي: دی يوسئ او د قيامت تر ورځي پوري وخت ورکړئ چي په جنت کي يا د جنت نژدې اوسئ او د پروردګار د رحمتونو برخمن کيږي بيا د دې وروسته د قيامت په ورځ به د ده بيرته راتلل وي د حساب وروسته د هغه لپاره د جنت د دائمي سعادت فيصله کول کيږي.
ګويا په حديث کي د اجل څخه مراد د برزخ وخت دی چي د هغه انتهاء يوم حساب يعني د قيامت ورځ ده، برزخ هغه عالم ته وايي چي د مرګ څخه د قيامت تر ورځي پوري درمياني وقفه ده.
د حديث آخري الفاظ همداسي راوړلو: مطلب دادی چي حضرت ابو هريره رضي الله عنه د خپل پټو پر څوکي پزه کښېښودل او دا يې وښودل چي رسول الله صلى الله عليه وسلم همداسي د خپل پټو پر څوکي خپل پزه مبارکه ايښې وه.

پر پزه يې د پټو ځوکه کښېښودل : د دې وجه دا وه چي رسول الله ﷺ ته د مکاشفې له مخې د کافر روح او د هغه بدبوئي محسوسه سوه چي د هغه په وجه رسول الله ﷺ خپل پټو پر خپل پزه مبارکه کښېښودی.

﴿۱۵۴۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حُضِرَ الْمُؤْمِنُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي ديو مؤمن د مرگ وخت رانژدې سي

أَتَتْهُ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ بِحَرِيرَةٍ بَيْضَاءَ فَيَقُوْلُونَ اخْرُجِي رَاضِيَةً مَرْضِيًّا

نو د رحمت ملائکي دورېښم سپينه کپړه راوړي ، او د مؤمن وروح ته وايي : اې روحه ! د بدن څخه راووځه ، او د خداى ﷻ و طرفته ته راځه ، په داسي حال کي چي ته د خداى ﷻ څخه راضي يې ، او خداى ﷻ ستا څخه راضي دي ،

عَنْكِ إِلَى رَوْحِ اللهِ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ فَتَخْرُجُ كَأَطْيَبِ رِيحِ الْمِسْكِ

الله ﷻ رحمت ، او د جنت رزق ستا د پاره دي نو روح راووځي او خوشبويي يې د مشکو په شان وي

حَتَّى أَنَّهُ لَيُنَاوِلُهُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ بَابَ السَّمَاءِ فَيَقُوْلُونَ مَا

او ملائکي يې لاس په لاس واسمان ته وړئ ، کله چي ملائکي دا روح د اسمان و دروازو ته يوسي ، نو د اسمان ملائکي وايي

أَطْيَبَ هٰذِهِ الرِّيحَ الَّتِي جَاءَتْكُمْ مِنَ الْأَرْضِ فَيَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِينَ

څه ښه خوشبويي ده ، چي تاسو د مځکي د طرفه څخه راوړې ده ، بيا ملائکي دا روح د مؤمنانو ارواحو ته يوسي ،

فَلَهُمْ أَشَدُّ فَرَحًا بِهِ مِنْ أَحَدِكُمْ بِغَائِبِهِ يَقْدَمُ عَلَيْهِ فَيَسْأَلُونَهُ مَاذَا فَعَلَ

او هغوي ورسره دومره خوشحاله سي ، چي ديو خپل د سفر څخه په بيرته راتلو سره ، يا ديو ورک سوي خپل په بيرته راتلو سره تاسو خوشحاله کيږي ،

فُلَانٌ مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ فَيَقُوْلُونَ دَعُوهُ فَإِنَّهُ كَانَ فِي غَمِّ الدُّنْيَا فَإِذَا قَالَ أَمَا

بيا دمؤمنانو روحونه دهغه روح څخه پوښتنه كوي ، چي فلاني فلاني بنده څه وكړه ، يعني دفلاني فلاني بنده څه حال دي ، بيا دمؤمنانو روحونه خپلو كي وايي ، دى پرېږدي ، دى ددنيا په رنځ او تكليف كي اخته وو ،

أَتَاكُمْ قَالُوا ذُهِبَ بِهِ إِلَى أُمِّهِ الْهَاوِيَةِ وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا احْتُضِرَ أَتَتْهُ مَلَائِكَةُ

هر كله چي ده ته سكون او ارام حاصل سي ، نو بيا ور څخه پوښتنه وكړئ ، بيا داروح (دارام دحاصلولو څخه وروسته ) وايي ، چي فلاني بنده مړ سو ، ايا هغه تاسو ته نه دي راغلي ؟ دمؤمنانو روحونه به ورته وايي ، ملائكو هغه وخپل ځاي(دوږخ) ته يو وړ . او كله چي دكافر دمرګ وخت نژدې سي ، نو دعذاب ملائكي

الْعَذَابِ بِمِسْحٍ فَيَقُولُونَ اخْرُجِي سَاخِطَةً مَسْخُوطًا عَلَيْكِ إِلَى عَذَابِ اللَّهِ عَزَّ

هغه ته ټاټ راوړئ او ورته وايي : اې روحه! بهر راووځه ، دخداى ﷻ عذاب تاته متوجه دي ،

وَجَلَّ فَتَخْرُجُ كَأَنْتَنِ رِيحِ جِيفَةٍ حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ بَابَ الْأَرْضِ فَيَقُولُونَ مَا

نو هغه روح دبدبوئ مرداري په شان راوځي ، تر دې پوري چي ملائكي يې دمځكي دروازو طرفته راوړي ، او ورته ويل كيږي ،

أَنْتَنَ هَذِهِ الرِّيحَ حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْكُفَّارِ . رواه احمد والنسائي .

څنګه ناپاكه او بدبويه روح دي ،بيا هغه دكافرو روح ته يو وړل سي .(احمد ، نسائي).

**تخريج**: سنن النسائي ۴\۸-۹، رقم: ۱۸۳۳. لم نجده عند الامام احمد.

**دلغاتو حل**: (مِسح): الثوب الخشن (كلك ټوكر، ټاټ).

**تشريح** : د مؤمن د مرګ په وخت كي د رحمت ملائكي د ريښم جامې ځكه راوړي چي په هغه كي روح نغښتي يوسي، ماذا فعل فلان، فلانی څه كوي يعني د مؤمنو ارواح د راتلونكي مؤمن د روح څخه د هغو خلكو په باره كي چي په دنيا كي پيژندل او په دنيا كي يې پرې ايښي وه پوښتنه كوي چي فلانی او فلانی په څه حال كي دی او د دې پوښتني څخه د هغوی مطلب داوي كه دا معلومه سي چي د هغوی ژوند د الله تعالی او د الله د رسول ﷺ په اطاعت او فرمانبرداری كي تيريږي نو خوشحاله سي او پر راه حق باندي د هغوی د استقامت لپاره دعاء كوي او كه د

چاپه باره کي هغوی ته دا معلومه سي چي د هغه ژوند د گناه او معصيت په جال کي نغښتي دی نو رنځ او غم کوي او د الله تعالی څخه د هغوی د هدايت او د هغوی د مغفرت او تحسين دعا غواړي .

(حتي ياتون به الی باب الارض) بيا ملائکي هغه د مځکي د دروازو خواته راوړي د دې په باره کي علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي د مځکي د دروازې څخه مراد د مځکي د اسمان يعني اول اسمان دروازه ده څرنگه چي د تير حديث الفاظ (ثم يعرج بها الی السماء) دلالت کوي او دا هم احتمال دی چي د مځکي د دروازو څخه مراد مځکه وي په دې صورت کي به د دې مطلب داوي چي د کافر روح اسفل السافلين خواته غورځول کيږي ملا علي قاري رحمة الله عليه فرمايي چي زما په نزد هم دوهم صورت غوره معلوميږي .

د کافر ارواح خواته يې وړي : د دې مطلب دادی چي هغه د کافرانو ارواحو ته چي د هغوی ځای سجين دی هغه ته يې رسوي سجين د جهنم په ژوروالي کي د يو ځای نوم دی .

﴿۱۵۴۲﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت براء بن عازب ﷺ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ولاړو

فِي جِنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ وَلَمَّا يُلْحَدْ فَجَلَسَ رَسُولُ اللّٰهِ

ديوه انصاري جنازې ته ، تر دې چي موږ د هغه قبر ته ورسېدو ، تر هغه وخته پوري هغه ښخ سوي نه وو ، رسول الله ﷺ کښېنستي ،

ﷺ وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ وَكَأَنَّ عَلَى رُءُوسِنَا الطَّيْرَ وَفِي يَدِهِ عُودٌ يَنْكُتُ فِي الْأَرْضِ فَرَفَعَ

او موږ هم د نبي کريم ﷺ سره شاوخوا سر کښېنته او خاموش کښېناستو ، گواکي زموږ پر سرو باندي مرغان ناست دي ، نو د نبي کريم ﷺ په لاس کي د غه وخت يو لرگی وو . چي په هغه سره يې مځکه کروول ،

رَأْسَهُ فَقَالَ اسْتَعِيذُوا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ

بيا نبي کريم ﷺ خپل سر مبارک پورته کړ او ويې فرمايل : د قبر د عذاب څخه پناه غواړئ ، دوه يا دري واري نبي کريم ﷺ دا الفاظ وويله ، د دې څخه وروسته يې وفرمايل : هر کله چي

نَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا وَإِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ نَزَلَ إِلَيْهِ مَلَائِكَةٌ مِنَ

ن بنده تعلق د دنيا څخه قطعه کېدونکي وي او هغه داخرت ولورته متوجه وي نو هغه ته د اسمان دلوري څخه ملائكي راځي ،

اءِ بِيضُ الْوُجُوهِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الشَّمْسُ مَعَهُمْ كَفَنٌ مِنْ أَكْفَانِ الْجَنَّةِ

ي مخونه داسي روښانه وي ګواکي دهغوی مخونه لمر غوندي وي ، دهغوي سره دجنت كفن

وطٌ مِنْ حَنُوطِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَجْلِسُوا مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ ثُمَّ يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ

نت خوشبويي وي ،تر دې چي هغوی دومره ليري کښيني ، څومره چي نظر کار کوي ، بيا دمرګ ملائكه راسي ،

السَّلَام حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَيَقُولُ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ اخْرُجِي إِلَى

من بنده ته کښېني او ورته وايي اې پاکه روحه ! دخدای دبخښني او درضا ولورته راسه ،

رَةٍ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ قَالَ فَتَخْرُجُ تَسِيلُ كَمَا تَسِيلُ الْقَطْرَةُ مِنَ السِّقَاءِ

ي كريم ﷺ وفرمايل : چي روح داسي بهېدونکي دبدن څخه راووځي لكه څنګه چي دابو څاڅکي دمشک څخه بهېدونکي راووځي ،

خُذُهَا فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا فِي يَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ حَتَّى يَأْخُذُوهَا فَيَجْعَلُوهَا

مرګ ملائكه هغه روح واخلي او سمدستي نوري ملائكي دملک الموت څخه هغه روح واخلي ، يعني دسترګو د رف څخه ژر ، او هغه کښېږدي

لِكَ الْكَفَنِ وَفِي ذَلِكَ الْحَنُوطِ وَيَخْرُجُ مِنْهَا كَأَطْيَبِ نَفْحَةِ مِسْكٍ وُجِدَتْ عَلَى

په هغه كفن او خوشبويي کي كوم چي هغوی راوړي دي ، ددې روح څخه هغه بهترينه خوشبويي خيژي ، چي په مځکه کي دټولو خوش بويو شيانو څخه افضله وي ، ب

هِ الْأَرْضِ قَالَ فَيَصْعَدُونَ بِهَا فَلَا يَمُرُّونَ يَعْنِي بِهَا عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا

ملائكي داروح داسمان و طرف ته وړي ، او د ملائكو دكومي تولۍ سره چي داروح تيرېږي

قَالُوا مَا هَذَا الرُّوحُ الطَّيِّبُ فَيَقُولُونَ فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ بِأَحْسَنِ أَسْمَائِهِ الَّتِي كَانُوا

نو هغه ټولې وايي .دا پاک روح دچا دی ، کومي ملائکي چي داروح وړی هغوی وايي ، دا فلانی بنده دی او دفلاني زوی (يا لور) دی ، يعني دهغه نوم او لقب وروښيي چي

يُسَمُّونَهُ بِهَا فِي الدُّنْيَا حَتَّى يَنْتَهُوا بِهَا إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيَسْتَفْتِحُونَ لَهُ

په دنيا کي يې ذکر کيږي ، ترڅو چي دا ملائکي يې ددنيا اسمان ته راورسوئ او دهغه دپاره داسمان د دروازې خلاصولو غوښتنه وسي

فَيُفْتَحُ لَهُمْ فَيُشَيِّعُهُ مِنْ كُلِّ سَمَاءٍ مُقَرَّبُوهَا إِلَى السَّمَاءِ الَّتِي تَلِيهَا حَتَّى يُنْتَهَى

نو د هغه لپاره د آسمان دروازه خلاصه سي او دهغه سره دهر اسمان ملائکي دبل اسمانه پوري ځي ، ترڅو پوري چي هغه روح ورسول سي

بِهِ إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ فَيَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ اكْتُبُوا كِتَابَ عَبْدِي فِي عِلِّيِّينَ

اووم اسمان ته ، او الله ﷻ فرمايي : زما دبنده اعمال نامه مقام العلين کي (کم ځاي چي نيک روحونه قرار لري) کښيږدي ،

وَأَعِيدُوهُ إِلَى الْأَرْضِ فَإِنِّي مِنْهَا خَلَقْتُهُمْ وَفِيهَا أُعِيدُهُمْ وَمِنْهَا أُخْرِجُهُمْ تَارَةً

او دا روح دمځکي وطرف ته يوسئ (يعني دده بدن چي ښخ سوي دي واپس کړئ)ما دمځکي څخه بدنونه پيدا کړي دي

أُخْرَى قَالَ فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ فَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولَانِ لَهُ مَنْ

او مځکي ته يې واپس کوم ، او دمځکي څخه به يې دوهم وار راباسم ،ددې څخه وروسته نبی کريم ﷺ وفرمايل چي هغه روح بيا دهغه په بدن کي اچول کيږي ، بيا هغه ته دوې ملائکي راځي هغه کښېنوي او دهغه څخه پوښتنه کوي: څوک دی

رَبُّكَ فَيَقُولُ رَبِّيَ اللَّهُ فَيَقُولَانِ لَهُ مَا دِينُكَ فَيَقُولُ دِينِيَ الْإِسْلَامُ فَيَقُولَانِ لَهُ مَا

ستا رب ؟ په جواب کي هغه ورته ووايي . زما پروردګار الله ﷻ دی ، بيا هغوی پوښتنه ځيني وکړي ، ستا دين څه دی ؟ (يعني ته په کوم دين يې ؟)هغه ورته ووايي ، زما دين اسلام دي ، بيا

هغوی ځيني پوښتنه وکړي چي

هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ فَيَقُولُ هُوَ رَسُولُ اللهِ ﷺ فَيَقُولَانِ لَهُ وَمَا عِلْمُكَ

دا څوک دي، چي تاسو ته درليږل سوي وو؟ هغه ورته په جواب کي وايي، دا دخدای ﷻ رسول دی، بيا ځيني پوښتنه کوئ، چي تا دده رسالت څنګه وپيژندي؟

فَيَقُولُ قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ فَيُنَادِي مُنَادٍ فِي السَّمَاءِ أَنْ صَدَقَ

هغه ورته وايي، ما دخدای ﷻ کتاب ولوستی، ما ايمان پر راوړ، او تصديق مي وکړ، بيا يو اوازکونکي داسمان څخه يو اواز وکړي چي ريښتيا وويل

عَبْدِي فَأَفْرِشُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَأَلْبِسُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ قَالَ

زما بنده، دده دپاره دجنت بستره هواره کړئ، او دجنت جامه په واغوندئ، او دجنت ولور ته يو کلکين ورته خلاص کړئ، نو کلکين ورته خلاص سي

فَيَأْتِيهِ مِنْ رَوْحِهَا وَطِيبِهَا وَيُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ مَدَّ بَصَرِهِ قَالَ وَيَأْتِيهِ رَجُلٌ

او دهغه لاري ورته دجنت هوا او خوشبويي راځي، او هغه قبر ورته ډېر پراخه سي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا هغه ته يو ډېر ښائسته سړی راسي،

حَسَنُ الْوَجْهِ حَسَنُ الثِّيَابِ طَيِّبُ الرِّيحِ فَيَقُولُ أَبْشِرْ بِالَّذِي يَسُرُّكَ هَذَا يَوْمُكَ

چي ښائسته لباس يې اغوستي وي او بهترينه خوشبويي يې لګولې وي، او هغه ته وايي، تاته دي دهغه شي زيري وي چي ستا خوشحالوونکي دي (يعني ستا دپاره دهر قسم نعمتونه موجود دي) دا هغه ورځ ده

الَّذِي كُنْتَ تُوعَدُ فَيَقُولُ لَهُ مَنْ أَنْتَ فَوَجْهُكَ الْوَجْهُ يَجِيءُ بِالْخَيْرِ فَيَقُولُ أَنَا

چي ددغه نعمتو وعده درسره سوې وه، مړي ځيني پوښتنه کوي چي ته څوک يې؟ چي ستا ښائست کامل دي، او تا زيري راوړي دي، هغه به ورته ووايي: زه

عَمَلُكَ الصَّالِحُ فَيَقُولُ رَبِّ أَقِمِ السَّاعَةَ حَتَّى أَرْجِعَ إِلَى أَهْلِي وَمَالِي قَالَ وَإِنَّ

ستا نيک عمل يم، مړي چي دا اوري نو وايي، چي اې زما پروردګاره! قيامت راولې، چي زه

بيا يو وار د مال او عيال لور ته ولاړسم ، د دې څخه وروسته نبي كريم ﷺ وفرمايل :

الْعَبْدَ الْكَافِرَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا وَإِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ نَزَلَ إِلَيْهِ مِنَ

كافر بنده چې د دنيا څخه د اخرت و لور ته ځي ، نو راسي هغه ته

السَّمَاءِ مَلَائِكَةٌ سُودُ الْوُجُوهِ مَعَهُمُ الْمُسُوحُ فَيَجْلِسُونَ مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ ثُمَّ

د آسمان څخه ملائكي چې د هغوى سره ټاټ وي ، هغوى دومره ليرې ځيني كښيني ، چې تر كمه ځايه پورې ستر ګې ديد كوي ، بيا

يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَيَقُولُ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيثَةُ

د مرګ ملائكه ورته راسي او د هغه سره كښيني او ورته وايي ، اى خبيثه او ناپاكه روحه!

اخْرُجِي إِلَى سَخَطٍ مِنَ اللَّهِ وَغَضَبٍ قَالَ فَتُفَرَّقُ فِي جَسَدِهِ فَيَنْتَزِعُهَا كَمَا يُنْتَزَعُ

د خداى د غضب و لور ته راځه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د كافر روح چې دا واوري بدن يې په لړزه سي (او د جسم څخه د راوتلو څخه بيريږي ليكن د مرګ ملائكه هغه روح راكاږي لكه چې

السَّفُّودُ مِنَ الصُّوفِ الْمَبْلُولِ فَيَأْخُذُهَا فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوهَا فِي يَدِهِ طَرْفَةَ

ازغى دلندو وړيو څخه راكاږي ، او هغه د بدن څخه راوكاږي او د ستر ګو په رپ كې د هغه څخه روح هغه ملائكي راوكاږي ، چې د هغه اخيستلو د پاره راغلي وي ،

عَيْنٍ حَتَّى يَجْعَلُوهَا فِي تِلْكَ الْمُسُوحِ وَيَخْرُجُ مِنْهَا كَأَنْتَنِ رِيحِ جِيفَةٍ وُجِدَتْ عَلَى

ملائكي هغه روح په ټاټ كې وپيچي ، او د هغه څخه ډيره سخته بدبويي راوځي ، لكه د مرداري

وَجْهِ الْأَرْضِ فَيَصْعَدُونَ بِهَا فَلَا يَمُرُّونَ بِهَا عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا مَا

هغه بوى چې په ځمكه كې بيا پيدا سي ، بيا ملائكي هغه روح د اسمان لور ته وړئ ، د ملائكو د كومي ډلي څخه چې دا روح تيريږي ، هغوى دا وايي چې

هَذَا الرُّوحُ الْخَبِيثُ فَيَقُولُونَ فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ بِأَقْبَحِ أَسْمَائِهِ الَّتِي كَانَ يُسَمَّى بِهَا

دا د چا ناپاكه روح دى؟ ملائكي جواب وركوئ ، د فلاني بنده د فلاني دزوى (يالور) يعني هغه په بدو لقبو او نومو سره ذكر كوي ، چې مخاطب كېندى په هغو سره

فِي الدُّنْيَا حَتَّى يُنْتَهَى بِهِ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيُسْتَفْتَحُ لَهُ فَلَا يُفْتَحُ لَهُ ثُمَّ قَرَأَ

په دنيا کي ، تردې چي ملائکي هغه ددنيا اسمان ته ورسوئ او د دروازې خلاصولو غوښتنه وسي ليکن دروازه نه خلاصيږي . تر دې وروسته

رَسُولُ اللَّهِ ﷺ { لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ

نبي کريم ﷺ وويل : لا تفتح لهم ........ فی سم الخياط . (داسمانونو دروازې دکافرانو دپاره نسي خلاصيدلاى او نه به هغوى په جنت کي داخل کړل سي تر څو پوري چي

الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ } فَيَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ اكْتُبُوا كِتَابَهُ فِي سِجِّينٍ فِي الْأَرْضِ

اوښ دستني په سپم کي د اخل نه سي يعني دهغوى په جنت کي داخلېدل ممکن نه دي)بيا به الله ﷻ حکم وکړي ، دده اعمالنامه په سجين کي کښېږدئ (چي په دوږخ کي ديو ځاي نوم دي )چي په اوومه ځمکه دننه دي ،

السُّفْلَى فَتُطْرَحُ رُوحُهُ طَرْحًا ثُمَّ قَرَأَ { وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ

بيا دهغه روح وغورځول سي ، ددې څخه وروسته نبی کريم ﷺ دا ايات ولوستي : ومن يشرک بالله.....الخ (چاچي دخداى ﷻ سره څوک شريک کړ ، هغه لکه چي داسمان څخه پرمخي راولوېدي ،

فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ } فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ

مرغان هغه خوري يا يې هوا په ليري ځاى کي غورځوي ) ددې څخه وروسته نبي کريم ﷺ وفرمايل : بيا دهغه روح په بدن کي واچول سي

وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولَانِ لَهُ مَنْ رَبُّكَ فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ

او دوې ملائکي ورته راسي ، هغه کښېنوي او پوښتنه ځيني وکړي ، ستا رب څوک دي ؟ هغه به ورته ووايي . هاها ماته معلوم نه دي ،بيا به ځيني پوښتنه وسي ،

لَهُ مَا دِينُكَ فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ لَهُ مَا هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ

چي ستا دين کم دي ، هغه به ووايي هاها ماته معلوم نه دي ، بيا به دهغه څخه پوښتنه وسي ، چي

هغه څوک دي چې تاستو ته لېږل سوي وو ،

فِيكُمْ فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ أَنْ كَذَبَ فَافْرِشُوهُ

هغه به په جواب کي ووايي چي هاها ماته معلوم نه دي ، ددې څخه وروسته يو اواز کوونکی دخدای جَلَّ جَلالُهُ دطرفه څخه اواز کوي چي دا درواغجن دي ، دده دپاره فرش هوار کړئ

مِنَ النَّارِ وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ فَيَأْتِيهِ مِنْ حَرِّهَا وَسَمُومِهَا وَيُضَيَّقُ عَلَيْهِ

داور او دده دپاره ددوږخ لور ته دروازه خلاصه کړئ ، نو ددوږخ ولور ته يوه دروازه خلاصه سي ، نو ددوږخ گرمي او هوا وده ته رسيږي ، او قبر يې تنگ سي ،

قَبْرُهُ حَتَّى تَخْتَلِفَ فِيهِ أَضْلَاعُهُ وَيَأْتِيهِ رَجُلٌ قَبِيحُ الْوَجْهِ قَبِيحُ الثِّيَابِ مُنْتِنُ

تر دې چي دهغه پښتۍ ديوه خوا څخه بلي خواته وځي ، بيا به يو بد صورت سړی چي خيرني جامي يې اغوستي وي ، هغه ته به راسي ،

الرِّيحِ فَيَقُولُ أَبْشِرْ بِالَّذِي يَسُوءُكَ هَذَا يَوْمُكَ الَّذِي كُنْتَ تُوعَدُ فَيَقُولُ مَنْ

چي دهغه څخه به سخته بد بويي خيژي ، ورته وبه وايي ، تا ته دي دهغه شي زيري وي (بد زيري) چي تا ته به بد معلوميږي ،دا هغه ورځ ده چي ددې وعده درسره سوې وه ، مړي دهغه څخه پوښتنه کوي چي ته څوک يې ؟

أَنْتَ فَوَجْهُكَ الْوَجْهُ يَجِيءُ بِالشَّرِّ فَيَقُولُ أَنَا عَمَلُكَ الْخَبِيثُ فَيَقُولُ رَبِّ لَا تُقِمْ

ته خو ډېر بد شکل يې او بد زيري دي راوړي دي ، هغه به په جواب کي ورته ووايي چي زه ستا بد عمل يم ، په دې اوربدو سره به مړی ووايي اې پروردگاره ! قيامت مه راوله .

السَّاعَةَ. وَفِي رِوَايَةٍ نَحْوَهُ وَزَادَ فِيهِ إِذَا خَرَجَ رُوحُهُ صَلَّى عَلَيْهِ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ

په يو بل روايت کي دا تهوله خبره ذکر ده ، او دومره نوره زياته ده چي کوم وخت دمؤمن بنده روح دبدن څخه وځي نو په هغه باندي هره ملائکه چي داسمان او مځکي ترمينځ وي رحمت ليږي

السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَكُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ وَفُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ

او هغه ملائکه چي په اسمان کي وي دهغه دپاره داسمان دروازې خلاصوي او دهر مسلمان

لپاره داسمان ملائکي دخدای ﷻ څخه

بَابٍ إِلاَّ وَهُمْ يَدْعُوْنَ اللّٰهَ أَنْ يُّعْرَجَ بِرُوْحِهٖ مِنْ قِبَلِهِمْ . وَتُنْزَعُ نَفْسُهٗ يَعْنِيْ

دا دعا غواړئ چي دهغه روح ددوی د دروازو څخه تیریږي چي دهغه په زیارت مشرف سي او دکافر روح دهغه ځایو څخه منعه سي ،

الْكَافِرَ مَعَ الْعُرُوْقِ فَيَلْعَنُهٗ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَكُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ

او هره ملائکه چي د اسمانو او مځکو په مینځ کي وي لعنت پر وايي .

وَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلاَّ وَهُمْ يَدْعُوْنَ اللّٰهَ أَنْ لاَّ يُعْرَجَ رُوْحُهٗ مِنْ قِبَلِهِمْ . رواه أحمد

او داسمان ټولي دروازې ورته بندي سي او دهرې دروازې ملائکي دخدای ﷻ څخه دادعا غواړئ چي دهغه روح دهغوی په دروازو کي تیر نه سي ، احمد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۸۷– ۲۸۸.

**د لغاتو حل**: (السفُودُ): الشوک (ازغی). (المسوح): جمع المسح بالكسر، وهو اللباس الخشن (پنډ ټوکر\ټاټ).

**تشريح** : د حديث الفاظ (فتخرج تسيل كما تسيل القطرة من السقاء) څخه دا معلومه سوه چي د بنده روح په ډيري اساني سره وځي هر کله چي د يوې خوا څخه دا معلوميږي چي د روح د وتلو په معامله کي مومن هم په ډير تکليفو کي اخته کيږي نو په دې دواړو روايتونو کي تطبيق پيدا کيږي چي د مومن روح خو د جسم د وتلو څخه مځکي په سختي کي اخته سي او د جسم څخه د وتلو په وخت کي په اساني سره دباندي راوځي په خلاف د کافر د روح چي د هغه روح د جسم څخه د وتلو په وخت کي هم په ډيري سختي کي اخته کيږي .

دې حديث دا وښودل چي د مومن روح اووم اسمان ته رسول کيږي هر کله چي د دوهم روايت څخه معلومه سوه چي د مومن روح عرش ته رسول کيږي نو کيداي سي چي ځني روحونه اووم اسمان ته رسول کيږي او ځني روحونه تر عرشه پوري رسول کيږي .

عليين: د يو ځای نوم دی چي په اووم اسمان باندي واقع دی او په هغه کي د نيکو خلکو اعمال نامې پرتې وي .

په حديث كي د منكر نكير دريم سوال داسي نقل سوى دى يعني رسول الله ﷺ چي تاسو ته را استول سوى دى څوک دى نو كيداي سي چي د ځني خلكو څخه داسي پوښتنه كيږي او د ځني خلكو څخه دا پوښتنه كيږي چي ستاسو نبي څوک دى څنگه چي په يو دريم روايت كي نقل دي.

حتي ارجع الي اهلي ومالي: چي زه خپل د اهل وعيال خواته ولاړسم په دې كي د اهل څخه مراد حوري او خادمان دي او د مال څخه محل د جنت او هلته د مال په توگه نور شيان هم ځني مراد دي يا دا هم ويل كيداي سي چي د اهل څخه مراد د مومن اهل قرابت او د مال څخه مراد محلونه او داسي نور دي .والله اعلم

سجين : د اومي مځكي لاندي د دوږخ د ژوروالي د يو ځاي نوم دي چيري چي د دوږخيانو اعمال نامې ايښول كيږي د حديث الفاظ اكتبوا كتابه في سجين في الارض السفلي په دې كي دې خواته اشاره ده چي دوږخ د اوومي مځكي لاندي دى.

د الله تعالى سركش خلك قبر په څومره دردناكي طريقې سره كښېكاږي دا خو تاسو ته د دې حديث څخه معلومه سوه ليكن ځيني مومنين بلكه اكابر موحدين يعني اولياء الله لپاره هم د قبر كښې كښل ثابت دى خو د دې كيفيت دا نه وي بلكه د مومن لپاره قبر خپلي دواړي غاړي داسي يوځاي كوي څنگه چي مور د انتهائي زيات شوق او محبت په حالت كي خپل بچى د خپلي غاړي سره يوځاي كړي د دوهم روايت الفاظ د كافر روح د رگو سره راباسل كيږي په دې كي دې خبري ته اشاره ده چي د كافر روح خپل جسم په ډير مشكل او سختي سره پريږدي او د هغه روح دا نه غواړي چي د جسم څخه راوباسل سي نو ځكه ملائكي د هغه روح په كښولو راباسي.

## په عالم برزخ كي د مؤمن روح

﴿۱۵۴۳﴾: وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَمَّا حَضَرَتْ كَعْبًا الْوَفَاةُ

حضرت عبدالرحمن بن كعب رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي ، كوم وخت چي د كعب رضي الله عنه د مرگ وخت رانژدې سو ،

اَتَتْهُ اُمُّ بِشْرٍ بِنْتُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُوْرٍ فَقَالَتْ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِنْ لَقِيْتَ

نو د براء بن معرور لور بي بي ام بشر هغه ته راغله ، او ويې ويل : اې ابو عبدالرحمن !كه په اخرت كي د فلاني سره يوځاي سوې ،

فُلَانًا فَاقْرَأْ عَلَيْهِ مِنِّي السَّلَامَ قَالَ غَفَرَ اللّٰهُ لَكِ يَا أُمَّ بِشْرٍ نَحْنُ أَشْغَلُ مِنْ

نو هغه ته زما سلام وايه ، كعب رضي الله عنه جواب وركړ ، اې ام بشر! خدای عزوجل دې تا وبخښي هلته به ددې څخه زيات په مهم كار باندې مشغول يو ، (يعني هلته به موږ دځان څخه خبر نه يو ، نو دبل چا خبر به څنګه اخلو) .

ذٰلِكَ قَالَتْ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَمَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ إِنَّ أَرْوَاحَ

بی بی ام بشر وويل : اې ابو عبدالرحمن ! ايا تا د رسول الله ﷺ څخه دا نه دي اورېدلي چې دمؤمنانو ارواح به

الْمُؤْمِنِينَ فِي طَيْرٍ خُضْرٍ تَعْلُقُ بِشَجَرِ الْجَنَّةِ قَالَ بَلَى قَالَتْ فَهُوَ ذَاكَ . رواه ابن ماجة والبيهقي في كتاب البعث والنشور .

دشنو مرغانو په شكل كې وي ، چې دجنت ددرختو څخه به مېوې خوري . كعب رضي الله عنه ورته وويل: او ما (هم داسې) اورېدلي دي ، بی بی ام بشر رضي الله عنها ورته وويل : دا هغه فضل وكرم دي چې دا ستا دپاره اميد كېداى سي .(يعني ستا روح به په هغو روحونو كې شامل وي ) (ابن ماجه ، بيهقي در كتاب البعث والنشور) .

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۱/ ٤٦٦، رقم: ۱٤٤۹.

**د لغاتو حل** : (تعلّق) : اى تاكل وترعى (خوراك كوي او څرېږي ).

**تشريح** : حضرت عبدالرحمن رحمة الله عليه د سترو تابعينو څخه دی او د هغه بناغلی پلار حضرت كعب رضي الله عنه د جليل القدر صحابه كرامو څخه شمېرل كيږي، همداسې براء ابن معرور رضي الله عنه هم صحابي دی او د انصارو څخه دی، بي بي ام بشر رضي الله عنها د هغه لور وه، حضرت كعب رضي الله عنه چې د آخرت د سفر په تيارې كې وو او د هغه اجل نژدې وو نو ام بشر د دې خبرې خواست ورته وكړ چې كله ته د دنيا څخه رخصت سې او د فلاني سړي سره دې لېدنه وسي نو زما سلامونه ورته وايه.

په څرګنده ددې څخه دا معلومېږي چې فلانی سړی د راوي الفاظ دي ام بشر په دې وخت كې د حضرت براء يا د حضرت بشر نوم اخيستی خو كعب و ام بشر ته وويل الله تعالى دې تا وبخښي دا الفاظ پر هغه وخت وويل سول كله چې خبرې كونكي خپل مخاطب ته يو داسې خبره وراوروي چې هغه ته ويل يې نه دي پكار ګويا د حضرت كعب رضي الله عنه مطلب دا وو چې ته دا څه

وایې، هلته خو به زموږ بوختیا ددې څخه ډېره زیاته وي هلته په رسیدو سره څوک و پیژنو او هغوی ته د چا سلام او پیغام ورسوو، یعني هلته په رسیدو سره زه به په خپل حال کي اخته یم د خپل ځان څخه به هم خبر نه یم د نورو به څه خبر سم، همداسي ټول به په خپل خپل حال کي اخته وي، حاصل دا چي هلته به څوک په هوش کي نه وي او چا ته به د خپل حال څخه فراغت نه وي نو د بل چا سلام او پیغام به څه ورسوي.

ام بشر د رسول الله ﷺ د ارشاد په رڼا کي هغه ته د دې عذر دا جواب ورکړ چي تاسو به په هغه خلکو کي نه یاست چي په ستونزو کي به راګیر یاست بلکه تاسو به په هغو مؤمنانو کي یاست چي د هغوی په اړه رسول الله ﷺ ته دا لوی زیری ورکړل سوی دی ګویا تاسو به هلته خوشحاله او ډاډه یاست او د الله تعالی په لوی رحم او کرم کي به یاست.

په یو بل روایت کي په عالم برزخ کي د مؤمانو د روحونو یو څه تفصیل داسي سوی دی چي د مؤمنانو روحونه به د شنو مرغانو په څېر کي وي چي په جنت کي به ګرځي د هغه مېوې به خوري د هغه اوبه به چښي او د عرش لاندې د سروزرو په قندیلونو کي خپل د اوسیدو ځای به یې جوړ کړی وي.

﴿۱۵۴۴﴾: وَعَنْهُ عن أبيه أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه دخپل پلاره څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ

قَالَ إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ تَعْلُقُ فِيْ شَجَرَ الْجَنَّةِ حَتّٰى يَرْجِعَهُ اللهُ فِيْ

وفرمایل: دمؤمن روح به دمرغانو په شکل دجنت د درختو څخه مېوې خوري، تر څو چي هغه بیا الله جل جلاله هغه په بدن کي اچوي په

جَسَدِهٖ يَوْمَ يَبْعَثُهٗ . رواه مالك والنسائي والبيهقي في كتاب البعث والنشور

هغه ورځ به ئې الله جل جلاله پورته کړي، یعني دقیامت په ورځ. (مالک، نسائي، بیهقي کتاب البعث والنشور).

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۲۴۰، رقم: ۴۹، والنسائي: ۴\۱۰۸، رقم: ۲۰۷۲.

**تخریج**: (النسَمة): النفس والروح (ساه او روح).

**تشریح**: که چیري دا اشکال پیدا سي چي د انسان روح ته د حیوان بدن ورکړل سي نو د هغه

مرتبه کمه سوه ځکه چي په دې صورت کي هغه انسان حيوان سو او قلب د حقيقت لازم سو نو د دې جواب به دا وي چي د مؤمن روح د مرغه د جسم سره داسي تعلق نه وي لکه څرنګه چي خپله د حقيقي جسم سره د روح تعلق وي او پر هغه خپل تصرف کوي بلکه دا تعلق داسي دی لکه څرنګه چي د يو قيمتي شي مثلا لال يا جواهر د هغه د حفاظت او احتياط له کبله په صندوق کي ايږدي نو د مؤمن روح د مرغه په غالب کي په ورکولو سره نه خو د هغه مرتبه کمېږي او نه قلب حقيقت لازميږي بلکه په داسي توګه د هغه درناوی او تعظيم کيږي.

ځيني علماء فرمايي په حديث کي د مومن د روح په باره کي چي کوم کيفيت بيان سوی دی د هغه تعلق د شهداوو سره دی هر کله چي د نورو ځينو علماؤ دا قول دی چي د دې تعلق د عامو مومنانو سره دی لکه څرنګه چي د حديث د ښکاره مفهوم څخه ثابتيږي.

﴿۱۵۴۵﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ وَهُوَ يَمُوتُ فَقُلْتُ اقْرَأْ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ السَّلَامَ. رواه ابن ماجة.

حضرت محمد بن منکدر رحمه الله فرمايي: کوم وخت چي د جابربن عبد الله رضي الله عنه د مرګ وخت نژدې سو، نو زه ورسره وم، او ورته مي وويل: زما سلام و رسول الله ﷺ ته ورسوه. (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۴۶۶، رقم: ۱۴۵۰.

---

# بَابُ غُسْلِ الْمَيِّتِ وَ تَكْفِيْنِهِ

## مړي ته غسل او کفن ورکول

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل کيږي په کومو سره چي مړي ته د غسل ورکولو او کفن ورکولو د احکامو، مسائلو او ادابو علم ترلاسه کيږي، د ټولو علماؤ په نزد مړي ته غسل ورکول فرض کفايه دي يعني که يوڅو خلک مړی ولمبوي نو د ټولو ذمه به ادا سي او که هيڅوک مړی و نه لمبوي نو ټول به ګناه کار وي.

په دې اړه د علماؤ په نزد اختلاف دی چي د مړي په غسل کي نيت شرط دی که نه، د ځينو حضراتو په نزد شرط دی او د ځينو په نزد شرط نه دی مګر صحيح قول دا دی چي نيت شرط دی لکه څرنګه چي د شيخ ابن همام رحمة الله عليه قول دی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## مړي ته غسل ورکول

﴿۱۵۴۶﴾: عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دبــي بــي ام عطيــه ﷺ څخــه روايــت دئ چــي رســول اللهﷺ مــوږ تــه راغلــی

وَنَحْنُ نَغْسِلُ ابْنَتَهُ فَقَالَ اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ إِنْ

کله چي موږ د رسول اللهﷺ لور (بی بی زينب رض) ته غسل ورکوئ او ويې فرمايل: دې ته په اوبو او د بيري په پاڼو سره درې يا پنځه واري غسل ورکړئ يا زيات تر دې که چيري

رَأَيْتُنَّ ذٰلِكَ بِمَاءٍ وَّ سِدْرٍ وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُوْرًا أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُوْرٍ فَإِذَا

تاسو ددې ضرورت وګڼئ ، او اخر کافور يا دکافوريو څه شي په کښي واچوئ ،او کله چي

فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِي فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ فَأَلْقَى إِلَيْنَا حِقْوَهُ فَقَالَ اَشْعِرْنَهَا اِيَّاهُ وَ فِيْ

دغسل څخه فارغه سواست نو ما ته خبر راکړئ ، بيا چي موږ دغسل څخه فارغه سو نو نبی کريمﷺ ته مو خبر ورکړ ، نو نبی کريمﷺ خپل لنګ موږ ته راغورځوي ، او ويې فرمايل : دالنګ دمړی دبدن سره ولګوئ ، يعني دهغه په بدن يې واچوئ ،

رِوَايَةٍ اِغْسِلْنَهَا وِتْرًا ثَلٰثًا اَوْ خَمْسًا اَوْ سَبْعًا وَ ابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ

او په يو بل روايت کي داالفاظ دي :طاق يعني درې يا پنځه يا اووه واره غسل ورکړئ ، او غسل دراسته او

الْوُضُوْءِ مِنْهَا وَ قَالَتْ فَضَفَرْنَا شَعَرَهَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ وَأَلْقَيْنَاهَا خَلْفَهَا . متفق عليه

داوداسه داعضاو څخه شروع کړئ ،بی بی ام عطيهﷺ فرمايي : موږ دمړي دويښتانو څخه درې کوڅۍ جوړي کړئ او هغه مو دهغې شا اړخ ته ايله کړئ .(بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۳۴، رقم: ۱۲۶۳، ومسلم ۲\۶۴۷، رقم: ۳۷ - ۹۳۹.

**د لغاتو حل**: (حَقوَه): ازاره (لونګ). (قُرون): ای ضفائر (کوڅۍ).

ح : د حديث په الفاظو :( اغسلنها ثلاثا او خمسا او اکثر من ذالک او اغسلنها وترا و خمسا او سبعا ) کي د (او) لفظ د ترتيب لپاره دی د اختيارولو لپاره نه دی، ځکه که په اول غسل کي پاکي حاصله سي نو درې واره لمبول مستحب دی او تر درې زيات تجاوز مکروه دی او که پاکي په دوه يا درې واره حاصله سي نو بيا پنځه واره لمبول مستحب دي ت تر زيات اووه واره، تر اووه واره زيات لمبول نه دي نقل سوي، مگر تر درې زيات لمبول ه دي.

## د بيري په بلگو او د کافور په اوبو سره مړي ته غسل ورکول :

مړی د بيري په پاڼو او د کافور په اوبو سره لمبول پکار دی په دې اړه قاعده داده چي دوه ره خو د بيري د پاڼو په اوبو سره دي ولمبول سي لکه څرنگه چي د هدايې څخه معلوميږي بوداود روايت دی چي ابن سيرين رحمة الله عليه د بي بي ام عطيه رضي الله عنها څخه د سل زده کړی وو .

## کافور د اوبو سره يو ځای کړل سي که د عطرو سره؟

يخ ابن همام رحمة الله عليه فرمايي چي د دغه حديث مراد دادی چي کافور دي په هغه اوبو ځای کړل سي په کومو چي مړی لمبوي، د جمهور علماؤ هم دا رايه ده ، مگر کوفي وايي چي کافور دي د حنوط يعني هغه خوشبويي سره يو ځای کړل سي په کومو چي معطر کيږي، او د مړي د لمبولو او د هغه د بدن وچولو وروسته پر بدن باندي لگول کيږي ماؤ ليکلي دي که کافور تر لاسه نه سي نو بيا مشک د هغه پر ځای استعمالول هم صحيح دي .

## د بيري د پاڼو او د کافورو ځانگړتيا:

لماء کرام ليکي چي د بيري د پاڼو په اوبو سره مړي ته غسل ورکول او د مړي پر بدن د کافور وجه داده چي د بيري په پاڼو سره خو د بدن خيري په ښه ډول صفا کيږي او د دې په وجه مړی بيږي او د بيري د پاڼو او کافور د استعمال په وجه ضررناکه حيوانان مړي ته نه راځي.

**ت حاصلولو لپاره د بزرگانو څه جامه په کفن کي داخلولای سې :** رسول الله ﷺ خپله خپلي لور ته د کفن لگولو لپاره ځکه ورکړې وه چي د هغه برکت هغې ته ورسيږي د دې معلومه سوه چي څرنگه يو سړی د ديندارو او بزرگانو د جامې څه جامه د مرگ څخه ې د ځان سره د تبرک لپاره وساتي يا هغه استعمالوي همداسي د مرگ وروسته د بزرگانو ې برکت حاصلول مستحب دی په دې توگه د هغوی څه جامه په اخستو سره په کفن کي ه سي مگر په دې اړه دا په خيال کي ساتل پکار دی چي هغه جامه د کفن د جامو څخه زياته

نه وي.

( و ابدان بميامنها ) د دې مطلب دادی چې مړی دې د هغه د راسته لاس راسته اړخ او د راسته پښې خوا څخه لمبول شروع کړي همداسې د مواضع الوضوء منها کي حرف (واو) د مطلق جمع لپاره دی د هغه مطلب دادی چې د مړي په غسل کي د اوداسه اندامونه پرېولل پکار دي د هغه وروسته نور اندامونه مينزل پکار دي او د اوداسه د اندامو څخه مراد هغه اندامونه دي چې د هغه پرېولل فرض دي د مړي په غسل کي خوله پرېولل او په پزه کي اوبه اچول د حنفيه په نزد پکار نه دي . ځيني علماؤ دې خبري ته مستحب ويلي دي چې مړی لمبونکی دي پر خپلو ګوتو باندي جامه واچوي او د هغه سره د مړي غاښونه تالو د دننه څخه وچ کړي او سپړمې ومړي اوس دا معمول دی .

صحيح دادی چې د غسل پر وخت د مړي پر سر باندي دي مسح و سي او د هغه پښې دي د غسل وروسته پرېولل سي مګر کله چې د اوداسه نور اندامونه ومينزل سي نو هغه وخت دي پښې هم ومينزل سي مګر د غسل په شروع کي د خولې نه مينزل پکار دي پر خلاف د ناپاکه اسړي چې هغه کله غسل کوي نو مخکي خپل دواړه لاسونه ځکه مينځي چې د نورو اندامو د مينزلو لپاره دواړه لاسونه پاک سي کله چې مړی د نورو لاسونو سره مينزل سي ځکه د هغه د دواړو لاسونو مينزلو حاجت نسته .

د حضرت امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد مسئله داده که مړی ښځه وي نو د غسل وروسته د هغه وېښتيان دي خلاص نه پرېښودل سي بلکه هغه دي وتړل سي .

### د رسول الله ﷺ كفن

﴿۱۵۴۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ كُفِّنَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ بِيضٍ سَحُولِيَّةٍ مِنْ كُرْسُفٍ لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ . متفق عليه

دبی بی عائشې ﷺ څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ ته ديمن په درو سپينو کپړو سره کفن ورکول سو ، چې دسحول (په يمن کي يو کلي کي ) جوړي سوي وي او دپمبو وې ،په دغه کپړو کي قميص او لنګوټه نه وه .(بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۳۵، رقم: ۱۲۶۴ ومسلم ۲\۶۴۹، رقم: ۴۵ – ۹۴۱.

**د لغاتو حل**: (كُرسُف): القطن (پنبه).

**تشریح** : (لیس فیها قمیص ولا عمامة) : یعني نه په هغه کي قمیص وو او نه پټکی وو د دې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ په کفن کي د دې جامو څخه ماسیوا قمیص او پټکی بالکل نه وو.

ځیني حضراتو د دې جملې مطلب دا بیان کړی دی چي قمیص او پټکی په دې درو جامو کي نه وو مګر قمیص او پټکی د دې درو جامو څخه ماسیوا وو په دې صورت کي د رسول الله ﷺ په کفن کي پنځه جامې کیدل لازمیږي حال دا چي دا ثابت سوي دي چي د رسول الله ﷺ په کفن کي درې جامې وې نو دا به ویل کیږي چي د دې جملې صحیح مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ په کفن کي قمیص او پټکی باالکل نه وو یوازي درې جامې وې.

د دې جملې سره سم د علماؤ په مذهب کي دا اختلاف پیدا سوی دی چي ایا دا مستحب دی چي په کفن کي دي قمیص او پټکی وي یا دا دي نه وي امام مالک رحمة الله علیه، امام شافعي رحمة الله علیه او امام احمد رحمة الله علیه خو دا فرمایي چي په کفن کي درې لفافې وي یعني یوازي پټو نه وي چي په هغه کي ونغابنتل سي او په هغه کي قمیص او پټکی نه وي.

کله چي حنفیه دا وایي چي په کفن کي درې جامې کیدل پکار دي اول ازار یعني لنګ دوهم قمیص یعني کفن دریم لفافه یعني د کفن پاسني پټو چي مړی د کفن د نورو حصو سره انغښتل سي په حدیث کي چي د قمیص نفي فرمایل سوې ده د هغه تاویل حنفیه دا کوي چي هغه ته کفني وایي (سحولیه) د سحول خوا ته منسوب دی او سحول د یمن د یوه کلي نوم دی.

## ښه کفن ورکول

﴿۱۵۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَفَّنَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُحَسِّنْ كَفَنَهُ. رواه مسلم

**دحضرت جابر ﷺ څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چي تاسو خپل ورور ته کفن ورکوئ، نو پکار ده چي ښه کفن ورکړئ. (مسلم)**

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۶۵۱، رقم: ۴۹– ۹۴۳.

**تشریح** : د ابن عدي رحمة الله علیه روایت دی چي خپلو مړو ته ښه کفنونه ورکوئ ځکه چي مړي په خپلو قبرونو کي یو د بل سره ملاقات کوي.

په هر حال د ښه کفن څخه مراد دادی چي د کفن جامې پوره وي او بغیر د څه اسراف لطیف پاکیزه او سپین وي خواه مینزلي یې وي که نوي وي د ښه کفن څخه اعلی او قیمتي جامې مراد

نه دي چي ځيني جاهل دنيا داران يې د نامه كولو او د تكبر له مخي استعمالوي مگر داسي كفن سخت حرام دی .

علامه تور پشتي رحمة الله عليه فرمايي اسراف كونكو چي كوم طريقه اختيار كړې ده چي د ډيري زياتي قيمتي جامې كفن وركوي دا د شرعي اعتبار څخه منعه ده ځكه چي په دې سره خامخا د مال ضايع كول لازميږي .

## د احرام د جامو كفن

﴿۱۵۴۹﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ رَجُلاً كَانَ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ

دحضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د نبي كريم ﷺ ملگري وو ،

فَوَقَصَتْهُ نَاقَتَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اغْسِلُوْهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ

او دحج احرام يې تړلي وو ، چي دهغه اوښې دهغه غاړه ماته كړه او هغه مړ سو ، رسول الله ﷺ اصحابو ته حكم وركړ ، چي ده ته دبيرو دپاڼو په اوبو سره غسل وركړئ ،

وَكَفِّنُوْهُ فِي ثَوْبَيْهِ وَلَا تُحَنِّطُوْهُ وَلَا تُخَمِّرُوا رَأْسَهُ فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا. متفق عليه و سنذكر حديث خباب قتل مصعب بن عمير في باب جامع المناقب ان شاء الله تعالى .

او په دوو كپړو كي ورته كفن وركړئ ، مه ورباندي خوشبويي لگوئ او مه سر وربټوئ ، ځكه چي دقيامت په ورځ به داسړی لبيک ويونكي دقبر څخه راپورته كيږي . (ډېر ژر به انشاء الله په باب جامع المناقب كي دحضرت عمر رضي الله عنه بن مصعب دقتل حديث ذكر كړو)

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۱۳۷، رقم: ۱۲۶۷، ومسلم ۲\ ۸۶۵، رقم: ۹۳- ۱۲۰۶.

**تشريح** : د دې حديث څخه دا معلوميږي كه يو سړی د احرام په حالت كي وفات سي نو په خپلو جامو كي دي هغه محرم ته كفن وركول سي او عطر دي پر ونه لگول سي د امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه دا مذهب دی كله چي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه په نزد كفن د محرم او نامحرم دواړو لپاره برابر دي .

تر څو پوري چي د دې خبري سوال دی چي رسول الله ﷺ هغه محرم د هغه په دواړو جامو كي

چي هغه بطور محرم استعمالوی د کفن کولو حکم ورکړی د هغه وجه داده چي د هغه سره د هغه د دوو جامو ماسیوا بل هیڅ جامه نه وه چي هغه ته پوره کفن ورکړه سي همداسي رسول الله ﷺ د هغه د سرپټولو څخه منعه وفرمایله چي دا ممانعت هم یوازي د هغه سړي لپاره وو په عامه توګه سره د کولو لپاره دا حکم نه وو .

( وسنذكر حديث خباب قتل مصعب بن عمير في باب جامع المناقب انشاء الله تعالى ) او د خباب هغه حديث چي د هغه ابتداء داده قتل مصعب بن عمير موږ به يې انشاء الله په باب جامع المناقب كي نقل كړو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د سپينو جامو كفن

﴿۱۵۵۰﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَسُوا

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو اغوندئ

مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ فَإِنَّهَا مِنْ خَيْرِ ثِيَابِكُمْ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ وَإِنَّ خَيْرَ

سپيني جامې ،چي دا غوره جامې دي ، او په سپينو جامو كي مړي ته كفن وركوئ ،

أَكْحَالِكُمُ الْإِثْمِدُ فَإِنَّهُ يُنْبِتُ الشَّعْرَ وَيَجْلُو الْبَصَرَ . رواه ابوداؤد والترمذي وروى ابن ماجة الى موتاكم .

او ستا سو دپاره بهترين رانجه اثمد (تور رانجه) دي ، ځکه چي دا باڼو شنه کوي او دسترګو ديد زياتوي .(ابوداؤد ، ترمذي او ابن ماجه دموتاكم پوري روايت كړي دي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱۴\۳۳۲، رقم: ۴۰۶۱، والترمذي ۳\۳۱۹، رقم: ۹۹۴، وابن ماجه ۲\۱۱۸۱، رقم: ۳۵۶۶.

**تشريح** : مړوته په سپينو جامو کي د کفن ورکولو حکم د استحباب په توګه دی ابن همام رحمة الله عليه فرمايي چي د کفن جامه که سپينه وي نو غوره خبره ده کنه د خلکو د کفن لپاره برد او د کتان جامه او د ښځو د کفن لپاره ريشمي ، زعفراني او د سوررنګ په جامه کي هم څه تاوان نسته ځکه چي سړی وي که ښځه د هغه لپاره په ژوند کي د کومو جامو استعمال جائز دی د مرګ وروسته هم د هغو جامو کفن ورکول جائز دی .

(اثمد) هغه رانجو ته وايي چي په عامه توګه سره موږ يې استعمالوو د دې رانجو د استعمال په باره کي افضل دادی چي د رسول الله ﷺ د اتباع سره سم د بيده کيدو پر وخت ولګول سي بيا دا چي د بيده کيدو په وخت رانجه لګول د خپلو فائدو د اعتبار څخه ډير زيات تاثير لري.

## ګران بيه کفن منعه دئ

﴿۱۵۵۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تَغَالَوْا فِي الْكَفَنِ فَإِنَّهُ يُسْلَبُهُ سَلْبًا سَرِيعًا. رواه ابوداؤد.

د حضرت علی رضی الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په کفن کي ډيره قيمتي جامه مه استعمالوئ، ځکه چي هغه ژر خرابيږي. (ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۰۸، رقم: ۳۱۵۴.

**تشريح**: ډير ژر واخيستل سي: مطلب دادی چي ډير ژر خرابيږي او زړيږي بيا څه ضرورت دی چي نفيس او زياته قيمتي جامه په دې کفن کي ولګول سي غرض د حديث حاصل د کفن په باره کي د اصراف کولو څخه منعه کول دي ځکه علماء ليکي چي په کفن کي د اوسطي درجې جامه لګول مستحب دی.

## په قيامت کي پاځيدل

﴿۱۵۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّهُ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ دَعَا بِثِيَابٍ جُدُدٍ

د حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنه څخه روايت دي، کوم وخت چي د هغه د مرګ وخت رانژدې سو، نو هغه نوي کپړې راوغوښتلې

فَلَبِسَهَا ثُمَّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ الْمَيِّتَ

او وايي غوستلې او ويې ويل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: مړي

يُبْعَثُ فِي ثِيَابِهِ الَّتِي يَمُوتُ فِيهَا. رواه ابوداؤد.

په هغه کپړو کي راپاځيږي په کوم کي چي مړ سوي وي. (ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۴۸۵، رقم: ۳۱۱۴.

**تشريح**: د حديث د ښکاره مفهوم څخه دا معلومه سوه چي ابو سعيد رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په

ارشاد عمل کولو لپاره نوي جامې راوغوښتلې او هغه يې واغوستلې په ښکاره د حديث مراد دا سو په قيامت کې چې مړی به د وهم وار را ژوندی کيږي او هغوی به د حشر ميدان ته راځي نو هغه وخت به د هغوی پر بدن جامې وي.

ښکاره ده چې که دا مفهوم د حديث مراد دی نو مسئله ډيره زياته نازکه کيږي ځکه چې د صحيح حديث په ذريعه دا خبره ثابته سوې ده چې د قيامت په ورځ په خلک بربنډ بدن او بربنډې پښې راپورته کيږي.

ځکه علماء د دې حديث معنی دا ليکي چې په حديث کې د جامو څخه مراد هغه اعمال دي چې پر هغه ژوند ختميږي دا سي کيږي چې اهل عرب کله کله لفظ ثياب يعني جامې وايي او د هغو اعمالو څخه مراد اخلي څرنگه چې جامې د بدن سره لگيدلي وي همداسي اعمال هم د بدن سره متعلق وي دا وجه ده چې دا ايت کريمه (ثيابک فطهر) د دې تاويل ځيني مفسرينو دا کړی دی چې خپل اعمال صحيح کړه.

ابو سعيد رضي الله عنه هغه وخت د دنيا څخه رخصت کېدی يوازې دپاکي او پاکيزگي لپاره يې نوي جامې واغوستلې اتفاقا دا حديث هم د هغه په ذهن کي راغلی چې هغه بيان کړه نه دا چې ابو سعيد رضي الله عنه هغه وخت نوي جامې اغوستل د دليل په توگه سره دا حديث بيان کړی وو.

د دې ارشاد مراد دا هم کيدای سي چې په کومو جامو کي مرگ واقع سي هغه به د قبر څخه په هغو جامو کي راپورته کيږي خو د حشر ميدان ته به بربنډ حالت کي رسيږي.

## غوره کفن کوم يو دی؟

﴿۱۵۵۳﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ عَنْ رَسُولِ اللهِ ﷺ قَالَ خَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ وَخَيْرُ الْأُضْحِيَّةِ الْكَبْشُ الْأَقْرَنُ . رواه ابوداؤد والترمذي وابن ماجه عن ابي امامة.

د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ و فرمايل: بهترين کفن حله دی (يعني لنگ، څادر او قميص) بهترينه قرباني د ښکرور پسه ده. (ابوداؤد، ترمذي او ابن ماجه دا روايت د ابو امامه څخه نقل کړي دي).

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۰۹، رقم: ۳۱۵٦. والترمذي ۴\۸۳، رقم: ۱۴۷۳.

**تخريج**: (الحُلَة): اى الازار والرداء (لونگ او څادر).

**تشریح** : د حُله څخه پتهو، لنګ او د هغه لاندي قمیص مراد دی په کفن کي دا درې سره جامې مسنون دي یا دا چي د حله څخه مراد د قمیص کفني څخه ماسیوا یوازي څادر او لنګ دی په دې صورت کي به مطلب دا وي چي په کفن کي پر یوې جامې باندي اکتفاء ونه سي مګر کم ازکم دوې جامي کیدل بهتر دي ځکه چي دا کفن کفایه او ادنی درجه ده او که په کفن کي درې جامې یعني څادر لنګ او د هغه سره قمیص ورکړي نو دا سنت او د کمال درجه ده.

**د شهیدانو کفن خپل جامې وي**

﴿۱۵۵۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ بِقَتْلَى أُحُدٍ أَنْ يُنْزَعَ عَنْهُمُ الْحَدِيدُ وَالْجُلُودُ وَأَنْ يُدْفَنُوا بِدِمَائِهِمْ وَثِيَابِهِمْ . رواه ابوداؤد وابن ماجة

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دي چي داحد دشهیدانو په اړه رسول الله ﷺ دا امر وکړ، چي دهغو د بدنو څخه دي اوسپنه او دپوست جامې وغیره لیري کړل سي، او بیا دي په هغو کپړو کي چي په وینو دي ښخ کړل سي. (ابوداؤد، ابن ماجه)

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۳\۴۹۷، رقم: ۳۱۳۴، وابن ماجه ۱\۴۸۵، رقم: ۱۵۱۵.

**تشریح** : د امام شافعي رحمة الله علیه په مذهب کي د شهید لپاره غسل نسته نه د جنازې لمونځ سته او د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد د شهیدانو لپاره غسل خو نسته لیکن د جنازې لمونځ سته.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

**د حضرت مصعب رضی الله عنه او حضرت حمزه رضی الله عنه کفن**

﴿۱۵۵۵﴾: عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ أُتِيَ

حضرت سعد بن ابراهیم رضی الله عنه د خپل پلاره څخه روایت کوي چي د عبدالرحمن رضی الله عنه روژه وه،

بِطَعَامٍ وَكَانَ صَائِمًا فَقَالَ قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّي كُفِّنَ فِي بُرْدَةٍ

چي هغه ته ډوډۍ راوړل سوه، هغه وویل: مصعب بن عمیر رضی الله عنه شهید سو، او هغه زما څخه بهتر وو، خو هغه په یوه جامه کي ښخ سو،

إِنْ غُطِّيَ رَأْسُهُ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَإِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ بَدَا رَأْسُهُ وَأُرَاهُ قَالَ وَقُتِلَ

او دومره کوچنۍ وه ،که سر به يې ورته پټ کړنو پښې به يې لڅې سوې او که به يې پښې ورته پټې کړې نو سر به يې لڅ سو ، ، دراوي بيان دي ، عبد الرحمن بن عوف ﷺ داهم وويل :چې

حَمْزَةُ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّي ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ أَوْ قَالَ أُعْطِينَا مِنَ

حضرت حمزه ﷺ شهيد سو او هغه زما څخه افضله وو او هغه ته هم دغسي کفن ورکول سو ،او بيا زموږ لپاره په دنيا کي پراخي سول هغه چي پراخه سول . يا داالفاظ يې وويل :

الدُّنْيَا مَا أُعْطِينَا وَقَدْ خَشِينَا أَنْ تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِي حَتَّى تَرَكَ الطَّعَامَ . رواه البخاري

موږ ته دنيا راکول سوه ،هغه قدر چي راکړل سوه، زموږ سره دا بيره پيدا سوه چي شايد زموږ دنيکو بدله موږ ته ژر راکول سوه ، ددې په ويلو سره هغه دخپل ځان سره په ژړا سو تر څو يې ډوډۍ خوړل پرېښول (بخاري) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۵۳، رقم: ۴۰۴۵.

**تشريح** : عبد الرحمان بن عوف ﷺ لوی او ډير با عظمته صحابي دی او د عشره مبشره څخه دی همداسي مصعب ابن عمير ﷺ هم يو جليل القدر او د لوړي مرتبې صحابي دی ، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی دی او د احد په غزا کي شهيد سو .

حضرت مصعب ابن عمير ﷺ د اسلام راوړلو مخکي ډير مالداره وو کله چي د اسلام مقدس وړانګو د هغه زړه او دماغ روښانه کړ او د رسالت تر احکامو لاندي يې ژوند اختيار کړ نو د مال او دولت څخه يې مخ په ګرځولو سره د زهد او فقر ژوند اختيار کړ نقل دي چي يو وار د رسول الله ﷺ په خدمت اقدس کي په داسي حال کي حاضر سو چي پر ملا يې تسمه تړلې وه رسول الله ﷺ د هغه په ليدو سره صحابو و ته وفرمايل دې سړي ته وګورئ الله تعالی د ايمان په رڼا سره د ده زړه منور کړی ما دی په مکه کي په داسي حال کي ليدلی دي چي د ده مور او پلار به ښه تر ښه ډوډۍ خوړله او ما به ليدل چي د ده پر بدن به د دوو سوو درهمو جامې وې خو اوس دا سړی د الله او د هغه د رسول په محبت کي خپل ځان دې حالت ته رسولی دی .

حضرت حمزه ﷺ ابن عبد المطلب د رسول الله ﷺ محترم اکا وو او د اهل بدر څخه دی او په جنګ احد کي په شهادت ورسيدی رسول الله ﷺ ورته سيد الشهداء فرمايلي دي .

د حضرت عبدالرحمان قول ولقد خشينا ............الخ ) زموږ سره د دې خبري بيره ده د دې مطلب دادی چي دنيا او د دنيا د نعمتونو کومه پراخي سره موږ ته حاصل سوې ده د هغه په وجه موږ بيريږو چي چيري موږ هم په هغو خلکو کي داخل نسو چي د هغوی په باره کي د الله تعالی دا ارشاد دی :

مَّن كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاء لِمَن نُّرِيدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهُ جَهَنَّمَ يَصْلاهَا مَذْمُومًا مَّدْحُورًا ۱۸ وَمَنْ أَرَادَ الآخِرَةَ وَسَعَى لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَئِكَ كَانَ سَعْيُهُم مَّشْكُورًا ۱۹ كُلاًّ نُّمِدُّ هَؤُلاء وَهَؤُلاء مِنْ عَطَاء رَبِّكَ وَمَا كَانَ عَطَاء رَبِّكَ مَحْظُورًا ۲۰ انظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَلَلآخِرَةُ أَكْبَرُ دَرَجَاتٍ وَأَكْبَرُ تَفْضِيلاً ۲۱ لاَّ تَجْعَل مَعَ اللّهِ إِلَهًا آخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُومًا مَّخْذُولاً

ژباړه : کوم سړی چي د دنيا د نعمتونو د حاصلولو اراده لري نو موږ هغه ته چي په دنيا کي کوم شی غواړي او د چا لپاره يې غواړي ژر يې ورکوو بيا موږ د هغه لپاره جهنم گرځوو چي په هغه کي به په بدحال کيدو سره ورننوځي .

په عبدالرحمن بن عوف ﷺ باندي د الله تعالی بيره غالبه او د هغه زړه د الله تعالی د ويري څخه لړزان وو ځکه هغه ته خيال وسو چي داسي نه وي چي زه په هغو خلکو کي داخل سم چي د هغوی په باره کي الله تعالی دا سخته سزا بيان سوې ده کنې ښکاره د ايت معنی داده کوم سړی يوازي دنيا او د دنيا د نعمتونو خواهشمند وي او د دنيا د نعمتونو ماسيوا د هغه د خواهش محور بل څه نه وي نو موږ په دنيا کي هغه په خپل انعام سره نازوو مگر موږ هغه ته هغه ورکوو چي موږ يې غواړو نه دا چي څه د هغه خواهش همداسي موږ هغه سړي ته د دنيا نعمتونه ورکوو.

حاصل دا چي په ايت مذکوره کي د هغو خلکو په باره کي سزا بيان سوې ده چي يوازي د دنيا طلبگاره وي ښکاره ده چي عبدالرحمان بن عوف ﷺ د هغو خلکو څخه نه وو خو پر هغو باندي د الله تعالی بيره غالبه وه ځکه بيريدله چي د دنيا د دې اسائش او پراخي په وجه چيري زموږ شمير هم په دې خلگو کي نه وسي .

په عبدالرحمن بن عوف باندي د الله تعالی د بيري د غلبې دا اثر وو چي د روژه دار کيدو باوجود د سخت ضرورت هغه طعام پوري پريښودی او هيڅ يې نه خوړل ځکه چي زړه د خدای تعالی له ويري څخه په لړزان وو نو هغه د هيڅ دنيوي لذت خوا ته نه مائل کيږي .

دا حديث پر دې خبري دلالت کوي چي د ضرورت په وخت کي څو مره کفن وجود لري نو هغه سنت دی .

## د منافقينو د مشر عبدالله ابن ابی سره د رسول الله ﷺ معامله

۱۵۵۶: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ

حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ راغلم كله چي دعبدالله بن

أُبَيٍّ بَعْدَ مَا أُدْخِلَ حُفْرَتَهُ فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ فَوَضَعَهُ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَنَفَثَ عَلَيْهِ

أبی مړی په قبر كي كښېښنودل سو او حكم يې وكړ چي مړی دقبر څخه راوباسئ ،نو مړی راوكښل سو ، نبی كريم ﷺ هغه په خپلو زنګنو مباركو كښېښنوئ او دهغه په خوله كي يې خپلي ناوړی مباركي واچولې

مِنْ رِيقِهِ وَأَلْبَسَهُ قَمِيصَهُ فَاللَّهُ أَعْلَمُ وَكَانَ كَسَا عَبَّاسًا قَمِيصًا. متفق عليه

او خپل قميص يې ورته واغوستئ، حضرت جابر ﷺ فرمايي :چي عبدالله بن ابی حضرت عباس ﷺ ته د بدر په غزا كي قميص ور اغوستئ وو نو نبی كريم ﷺ دهغه بدله وركړه .(بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۶۶، رقم: ۵۷۹۵، ومسلم ۴\۲۱۴۰، رقم: ۲- ۲۷۷۳.

**تشريح** : د منافقينو مشر عبدالله بن ابی د اسلامي تاريخ يو مشهور ترين كس دی ، كله چي نبي كريم ﷺ د الله تعالى په حكم د مكې معظمې څخه ومدينې منورې ته تشريف راوړ همداسي د اسلامي دعوت او تبليغ مركز د مكې معظمې څخه ومدينې منورې ته نقل سو نو د اسلامي دعوت او تبليغ په نتيجه كي درې ډلي په وجود راغلې :

اول : يو جماعت خو د هغه باسعادت او پر عظيمو انسانانو باندي مشتمل وو چي هغوی د رسول الله ﷺ پر دعوت لبيک ووايه، او په اخلاص او صدق سره يې د الله تعالى وحدانيت او د رسول الله ﷺ پر رسالت باندي ايمان راوړی، د نبوت وروسته دوی تر ټولو انسانانو لوړه مرتبه د صحابيت تر لاسه كړه.

دوهم جماعت د اول جماعت برعكس دی، دا جماعت په هغه بدبختو باندي مشتمل دی كومو چي په ډاګه باندي د رسول الله ﷺ مخالفت وكړ، د دوی نتيجه كي انساني نسل د ژوند و هغه كمزوري او ذليلي درجې (كفر وشرک) ته ورسېدی .

دريم : د دې دواړو جماعتونو په مينځ كي يو دريم جماعت وو دا دريم جماعت پر هغه خود

غرضو او مفاد پرستو خلكو باندي مشتمل وو چي د خپل اغراضو او مقاصدو لاندي په ښكاره خو مسلمانان سوي وه او مسلمانانو ته د ښودني لپاره هغوی همنوا هم وه خو په باطني توګه د هغوی مهمه موضوع د دعوت اسلامي مخالفت او د مسلمانانو د بيخ ايستلو جذبه وه دا هغه جماعت وو چي د انسانيت ارزل ترين خصلت د نفاق څخه ډک وو او په اسلامي تاريخ کي د منافقينو په نامه سره ياديږي، عبدالله ابن ابي د دې جماعت سردار وو.

حضرت عباس ﷺ د رسول الله ﷺ اکا محترم وو که څه هم د بدر د غزا څخه ډير مخکي اسلام يې قبول کړی وو خو د ځيني مجبوريو په وجه ځان يې مسلمان نه ظاهروی کله چي جنګ بدر وسو نو د مکې د کفارو د خوا څخه په بدر کي مجبورا ګډ سو خو رسول الله ﷺ ته دا معلومه وه چي دی مسلمان سوی دی ځکه رسول الله ﷺ مسلمانان خبر کړي وه چي په جنګ کي پر هغه لاس پورته نه کړي.

په هر حال جنګ ختم سو او الله تعالی مسلمانانو ته فتح ور نصيب کړه نو اسلامي لښکر د مکې د کفارو يو لوی لښکر د جنګ د ميدان څخه بنديان مدينې منورې ته راوستل، په دغه بنديانو کي حضرت عباس ﷺ هم وو چي مدينې ته يې راويستی نو پر بدن يې جامه نه وه او هغه د راز قد وو نو د يوه مسلمان جامه هم د عباس ﷺ پر بدن صحيح نه راغله اتفاقا عبدالله ابن ابي هم دراز قد وو هغه خپل قميص وکښی او حضرت عباس ﷺ ته يې پيش کړی چي د مجبورۍ څخه يې هغه قبول کړ، همداسي حضرت عباس ﷺ د عبدالله ابن ابی قميص واغوست، کوم وخت چي عبدالله ابن ابی مړ سو نو رسول الله ﷺ د هغه قميص بدله د ورکولو لپاره خپل قميص مبارک هغه ته ورواغوستی چي پر رسول الله ﷺ باندي د يو منافق احسان پاته نسي.

دلته يو مشکل پيدا کيږي او هغه دا چي په قرآن کريم کي خو د الله تعالی ارشاد دی:

وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ

ژباړه: په منافقانو کي چي څوک مړ سي د هغه لپاره د مغفرت او بخشش دعا هيڅ کله مه کوه او مه د هغه قبر ته ورځه.

مګر د دې سربېره رسول الله ﷺ د عبدالله ابن ابي قبر ته تشريف يووړ هغه ته يې قميص ور واغوستی او د هغه په خوله کي يې د خپلي خولې مبارکي ناړي واچولې.

علماؤ د دې اشکالو ډير جوابونه ورکړي دي چي په پورته تفصيل سره په نورو تشريحو کي

ذکر دي دلته يوازي دا جواب کافي دی چي دا پيښه د هغه وخت ده کله چي مذکوره ايت نه وو
نازل سوی یا دا چي د رسول الله ﷺ مقصد د هغه د احسان بدله ورکول وو څرنګه چي اوس يې
بيان سو او د عبدالله ابن ابی زوی ډير مخلص او صادق مومن وو او هغه د نفاق څخه پاک وو
ځکه د هغه هر کلی کول هم مقصد وو .

## د ژوند اخري لمحات او د مړي د غسل د تکفين يو څو احکام

دا باب ختميږي ځکه مناسب دی چي پر دې وخت د ژوند اخري لمحات او د مړي د غسل
او تکفين په باره کي څه احکام او مسائل بيانيږي کله چي يو سړی قريب المرګ وي او پر هغه د
مرګ علامات څرګند سي نو هغه دي مخ پر قبله سي او قريب المرګ ته دي تلقين و سي يعني د
هغه مخکي دي کلمه ( اشهد ان لااله الا الله وان محمد رسول الله ) په لوړ اواز سره ووايي چي
قريب المرګ يې هم په اوريدو سره ووايي خو قريب المرګ ته دي د کلمي ويلو حکم نه ورکول
کيږي ځکه چي دا وخت ډير سخت وي معلومه نه ده چي د هغه د خولې څخه څه ووځي کله چي
روح ورڅخه ووځي نو د هغه ټول اندامونه دي سم سي او په جامو سره دي د هغه خوله په ترکيب
سره وتړي چي جامه د زني لاندي په راکښلو سره پر سر باندي غوټه کړي چي خوله يې بنده سي
او په خوله کي د ننه څه چينجي وغيره داخل نسي سترګي دي هم وربندي سي او د پښو دواړي
ښتي ګوتي په يو ځای کولو سره دي يې وروتړي چي دواړي پښې يې يو ځای سي .

د مړي د لمبولو ، کفن ورکولو او په ښخولو کي چي څومره کيدای سي تلوار کول پکار دي
کله چي مړي ته د غسل ورکولو اراده و سي نو مخکي دي يو تخت يا لوئ تختې ته د لبان يا
ګربتی وغيره خوشبويي ولګول سي درې واره يا پنځه واره يا اووه واره څلور خواته دي د
خوشبويي لوګی په ورکولو سره مړی دي په هغه کي واچوي هغه جامې په راکښلو سره څه جامه
دي چي د هغه اوږدوالی دي يو نيم لاس او پلنوالی دوه لاسه وي د ناف څخه تر زنګانه پوري
واچوي چي ستر يې پټ سي .

## د مړي د غسل طريقه

د مړي د لمبولو طريقه داده چي لومړی دي د مړي استنجاء وکړل سي مګر ورنو او د
استنجاء ځای ته دي غسل ورکونکی خپل لاس نه وروړي او نه دي پر هغه نظر اچوي مګر د خپل
لاس څخه دي يو جامه چاپيره کړي او کومه جامه چي د نامه څخه تر زنګانه پوري پرته وي د هغه
د ننه دي يې ومينزي بيا دي د هغه وروسته اودس وسي خو نه دي په خوله کي او نه دي په
پزه کي اوبه اچوي او نه دي تر مړوندو پوري لاسونه پرېولل سي مګر مخ دي پرېولل سي، بيا

لاسونه تر څنګلو پوري بیا د سرمسح بیا دواړي پښې او که درې واره پنبه په لندولو سره پر غاښونو او وریو باندي د پزي په دواړو سوریانو کي وګرځول سي نو هم جائز دی ، او که څوک د حیض یا نفاس په حالت کي مړ سي نو خولې او پزې ته اوبه رسول ضروري دي ۔

د مړي د پزي خولې او په غوږونو کي دي پمبه کښېښودل سي چي اودس کولو او د لمبولو په وخت کي اوبه د ننه ولاړي نسي ۔

کله چي اودس و سي نو سر او ږیره یې په ګل خطمی سره یا څه بل شي لکه صابون او داسي نورو سره په موږلو ومینځي بیا دي مړی په چپه خوا کي د بیري د پاڼو په اچولو سره نیمی یخي ګرمي اوبه دي درې وار د سر څخه تر پښو پوري پر واچول سي تر دې چي په تختې سره لګیدلي اړخ ته ورسیږي بیا په راسته اړخ مخ ورکولو سره همداسي د سر څخه تر پښو پوري دي اوبه درې واره پر واچول سي تر دې چي اوبه هغه اړخ ته ورسیږي چي د تختې سره لګیدلی دی ۔

د دې وروسته دي مړي کښېنول سي او د هغه نس دي کرار کرار وموږي که د نس څخه څه ګندګي وغیره راووځي نو هغه دي پرېولل سي مګر د دې صفائي وروسته بیا دوهم وار د اوداسه او د غسل ضرورت نسته د دې وروسته دي هغه پر چپه خوا واړول سي د کافورو اوبه دي پر واچول سي او اوبه دي د سر څخه تر پښو پوري درې واره پر واچول سي که د بیرو پاڼي یا کافور او اشنان پیدا نسي نو ساده نیمي ګرمي اوبه کافي دي په دې سره همداسي درې واره دي ولمبول سي د لمبولو وروسته ټول بدن دي په جامې سره وچ کړه سي بیا د هغه سر او پر ږیري باندي دي عطر ولګول سي او تر تندي پوري پر دواړو تلو دواړو ګنډو او دواړو پښو باندي کافور دي وموږل سي د مړي ویښته او ږیره دي نه ږمونځوي او نه دي نوکان ور پرې کوي همدارنګه کوم مړی چي سنت سوی نه وي د هغه سنت دي هم نه کوي د دې ټولو شیانو څخه د فارغیدو وروسته دي کفن ورکړل سي ۔

## مسنون کفن

نارینه مړي په درو جامو کي کفن کول سنت دی : اول کفني یعني قمیص چي د ورو څخه تر پښو پوري وي دوهم ، لنګ دریم ، لفافه یعني پټو ازار د سر څخه تر پښو پوري او پټو د هغه څخه یو لاس لوئ پکار دی دا مسنون کفن دی او کفن کفایه دوې جامې یعني یو ازار او یوه لفافه ښځه مړی په پنځو جامو کي کفن کول سنت دی :

اول ، کفني یعني قمیص دوهم پوړنی یعني سپین سربند دریم ازار څلورم لفافه یعني پټو پنځم سینه بند ۔ سربند درې لاسه اوږد پکار دی او سینه بند د بغلو د لاندي برخي څخه تر زنګنو

پوري پلن او دومره اوږد پکار دی چي وتړل سي پاته دري برخي په اندازه کي کيدل پکار دي څومره چي د سري په کفن کي لګيږي د مسنون کفن په دې اندازه کي زياتي يا کمي کول نه دي پکار. د ښځي لپاره کفن کفايه درې جامې دي: ۱- ازار، ۲- پوړنی، ۳- لفافه، د ضرورت په وخت کي يوه کپړه هم کافي ده ليکن بېله ضرورته په يوه کپړه دي اکتفاء نه کوي.

## د کفن ورکولو طريقه

د کفن ورکولو مخکي درې يا پنځه يا اووه واره عطر ورته لګول پکار دي بيا مړی که نر وي نو په دې طريقې سره دي کفن کړل سي چي مخکي د لفافې د کفن پورتنی پټو چي مړي د کفن په نورو حصو سره نغښتلای سي پټو دي هوار کړه سي د هغه پورته ازار د هغه پورته قميص بيا مړی ته قميص واغوستل سي او د هغه دواړه لاسونه دي پر سينه نه ايږدي مګر دواړو خواوو ته دي خواره کړه سي بيا لنګ دي راونغاشتي مخکي چپه خواته بيا راسته خوا ته بيا پټو دي راونغاښتي مخکي چپه خواته بيا راسته خوا ته.

د ښځي د کفن کولو طريقه داده چي مخکي دي پټو او ازار په خورولو سره پر هغه قميص کښيښودل سي او مړی دي هغه په اچولو سره مخکي دي قميص ورواغوستل سي او د سر ويښته په دوو حصو کولو سره د قميص پورته پر سينه دي واچول سي يوه برخه راسته خواته او يوه برخه چپه خواته.

د دې وروسته سربند دي پر سر او پر ويښتانو واچول سي هغه دي نه تړي او نه دي انغښتتل سي بيا دي د هغه پورته ازار او د هغه وروسته د لفافې پټو دي په ترتيب سره يعني مخکي د چپه خوا څخه بيا د راسته خوا څخه ونغاښته سي بيا د ټولو وروسته دي سينه بند ونغاښته سي.

د کفن جامې د نغښتلو وروسته په يوې ټوټې سره دي د پښې او سر خوا ته کفن وتړل سي او په يو بند سره دي ملا هم وتړل سي چي په لار کي کفن خلاص نسي.

=========

# بَابُ الْمَشْيِ بِالْجَنَازَةِ وَالصَّلوة عَلَيْهَا

## د جنازې سره تلل او د جنازې دلمانځه بيان

### د جنازې سره پر پښو تلل افضل دي :

په جنازې پسي پر پښو تلل او سپور تلل دواړه جائز دي مگر پر پښو تلل افضل دي که يو سړی د جنازې سره په يو سوارۍ کي ولاړ سي نو هغه ته پکار ده چي د جنازې وروسته وروسته ځي هو پر پښو تلونکي لپاره د جنازې مخکي تلل هم جائز دی او وروسته هم مگر د هغه لپاره وروسته تلل افضل دی .

**د جنازې لمونځ فرض کفايه دی** : د جنازې لمونځ فرض کفايه دی يعني که څه خلک د جنازې لمونځ وکړي نو د ټولو د ذمې څخه فرضيت ساقطيږي او که چيري يوه هم د جنازې لمونځ ونه کړ نو ټول خلک گناه کاره سول .

**د جنازې د لمانځه د صحت شرائط** : د جنازې د لمانځه صحيح درې شرطونه دي .

۱- مسلمان به وي.

۲- مړي ته به غسل ورکول سوی وي.

۳- جنازه به د خلگو مخ ته حاضره وي . .

نو د دريم شرط مطلب دا سو که چيري جنازه حاضره نه وه نو د جنازې لمونځ جائز نه دی ، د غيباني جنازې لمونځ جائز نه دی او بل دا که چيري جنازه په موټر يا د خلگو پر اوږو يا د يوه حيوان په شا وي بيا هم لمونځ ورکول جائز نه دي، همداسي که جنازه د خلگو تر شا وه په دې صورت کي بيا د جنازې لمونځ جائز نه دی .

که چيري يو مړی بېله غسله ښخ کړل سي او د هغه مړي راکښل بېله قبره د کښلو ممکن نه وي نو په دې صورت کي د طهارت شرط ساقطيږي او که چيري د جنازې لمونځ نه وي ورکول سوی نو د جنازې لمونځ دي د هغه د قبره سره وسي او که د مړي راکښل ممکن وه نو مړي ته دي غسل ورکړي او وروسته دي د جنازې لمونځ ورکول سي ، او که چيري په خطا کي بېله غسله مړي ته د جنازې لمونځ ورکړي او ښخ يې کړي وروسته معلومه سي چي بېله غسله يې لمونځ ورکړی او مړ راوکاږي نو مړي ته دي غسل ورکړي او بيا دي د جنازې لمونځ ورکړي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په جنازه کي تلوار کول

﴿۱۵۵۷﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْرِعُوا

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تلوار کوئ

بِالْجِنَازَةِ فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُوْنَهَا وَإِنْ يَكُ سِوَى ذٰلِكَ فَشَرٌّ تَضَعُوْنَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ. متفق عليه

دجنازې په وړلو کي ، ځکه که هغه دنيک سړی جنازه وي نو هغه دنيکۍ وطرفته ژر رسول پکار دي او که هغه دبد کاره جنازه وي ، نو هغه دخپلو غاړو څخه ژر کښته کړئ .(بخاري اومسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۸۲، رقم: ۱۳۱۵، ومسلم ۱۲\۶۵۱، رقم: ۵۰- ۹۴۴.

**تشريح** : په جنازې کي تلوار مه کوئ: د دې مطلب دادی که د ښخولو لپاره جنازه وړئ نو تلوار کوئ او کرار کرار قدمونه مه اخلئ مګر د چابکتيا څخه ځغستل مراد نه دی بلکه درميانه تګ مراد دی چي قدم ژر ژر اخلئ د دې حاصل دادی چي د عام تګ څخه تېز او د ځغاستي څخه منعه وسي، که هغه جنازه د نيک سړي وه او د هغه ژوند په ښه اعمالو سره تير سوی وي نو هغه ژر ژر بيايا ست چي د اخرت د نعمتونو او د الله تعالی د رحمت سره يو ځای سي، او که هغه جنازه د يوداسي سړي وي چي د هغه ژوند په خرابو احوالو او په خرابو اعمالو کي تير سوی وي نو هم ژر ژر ځئ تر څو چي دا بدعمله مو د اوږو څخه ژر کښته سي.

### د نيک او بد انسان جنازه

﴿۱۵۵۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وُضِعَتْ

دحضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي جنازه تياره سي،

الْجِنَازَةُ فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلَى أَعْنَاقِهِمْ فَإِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ قَدِّمُوْنِي

نو خلک يې پر اوږو پورته کوي ، بيا که هغه دنېک سړی جنازه وي ، نو وايي چي ما ژر دخپل منزل وطرف ته ورسوئ ،

وَإِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ لِأَهْلِهَا يَا وَيْلَهَا أَيْنَ تَذْهَبُونَ بِهَا يَسْمَعُ صَوْتَهَا

او که دبدکاره جنازه وي نو خپلو قریبانو ته وایي افسوس دی وتاسو ته ما چیري وړئ، دمړي دا اواز اوري

كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا الْإِنْسَانَ وَلَوْ سَمِعَ الْإِنْسَانُ لَصَعِقَ . رواه البخاري

هر څوک ماسیوا د انسان څخه ، که یې انسان واوري نو بې هوشه کیږي یا مړ کیږي (بخاري).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۸۴، رقم: ۱۳۱۶.

**تشریح**: نیک بخت یعني مومن چي مړ کیږي او د هغه جنازه تیاره سي نو د جنت نعمتونه او د الله تعالی رحمتونه ویني ځکه د جنازې د ژر وړلو امر سوی دی تر څو د نعمتو سره ژر وصل سي، د دې پر خلاف چي بدبخت انسان د مرګ غیږ ته ورسیږي او د هغه جنازه تیاره سي نو هغه عذاب خپل مخ ته ویني ځکه واویلا کوي او خپلو خلکو ته وایي چي ما د عذاب خوا ته ولي وربولئ.

علماء لیکي چي مړی هغه وخت په حقیقت کي خبري اوري که څه هم د هغه روح تللی وي فرق یوازي دومره دی چي انسان د هغه اواز نسي اوریدی کله چي نور مخلوقات د هغه اواز اوري او دا شی څه غیر ممکن نه دی ځکه چي الله تعالی پر دې قادر دي دا بالکل داسي وي څرنګه چي مړی په خپل قبر کي سوال او د جواب لپاره را ژوندی کیږي.

## جنازې ته دریدل

《۱۵۵۹》: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدُ حَتَّى تُوضَعَ . متفق عليه

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي تاسو یوه جنازه وویني نو ودریږئ او څوک چي د جنازې سره ولاړ سي هغه دي تر هغه وخته پوري نه کښېني تر څو چي یې جنازه نه وي ایښې. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۷۸، رقم: ۱۳۱۰، ومسلم ۱۲\۶۶۰، رقم: ۷۷- ۹۵۹.

**تشریح**: مطلب دا چي جنازه د کور څخه وځي نو د مړي احترام او د هغه د ایمان د تعظیم سره سم دریدل پکار دي ګویا په دغه ارشاد کي دې ته اشاره ده چي په داسي وخت کي بې پرواه کیدل نه دي پکار بلکه په جنازه لیدو سره په احترام دریدل پکار دي تر هغه وخته پوري چي

جنازه يې نه وي ايښې نه دي کښېني او د جنازې په مخ کي دې نه ځي بلکه او ږده په او ږده دي ورسره ځي.

ځيني حنفي علماء فرمايي که يو سړى جنازې سره د تلو اراده نه لري نو د اکثرو علماء په نزد جنازه په ليدو سره د هغه دريدل مکروه دي کله چي ځيني حضرات فرمايي هغه ته اختيار دی خواه ودرېږي خواه کښيني همداسي د ځيني علماؤ قول دی چي دا دواړه يعني دريدل او کښېنستل مستحب دی جمهور علماء فرمايي چي دا حديث او د دې وروسته د راتلونکی حديث دواړه د حضرت علي کرم الله وجهه د روايت پر بناء چي مخته به راسي منسوخ دی.

﴿۱۵۶۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ مَرَّتْ جَنَازَةٌ فَقَامَ لَهَا رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَقُمْنَا مَعَهُ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهَا يَهُودِيَّةٌ فَقَالَ إِنَّ الْمَوْتَ فَزَعٌ فَإِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا . متفق عليه

دحضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دي چي يوه جنازه تېره سوه، رسول الله ﷺ چي هغه وليدل نو ولاړ سو او موږ هم ولاړ سوو، بيا موږ عرض وکړ يا رسول الله! دا خو ديوې يهودي ښځي جنازه وه، نبی کريم ﷺ وفرمايل: مرگ دخوف او ويري شی دی، تاسو چي جنازه ووينئ نو ورته درېږئ. (مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۷۹، رقم: ۱۳۱۱، ومسلم ۲\۶۶۰، رقم: ۷۸- ۹۶۰.

﴿۱۵۶۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ رَأَيْنَا رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ قَامَ فَقُمْنَا وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا يَعْنِي فِي الْجَنَازَةِ . رواه مسلم و في رواية مَالك و ابي داؤد قام في الجنازة ثم قعد بعد

دحضرت علی رضی الله عنه څخه روايت دی چي موږ رسول الله ﷺ وليدئ چي ولاړ وو، نو موږ هم ودرېدو، بيا چي نبی کريم ﷺ کښېنستئ نو موږ هم کښېناستو. يعني دجنازې په ليدو سره. (مسلم) او د مالک او ابوداؤد په روايت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ جنازه وليده نو ولاړ سو، بيا کښېناستي.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۶۲، رقم: ۸۴- ۹۶۲.

**تشریح** : د اول روایت چي امام مسلم رحمة الله علیه نقل کړی دی دوې معناوي یې دي یو خو دا چي رسول الله ﷺ د جنازې په لیدو سره ودرېدی او کله د نظر څخه غائبه سوه نو رسول الله ﷺ کښېنستلو او موږ هم ورسره کښېنستلو .

دوهمه معنی داده چي تر یوه وخته پوري د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي جنازه په لیدو سره به دریدلی مګر وروسته دا صورت سو چي جنازې په لیدو سره به نه و لاړېدی ناست به وو .

همداسي د دوهم روایت چي امام مالک رحمة الله علیه او امام ابوداود رحمة الله علیه نقل کړی دی دا دواړه مطلبونه اخیستل کیدای سي او دوهم مطلب زیات صحیح دی .

## د جنازې د کښون او ښخولو ثواب

﴿۱۵۶۲﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اتَّبَعَ

دحضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم سړی چي دیو مسلمان

جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهَا وَيَفْرُغَ مِنْ

دجنازې سره دمؤمن په حیثیت او دثواب دطلب په غرض ولاړ سي ، ورسره وي ،جنازه وکړي ، او فارغه سي

دَفْنِهَا فَإِنَّه يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيرَاطَيْنِ كُلُّ قِيرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَمَنْ صَلَّى

د هغه دښخولو څخه ، نو هغه ته دوه قیراطه ثواب حاصلیږي ،چي هر قیراط دا احد دغره برابر دي ، او څوک چي صرف د جنازې لمونځ وکړي

عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيرَاطٍ. متفق علیه

او بیرته راسي او په ښخولو کي نسي شریک ، نو هغه ته یو قیراط ثواب حاصلیږي .(بخاري او مسلم) .

**تخریج** : صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۹۶۳، رقم: ۱۳۲۵، ومسلم ۲\۶۵۲، رقم: ۵۲- ۹۴۵.

**تشریح** : قیراط د دینار دوولسمي برخي ته وایي چي د هغه وزن تقریبا د څلورو وریشو برابر وي دلته د قیراط څخه مراد لویه کوټه ده چي د احد د غره سره تعبیر سوې ده .

## د نجاشي د جنازې لمونځ

﴿۱۵۶۳﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ نَعَى النَّجَاشِيَّ فِي الْيَوْمِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ وَخَرَجَ بِهِمْ إِلَى الْمُصَلَّى فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ عَلَيْهِ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ . متفق عليه

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ خلكو ته د نجاشي (د حبشې د باچا) خبر وركړ، په هغه ورځ په كومه ورځ چي هغه مړ سوى وو ، بيا د اصحابو سره عيد گاه ته ولاړئ ، بيا يې صفونه جوړ كړل او څلور تكبيرونه يې وويل (يعني پر هغه يې د جنازې لمونځ وكړ) (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۸۶، رقم: ۱۳۱۸، ومسلم ۲\۶۵۶، رقم: ۶۲ - ۹۵۱.

**تشريح** : نجاشي د حبشې د پاچا لقب وو د هغه نوم اصحمه وو چي د هغه د جنازې لمونځ رسول الله ﷺ غائبانه ادا كړ .

هغه مخكي د نصارى د دين پيروكار وو خو وروسته د رسول الله ﷺ پر رسالت يې ايمان راوړى كله چي د مكې كفارو په رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم ظلم او ستم شروع كړ او په مكه كي د هغوى ژوند ډير سخت سو نو رسول الله ﷺ صحابه رضي الله عنهم ته حكم وركړ چي هغوى د مكې څخه هجرت وكړي نو د صحابوو رضي الله عنهم يو لوى شمير د خپلو كورو په پريښودو سره حبشې ته هجرت وكړ، د مسلمانانو دا تر ټولو اول هجرت وو په حبشه كي هغه وخت دا اصحمه په نامه پاچا وو هغه د صحابوو رضي الله عنهم ډيره اعلى پيمانه حوصله افزايي وكړه او د هغوى خدمت يې د ځان لپاره د خوشبختۍ ذريعه وگڼله.

كله چي هغه مړ سو نو رسول الله ﷺ ته ډيره صدمه ورسيده صحابه يې د هغه د وفات څخه خبر كړل او د ټولو سره يې عيد گاه ته تشريف يووړى او هلته يې غائبانه د جنازې لمونځ ادا كړ.

## په مسجد كي د جنازې د لمانځه كولو مسئله

په هدايه كي راځي چي په مسجد كي كوم ځاى د لمانځه د جماعت لپاره جوړ سوى وي هلته دي د جنازې لمونځ نه كوي د رسول الله ﷺ ارشاد دى كوم سړى چي په مسجد كي د جنازې لمونځ وكړي هغه ته ثواب نه حاصليږي .

علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمايي: په مسجد كي د جنازې لمونځ كول مكروه دى كه څه هم جنازه او لمونځ كوونكي دواړه په مسجد كي وي يا جنازه په مسجد كي دننه وي او ټول لمونځ

کوونکي یا لږ لمونځ کوونکي د مسجد څخه دباندي وي البته ځیني حضرات دا فرمایي په هغه صورت کي مکروه نه دی کله چي جنازه د مسجد څخه دباندي ایښودل سوی وي بیا د دې وروسته د کراهیت په باره کي هم د علماؤ اختلافي اقوال دي ځیني حضرات وایي چي کراهت تحریمي دی او د ځینو حضراتو قول دی چي کراهت تنزیهي دی.

## د حدیث څخه د شوافعو استدلال

شافعي مذهبه حضرات دا حدیث د خپل مذهب استدلال گرځوي چي د غائبانه جنازې لمونځ جائز دی د حنفیه په نزد د جنازې غائبانه لمونځ جائز نه دی ځکه د هغوی لخوا څخه د دې حدیث تاویل داسي کیږي چي کیدای سي چي د نجاشي جنازه د رسول الله ﷺ مخ ته ایښودل سوې وي ځکه چي د الله تعالی ذات پر دې قادر دی چي په مینځ کي حائل غرونه ځنگلونه او دېوالونه لیري کړي او رسول الله ﷺ د نجاشي جنازه وېني نو دا د رسول الله ﷺ خصوصیت سو نو د نورو لپاره جائز نه دی چي هغوی د غائبانه جنازې لمونځ اداء کوي د ابن عباس رضی الله عنهما دا ببله اسناده نقل دی چي د نجاشي جنازه پرانستي سوه تر دې چي رسول الله ﷺ ولیده او پر هغه یې لمونځ وکړ.

## د جنازې د لمانځه تکبیرونه

﴿۱۵۶۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ كَانَ زَيْدٌ يُكَبِّرُ عَلَى جَنَائِزِنَا أَرْبَعًا وَإِنَّهُ كَبَّرَ عَلَى جَنَازَةٍ خَمْسًا فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ يُكَبِّرُهَا.

رواه مسلم

د حضرت عبدالرحمن بن ابی لیلی رضی الله عنه څخه روایت دي چي زید بن ارقم به زموږ د جنازې په لمونځو کي څلور یا پنځه تکبیرونه ویل، موږ ځیني د دې سبب وپوښتئ، هغه وویل: چي رسول الله ﷺ به پنځه تکبیرونه کول (مسلم) (تکبیرونه څلور دي ،پنځه منسوخ دي).

**تخریج**: صحیح مسلم: ۶۵۹\۲، رقم: ۷۲- ۹۵۷.

**تشریح**: د زید بن ارقم ارشاد چي رسول الله به پنځه تکبیرونه ویله، د دې مطلب دادی چي یا خو رسول الله ﷺ په ابتدائي زمانه کي پنځه تکبیرونه ویل یا دا چي کله کله یې پنځه تکبیرونه ویلي دي.

د ټولو علماؤ په متفقه توګه سره دا فيصله ده چي د جنازې په لمانځه کي څلور تکبيرونه دي که څه هم د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو څخه تر څلورو زيات تکبيرونه نقل دي مګر علماء ليکي چي په اخر کي د رسول الله ﷺ څخه څلور تکبيرونه ثابت دي په کومو روايتونو کي چي تر څلورو زيات تکبيرونه نقل دي هغه منسوخ دي خو زيد رضي الله عنه د هغه روايتونو د منسوخ کيدو قائل نه دی نو پر دې اتفاقي او اجتماعي فيصلې باندي هيڅ اثر نه لويږي.

## د جنازې په لمانځه کي سورة فاتحه

﴿۱۵۶۵﴾: وَ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عَبَّاس عَلَى جَنَازَةٍ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ قَالَ لِيَعْلَمُوا أَنَّهَا سُنَّةٌ. رواه البخاري

د حضرت طلحه بن عبد الله بن عوف رضي الله عنه څخه روايت دي چي ما په ابن عباس رضي الله عنه پسي د جنازې يو لمونځ وکړ، هغه (د هغه تکبيرو څخه وروسته) سورة فاتحه وويل، بيا يې وويل: ما سورة فاتحه ځکه وويل چي تاسو ته معلومه سي چي سنت ده. (بخاري).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰۳، رقم: ۱۳۳۵،

**تشريح**: امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمايي دا سنت دی د دې څخه مراد دادی چي د جنازې په لمانځه کي سورة فاتحه ويل واجب نه دی، يعني که د تکبير اولی وروسته سبحانک اللهم پر ځای سورة فاتحه وويل سي نو د سنت يعني سبحانک اللهم ...الخ ويلو قائم مقام کيږي.

محقق ابن همام رحمة الله عليه فرمايي د جنازې په لمانځه کي د سورة فاتحه قرات نه کيږي هو د ثناء په نيت سره فاتحه ويل کيږي د جنازې په لمانځه کي رسول الله ﷺ څخه سورة فاتحه ويل ثابت نه دي او په موطا کي نقل دي چي ابن عمر رضي الله عنه به د جنازې په لمانځه کي سورة فاتحه نه ويله.

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د جنازې په لمانځه کي سورة فاتحه ويل واجب دي هغه فرمايي د ابن عباس رضي الله عنه الفاظ انها سنة دا سنت دی په دې کي د سنت څخه مراد دی چي سورة فاتحه ويل د دين يوه مشروعه طريقه ده نو د هغوی د دغه تاويل څخه وجوب د نفي نه لازميږي.

## د جنازې په لمانځه کي دعاء

﴿۱۵۶۶﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى

د حضرت عوف بن مالک رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ په يوه جنازه کي لمونځ وکړ

جَنَازَةٍ فَحَفِظْتُ مِنْ دُعَائِهِ وَهُوَ يَقُولُ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِهِ وَاعْفُ

او نبي كريم ﷺ چي كومه دعا په لمانځه كي وكړل هغه ما په ياد كړه ، هغه دعا داده : اللهم ....من عذاب النار .اې الله! دی وبخښې ، او رحم پر وكړی او دبدو څخه يې بري كړي ، او دده قصور معاف كړې ،

عَنْهُ وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّهِ مِنَ

او دده ښه مېلمستيا وكړې ، او دده قبر پراخه كړې ، او دی په اوبو سره، په واوري سره او په يخي سره پاک كړې ،

الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَأَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ

دده گناهونه پاک كړې ، څنگه چي سپينه كپړه دميل (خيري) څخه پاكيږي ، او ده ته د ده د كور څخه افضله كور وركړې ،

وَأَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهِ وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَأَعِذْهُ مِنْ

او دده د ښځي څخه افضله ښځه وركړې (دده د خادمانو څخه ښه خادمان وركړې) او دی په جنت كي داخل كړې ، او دی خلاص كړې

عَذَابِ الْقَبْرِ أَوْ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَفِيْ رِوَايَةٍ وَقِهِ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ قَالَ

د قبر د عذاب څخه او ددوږخ دعذاب څخه او په يوه بل روايت كي راغلي دي او دده قبر ددوږخ دفتني او ددوږخ دعذاب څخه خلاص كړې ، عوف وايي

حَتّٰى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ أَنَا ذٰلِكَ الْمَيِّتَ . رواه مسلم

كله چي ما د رسول الله ﷺ دژبې څخه دا الفاظ واورېدل ، نو بې اختياره زما په زړه كي دا آرزو پيدا سوه ، چي كاشكي دا مړی زه واي . او رسول الله ﷺ زما دپاره دادعا كړې وای (مسلم) .

**تخريج** : صحيح مسلم: ۲\۶۶۲، رقم: ۸۵- ۹۶۳.

**تشريح** : د هغه د ښځي څخه بهتره ښځه: د دې څخه څرنگه د جنت حوري مراد دي همداسي د دنيا ښځي هم مراد دي نو په دې اړه څه اشكال پاته نه سو ، په جنت كي به د دنيا ښځي د خپل

لمانځه او روژې په وجه د جنت د حورو څخه افضلي وي څرنګه چي په حديث کي راغلي دي.
په فقه کي ليکلي دي چي دا دعا اهسته ويل مستحب دي رسول الله ﷺ داد عا په لوړ اواز ځکه ويلې وه چي نور يې په اوريدو سره ياد کړي دا دعا نسائي او ترمذي هم نقل کړې ده او امام بخاري فرمايلي دي د جنازي په اړه د مړي لپاره چي کومي دعاوي نقل دي په هغو ټولو کي دا دعا تر ټولو زياته صحيح ده.

## په مسجد کي د جنازې لمونځ

﴿۱۵٦٧﴾: وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ لَمَّا تُوُفِّيَ سَعْدُ بْنُ أَبِي

ابو سلمه بن عبد الرحمان رحمه الله څخه روايت دي کله چي سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه وفات سو ،

وَقَّاصٍ قَالَتْ ادْخُلُوا بِهِ الْمَسْجِدَ حَتَّى أُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَأُنْكِرَ ذَلِكَ عَلَيْهَا فَقَالَتْ

نو بی بی عائشې رضی الله عنها خلکو ته وويل : دده جنازه مسجد ته يوسئ چي زه لمونځ ورکړم خلکو د جنازې مسجد ته د ورلو څخه انکار وکړ ، بی بی عائشې رضی الله عنها وفرمايل :

وَاللَّهِ لَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ ﷺ عَلَى ابْنَيْ بَيْضَاءَ فِي الْمَسْجِدِ سُهَيْلٍ وَأَخِيهِ .

رواه مسلم

په خدای دي مي قسم وي رسول الله ﷺ د بيضاء پر دواړو زامنو (سهيل او د هغه ورور) باندي د جنازې لمونځ په مسجد کي وکړ .(مسلم) .

**تخريج**: صحيح مسلم: ٢\٦٦٩، رقم: ١٠١- ٩٧٣.

**تشريح** : د سهيل د ورور نوم سهل وو او د هغه د دواړو د مور نوم بيضاء وه په مسجد کي د جنازې د لمانځه کولو مسئله مختلف فيه ده د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د دې حديث په دليل د جنازې لمونځ په مسجد کي کيدای سي کله چي د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد په مسجد ي د جنازې لمونځ کول مکروه دی د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله دليل هم دا حديث دی د بي بي عائشې رضي الله عنها په وينا صحابه رضي الله عنهم د دې خبري څخه انکار وکړی چي د بن ابي وقاص رضی الله عنه جنازه مسجد ته راوړه سي ځکه چي د رسول الله ﷺ دا معمول نه وو چي په مسجد کي دي د جنازې لمونځ کوي مګر مسجد ته نژدې يو ځای ټاکلی وو

هلته به رسول الله ﷺ د جنازې لمونځ کوی د دې ماسیوا په ابوداود کې یو حدیث هم پر دې مضمون نقل دی چې کوم سړی په مسجد کې د جنازې لمونځ کوې هغه ته ثواب نه حاصلیږي.
تر ټولو پورې چې د بي بي عائشې رضي الله عنها د ارشاد تعلق دی رسول الله ﷺ په مسجد کې د سهیل او د هغه د ورور د جنازې لمونځ کړی دی په دې اړه علماؤ لیکلي دي چې داسې رسول الله ﷺ د عذر د وجې څخه وکړی یا خو باران وو یا رسول الله ﷺ په اعتکاف کې وو ځکه رسول الله ﷺ په مسجد کې د جنازې لمونځ ادا کړی که په یوه روایت کې د دې وضاحت هم سوی دی چې رسول الله ﷺ په اعتکاف کې وو ځکه رسول الله ﷺ په مسجد کې د جنازې لمونځ وکړ.

## د جنازې په لمانځه کې د دېدو ځای

﴿۱۵۶۸﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ صَلَّيْتُ وَرَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ مَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا فَقَامَ عَلَيْهَا وَسَطَهَا. متفق عليه

د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما په رسول الله ﷺ پسې دیوې ښځې د جنازې لمونځ وکړ کوم چې د نفاس په وجه مړه سوې وه، نبی کریم ﷺ د جنازې په مینځ کې ودرېدئ. (بخاري).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰۱، رقم: ۱۳۳۲، ومسلم: ۲\ ٦٦۴، رقم: ۸۷- ۹٦۴.

**تشريح**: د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب خو دادی چې د ښځې د جنازې په لمانځه کې امام دې د مړي برابر ودرېږي او د سړي د جنازې په لمانځه کې دې د مړي د سر مخ ته ودرېږي د ښځې د جنازې د لمانځه په باره کې د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب دلیل دا حدیث دی کله چې د سړي د جنازې د لمانځه په باره کې هغه خپل مذهب د یوه دوهم حدیث څخه ثابتوي.
د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله عليه مذهب دادی چې امام دې د مړي د سینې مخ ته ودرېږي خواه د سړي جنازه وي یا د ښځې د دې حدیث په باره کې ابن همام رحمة الله عليه فرمايي دا حدیث د مړي د سینې مخکې د درېدو خلاف نه دی ځکه چې انساني جسم د اندامو د اعتبار څخه په اصل کې سینه وسط دی په دې توګه سره چې د سینې پورته سر او لاسونه وتړي او د سینې لاندې نس او پښې دي او د دې ټولو په مینځ کې سینه ده او دا احتمال دی چې رسول الله ﷺ پر دې وخت ته د ځیګر خوا ته لږ مائل ولاړ وو او دا دواړې برخې یعني سینه او ځیګر په خپلو کې بالکل نژدې نژدې دي ځکه راوي به دا ګمان کړی وي چې رسول الله ﷺ د ځیګر مخ ته

ولاړ وو.

شمني رحمة الله عليه ويلي دي د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه او امام ابويوسف رحمة الله عليه په روايت كي هم دا دی چي د ښځي د جنازي په لمانځه كي امام ته د مړي د ځيګر مخ ته دريدل پكار دي. (والله اعلم)

## د ښخيدو وروسته د جنازې لمونځ

﴿۱۵۶۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِقَبْرٍ قَدْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ پر يو قبر تير سو

دُفِنَ لَيْلًا فَقَالَ مَتَى دُفِنَ هَذَا قَالُوا الْبَارِحَةَ قَالَ أَفَلَا آذَنْتُمُونِي قَالُوا دَفَنَّاهُ

چي په هغه كي د شپې مړي دفن كړل سوی وو، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه دا كله دفن سوي دي صحابه كرامو عرض وكړ نن شپه، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه تاسو زه ولي خبر نه كړم؟ صحابه كرامو عرض وكړ

فِي ظُلْمَةِ اللَّيْلِ فَكَرِهْنَا أَنْ نُوقِظَكَ فَقَامَ فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ. متفق عليه

موږ دوی په تياره كي ښخ كړل او په داسي وخت كي مو ستاسو را كښينول مناسب نه وګڼل، رسول الله ﷺ ودريدئ او موږ صف جوړ كړی او پر هغه (قبر) يې لمونځ وكړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۱۷، رقم: ۱۲۴۷، ومسلم ۲\۶۵۸، رقم: ۶۹- ۹۵۴.

﴿۱۵۷۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ امْرَأَةً سَوْدَاءَ كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ أَوْ شَابًّا

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوې توري ښځي او يا يو زلمي به مسجد نبوي جارو كوئ،

فَفَقَدَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَ عَنْهَا أَوْ عَنْهُ فَقَالُوا مَاتَ

رسول الله ﷺ چي هغه غائب وليدئ نو پوښتنه يې وكړه (چي چيري دي) صحابه كرامو عرض وكړ هغه مره سوې ده (يا مړ سوئ دئ)

قَالَ أَفَلَا كُنْتُمْ آذَنْتُمُونِي قَالَ فَكَأَنَّهُمْ صَغَّرُوا أَمْرَهَا أَوْ أَمْرَهُ فَقَالَ دُلُّونِي

رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو زه ولي خبر نه كړم، ابوهريرة رضي الله عنه وايي لكه چي صحابه كرامو د هغه مرګ

معمولي کمزۍ له دي کبله يې رسول الله ﷺ ته خبر ورنه کړ، رسول الله ﷺ وفرمايل ما ته وښياست

عَلَى قَبْرِهِ فَدَلُّوهُ فَصَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ قَالَ إِنَّ هَذِهِ الْقُبُورَ مَمْلُوءَةٌ ظُلْمَةً عَلَى أَهْلِهَا

د هغه قبر، صحابه کرامو د هغه قبر ته بوتلۍ او پر هغه قبر يې لمونځ وکړ بيا يې وفرمايل: دا قبرونه د تاريکيو څخه ډک دي

وَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِي عَلَيْهِمْ. متفق عليه و لفظه للمسلم

او زما لمونځ کول پر هغه ځلانده کوي. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰۴، رقم: ۱۳۳۷، ومسلم ۲\۶۵۹، رقم: ۷۱- ۹۵۶.

**تشريح:** يوه تور رنګې ښځه وه يا يو ځوان سړی وو: دا په حقيقت کي د راوي شک دی چي په صحيح توګه ورته خبره ياد نه ده چي ابوهريره ﷺ دا فرمايلي وه چي يوه توره ښځه وه چي مسجد نبوي به يې جارو کوی يا دا يې وفرمايل چي يو ځوان سړی وو چي مسجد مبارک به يې جارو کوی.

د تيارو څخه ډک قبرونه: د دې څخه مراد هغه قبرونه دي چي پر هغه د رسول الله ﷺ لمونځ کول ممکن نه وو په دې مسئله کي چي پر قبرونو باندي د جنازې لمونځ کول جائز دی که نه د علماؤ اختلاف دی که څه هم مخکي د هغه د جنازې لمونځ اداء سوی وي که نه وي اداء سوی.

ابراهيم نخعي رحمة الله عليه، امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او د امام مالک رحمة الله عليه قول دا دی که مخکي د جنازې لمونځ سوی وي نو اوس پر قبر باندي د جنازې لمونځ نه دی صحيح او که مخکي د جنازې لمونځ نه وي سوی نو بيا جائز دی مګر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه شرط دا هم دی که مړی په قبر کي خراب سوی نه وي نو لمونځ به صحيح وي کنې د مړي په قبر کي د خرابېدو په صورت کي به لمونځ صحيح نه وي په قبر کي د مړي د خرابېدو اندازه ځينو حضراتو درې ورځي ټاکلې ده يعني که د ښخولو درې ورځي نه وي تيري سوي نو دا ګڼلی به سي چي مړی اوس لا په خپل قبر کي نه دی خراب سوی او که د ښخولو درې يا زياتي ورځي تيري سوي وې نو دا ګڼل پکار دي چي مړی په خپل قبر کي خراب سوی دی.

امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمايي: په کومو حديثونو کي چي د رسول الله ﷺ په باره کي پر قبر باندي لمونځ کول نقل دی نو دا يوازي د رسول الله ﷺ خصوصيت دی چي رسول الله ﷺ د هغوی قبرونه منور او روښانه کولو لپاره پر هغوی لمونځ کوی د نورو لپاره دا مطلقا

جائز نه دی.

## په جنازه کي (۴۰) کسان

﴿۱۵۷۱﴾: عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ مَاتَ ابْنٌ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ازاد سوی غلام کریب د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کوي چي د هغه زوی مړ سو

لَهُ بِقُدَيْدٍ أَوْ بِعُسْفَانَ فَقَالَ يَا كُرَيْبُ انْظُرْ مَا اجْتَمَعَ لَهُ مِنَ النَّاسِ قَالَ

په قدید یا عسفان نامي ځای کي نو هغه وویل: اې کریب! وګوره او د جنازې د لمانځه لپاره یو څو کسه یو ځای کړه، کریب وایي

فَخَرَجْتُ فَإِذَا نَاسٌ قَدْ اجْتَمَعُوا لَهُ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ تَقُولُ هُمْ أَرْبَعُونَ قَالَ

زه د باندي ولاړم او وه مي لیدل چي ډیر خلک یو ځای سوي دي، ما ابن عباس رضي الله عنهما ددې څخه خبر کړ، هغه پوښتنه وکړه ایا ستا په خیال دا خلک به څلوېښت وي؟ ما عرض وکړ

نَعَمْ قَالَ أَخْرِجُوهُ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا مِنْ

هو، هغه وویل بنه دئ جنازه. راواخلئ ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي

رَجُلٍ مُسْلِمٍ يَمُوتُ فَيَقُومُ عَلَى جَنَازَتِهِ أَرْبَعُونَ رَجُلًا لَا يُشْرِكُونَ بِاللهِ

هر کله چي یو مسلمان مړ ي باندي څلوېښت داسي خلک یو ځای سي چي د الله جل جلاله سره شریک نه نیسي (او هغه مړي ته جنازه ورکړي)

شَيْئًا إِلَّا شَفَّعَهُمُ اللهُ فِيهِ. رواه مسلم.

نو الله تعالی د هغوی شفاعت د مړي په حق کي قبلوي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۶۵۵/۲، رقم: ۵۹-۹۴۸.

## په جنازه کي سل کسان

﴿۱۵۷۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَا مِنْ مَيِّتٍ تُصَلِّي عَلَيْهِ أُمَّةٌ مِنَ

الْمُسْلِمِينَ يَبْلُغُونَ مِائَةً كُلُّهُمْ يَشْفَعُونَ لَهُ إِلَّا شُفِّعُوا فِيهِ . رواه مسلم

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: پر کوم مړي چې د مسلمانانو یو ډله چې د سلو شمیر ته ورسیږي لمونځ وکړي او ډله د مړي لپاره الله تعالی ته سفارش وکړي نو د هغه ډلي سفارش قبلیږي . مسلم .

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\ ۶۵۴، رقم: ۵۸- ۹۴۷.

**تشریح**: په اول حدیث کي د څلویښتو خلکو د جنازې د لمانځه کولو ثواب بیان سوی دی علماء د دې اختلافي وجه دا لیکي چې مخکي به د سلو خلکو د شرکت فضیلت نازل سوی وای بیا وروسته به الله تعالی د خپلوبندګانو په حال په رحم کولو سره شمیر په کمولو سره د څلویښتو خلکو او سلو په خاصه توګه سره د دې څخه کثرت د جماعت مراد دی .

**مؤمنان د الله شاهدان دي**

﴿۱۵۷۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ مَرُّوا بِجَنَازَةٍ فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چې د صحابه کرامو یو ډله پر یوه جنازې تیر سول او د هغه د نیکۍ تعریف یې وکړ، نبي کریم ﷺ چې د هغوی تعریف واوریدئ نو وه یې فرمایل

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَبَتْ ثُمَّ مَرُّوا بِأُخْرَى فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا شَرًّا فَقَالَ وَجَبَتْ

واجب سو، بیا دا ډله پر یوه بله جنازه تیره سول او د هغه بدي یې وکړل، رسول الله ﷺ وفرمایل: واجب سو،

فَقَالَ عُمَرُ مَا وَجَبَتْ قَالَ هَذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ خَيْرًا فَوَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَهَذَا

حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړه اې دا الله رسوله ! څه شي واجب سو، رسول الله ﷺ وفرمایل، د کوم مړي د نیکۍ چې تاسو تعریف وکړ د هغه لپاره جنت واجب سو او د کوم چې

أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ شَرًّا فَوَجَبَتْ لَهُ النَّارُ أَنْتُمْ شُهَدَاءُ اللَّهِ فِي الْأَرْضِ . متفق عليه و في رواية المؤمنون شهداء لله في الارض .

تاسو د بدۍ بیان وکړ د هغه لپاره دوږخ واجب سو او تاسو خلک پر مځکه د الله شاهدان

یاست. بخاري او مسلم، او په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي مؤمن بندګان په مځکه کي د الله تعالی شاهدان دي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۲۸، رقم: ۱۳۶۷، ومسلم ۲\۶۵۵، رقم: ۶۰ - ۹۴۹.

**تشريح**: جنت واجب سو د دې مطلب دادی د کوم سړي چي تاسو تعريف بيانوئ که د هغه تعريف صحيح او رښتيا وي يا د هغه مرګ د خير او نيکي په حالت کي سوی وي چي تاسو يې بيانوئ مطلب دا هم دی چي د کوم سړي تاسو بدي بيانوئ که د هغه هغه بدي واقعي وي يا د هغه مرګ د هغه د بدي په حالت کي سوی وي کوم چي تاسو بيانوئ نو د هغه لپاره د دوږخ سزا واجب سوه.

د مظهر قول دی دا حکم په عامه توګه سره د هر سړي لپاره نه دی د کوم سړي په باره کي چي خلک د خير او نيکي ذکر کوي د هغه لپاره جنت لازم سي مګر د کوم سړي په باره کي چي خلک د ښه او نيکو خيالاتو اظهار کوي او د هغه تعريف بيان کړي نو د هغه لپاره د جنت اميد کيدای سي همداسي د کوم سړي په باره کي چي خلک د خرابو خيالاتو اظهار کوي نو د هغه په باره کي دا ويره وه چي دوږخ ته به ولاړ سي،

اوس پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ د اول سړي لپاره دوږخ ولي واجب کړ؟ د دې وجه دا ده چي الله تعالی رسول الله ﷺ ته اول سړی د جنتي کيدو او دوهم سړی د دوږخي کيدو د فيصلې څخه خبر سوی وو.

زين عرف فرمايي د يوه سړي خير نيکي شر او بدي ذکر کول د هغه لپاره ذريعه د جنت او دوږخ نه سي کيدای، مګر په حقيقت کي د يوه سړي په باره کي د خلکو د ژبي ښه يا بد اثر د هغه د جنتي کيدو يا د دوږخي کيدو نښه ده.

بيا دا چي د هغه تعريف او هغي بدي ته هغه وخت اعتبار دی چي د نيک بخت او متقي خلکو ژبي د هغه ګواهي ورکړي ځکه چي د الله تعالی د نيک بخت او متقي خلکو ژبه د هغه د زړه سليم همنوا وي نو هغوی چي د کوم سړي تعريف کوي يا د کوم سړي بد وايي او په هغه کي د څه خارجي دباو يا د نفس د څه غلطي تقاضا قطعي دخل نه وي مګر د هغوی ظاهري تاثرات په حقيقت کي د هغوی د صالح زړه د صحيح فيصلې غماز وي نو د يوه سړي په باره کي د هغوی تعريف به د هغه سړي د جنتي کيدو علامت دی او د يوه سړي په باره کي د هغوی بيان کړی دی بدي به د هغه سړي د دوږخي کيدو علامت وي.

د دې ځخه دا خبره ښکاره سوه که يو فاسق او دنيا دار سړی د نفس د غلطي تقاضا او د خپل ذاتي اغراض او مقاصد لخاطره د يوه خراب او بد کار سړي تعريف بيان کړی او د هغه په باره کي د ښه تاثراتو اظهار وکړي يا همداسي پر يو نيک او پر مردمومن بدي بيان کړي نو نه به د هغه د تعريف اعتبار وي نه به د هغه د بيان کړي بدي څه حيثيت وي مګر د هغه په باره کي به دا وويل سي چي دی د خپل نفس غلام او ضمير فروش دی چي يوازي د خپل ذاتي اغراض او مقاصدو له خاطره هغه سړي ته ښه وايي چي د هغه بدي او بدکاري ځرګنده ده او د هغه نيک بخت بدي وايي چي د هغه نيک بختي مثالي حيثيت لري.

انتم شهداء الله ( تاسو د الله تعالی ګواهان ياست ) د رسول الله ﷺ دا ارشاد د اکثرو د اعتبار ځخه دی د دې مطلب دادی چي اکثر داسي کيږي چي کوم سړی ځرنګه دی الله تعالی د خپلو بندګانو د ژبي هغه ته همداسي وايي يعني که يو سړی نيک دی نو الله تعالی د خپلو بندګانو د ژبي ځخه د هغه د بدکاری شهادت ورکوي د بنده دا شهادت په حقيقت کي د دې خبري ښه ده چي هغوی د چا په باره کي د کوم تاثر اظهار کوي هغه واقعتا همداسي دی.

## خلک د الله ﷻ شاهدان دي

﴿۱۵۷۴﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا مُسْلِمٍ

د حضرت عمر ﷛ ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د کوم مسلمان لپاره چي

شَهِدَ لَهُ أَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ قُلْنَا وَثَلَاثَةٌ قَالَ وَثَلَاثَةٌ قُلْنَا وَاثْنَانِ

څلور کسان د نيکی شاهدي ورکړي الله تعالی به هغه په جنت کي داخل کړي، موږ عرض وکړ اې د الله رسوله! که درې کسان شاهدي ورکړي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: او که درې کسان هم شاهدي ورکړي نو الله تعالی به هغه په جنت کي داخل کړي، موږ بيا عرض وکړ او که دوه کسان د هغه شاهدي ورکړي؟

قَالَ وَاثْنَانِ ثُمَّ لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ. رواه البخاري

رسول الله ﷺ وفرمايل: او که دوه کسان هم شاهدي ورکړي نو بيا هم (په جنت کي داخليږي) بيا موږ د يوه سړي د شاهدي په اړه د رسول الله ﷺ ځخه پوښتنه ونه کړل. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۲۹، رقم: ۱۳۶۸.

## د مړي بد مه وایاست

﴿۱۵۷۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ فَإِنَّهُمْ قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَا قَدَّمُوا . رواه البخاري

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په مړو پسې بد مه وایاست ځکه چې هغوی څه کړي وي د هغه جزا او سزا ته ورسیدل . بخاري

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري)، ۲۵۸/۳، رقم: ۱۳۹۳.

## د احد د شهیدانو ښخول

﴿۱۵۷۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ به

الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَقُولُ أَيُّهُمْ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ

د احد دوه دوه شهیدان په یوه جامه کې پټول یعني دوو کسانو ته یې یو کفن ورکوئ، بیا به رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه پوښتنه کول چې په دوی دواړو کې کوم یو په قرآن کریم کې زیات وو،

فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدٍ قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هٰؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

صحابه کرامو چې به یوه ته اشاره وکړه نو هغه به په لحد کې د قبلې په لور لومړی کېښېښودل سو، بیا به یې وفرمایل: زه به د قیامت په ورځ د دوی د شهادت شاهدي ورکوم،

وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوا . رواه البخاري

بیا رسول الله ﷺ حکم وکړ چې دوی همداسې په خاورو او وینو لړلي ښخ کړئ، رسول الله ﷺ هغوی ته د جنازې لمونځ ورنه کړ او غسل یې هم ورنه کړ . بخاري .

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري)، ۲۱۲/۳، رقم: ۱۳۴۷.

## د جنازې څخه ستنېدل

﴿۱۵۷۷﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ ﷺ بِفَرَسٍ مُعْرَوْرًى فَرَكِبَهُ

حِينَ انْصَرَفَ مِنْ جَنَازَةِ ابْنِ الدَّحْدَاحِ وَنَحْنُ نَمْشِي حَوْلَهُ. رواه مسلم

د حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه څخه روايت دئ کله چي د ابن دحداح جنازه ښخ کړل سول نو د رسول الله ﷺ لپاره يو آس راوستل سو پر کوم چي څين نه وو، رسول الله ﷺ پر هغه سپور سو او موږ د رسول الله ﷺ شاوخوا روان سوو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣/ ٦٦٤، رقم: ٨٩- ٩٦٥.

**تخريج**: (معرُور): عار من السرج (هغه چي څين نه لري).

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### د جنازې سره د تللو طريقه

﴿١٥٧٨﴾: عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرَّاكِبُ

د حضرت مغيرة بن شعبه رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سپور سړی دي

يَسِيرُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ وَالْمَاشِي يَمْشِي خَلْفَهَا وَأَمَامَهَا وَعَنْ يَمِينِهَا وَعَنْ

د جنازې شا ته ځي او پياده خلک دي مخکي، وروسته، راسته خوا ته او

يَسَارِهَا قَرِيبًا مِنْهَا وَالسِّقْطُ يُصَلَّى عَلَيْهِ وَيُدْعَى لِوَالِدَيْهِ بِالْمَغْفِرَةِ وَالرَّحْمَةِ

چپه خوا ته نژدې نژدې ځي او د کوچني پر جنازه دي لمونځ وکړل سي او د هغه د مور او پلار لپاره دي د بخښني او رحمت دعاء وکړل سي.

رواه ابوداؤد و في رواية احمد والترمذي والنسائي وابن ماجة قال الراكب خلف الجنازة و الماشي حيث شاء منها والطفل يصلي عليه و في المصابيح عن المغيرة بن زياد.

ابوداؤد. د احمد، ترمذي او نسائي په يو روايت کي دا الفاظ دي چي سپور سړی دي تر جنازې شا ته شا ته وي او پياده چي دده خوښه وي او د کوچني پر جنازه دي لمونځ وکړل سي او په

مصابیح کي د مغیره بن زیاد څخه روایت دئ.

**تخریج:** سنن ابي داوٗد ۳\۵۲۲، رقم: ۳۱۸۰.

## د جنازې مخکې تلل

﴿۱۵۷۹﴾: وَعَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ وَأَبَا

حضرت زهري د سالم څخه او سالم د خپل پلار څخه روایت کوي چي ما رسول الله ﷺ، او ابو

بَكْرٍ وَّعُمَرَ يَمْشُوْنَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ. رواه أحمد وأبو داود والترمذي والنسائي وابن ماجه وقال الترمذي وأهل الحديث كأنهم يرونه مرسلا

ابو بکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه لیدلي دي چي هغوی به تر جنازې مخکې تلل، احمد، ابو داوٗد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، ترمذي او محدثین دا مرسل ګڼي.

**تخریج:** الامام احمد في مسنده ۲\۸، وابوداوٗد: ۳\۵۲۲، رقم: ۳۱۷۹، والترمذي ۳\۳۲۹، رقم: ۱۰۰۷، والنسائي ۴\۵۶، رقم: ۱۹۴۳، وابن ماجه ۱\۴۷۵، رقم: ۱۴۸۲.

## د جنازې تر شا تلل

﴿۱۵۸۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

اَلْجَنَازَةُ مَتْبُوعَةٌ وَلَا تَتْبَعُ مَعَهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا. رواه الترمذي وابوداوٗد وابن ماجة قال الترمذي وابوماجد الراوي رجل مجهول.

خلک د جنازې تابع دي چي تر هغه وروسته ولاړ سي او هغه (جنازه) د خلکو تابع نه ده چي تر خلکو وروسته وي او څوک چي تر جنازې مخکې ځي هغه ته د جنازې د ملګرتیا ثواب نه تر لاسه کیږي. ترمذي، ابن ماجه، ابوداوٗد، ترمذي ویلي دي ابو ماجد مجهول راوي دئ.

**تخریج:** سنن ابي داوٗد ۳\۵۲۵، رقم: ۳۱۸۴، والترمذي ۳\۳۳۲، رقم: ۱۰۱۱، وابن ماجه ۱\۴۷۶، رقم: ۱۴۸۴.

## جنازې ته اوږه ورکول

﴿۱۵۸۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَبِعَ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي ولاړ سي

جِنَازَةً وَحَمَلَهَا ثَلَاثَ مِرَارٍ فَقَدْ قَضَى مَا عَلَيْهِ مِنْ حَقِّهَا . رواه الترمذي و

د جنازې سره ولاړ سي او درې واره يې هغې ته اوږه ورکړه نو هغه خپل حق ادا کړ، ترمذي

قال هذا حديث غريب و قدوري في شرح السنة ان النبي صلى الله عليه

وسلم حمل جنازة سعد بن معاذ بين العمودين .

وفرمايل چي دا حديث غريب دئ. او په شرح السنة کي دي چي رسول الله ﷺ د سعد بن معاذ جنازه د دوو لرګيو په منځ کي پورته کړې وه

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۵۹، رقم: ۱۰۴۱.

## په جنازه کي پر پښو تلل

﴿۱۵۸۲﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت ثوبان ﷺ څخه روايت دئ چي موږ د نبي کريم ﷺ سره په يو جنازه کي ګډون وکړ،

جَنَازَةٍ فَرَأَى نَاسًا رُكْبَانًا فَقَالَ أَلَا تَسْتَحْيُونَ إِنَّ مَلَائِكَةَ اللّٰهِ عَلَى أَقْدَامِهِمْ

موږ وليدل چي خلک سپاره دي، رسول الله ﷺ هغه سپاره مخاطب کړل او ورته وه يې فرمايل: تاسو ته شرم او حياء نه درځي د الله ﷻ ملائکي پر پښو رواني دي

وَأَنْتُمْ عَلَى ظُهُورِ الدَّوَابِّ . رواه الترمذي و ابن ماجة و روي ابوداؤد نحوه

قال الترمذي و روي عن ثوبان موقوفا .

او تاسو د حيوانانو پر شا سپاره ياست. ترمذي، ابن ماجه، ابوداؤد او دا حديث د ثوبان څخه موقوفا روايت دئ.

سنن الترمذي ۳\ ۳۳۳، رقم: ۱۰۱۲، وابن ماجه ۱\ ۴۷۵، رقم: ۱۴۸۰، وابوداؤد ۳\ ۵۳۱، رقم:

## په جنازه کي سورة فاتحه

: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ
ةِ الْكِتَابِ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة .

رت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د جنازې (په لمانځه کي) سورة فاتحه وویل . ترمذي ، ابوداؤد ، ابن ماجه

ج : سنن الترمذي ۳\ ۳۴۵، رقم: ۱۰۲۶، وابوداؤد ۳\ ۵۳۷، رقم: ۳۱۹۸، وابن ماجه ۱\ ۴۷۹، رقم:

## د مړي لپاره د زړه د اخلاصه دعاء

۱۵ ﴾: وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا
يْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

ضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو د مړي لمونځ وکړئ نو په اخلاص سره د هغه لپاره دعاء وغواړئ . ابوداؤد ،. ابن ماجه

ريج : سنن ابي داؤد ۳\ ۵۳۸، رقم: ۳۱۹۹، وابن ماجه ۱\ ۴۸۰، رقم: ۱۴۹۶.

## د جنازې د لمانځه دعاء

۱۵۸۵ ﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى عَلَى الْجَنَازَةِ

حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به د جنازې په لمانځه کي دا دعاء

قَالَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا وَشَاهِدِنَا

کول : (اللهم ...... ولا تفتنا بعده) اې الله زموږ مړه او ژوندي و بخښې زموږ حاضر او زموږ غایب ، زموږ ماشومان او زموږ لویان ، زموږ نارینه او زموږ ښځینه ،

وَغَائِبِنَا اللّٰهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيمَانِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ

اې الله جل جلاله په موږ کې چې څوک ژوندي پاته کړې نو پر اسلام يې ژوندي لرې او په موږ کې چې څوک وفات کړې نو هغه د ايمان سره وفات کړې

عَلَى الْإِيمَانِ اللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُ. رواه احمد و ابوداؤد والترمذي و ابن ماجة و رواه النسائي عن ابي ابراهيم الاشهلي عن ابيه و انتهت روايته عند قوله و انثانا و في رواية ابي داؤد فاحيه على الايمان و توفه على الاسلام و في اخره و لاتضلنا بعده.

اې الله موږ د هغه د ثواب څخه مه محرومه کوې او د هغه وروسته موږ په فتنه کې مه اچوې. احمد ، ابوداؤد ، ترمذي، ابن ماجه، نسائي د ابراهيم اشهلي څخه روايت کړئ دئ هغه د خپل پلار څخه او د هغه روايت يوازي انثانا ، پوري دئ . او د ابوداؤد په يوه روايت کې : فاحيه على الايمان و توفه على الاسلام او د هغه په پای کې ولا تضلنا بعده الفاظ دي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۳۶۸، وابوداؤد ۳\ ۵۳۹، رقم: ۳۲۰۱، والترمذي ۳\ ۳۴۳، رقم: ۱۰۲۴، وابن ماجه ۱\ ۴۸۰، رقم: ۱۴۹۸.

## د مړي لپاره د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۱۵۸۶﴾ : وَعَنْ وَاثِلَةَ ابْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت واثلة بن اسقع رضی الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ زموږ سره د يو مسلمان د جنازې

عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنَّ فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ فِي ذِمَّتِكَ

لمونځ وکړ او ما د رسول الله ﷺ څخه دا دعاء واوريدل : اللهم ان .... الغفور الرحيم. اې الله ! فلان زوی د فلان ستا په امن کې دئ ته د ی

وَحَبْلِ جِوَارِكَ فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ وَأَنْتَ أَهْلُ الْوَفَاءِ وَالْحَق

د قبر د فتنې څخه او د دوږخ د عذاب څخه وساتې اې الله ! ته د وفا او حق خاوند يې

اَللّٰهُمَّ فَاغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ . رواه ابوداؤد و ابن ماجة

اې الله ! دا مړی و بخښې او پر ده رحم وکړې بېله شکه ته بخښونکی او رحم کونکئ يې . ابوداؤد، ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۴۰، رقم: ۳۲۰۲، وابن ماجه ۱\۴۸۰، رقم: ۱۴۹۹.

**تشريح** : ملا علي قاري رحمة الله عليه په وحبل جوارک کي د لفظ حبل څو معناوي بيان کړي دي او په اخر کي يې ليکلي دي د دې جملې تر ټولو بهتره معنی داده چي هغه د قرآن کريم سره تعلق لرونکی او هغه ته په مظبوطي سره نيونکی وو نو دلته د لفظ حبل څخه قرآن کريم مراد دی ځرنګه چي د قرآن کريم دا ايت دی چي ترجمه يې داده د الله تعالی کتاب په مضبوطي سره ونيسئ په دې کي د حبل څخه مراد قرآن کريم دی همداسي د لفظ جوار څخه امان مراد دی او د دې جملې وحبل جوارک کي اضافت بيانيه دی ګويا د دې جملې وضاحتي معنی به دا وي چي هغه سړی قرآن کريم په مضبوطي سره نيونکی وو داسي قرآن کريم چي هغه په مضبوطي سره اختيارول يعني پر هغه په پوره توګه عمل کول د اسلام د سلامتيا او د اسلام د معرفت باعث او ذريعه ده .

## د مړي بد مه واياست

﴿۱۵۸۷﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ وَكُفُّوا عَنْ مَسَاوِيهِمْ . رواه ابوداؤد و الترمذي

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مړو نيکی يادوی او د هغوی بد مه يادوی . ابوداؤد، ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۵\۲۰۶، رقم: ۴۹۰۰، والترمذي ۳\۳۳۹، رقم: ۱۰۱۹.

**تشريح** : د مړو خلکو نيک اعمال او د هغوی نيکي ځکه يادول او بيانول پکار ده چي د نيک او نيکۍ د ذکر کولو پر وخت د الله تعالی د رحمت نزول کيږي .

مګر د هغوی د بدي د ذکر څخه د ساتلو حکم ورکړه سوی دی هغه د وجوب په توګه دی يعني پر هر مسلمان باندي واجب دی چي هغه د خپل مړه مسلمان ورور بدي ذکر نه کړي او د دې کار څخه ځان وساتي، په حجة الاسلام کي ليکلي دي چي د مړو غيبت کول د ژوندو د

غیبت څخه ډیر د نفرت قابل وي، په کتاب الازهار کې د علماؤ دا قول لیکل سوی دی که د مړي د غسل په حالت کي په مړي کي څه نیک علامت ووینی مثلاً د مړي مخ روښانه او منور وي یا د مړي د بدن څخه ښه بوئ راځي نو هغه د خلکو په مخ کي بیانول مستحب دی او که څه بدعلامت ووینی مثلاً نعوذ بالله د مړي مخ یا بدن تور سوی وي یا د هغه صورت مسخ سوی وي نو هغه خلکو ته بیانول حرام دی.

## دامام د دریدو ځای

﴿۱۵۸۸﴾: وَعَنْ نَافِعٍ اَبِيْ غَالِبٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَلَى جَنَازَةِ

د نافع ابو غالب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما دیو سړي جنازه د انس بن مالک رضی الله عنه سره وکړل

رَجُلٍ فَقَامَ حِيَالَ رَأْسِهِ ثُمَّ جَاءُوا بِجَنَازَةِ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَقَالُوا يَا أَبَا

حضرت انس رضی الله عنه د جنازې سر ته نژدې ودریدئ او بیا د یو قریشي ښځي جنازه راوړل سوه او ورته وویل سول اې ابو

حَمْزَةَ صَلِّ عَلَيْهَا فَقَامَ حِيَالَ وَسَطِ السَّرِيرِ فَقَالَ لَهُ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ هٰكَذَا

حمزه! پر دې لمونځ وکړه او س انس رضی الله عنه د جنازې د تخت د مینځ سره ودریدئ، علاء بن زیاد انس رضی الله عنه ته وویل

رَأَيْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْجَنَازَةِ مُقَامَكَ مِنْهَا وَمِنَ الرَّجُلِ

ایا تا رسول الله صلی الله علیه وسلم په جنازه کي داسي ولاړ لیدلی دئ څنګه چي ته ددې ښځي د جنازې په منځ کي او د سړي د جنازې سر ته مخامخ ولاړ یې،

مُقَامَكَ مِنْهُ قَالَ نَعَمْ. رواه الترمذي و ابن ماجة و في رواية ابي داؤد نحوه مع زيادة و فيه مقام عند عجيزة المراة

انس بن مالک رضی الله عنه وویل هو، ترمذي، ابن ماجه، او د ابوداؤد په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي انس بن مالک د هغې ښځي د تشي سره نژدې ودریدئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۵۲، رقم: ۱۰۳۴، وابن ماجه ۱\۴۷۹، رقم: ۱۴۹۴، وابوداؤد: ۳\۵۳۳، رقم: ۳۱۹۴.

**تشریح** : په دې مسئله کي چي د جنازې په لمانځه کي امام ته په جنازې کي کوم ځای دریدل پکار دي اختلاف دی او د دین د امامانو چي کوم مذهب دی د هغه پوره تفصیل په وضاحت سره د تیرو صفحاتو د اول فصل د یوه حدیث په تشریح کي بیان سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د جنازې په لیدو سره دریدل

﴿۱۵۸۹﴾: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي لَيْلَى قَالَ كَانَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ وَقَيْسُ بْنُ

د حضرت عبدالرحمن بن ابو لیلی رحمه الله څخه روایت دئ چي سهل بن حنیف او قیس بن

سَعْدٍ قَاعِدَيْنِ بِالْقَادِسِيَّةِ فَمَرُّوا عَلَيْهِمَا بِجَنَازَةٍ فَقَامَا فَقِيلَ لَهُمَا إِنَّهَا مِنْ

سعد په قادسیه کي یو ځای ناست وه چي یوه جنازه هلته تیره سوه دواړه د هغه په لیدو سره ولاړ سول، هغوی ته وویل سول چي دا خو د

أَهْلِ الْأَرْضِ أَيْ مِنْ أَهْلِ الذِّمَّةِ فَقَالَا إِنَّ لِنَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتْ بِهِ

ذمي جنازه ده، هغوی وویل : د رسول الله ﷺ په خوا کي هم یو جنازه تیره سوې وه

جِنَازَةٌ فَقَامَ فَقِيلَ لَهُ إِنَّهَا جِنَازَةُ يَهُودِيٍّ فَقَالَ أَلَيْسَتْ نَفْسًا . متفق عليه

او رسول الله ﷺ ورته ولاړ سوی وو، کله چي رسول الله ﷺ ته وویل سول چي دا جنازه خو د یهودي ده نو رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا دی ساه لرونکی نه دئ. بخاري او مسلم.

**تخریج** : صحیح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۷۹، رقم: ۱۳۱۲، ومسلم ۲\۶۶۱، رقم: ۸۱- ۹۶۱.

**تشریح** : قادسیه د یو ځای نوم دی چي د کوفي څخه پر پنځلس کوس فاصله باندي پروت دی. په روایت کي ذمي په اهل زمین سره تعبیر سوی دی یا خو د هغوی د کمي رتبې کیدو په وجه یا دا چي مسلمانانو د هغوی مځکه کرله او د هغوی څخه به یې خراج اخیستی ځکه هغوی ته اهل زمین ویل سوي دي.

د رسول الله ﷺ ارشاد ایا دی انسان نه دی : د دې مطلب دادی چي ایا دا د انسان جنازه نه ده چي د هغه په لیدو سره دي عبرت حاصل نه کړه سي حاصل دا چي په جنازه لیدو سره بیره محسوسیږي او عبرت حاصلیږي که هغه مسلمان وي که کافر ځکه د جنازې په لیدو سره زه و دریدم.

په تيرو صفحاتو كي دا هم ښودل سوي دي چي جنازه په ليدو سره دريدل د حضرت علي رضي الله عنه
په روايت سره منسوخ سوي دی نو كيداى سي چي دې دواړو صحابه ته د هغه منسوخي علم نه
وو ځكه نو دا حضرات به د جنازې په ليدو سره دريدلي وي .

## د رسول الله ﷺ عادت

﴿۱۵۹۰﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ

إِذَا اتَّبَعَ الْجَنَازَةَ لَمْ يَقْعُدْ حَتّٰى تُوضَعَ فِي اللَّحْدِ فَعَرَضَ لَهُ حَبْرٌ فَقَالَ هٰكَذَا

د يو جنازې سره تلئ نو تر هغو پوري نه كښينستئ تر څو پوري چي هغه په قبر كي نه وو
ايښودل سوې . يو يهودي عالم د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ

نَصْنَعُ يَا مُحَمَّدُ قَالَ فَجَلَسَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَقَالَ خَالِفُوهُمْ . رواه
الترمذي و ابوداؤد وا بن ماجة و قال الترمذي هذا حديث غريب و بشر
بن رافع الراوي ليس بالقوي .

اې محمد ! موږ هم داسي كوو ، د راوي بيان دئ چي ددې وروسته به رسول الله ﷺ د مړي
ښخولو يا په لحد كي د كښنته كولو څخه مخكي كښينستئ او فرمايل به يې په دې اړه تاسو د
يهودو مخالفت وكړئ . ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ ،
بشر بن رافع راوي قوي نه دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۴۰، رقم: ۱۰۲۰، وابوداؤد: ۳\۵۲۰، رقم: ۳۱۷۶، وابن ماجه ۱\۴۹۳، رقم: ۱۵۴۵.

## په جنازه كي ناسته

﴿۱۵۹۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنَا بِالْقِيَامِ
فِي الْجِنَازَةِ ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ ذٰلِكَ وَأَمَرَنَا بِالْجُلُوسِ . رواه احمد

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ موږ ته حكم راكړئ چي د جنازې په ليدو

سره چي ودريږئ بيا رسول الله ﷺ کښېنستئ او موږ ته يې هم د ناستي حکم راکړئ . احمد .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۸۲\۱.

**تشريح** : د دې حديث د ښکاره مفهوم څخه دا خبره ثابته سوه چي مخکي خو جنازه په ليدو سره د دريدو حکم وو خو وروسته دا حکم منسوخ کړه سو اوس د دې وروسته مسئله داده چي کوم خلک د جنازې سره نه مګر چي ناست وي هغوی ته جنازه په ليدو سره دريدل نه دي پکار .

﴿۱۵۹۲﴾ : وَعَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ أَنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ

د محمد بن سيرين رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حسن بن علي رضي الله عنه

وَابْنِ عَبَّاسٍ فَقَامَ الْحَسَنُ وَلَمْ يَقُمْ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ الْحَسَنُ أَلَيْسَ قَدْ

او د ابن عباس رضي الله عنه سره نژدې يوه جنازه تيره سوه ، ددې په ليدو سره حسن بن علي رضي الله عنه ولاړ سو مګر ابن عباس رضي الله عنه ولاړ نه سو ، حسن ابن عباس ته وويل :

قَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِجَنَازَةِ يَهُوْدِيٍّ قَالَ نَعَمْ ثُمَّ جَلَسَ . رواه النسائي

ايا رسول الله ﷺ د يهودي د جنازې په ليدلو سره ولاړ نه سوو ، ابن عباس وويل : هو ، مګر بيا ناست وو . (و نه دريدئ) نسائي .

**تخريج** : سنن النسائي ۴۶\۴، رقم: ۱۹۲۳.

**تشريح** : د ابن عباس رضي الله عنه د جواب مطلب دادی چي مخکي خو بيشکه دا يې معمول وو چي جنازه په ليدو سره به دريدی خو ورسته يې دا معمول سوی وو چي جنازه په ليدو سره به نه دريدی مګر ناست به وو نو جنازه په ليدو سره د دريدلو حکم منسوخ سوی دی .

د حضرت حسن رضي الله عنه د عمل په باره کي علماء ليکي کيدای سي چي حسن رضي الله عنه ته د دې حکم د منسوخ کيدو علم نه وو سوی څکه هغه يوازې دا چي جنازه په ليدو سر دريدی مګر هغه د ابن عباس رضي الله عنه پر نه دريدو هم اعتراض وکړی .

## کله چي نبي کريم ﷺ د يوې يهودی جنازه وليدل

﴿۱۵۹۳﴾ : وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ كَانَ جَالِسًا

حضرت جعفر بن محمد د خپل پلار څخه روايت کوي چي حسن بن علي رضي الله عنه ناست وو چي

فَمُرَّ عَلَيْهِ بِجَنَازَةٍ فَقَامَ النَّاسُ حَتَّى جَاوَزَتْ الْجَنَازَةُ فَقَالَ الْحَسَنُ إِنَّمَا مُرَّ

يوه جنازه تيره سوه ، خلک ودريدل ترڅو چي جنازه تيره سوه ، حسن بن علي وويل :

بِجَنَازَةِ يَهُودِيٍّ وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى طَرِيقِهَا جَالِسًا

رسول الله ﷺ په يو ځای کي تشريف فرما وو چي د يو يهودي جنازه پر هغه لور تيره سوه ،

وَكَرِهَ أَنْ تَعْلُوَ رَأْسَهُ جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ فَقَامَ . رواه النسائي .

رسول الله ﷺ دا کار بد وګڼئ چي د يهودي جنازه د رسول الله ﷺ تر سره تيره سي له دې کبله رسول الله ﷺ ودريدئ . نسائي .

**تخريج** : سنن النسائي ۴۷\۴، رقم: ۱۹۲۶.

**تشريح** : د حضرت حسن رحمة الله عليه د ارشاد مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د يهودي جنازه په ليدو سره چي ولاړ وو نو د دې وجه د مړي احترام نه وو مګر اصل حقيقت خو دا وو چي رسول الله ﷺ دا خبره خوښه نه کړه چي د يهودي جنازه د رسول الله ﷺ د سر څخه پورته سي ګويا حضرت حسن رضي الله عنه د خپل ارشاد په ذريعه پر هغو خلکو اعتراض وکړی چي جنازه په ليدو سره نه وه دريدلي .

اوس د دې مخکي چي کوم حديث تير سوی دی د هغه څخه معلومه سوه چي حضرت حسن رضي الله عنه نه يوازي دا چي جنازه په ليدو سره ودريدی مګر پر ابن عباس رضي الله عنه يې ځکه اعتراض وکړی چي هغه جنازه په ليدو سره نه وه دريدلی او دلته په دې حديث کي دا بيانيږي چي کوم خلک جنازه په ليدو سره ودريدل حضرت حسن رضي الله عنه پر هغوی اعتراض وکړی .

نو د دې اختلاف په باره کي محدثين ليکي دا واقعه چي دلته بيانيږي تر هغه پيښي وروسته ده کومه چي د دې مخکي په حديث کي بيانه سوې ده مخکي حضرت حسن رضي الله عنه ته د منسوخي علم نه وو سوی ځکه هغه ابن عباس رضي الله عنه باندي اعتراض وکړی خو وروسته د تحقيق دا ثابته سوه چي رسول الله ﷺ په مخکني وجه د يهودي د جنازې په ليدو سره دريدلی وو او دا چي جنازه په ليدو سره د دريدو حکم اوس منسوخ سوی دی نو هغه پر دې وخت پر هغو خلکو باندی اعتراض وکړی چي جنازه په ليدو سره دريدلي وه .

په هر حال جنازه په ليدو سره ودريدی نور هم څو وجهي دي مثلاً ډير وار داسي کيږي چي

رسول الله ﷺ به د بيري او عبرت په وجه جنازه په ليدو سره ودريدى كله د ملائكه د تعظيم په وجه به ودريدى چي د جنازې سره به وو كله به رسول الله ﷺ ځكه ودريدى چي رسول الله ﷺ جنازه په خپل سر مبارك اخستل نه خوښول.

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه ليكلي دي دا حديث منقطع دى ځكه چي امام باقر رحمة الله عليه د حضرت حسن ﷺ په زمانه كي نه وو.

﴿۱۵۹۴﴾: وَعَنْ اَبِي مُوسٰى أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا مَرَّتْ

د حضرت ابو موسى ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي تيريږي

بِكَ جِنَازَةُ يَهُودِيٍّ أَوْ نَصْرَانِيٍّ أَوْ مُسْلِمٍ فَقُومُوا لَهَا فَلَسْتُمْ لَهَا تَقُومُونَ إِنَّمَا تَقُومُونَ لِمَنْ مَعَهَا مِنَ الْمَلَائِكَةِ. رواه احمد

ستا سو په مخكي د يو يهودي، نصراني يا مسلمان جنـــازه نو ودريږئ تاسو د جنازې (د ادب او احترام) لپاره نه بلكه د هغه ملائكو لپاره ودريږئ چي د جنازې سره وي. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۳۹۱.

**تشريح**: څرنگه چي پورته بيان سوى دى چي جنازه په ليدو سره د دريدو مختلفي وجهي دي په هغه كي يوه وجهه دلته بيانيږي او هغه دا چي د دريدو حكم مخكي وو اوس منسوخ سوى دى د دې وضاحت هم د تيرو حديثو په تشريح كي بيان سوى دى.

﴿۱۵۹۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ فَقِيلَ إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ فَقَالَ إِنَّمَا قُمْنَا لِلْمَلَائِكَةِ. رواه النسائي.

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي يوه جنازه د رسول الله ﷺ سره تيره سوه، نو رسول الله ﷺ ودريدئ، رسول الله ﷺ ته وويل سول چي دا خو د يهودي جنازه ده، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه د ملائكو له كبله ودريدم. نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۴\۴۸، رقم: ۱۹۲۸.

## د جنازې په لمانځه کې درې صفه جوړول

﴿۱۵۹۶﴾: وَعَنْ مَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مالک بن هبيرة ﷺ څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

يَقُوْلُ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوتُ فَيُصَلِّي عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوفٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا

چې فرمايل يې: هر کله چې يو مسلمان مړ سي او د هغه په جنازه کې درې صفه د لمانځه جوړ سي

أَوْجَبَ فَكَانَ مَالِكٌ إِذَا اسْتَقَلَّ أَهْلَ الْجَنَازَةِ جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ صُفُوفٍ لِهٰذَا

نو الله تعالی د هغه لپاره جنت واجبوي، ددې حديث د اوريدو وروسته به حضرت مالک کله چې د جنازې په لمانځه کې تر درې صفو کم وليدل نو هغوی به يې پر درو صفو ويشل.

الْحَدِيثِ. رواه ابوداؤد و في رواية الترمذي قال كان مالك بن هبيرة اذا صلى على جنازة فتقال الناس عليها جزاهم ثلثة اجزاء ثم قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من صلى عليه ثلثة صفوف اوجب.

ابوداؤد. د ترمذي په يو روايت کې دي چې مالک بن هبيرة به کله د جنازې کولو اراده وکړه او لږ خلک به يې وليدل نو هغوی به يې پر درو برخو وويشل بيا به يې وويل: رسول الله ﷺ فرمايلي دي پر چا چې درې صفه لمونځ وسي نو د هغه لپاره شفاعت واجب سي. ابن ماجه هم داسې روايت کړی ی.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۳\ ۵۱۴، رقم: ۳۱٦٦، و رواية الترمذي في سننه ۳\ ۳۴۷، رقم: ۱۰۲۹، وابن ماجه ۱\ ۴۷۸، رقم: ۱۴۹۰.

**تشريح:** د اسلامي عقائدو دا يوه واضحه مسئله ده هر سړي ته دا عقيده ساتل ضروري دی چې پر الله تعالی باندې هيڅ شی واجب نه دی يعني د هغه بزرګ وبرتر ذات د څه شي کولو باندې مجبور نه دی مګر دلته په حديث کې فرمايل سوي دي چې الله تعالی جنت واجب کوي څکه علماء د حديث دا مطلب بيانوي چې د کوم سړي د جنازې په لمانځه کې د مسلمانانو درې صفونه ګډ سي د دې بشارت پر موجب الله تعالی پر خپل ځان باندې دا واجب وي چې هغه به په

جنت کي داخل کړي گويا دلته په حديث کي چي د کوم وجوب ذکر کيږي هغه د الله تعالی د فضل او د هغه د وعدې د مناسبت څخه دی د دې مطلب دادی چي الله تعالی د داسي سړي په جنت کي د داخليدو وعده کړې ده او ښکاره ده چي الله تعالی کومه وعده وکړي او هغه دي پوره نسي دا ناممکنه ده ځکه د وعدې د پوره کولو او د خپل فضل او کرم د اظهار په توگه الله تعالی د څه مجبوري يا د دباو لاندي نه مگر پر ځان باندي دا واجب کوي چي داسي سړی په جنت کي داخل کړي دې ته اصطلاحا وجوب لغيره وايي چي د دې خلاف نه دی هو وجوب لذاته د الله تعالی د ذات لپاره ممتنع دی چي د هغه په باره کي پورته اسلامي عقيده بيان سوې ده کرماني رحمة الله عليه ليکلي دي د جنازې په لمانځه کي په ټولو صفونو کي زيات افضل تر ټولو وروسته صف دی پر خلاف د نورو لمونځونو چي په هغه کي د ټولو مخکي صف تر ټولو زيات افضل وي.

او علماء دا مسئله ليکي چي د جنازې د لمانځه وروسته د مړي لپاره دي دعا نه کوي څرنگه چي په نورو لمونځونو کي د سلام گرځولو وروسته دي دعا وغوښتل سي ځکه چي په دې سره د جنازې په لمانځه کي د اضافتوب اشتباه ده.

## د جنازې دعاء

﴿۱۵۹۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلٰوةِ عَلَى الْجَنَازَةِ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په جنازه کي دا دعاء کول:

اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبُّهَا وَاَنْتَ خَلَقْتَهَا وَاَنْتَ هَدَيْتَهَا لِلْاِسْلَامِ وَاَنْتَ قَبَضْتَ رُوحَهَا

اللهم انت ..... فاغفرله. اي الله! ته دده پروردگار يې تا دی پيدا کړی دئ او تا د اسلام په لور هدايت ورته کړئ دئ او تا يې روح قبض کړې ده

وَاَنْتَ اَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَعَلَانِيَتِهَا جِئْنَاكَ شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهُ. رواه ابوداؤد.

ته دده په ظاهر او باطن ته ښه خبردار يې موږ دده سفارش ته راغلي يو ته دی وبخښې. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۳۸، رقم: ۳۲۰۰.

## د کوچني مړي دعاء

﴿۱۵۹۸﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَبِي هُرَيْرَةَ عَلَى صَبِيٍّ لَمْ يَعْمَلْ خَطِيئَةً قَطُّ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ اللّٰهُمَّ أَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ . رواه مالك

د حضرت سعيد بن المسيب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما په ابوهريرة رضي الله عنه پسي د يو داسي کوچني د جنازې لمونځ وکړ چي هغه هيڅکله هم ګناه نه وه کړې نو په لمانځه کي ما د ابوهريرة څخه دا واوريدل: اللهم اعذه من...... اې الله! دی د قبر د عذاب څخه وساتې. مالک.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱۱/۲۲۸، رقم: ۱۸.

**تشريح**: علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي د روايت الفاظ (يعمل خطيبة قط) يعني هيڅ کله ګناه نه وي ځيني سوې لفظ د صبی يعني د بچي صفت کاشفه دی ځکه چي پر غير بالغ نه ګناه کيدل مقصور نه دي.

د ابوهريره رضي الله عنه دعاء: اې الله! دې کوچني ته د قبر د عذاب څخه پناه ورکړه، په دې کي د قبر د عذاب سزا او د قبر سوال او جواب مراد نه دی مګر د دې څخه مراد دادی چي اې الله دا کوچنی د قبر د حسرت او غم، د قبر د وحشت او د قبر د دباو کولو او د بيري څخه په امان کي وساتې او بنکاره ده چي د قبر په دباو کي هر سړی اخته کيږي که بالغ وي که نا بالغ.

### په قبر کي د کوچنيانو سوال او جواب وي که نه؟

په دې اړه د علماء بېل بېل قولونه دي چي څرنګه د بالغو څخه سوال او جواب کيږي که نه د ځيني حضراتو قول خو دادی چي د کوچنيانو څخه به سوال او جواب کيږي کله چي د نورو حضراتو قول دادی چي کوچنيان به د دې څخه مستثنی وي د هغوی څخه به هيڅ سوال او جواب نه کيږي او دا قول صحيح دی ځکه چي پر غير مکلف باندي په عذاب کي اخته کيدل د اصول شريعت خلاف دی.

## د کوچني د جنازې لمونځ

﴿۱۵۹۹﴾: وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ يَقْرَءُ الْحَسَنُ عَلَى الطِّفْلِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَيَقُولُ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفًا وَّفَرَطًا وَّ ذُخْرًا وَّأَجْرًا .

د امام بخاري (رح) څخه دا حديث معلق (يعني بېله سنده) روايت دئ چي حضرت حسن بصري

ﷺ به د كوچني د جنازې په لمانځه كې (د تكبير اولى وروسته د سبحانك اللهم پر ځاى) سورة فاتحه ويل او بيا به يې دا دعاء كول : اللهم ...واجرا. اې الله ! دى زموږ پيشوا وګرځوې او زموږ پيش رو يې جوړ كړې او ذخيره او ثواب يې وګرځوې . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰۳، رقم: ٦٥.

**تشريح** : سلف هغه مال ته وايي چي مخكې استول سوى وى تر څو منزل ته په رسيدو سره د هغه څخه فائده حاصله سي همداسي فرط د لښكر هغه سړي ته ويل كيږي چي د لښكر څخه مخكې په رسيدو سره د خوراك څيښاك او نور سامان انتظام كوي .

دلته په دعا كي د دواړو څخه مراد دادى چي دا كوچنيان به د قيامت په ورځ زموږ د بهترې خير او منفعت باعث جوړ سي په دې توګه چي الله تعالى ته به زموږ شفاعت وكړي ذخره هغه مال ته وايي چي د ذخيرې په توګه ايښول سوى وي چي د حاجت او ضرورت په وخت په كار راسي .

## د كوچني لمونځ

﴿۱۶۰۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ اَلطِّفْلُ لَا يُصَلِّي عَلَيْهِ لَا يَرِثُ وَلَا يُوَرَّثُ حَتّٰى يَسْتَهِلَّ . رواه الترمذي و ابن ماجة الا انه لم يذكروا الا يوريب .

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر كوچني دي لمونځ نه كيږي ، نه دي هغه د چا وارث وي او نه دي څوك د هغه وارث وي تر څو پوري چي د زيږيدني پر وخت د هغه آواز وا نه وريدل سي . ترمذي، ابن ماجه، مګر ابن ماجه (ولا يورث) لفظ نه دى ذكر كړئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۵۰، رقم: ۱۰۳۲، وابن ماجه ۱\۴۸۳، رقم: ۱۵۰۸.

## امام او مقتديان دي يو برابر ولاړ وي

﴿۱۶۰۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابي مسعود انصاري ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د دې څخه منعه فرمايلې ده

وَسَلَّمَ أَنْ يَّقُوْمَ الْإِمَامُ فَوْقَ شَيْءٍ وَالنَّاسُ خَلْفَهُ يَعْنِيْ أَسْفَلَ مِنْهُ . رواه الدار قطني في المجتبى في كتاب الجنائز .

چي امام دي پر يو لوړ ځاى يا لوړ شي ولاړ وي او خلك تر ده كښته ولاړ وي . دارقطني د

مجتبی کتاب الجنائز کي بیان کړی دئ

**تخریج**: سنن الدار قطني ۲\۸۸، رقم: ۱.

**تشریح**: د جنازې په لمانځه کي د امام لپاره دا منعه دی چي هغه پریو لوړ ځای ودریږي او ټول مقتدیان دي تر هغه لاندي وي د دې څخه معلومه سوه چي دا خبره به په طریق اولی سره منعه ده چي یوازي امام خو دي لاندي ولاړ وي او مقتدیان دي پورته ولاړ وي دا مسئله د ټولو لمونځو ده د جنازې د لمانځه تخصیص پکښي نسته، د حدیث الفاظ هم مخصوص نه دي مگر د مشکوة مصنف دا حدیث د جنازې پر لمانځه په محمول کولو سره په دې باب کي نقل کړی دی د دې څخه واضح کیږي چي دا حدیث په دې باب کي هم وارد سوی دی او د دې وجه داده چي خلک به د جنازې په لمانځه کي دا طریقه اختیار کړي نو د دې څخه یې منعه کړل.

============

# بَابُ دَفْنِ الْمَيِّتِ (د مړي ښخولو بیان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### پر لحد اومې خښتي اېښودل

﴿۱۶۰۲﴾: عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي هَلَكَ فِيهِ الْحَدُوا لِي لَحْدًا وَانْصِبُوا عَلَيَّ اللَّبِنَ نَصْبًا كَمَا صُنِعَ بِرَسُولِ اللّٰهِ ﷺ. مسلم

د حضرت عامر بن سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دئ چي سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په خپل هغه ناروغی کي چي پکښي وفات سو وویل: زما د ښخولو لپاره لحد جوړ کړئ او پر ما اومې خښتي ودروئ لکه څرنگه چي د رسول الله ﷺ په لحد کي سوي وه. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۶۶۵، رقم: ۹۰-۹۶۶.

**د لغاتو حل**: (لحدًا): الحَد يُلحد: اذا حفر اللحد، واللحد: هو الشق تحت الجانب القبلي من القبر.

**تشریح**: لحد په قبر کي د قبلې خوا ته جوړي سوي هغي کندي ته وايي چي په هغه کي مړی ایښودل کیږي په کوم قبر کي چي داسي کنده جوړیږي هغه ته بغلي قبر وايي د دې حدیث څخه معلومه سوه چي بغلي قبر جوړول مستحب دی.

ابن همام رحمة الله عليه فرمايي زموږ په نزد په قبر کي لحد جوړول سنت دی په شرط د دې چې ځمکه مجبوري نه وي يعني که مځکه پسته وي او لحد په جوړولو سره د قبر کښېنستو بيره وي نو بيا په قبر کي لحد جوړول نه دی پکار مګر صندخ دي جوړ کړه سي.

د حضرت سعد رضي الله عنه ارشاد: پر ما اومې خښتي ودروئ، د دې مطلب دادی چې زما لحد په امو خښتو بند کړی علماء ليکي چې د رسول الله ﷺ د قبر مبارک لحد په اومو خښتو سره بند کړه سوی وو.

## په قبر کي د ځادر اچول

﴿۱۶۰۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جُعِلَ فِي قَبْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطِيفَةٌ حَمْرَاءُ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د رسول الله ﷺ په قبر کي سور ځادر اچول سوی وو. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۶۵، رقم: ۹۱- ۹۶۷.

**د لغاتو حل**: (قطيفة): الكساء (ځادر).

**تشريح**: د رسول الله ﷺ يو خادم وو د هغه نوم شعران وو هغه د صحابه کرامو د خوښی او اجازت څخه ماسيوا په خپله دا پټو د رسول الله ﷺ په قبر کي اوار کړی وو او د دې وجه يې دا بيان کړه چې زه دا قطعي نه خوښوم چې کوم پټو مبارک رسول الله ﷺ استعمال کړی وو هغه دي د رسول الله ﷺ وروسته بل سړی استعمال کړي.

ځيني علماء دا وايي چې په قبر کي پټو اېښول د رسول الله ﷺ د خصائصو څخه نه وو او س د بل چا ليپاره اجازت نسته چې د هغه په قبر کي دي پټو خپور کړه سي يا کښېښودول سي ځيني حضراتو ليکلي دي چې د رسول الله ﷺ په قبر کي د پټو اېښولو په باره کي هم په صحابه کي د چاد بنې رائې اظهار ونه کړ حضرت علي رضي الله عنه دا سخته رد کړه چې هغه په قبر مبارک کي پټو ولي کښېښوی علامه ابن عبدالبر رحمة الله عليه په کتاب استيعاب کي دا ليکلي دي چې هغه پټو چې شعران د رسول الله ﷺ پر قبر مبارک اچولی وو د قبر د پټولو مخکي وکښل سو.

په هر حال علماء په قبر کي لاندي څه جامه هوارول مکروه ګرځولي دي ځکه چې په دې کي د مال اسراف او د هغه ضائع کول دي.

## د قبر شكل

﴿۱۶۰۴﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ التَّمَارِ أَنَّهُ رَأَى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسَنَّمًا. رواه البخاري

د حضرت سفيان تمار ﷺ څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ قبر مبارک وليدئ چي د اوښ د قوب (ماهي پشت) په ډول وو . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۶۵۵، رقم: ۱۳۹۰.

**تشريح** : امام مالک رحمة الله عليه ، امام احمد رحمة الله عليه او امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه نه يوازي دا حديث مګر د دې ماسيوا نور هم صحيح حديثونه د خپل دې مذهب مستدل ګرځولي دي چي قبر د اوښ د بوق په ډول جوړول د مسطح جوړولو څخه افضل دی د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد قبر مسطح جوړول افضل دی .

## د قبرو لوړول منعه دي

﴿۱۶۰۵﴾: وَعَنْ اَبِي الْهَيَّاجِ الْاَسَدِيِّ قَالَ قَالَ لِي عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ أَلَا أَبْعَثُكَ

د حضرت ابو الهياج الاسدي ﷺ څخه روايت دئ چي ما ته حضرت علي ﷺ بن ابي طالب وويل : ايا زه تا په هغه کار مامور نه کړم

عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا

په کوم چي زه رسول الله ﷺ مامور کړی وم او هغه دادئ چي کوم ځای عکس ووينئ نو هغه

طَمَسْتَهُ وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ. رواه مسلم

نيست او نابود کړه او چيري چي لوړ قبر ووينې نو هغه برابر کړه . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۶۶۶، رقم: ۹۳- ۹۶۹.

**تشريح** : علماء ليکي چي د ځان سره تصوير ساتل هم حرام دی او هغه خرابول واجب دی او د هغه مخ ته کښينستل ناجائز دی کوم قبر چي لوړ ووينې هغه برابر کړي د دې مطلب دادی که قبر ډير لوړ جوړ سوی وي نو هغه دومره را کښته کړي چي د مځکي د سطح سره نژدې سي يوازي د هغه نښه پاته سي چي د هغه اندازه يوه لويشت ده ځکه چي مسنون دادی په کتاب

الازهر كي د علماء دا قول ليكلى دى چي قبر په اندازه د يوه لويشت پورته كول مستحب دى او تر دې زيات مكروه دى او تر يوه لويشت زيات پورته قبر غورځول يعني يوازي په اندازه د يوه لويشت پاته پرېښودل مستحب دى.

## پوخ قبر منعه دئ

﴿۱۶۰۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ددې څخه منعه فرمايلې ده چي قبر دي پوخ جوړ كړل سي يا پر قبر دي عمارت جوړ كړل سي او پر قبر باندې د ناستي څخه يې منعه فرمايلې ده. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۶۶۷، رقم: ۴۹- ۹۷۰.

**تشريح**: په كتاب اظهار كي ليكلي دي چي د قبرونو د گچ كاري ممانعت د كراهت په توگه دى يعني په قبرونو گچ كاري كول مكروه دى بيا د ممانعت دا حكم د دواړو صورتونو لپاره دى يعني كه د قبر خنبتي گچ كړل سي يا پر قبر باندې دَ گچو كار وكړل سي دواړه مكروه دي د قبر پورته څه عمارت لكه گنبده يا قبه جوړول صحيح نه دي مگر په يو قبر كه څه عمارت جوړ سوى وي نو د هغه غورځول واجب دى كه څه هم هغه مسجد وي.

علامه تور پشتي رحمة الله عليه فرمايي پر قبرونو باندې عمارت جوړول دوو شيانو ته محتمل دي خواه پر قبر باندې دبري او خنبتي سره څه عمارت جوړ كړه سي خواه د قبر پورته څه خيمه وغيره ودروي دواړه صورتونه ممنوع دي ځكه چي ددې شيانو هيڅ فائده نسته علامه تور پشتي رحة الله عليه دا هم فرمايلي دي چي د دې ممانعت يو سبب دا هم دى چي دا د جاهليت فعل دى يعني كفارو به د مړي پورته لس لس ورځي سوري كوله ځكه د دې مشابهت څخه د ځان ساتلو لپاره هم مقصود دى.

پر قبر باندې د ناستي څخه ځكه منعه فرمايل سوې ده چي دا د مومن د اكرام او شرف خلاف دى په دې توگه چي د قبر پورته په ناستي سره د صاحب قبر تحقير او سپكاوى لازميږي.

ځيني حضرات فرمايي د قبر پورته د ناستي څخه مراد دادى چي يو سړى د رنځ او غم د اظهار لپاره د قبر پورته مسلسل كښيني څرنگه چي ځيني خلک د فقر او دنيا څخه د ليري والي په

اختيارولو سره خپل يو محسن او متعلق قبر خپل د اوسيدو ځاى جوړوي نو د دې څخه منعه فرمايل سوې ده .

## د قبرو په هكله يو څو احكام

﴿۱۶۰۷﴾: وَعَنْ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا . رواه مسلم

د حضرت ابو مرثد الغنوي ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر قبرو مه كښينئ او مه د قبرو په لور لمونځ كوئ. مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱۲\٦٦٨،رقم: ۹۷- ۹۷۲.

**تشريح** : محقق ابن همام رحمة الله عليه فرمايي په قبرونو كي كښينستل او هغه نړول مكروه دى د ځينو خلكو دا عادت دى چي هغوى په خپلي هديره كي د خپل يو قريب قبر ته د رسيدو لپاره بېله تكليفه پر قبرو خيژي او هغوى تر پښنو لاندي كوي دا ډيره غلطه خبره ده .

د ضرورت په وخت كي مثلا د قبر د كښلو لپاره يا د مړي د ښخولو لپاره په هديره كي تګ راتګ جائز دى ، په هديره كي لوڅي پښې تلل مستحب دي او قبر ته تكيه وهل او بېدېدل مكروه دي. د قبرونو سره استنجاء وهل كوچني يا غټي بولي كول خو د زيات كراهت خبره ده هديرې ته د راتګ په باره كي هر هغه شى مكروه دى كوم چي د سنت څخه نه دى ثابت په دې اړه يوازي قبرونو ته تلل او هلته په ولاړي ولاړي دعا غوښتل د سنت څخه ثابت دي د رسول الله ﷺ په باره كي نقل دي چي كله به يې جنت البقيع هديرې ته تشريف وړى نو هلته به يې دا فرمايل (السلام عليكم دار قوم مؤمنين وانا ان شاءالله بكم لاحقون واسئل الله ولكم العافية ) يعني اې د مومنانو كوره پر تاسو دي سلام وي موږ انشاء الله ستاسو سره پيوست كيږو د الله تعالى څخه ستاسو امن او عافيت غواړو (ملا علي قاري رحمة الله عليه) .

د ملا علي قاري رحمة الله عليه په دې الفاظو سره څه اشكال پيدا كيږي چي دلته خو دا ثابته سوه چي د قبرونو د زيارت په اړه كي خو يوازي قبرونو ته تلل او هلته دعا غوښتل د سنت څخه ثابت دى ځرنګه چي ملا علي قاري رحمة الله عليه هم د دې باب د دريم فصل په يوه حديث كي چي د ابن عمر ﷛ څخه نقل دى په تشريح كي هغه حديثونه نقل دي نو د دې جواب به دا وي چي د قران كريم تلاوت په دعا كي شامل دي ځكه د قرآن كريم تلاوت هم حكما دعا ده نو دا مكروه

نه دی.

د حدیث اخري الفاظ ( ولا تصلوا الیها ) اومه د قبرو خواته لمونځ کوئ په رڼا کي علماء لیکي چي کوم سړی قبر ته یا د قبر وخاوند ته د تعظیم په وجه د قبر خواته لمونځ کوي نو دا ځرګنده کفر دی که د قبر یا صاحب قبر په نظر کي نه وي بیا هم قبر ته لمونځ کول مکروه تحریمي دی دا حکم د جنازې هم دی کله چي د لمونځ کوونکي مخ ته پرته وي مګر په دې کي خو نور هم زیات کراهت دی حاصل دا چي د لمونځ کونکي مخته باید قبر او جنازه نه وي.

## پر قبر د کښېنستلو عذاب

﴿۱۶۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَجْلِسَ أَحَدُكُمْ عَلَى جَمْرَةٍ فَتُحْرِقَ ثِيَابَهُ فَتَخْلُصَ إِلَى جِلْدِهِ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَجْلِسَ عَلَى قَبْرٍ . رواه مسلم

که په تاسو کي څوک د اور پر سکروټو کښیني او هغه د هغه جامې وسوځي د هغه پوست ته ورسیږي نو دا ددې څخه غوره ده چي هغه پر قبر کښیني. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ٦٦٧\٢، رقم: ٩٦- ٩٧١.

**تشريح** : مطلب دا چي که یو سړی د اور سربیره کښیني او هغه اور د هغه جامې په سوزولو سره د هغه بدن ته ورسیږي او د بدن برخي سوزوي ددې تکلیف څخه د قبر پورته ناستي تاوان او تکلیف ډیر زیات دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نبي کريم ﷺ قبر مبارک

﴿۱۶۰۹﴾: عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ بِالْمَدِينَةِ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا يَلْحَدُ

د حضرت عروة بن الزبير رضي الله عنه څخه روایت دئ چي په مدینه کي دوه کسان وه چي په هغوی کي یوه لحد جوړوئ

وَالْآخَرُ لَا يَلْحَدُ فَقَالُوْا أَيُّهُمَا جَاءَ أَوَّلًا عَمِلَ عَمَلَهُ فَجَاءَ الَّذِيْ يَلْحَدُ فَلَحَدَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه في شرح السنة

او بل لحد نه جوړوئ، د رسول الله ﷺ د وفات وروسته د صحابه کرامو دا رايه سوه چي په هغو کي کوم يو لومړی راسي هغه دي خپل کار وکړي نو لحد جوړولو والا مخکي راغلی او د رسول الله ﷺ لپاره لحد تيار کړل سو . شرح السنة

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۵\۳۸۹، رقم: ۱۵۱۰.

**تشريح**: ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه د لوئ عظمت او فضيلت مالک صحابي دی د جليل القدر صحابه رضي الله تعالى عنهم د شمير څخه دی د عشره مبشره يعني هغه لس خوش نصيبه صحابؤ څخه يو دی چي رسول الله ﷺ ورته په دنيا کي د جنتي کيدو زيری ورکړی وو .

د دې روايت څخه معلومه سوه چي که څه هم بغلي قبر افضل دی مگر صندوقي قبر هم مشروع دی که صندوقي قبر مشروع نه وای نو ابو عبيده رضي الله عنه به صندوقي قبر نه کنبی .

## د قبر لحد

﴿۱۶۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَللَّحْدُ لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا.

رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه رواه احمد عن جرير بن عبدالله

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: لحد زموږ لپاره دئ او شق زموږ څخه د پرته لپاره (يعني لحد د انبياؤ لپاره خاص دئ او شق يعني خلاص قبر د ټولو لپاره جائز دئ) . ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، احمد د جرير بن عبد الله څخه روايت کړئ دئ.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۵۴۴، رقم: ۳۲۰۸، والترمذي ۳\ ۳۶۳، رقم: ۱۰۴۵، والنسائي ۴\ ۸۰، رقم: ۲۰۰۸، وابن ماجه ۱\ ۴۹۶، رقم: ۱۵۵۴.

**تشريح**: علماؤ د دې حديث څو معناوي بيان کړي دي مگر زياته صحيح معنی داده چي لحد يعني بغلي قبر زموږ انبياء د جماعت لپاره دی گويا د لحد فضيلت بيانيږي د دې مطلب دادی چي د بغلي قبر نسبت د انبياء جماعت خوا ته په کولو سره د هغه د فضيلت او اوليت اظهار فرمايل کيږي .

## قبر ژور کښل پکار دي

﴿۱٦۱۱﴾: وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ يَوْمَ أُحُدٍ اِحْفِرُوْا وَأَوْسِعُوْا

د حضرت هشام بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د احد په ورځ وفرمایل :قبرونه وکاږئ پراخ یې کړئ

وَأَعْمِقُوْا وَأَحْسِنُوْا وَادْفِنُوْا الاِثْنَيْنِ وَالثَّلاَثَةَ فِيْ قَبْرٍ وَّاحِدٍ وَقَدِّمُوْا أَكْثَرَهُمْ

او ژور یې کړئ ښه یې جوړ کړئ او په یوه یوه قبر کي دوه دوه درې درې ښخ کړئ. او په قبر کي لومړی هغه کس ایږدئ چي

قُرْآناً . رواه أحمد والترمذي وأبو داود والنسائي وروى ابن ماجه إلى قوله وأحسنوا

قرآن یې زیات زده وي. احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه تر واحسنوا پوري بیان کړئ دئ.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۴\۱۹، وابوداؤد ۳\۵۴۷، رقم: ۳۲۱۵، والترمذي ۴\ ۱۸۵، رقم: ۱۷۱۳، والنسائي: ۴\۸۱، رقم: ۲۰۱۰، وابن ماجه ۱\ ۴۹۷، رقم: ۱۵٦۰.

**تشریح** : د أحد د غزا د ورځي څخه مراد دادی چي کله جنګ احد ختم سو او د شهداء د ښخولو اراده وکړل سوه نو هغه وخت رسول الله ﷺ وفرمایل قبرونه وکاږئ نو په ارشاد کي د قبرونو د کښنو حکم خو د وجوب په توګه دی پاته احکام یعني د قبرونو پراخول،ژور کښل او ښه جوړولو حکم د استحباب په توګه دی.

قبرونه ژور کاږئ د دې څخه معلومه سوه چي قبر ژور کښل سنت دی ځکه چي د دې په وجه مړی د درندګانو څخه په امن کي وي.

د مظهر رحمة الله علیه قول دی قبرونه دومره ژور کاږل مراد دی که سړی پکښني دننه ودریږي او هغه خپل لاسونه پورته کړي نو د هغه د ګوتو سرونه د قبر غاړي ته ور ورسیږي.

په یوه قبر کي دوه دوه یا درې درې خلک ښخول او د مجبوري او حاجت په وخت کي جائز دی مګر بېله ضرورته او مجبوری جائز نه دی.

د رسول الله ﷺ په ارشاد کي او اولني د قبلې خواته هغه کښیږدي چاته چي قرآن زیات یادوو په دې کي دې خوا ته اشاره ده چي څرنګه د عالم باعمل تعظیم او تکریم د هغه په ژوند کي کیدی همداسي د هغه د مرګ وروسته هم د هغه د تعظیم او د هغه احترام په خپل نظر کي ساتل پکار دی.

## د ډېرو جنازو په يو وار لمونځ

ځرنګه چي پر يوې جنازې لمونځ ادا کيږي همداسي په يوه وخت کي د څو جنازو يو لمونځ هم اداء کيدای سي مطلب دا چي په يوه وخت څو جنازې را ټولي سي که څه هم پر هري جنازې باندي جلا جلا لمونځ وسي او که ټولي جنازې په ايښودو سره د ټولو لپاره د جنازې يو لمونځ وسي دا دواړه صورتونه جائز دي که د څو جنازو پر وخت د جنازې لمونځ وکړه سي نو د جنازې مخ ته په ترتيب سره په ايښودو کي هم اختيار دی خواه ټولي جنازې مخ ته په ترتيب سره په ايښودو کي هم اختيار دی که ټولي جنازې د قبلې خواته مخکي وروسته په کولو سره کښيښنودل سي او که په اوږد قطار د ټولو سره په جنازې کي کښيښنوده سي دواړه ډوله جائز دي البته امام ته پکار ده چي هغه د جنازې سره ودريږي چي هغه په ټولو جنازو کي افضل دی.

## د مړي د يوه ځای څخه بل ځای ته وړل

﴿۱۶۱۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ جَاءَتْ عَمَّتِيْ بِأَبِيْ لِتَدْفِنَهُ فِيْ

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دئ کله چي د احد ورځ سوه يعني د احد جګړه وسوه او په هغه کي مسلمانان شهيدان سول نو زما عمه زما د پلار مړي ته راغلل چي

مَقَابِرِنَا فَنَادَى مُنَادِي رَسُوْلِ اللهِ ﷺ أَنْ رُدُّوا الْقَتْلَى إِلَى مَضَاجِعِهَا. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي والدارمي ولفظه للترمذي.

زموږ يعني په خپله هديره کي يې ښخ کړي، په دا وخت کي سمدستي د رسول الله ﷺ له لوري دا علان وکړل سو چي شهيدان د هغوی د شهادت ځای ته ورسوئ چي هلته ښخ کړل سي. احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسائي، دارمي او الفاظ د ترمذي دي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\ ۲۹۷، و ابوداؤد ۳\ ۵۱۴، رقم: ۳۱۶۵، والترمذي ۴\ ۱۸۷، رقم: ۱۷۱۷، والنسائي ۴\ ۷۹، رقم: ۲۰۰۳، والدارمي ۱\ ۳۵، رقم: ۴۵.

**تشريح**: د حضرت جابر ﷛ د ارشاد مطلب دادی چي کله د احد په غزا کي ځيني مسلمانان شهيدان سوه نو زما پلار هم په هغه شهيدانو کي وو زما ترور زما د پلار خو د ميدان جنګ څخه دباندي ښار ته راوړی چي په خپلي هديرې يعني په بقيع کي ښخ کړه سي مګر د رسول الله ﷺ د خوا څخه يوه سړي اعلان وکی چي شهيدان چي کوم ځای شهيدان سوي دي هلته دي ښخ کړل سي.

دا خو د حديث وضاحت وو اوس د مسئلې خوا ته راځو ځيني علماء فرمائي څرنګه چې په دې حديث کي د رسول الله ﷺ حکم نقل سوی دی کوم سړی چې په کوم ښار کي دننه ښخ کړل سي د هغه جسم دې بل ښار ته نه وړي په کتاب ازهار کي ليکلي دي چې د مړي د نقلولو د نه اجازې دا حديث يو قوي دليل دی، مګر په دې اړه صحيح خبره داده چې دلته په حديث کي د مړي د يو ځای څخه بل ځای ته د وړلو کوم ممانعت چې فرمايل سوی دی هغه يوازې د شهداء سره خاص دی او تر دې زياته صحيح خبره داده چې دا ممانعت د مړي د ښخولو وروسته بېله څه عذره پر منتقل کولو باندي محمول کړه سي يعني که مړی ښخ کړل سي نو اوس د څه عذر بغير دوهم ځای ته د هغه منتقل کول منعه دي.

علامه يحيى په دې مسئله کي دا فرمائي که واقعي ضرورت پيښ سي نو د مړي دوهم ځای ته منتقل کول جائز دي مګر بغير د څه ضرورته نه دي جائز.

د محقق علامه ابن همام رحمة الله عليه قول دادی که مړی د ښخولو او د قبر د تياري مځکي په يو يا دوه کوسه فاصله باندي منتقل کړه سي نو څه تاوان نه لري ځکه چې هديره پر دومره فاصله باندي وي.

علماء ليکي چې مړی د هغه ښار په هديرې کي ښخول مستحب دی چيري چې هغه وفات سوی وي نقل دي چې د ام المومنين بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها وروو حضرت عبدالرحمان بن ابوبکر ﷛ وفات د مکې څخه پر يوه منزل فاصله باندي وسو نو د هغه جنازه د ښخولو لپاره مکې مکرمې ته راوړه سو کله چې بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها د هغه قبر ته تشريف راوړی نو وې فرمايل که زه ستا د وفات پر وخت موجود وای نو دلته به مونه راوړلای مګر هلته به مي ښخ کړی وای چيري چې ته وفات سوی يې.

## د ښخولو وروسته د قبر کښلو مسئله

د مړي د ښخولو او پر قبر باندي د خاورو اچولو وروسته د مړي د راکښلو لپاره يا د څه بل مقصد لپاره قبر کنل جائز نه دی خواه د ښخ سوي لږ وخت سوی وي يا زيات، هو د عذر پر بناء جائز دی مثلاً که د ښخولو وروسته دا ښکاره سي چې پر کومه مځکه باندي دی ښخ کړه سوی دی هغه په زور اخستل سوې مځکه ده يا هغه مځکه يوه سړي بحق شفعه په اخستو سره خپل ملکيت جوړه کړې ده نو په دې صورتونو کي د مځکي د مالک په مطالبه قبر کينل به جائز وي علماء ليکي څو مره صحابه چې د کافرانو په ښارونو کي ښخ کړه سوي دي خو هغوی د هغه ځای څخه منتقل نه کړه سوه.

که د هغه مځکي مالک چي پر هغه قبر جوړ سوی دی دا غواړي چي مځکه هواره کړي او په هغه کي کښت وکړي نو د هغه حق دی د ښخولو وروسته د قبر کيڼلو په عذرونو کي يو عذر دا هم دی که د يوه سړي څه مال يا جامې په قبر کي پاته سي نو د هغه لپاره جائز دی چي قبر په کيڼلو سره هغه مال يا جامې را وکاږي.

علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي علماء او مشائخ په دې خبره متفق دي که د يوې ښځي زوی د ښار څخه ماسيوا په بل ځای کي ښخ کړه سي او هلته هغه ښځه موجوده نه وي او د هغه محبت يې بې صبره کړي او هغه په دې خبره اصرار کوي چي د هغه د زوئ جسد دي د هغه ښار څخه وايستل سي نو په دې صورت کي قطعي هيڅ ګنجائش نسته چي جسد وايستل سي په دې اړه ځيني علماء د کوم جواز چي قائل سوي دي د هغوی هيڅ اعتبار نسته.

صاحب هدايه د هدايې څخه ماسوا په يو دوهم کتاب کي د هدائې ليکلي دي که يو سړی په يو ښار کي مړ سي نو د هغه جسد دوهم ښار ته وړل مکروه دی ځکه چي داسي نه يوازي دا چي يو بې فائدې شي کي وخت تيريږي مګر مړي ته د ښخولو هم تاخير کيږي او د ځيني علماء بالاتفاق فيصله ده که يو مړی بغير د غسل او لمانځه ښخ سي بيا هم د قبر څخه راکښل جائز نه دي.

يو سړی دي په هغه ځای کي نه ښخيږي په کوم ځای کي چي هغه اوسيږی دا يوازي د انبياء کرام عليهم السلام سره خاص وو د دوهم لپاره داسي کول مناسب نه دي.

## مړی قبر ته کښته کول

﴿۱۶۱۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سُلَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَبْلِ رَأْسِهِ. رواه الشافعي

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سر د خوا څخه قبر ته کښته کړل سو. شافعي

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۱\۲۱۵، رقم: ۵۹۸.

**تشريح**: د دې صورت دا وو چي جنازه د قبر د پښو خواته کښېښېږدی بيا رسول الله ﷺ د سر مبارک خوا ته په لوړولو سره په قبر کي کښېښودل سي د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد مړی په دې طريقې سره په قبر کي اېښودل پکار دي.

د حنفيه په نزد په دې اړه مسنون طريقه دا ده چي جنازه د قبر قبلې خوا ته دي کښېښول سي

او د هغه ځای څخه دي مړی په پورته کولو سره په قبر کي کښيښنول سي رسول الله ﷺ به مړی په دي طريقې سره په قبر کي کښيښنودی څرنګه چي د راتلونکي حديث څخه واضحه کيږي.
تر څو پوري چي د مذکوره روايت تعلق دی چي رسول الله ﷺ په دې طريقې سره په قبر کي ايښول سوی دی نو د هغه وجه داده چي په کوټې مبارکي کي دومره وسعت نه وو چي رسول الله ﷺ د قبلې د خوا څخه په قبر کي ايښی وای ځکه چي د رسول الله ﷺ قبر د حجري د ديوال سره موښتی وو.
د حنفيه له خوا څخه د دې يو جواب دا هم ورکول کيږي چي د رسول الله ﷺ په قبر کي د ايښولو کيفيت مضطرب نقل دی يعني دلته په دې روايت کي خو دا ښودل سوي دي چي رسول الله ﷺ د سر مبارک د خوا څخه په قبر کي ايښول سوی وو کله چي د ابوداود يو روايت دی چي رسول الله ﷺ په قبر کي د قبلې د خوا څخه ايښول سوی وو او همداسي يو روايت ابن ماجه رحمة الله عليه هم نقل کړی دی نو په دې دواړو حديثونو کي ټکراغی نو دواړه حديثونه ساقط سول.

﴿۱۶۱۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ قَبْرًا لَيْلًا فَأُسْرِجَ لَهُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د شپې يو قبر ته کښته سو نو د رسول الله ﷺ لپاره څراغ بل کړل سو او

سِرَاجٌ فَأَخَذَهُ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ وَقَالَ رَحِمَكَ اللّٰهُ إِنْ كُنْتَ لَأَوَّاهًا تَلَّاءً لِلْقُرْآنِ. رواه الترمذي وقال في شرح السنة اسناده ضعيف.

هغه مړی د قبلې خوا ته رسول الله ﷺ په قبر کي کښېښنودئ او بيا يې وويل: رحمک الله.... تلاء للقرآن. الله دي پر تا رحم وکړي ته ډير ژړېدونکی او قرآن ويونکی وې. ترمذي، په شرح السنة کي راځي چي د دې سند ضعيف دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۳۷۲، رقم: ۱۰۵۷، وشرح السنة ۵\ ۳۹۸، رقم: ۱۵۱۴.

**تشريح**: د دې روايت په باره کي د امام ترمذي رحمة الله عليه فيصله داده چي دا حديث حصن صحيح دی او په دې اړه د حضرت جابر رضي الله عنه او يزيد بن ثابت روايتونه هم نقل دي.
د دې حديث څخه معلومه سوه چي د شپې مړی ښخول مکروه نه دی څرنګه چي ځيني علماؤ ليکلي دي چي دا حديث د حنفيه د مذهب دليل دی د دوی په نزد مړی په قبر کي د قبلې خوا ته

اینبول سنت دی.

## د مړي قبر ته کښته کول

﴿۱۶۱۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أُدْخَلَ الْمَيِّتَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ کله چې به رسول الله ﷺ يو مړی قبر ته کښته کوئ

الْقَبْرَ قَالَ بِسْمِ اللهِ وَبِاللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ وَعَلَى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ. رواه أحمد والترمذي وابن ماجه وروى أبو داود الثانية

نو فرمايل به يې: بسم الله..... على سنة رسول الله. زه تا د الله په نامه سره د الله په حکم سره او د رسول الله او شريعت سره سم قبر ته کښته کوم، او په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې د رسول الله ﷺ پر طريقه. احمد، ترمذي، ابن ماجه. د ابوداؤد په يوه روايت کې آخري الفاظ دي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۵۹، وابوداوٗد: ۳\ ۵۴۶، رقم: ۳۲۱۳، والترمذي ۳\ ۳۶۴، رقم: ۱۰۴۶، وابن ماجه ۱\ ۴۹۴، رقم: ۱۵۵۰.

## پر قبر درې لپې خاورې اچول

﴿۱۶۱۶﴾: وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْهِ مُرْسَلاً أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت جعفر بن محمد د خپل پلار څخه په مرسل توګه روايت کوي چې رسول الله ﷺ

حَثَّا عَلَى الْمَيِّتِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ بِيَدَيْهِ جَمِيْعًا وَأَنَّهُ رَشَّ عَلَى قَبْرِ ابْنِهِ إِبْرَاهِيْمَ وَوَضَعَ عَلَيْهِ حَصْبَاءَ. رواه في شرح السنة وروى الشافعي من قوله: رش.

په دواړو لاسو کې درې لپې خاوره پر يو مړي واچول او د خپل زوی ابراهيم پر قبر يې اوبه وننولې، او پر قبر يې د ننبې لپاره ډبرې ودرولې. شرح السنة. امام شافعي تر (رش) پورې ذکر کړې دئ.

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۱\ ۲۱۵، رقم: ۵۹۹-۶۰۱، وشرح السنة ۵\ ۴۰۱، رقم: ۱۵۱۵.

**تشريح**: امام احمد رحمة الله عليه په ضعيف اسناد سره نقل کړی دی رسول الله ﷺ په قبر باندې خاوره داسې اچوله چې اول موټ به يې په ډکولو سره خاوره پر اچوله نو ويل به يې (منها

خلقناکم) او کله چي به يې دوهم موټ د کولو نو ویل به يې (وفيها نعيدکم) او همداسي چي دریم موټ به يې اچولو نو دا به يې ویل ومنها نخرجکم ......الخ)

حضرت ابن مالک رحمة الله عليه فرمائي کوم خلک چي په جنازې سره قبر ته ولاړ سي د هغوی لپاره سنت دی کله چي لحد يا شق بند کړه سي نو هغوی دي موټ په د کولو سره خاوره پر قبر واچوي همداسي چي قبر ډک سي او پورته خاوره برابره کړه سي نو د قبر پورته د اوبو اوپاشي کول سنت دي.

**حکايت**: نقل سوي دي چي يو سړی وفات سو نو يو چا په خوب کي وليدی او پوښتنه يې ځيني وکړه چي الله تعالی ستا سره څه سلوک وکی هغه وويل کله چي زما نيکي او بدي وتله سوې نو بدئ تر نيکيانو ډيري سوې ناپامه يوه تيلۍ د نيکيو په ترازو کي ومښته چي د هغه په وجه د نيکيو ترازو دروند سو ما تيلۍ راواخسته چي په هغه کي يو موټ خاوره وه او دا هغه خاوره وه چي يو وخت ما د يو مسلمان پر قبر اچولې وه همداسي زما دا نيکي په کار راغله.

## د قبر پخول او پر قبر ليکل منعه دي

﴿۱۶۱۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُجَصَّصَ الْقُبُورُ وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا وَأَنْ تُوطَأَ. رواه الترمذي

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د قبرونو د پخولو، پر قبرو د ليکلو او د قبرو په پښو سره پايماله کولو څخه منعه فرمايلې ده. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۶۸، رقم: ۱۰۵۲.

**د لغاتو حل**: تُوطا: ای بالارجل (تر پښو لاندي کول).

**تشريح**: د قبرونو د ګچ کولو څخه ځکه منعه فرمايل سوې ده چي په دې کي يو ډول زينت او تکلف دی د ځيني حضراتو په نزد په خټو کي ليو کول جائز دی.

پر قبرونو باندي د الله جل جلاله او د رسول ﷺ نوم او د قرآن کريم اياتونه ليکل مکروه دي چي د پښو لاندي په راتلو سره يا د يو حيوان او داسي نورو په بولو کولو سره د هغه بې ادبي ونسي ځيني حنفي علماء وائي همداسي د مسجدونو وغيره پر ديوالو باندي د الله تعالی او د هغه د رسول نومان او د قرآن کريم اياتونه ليکل منعه دي او دا هم مکروه دي چي پر ډبري وغيره باندي د مړي نوم وليکل سي او هغه پر قبر کښېښودل سي البته ځيني علماء دا وايي چي پر ډبري

وغیره باندي د مړي په خاصه توګه سره د علماء دین او صلحاء امت وغیره په لیکلو سره پر قبر باندي جائز دی چي د زمانې د تیریدو باوجود د هغوی قبرونه وپیژندل سي.

## پر قبر اوبه پاشل

﴿۱۶۱۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ رَشَّ قَبْرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ الَّذِيْ

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ پر قبر مبارک اوبه وننول سوې او چا چي

رَشَّ الْمَاءَ عَلٰى قَبْرِهِ بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ بِقِرْبَةٍ بَدَأَ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ حَتّٰى انْتَهٰى إِلٰى

رِجْلَيْهِ. رواه البيهقي. في دلائل النبوة

وننولې هغه بلال بن رباح وو، بلال په ژي سره اوبه وننولې او تر قدمو پوري یې و پاشلې. بیهقي

**تخریج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

## پر قبر ډبري درول

﴿۱۶۱۹﴾: وَعَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ أَبِيْ وَدَاعَةَ قَالَ لَمَّا مَاتَ عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُوْنٍ أُخْرِجَ

د حضرت مطلب بن ابو وداعه ﷛ څخه روایت دئ کله چي عثمان بن مظعون ﷛ وفات سو نو

بِجَنَازَتِهِ فَدُفِنَ فَأَمَرَ النَّبِيُّ ﷺ رَجُلًا أَنْ يَأْتِيَهُ بِحَجَرٍ فَلَمْ يَسْتَطِعْ حَمْلَهُ

د هغه جنازه پورته سول او ښخ کړل سول، رسول الله ﷺ یو سړي ته حکم وکړ چي هغه ډبري راوړي هغه سړي ډبري را نه وړلای سوې (د ډبرو راوړلو طاقت یې نه درلودی)

فَقَامَ إِلَيْهَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَحَسَرَ عَنْ ذِرَاعَيْهِ قَالَ الْمُطَّلِبُ قَالَ الَّذِيْ

نو رسول الله ﷺ په خپله ورغلئ او لستوني یې پورته کړل، مُطلب وایي کوم سړي چي ما ته دا

يُخْبِرُنِيْ ذٰلِكَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ كَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلٰى بَيَاضِ ذِرَاعَيْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ

روایت کړئ دئ هغه یادونه وکړه چي لکه زه چي اوس هم سپینوالی وینم چي د لستونو پورته کولو څخه د رسول الله ﷺ د بغلو څخه ما ته هغه څرګنده سوې وه.

حِيْنَ حَسَرَ عَنْهُمَا ثُمَّ حَمَلَهَا فَوَضَعَهَا عِنْدَ رَأْسِهِ وَقَالَ أَعْلَمُ بِهَا قَبْرَ أَخِيْ

بیا رسول الله ﷺ د بري پورته کړې او د قبر د سر په خوا یې کښېښودلې او وه یې فرمایل: ما د خپل ورور پر قبر نښه ولګول

وَأُدْفِنُ إِلَيْهِ مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِي . رواه ابوداؤد .

او زه به بیا هغه څوک چې زما د کورنۍ څخه مړ سي ددې قبر سره ښخوم. ابوداؤد .

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۱۳\۵۴۳، رقم: ۳۲۰۶.

**تشريح** : حضرت مطلب بن ابو وداعه رضي الله عنه هغه صحابي دی چې د مکې د فتحې په ورځ په اسلام مشرف سوی وو هغه دا روایت د یو بل صحابي رضي الله عنه څخه ځکه نقل کړی دی چې دی خپله په هغه وخت موجود نه وو .

حضرت عثمان بن مظعون د رسول الله ﷺ په شیدو شریک ورو وو هغه بالکل د اسلام په ابتدائي زمانه کي اسلام قبول کړی وو او د هغه مخکي یوازي دیارلسو خلکو ایمان راوړی وو د بدر په غزاء کي یې ګډون کړی وو په مدینه کي په مهاجرینو کي تر ټولو مخکي دی وفات سوی وو د هغه قبر ته نژدې تر ټولو مخکي د رسول الله ﷺ زوئ حضرت ابراهیم رضي الله عنه ښخ سوی وو .

په ازهار کي لیکلي دي چې د دې حدیث څخه معلومه سوه چې پر قبر باندي د نښي په توګه یوه ډبره وغیره ایښول مستحب دي چې قبر وپیژندل سي او اهل خاندان او قرباء یو ځای ښخول مستحب دي .

## د نبي کریم ﷺ او یارانو قبرونه

﴿۱۶۲۰﴾: وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْتُ يَا أُمَّاهُ

د حضرت قاسم بن محمد رضي الله عنه څخه روایت دئ چې زه د حضرت عائشې رضي الله عنها په خدمت کي حاضر سوم او عرض مي وکړ چې ای مورجاني !

اكْشِفِي لِي عَنْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَاحِبَيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا

زما لپاره د رسول الله ﷺ او د هغه د دواړو ملګرو یعني ابوبکر صدیق رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه قبر (یعني دروازه) خلاصه کړه،

فَكَشَفَتْ لِي عَنْ ثَلَاثَةِ قُبُورٍ لَا مُشْرِفَةٍ وَلَا لَاطِئَةٍ مَبْطُوحَةٍ بِبَطْحَاءِ الْعَرْصَةِ

الْحَمْرَاءِ . رواه ابوداؤد

حضرت عائشې ﷺ د حجرې دروازه خلاصه کړه ما درې قبرونه وليدل چې نه لوړ وه او نه ښيخې د مځکې سره برابر پر هغو د مدينې د ميدان د شاوخوا سرې شګې پرتې وې . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۴۹، رقم: ۳۲۲۰.

**د لغاتو حل**: (مبطوحة): اى ملقاة فيها البطحاء وهو الحصى الصغار. (شګې ورياندې اچول).
(العرصة): كل بقعة بين الدور واسعة ليس فيها بناء.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ ، حضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ قبرونه د بي بي عائشې په حجره کې وه تر څو پورې چې دروازه خلاصه سوه په هغه کې پرده زړيدل، کله چې به يو سړي د قبرونو د زيارت مشرف کيدل غوښته نو د پردې په پورته کولو سره به دننه تلی .

﴿۱۶۲۱﴾: وَعَنِ الْبَرَّاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت براء بن عازب ﷺ څخه روايت دئ چې موږ د رسول الله ﷺ سره ولاړو

وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ وَلَمْ يُلْحَدْ بَعْدُ

د يو انصاري په جنازه کې ، قبر ته ورسيدلو نو څرګنده سوه چې اوس لا هغه تيار سوی نه وو ،

فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَجَلَسْنَا مَعَهُ . رواه ابوداؤد والنسائي وابن ماجة وزاد في آخره كان على رؤسنا الطير .

رسول الله ﷺ مخ پر قبله کښېنستئ او موږ د رسول الله ﷺ سره کښېنستو . ابوداؤد او نسائي . د ابن ماجه په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې موږ داسې پټه خوله ناست وو لکه زموږ پر سرو چې مرغان ناست وه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۵۴۶، رقم: ۳۲۱۲، والنسائي ۴\۷۸، رقم: ۲۰۰۰، وابن ماجه ۱\۴۹۴، رقم: ۱۵۴۹.

**تشريح** : د (باب مايقال عند من حضره الموت) په دريم فصل کې هم دا حديث په تفصيل سره نقل سوی دی دلته د حديث څخه يوازې د خاموشي ناسته مراد ده .

## د مړي سپکاوی کول منعه دي

﴿۱۶۲۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَسْرُ عَظْمِ الْمَيِّتِ كَكَسْرِهِ حَيًّا. رواه مالك و ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د مړي هډوکي ماتول داسي دي لکه د ژوندي انسان هډوکي ماتول. مالک، ابوداؤد، ابن ماجه.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱۱/۲۳۸، رقم: ۴۵، وابوداؤد ۵۴۳/۳، رقم: ۳۲۰۷، وابن ماجه ۵۱۶/۱، رقم: ۱۶۱۶.

**تشريح**: په دې ارشاد کې دې ته اشاره ده چې څرنګه د ژوندي سړي تحقير او بې عزتي ممنوع ده همداسي د مړي تحقير او سپکاوئ هم ممنوع دی څرنګه چې ژوندی سړی تکلیف او ارام محسوسولای سي همداسي مړی هم تکلیف او ارام محسوسوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د لور پر وفات د رسول الله ﷺ اوښکي

﴿۱۶۲۳﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ شَهِدْنَا بِنْتَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُدْفَنُ

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دئ چې موږ د رسول الله ﷺ د لور بي بي ام کلثوم رضي الله عنها په ښخولو کي ګډون وکړ،

وَرَسُولُ اللّٰهِ ﷺ جَالِسٌ عَلَى الْقَبْرِ فَرَأَيْتُ عَيْنَيْهِ تَدْمَعَانِ فَقَالَ هَلْ فِيكُمْ

رسول الله ﷺ د قبر سره ناست وو او د سترګو مبارکو څخه يې اوښکي رواني وې، رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي داسي څوک سته

مِنْ أَحَدٍ لَمْ يُقَارِفُ اللَّيْلَةَ فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ أَنَا قَالَ فَانْزِلْ فِي قَبْرِهَا فَنَزَلَ فِي قَبْرِهَا. رواه البخاري

چې هغه نن شپه د خپلي بي بي سره صحبت نه وي کړی، ابو طلحه ﷺ وویل: زه یم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د هغې قبر ته کښته سه نو هغه هم کښته سو. بخاري.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري)، ۳\۱۵۱، رقم: ۱۲۸۵.

**تشريح** : رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه د خپلو ښځو سره د صحبت نه کولو په باره کي ځکه پوښتنه وکړه چي که څه هم د خپلو ښځو سره صحبت ممنوع نه دی مگر په نه کولو کي د ملائکو سره مشابه کيږي نو رسول الله ﷺ وغوښتل چي کوم سړي نن شپه صحبت نه دی کړی او همداسي هغه د ملائکو مشابه وي هغه دي د بي بي ام کلثوم ﷞ قبر ته کښته کړي .

اوس دلته يو اشکال دا پيدا کيږي چي حضرت ابوطلحه ﷛ بي بي ام کلثوم ﷞ قبر ته کښته کړه چي د هغه لپاره پردی او غير محرم وو د دې اشکال توجيه داده چي دا خو د هغه د خصوصياتو څخه وو چي رسول الله ﷺ هغه ته بطور خاص قبر ته د کښته کولو حکم ورکړ يا همداسي رسول الله ﷺ په دې اړه د جواز خوا ته اشاره وفرمايل .

## د ښځي مړی دي خلک په قبر کي واچوي

محقق علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي د ښځي مړی په قبر کي د اېښودلو يا راکښلو کار دي سړي وکړي څرنگه چي ښځي ته د هغې په ژوند کي د يو پردي سړي د ضرورت په وخت کي داسي مسه کول جائز دی چي په مينځ کي جامه وغيره حائل وي همداسي مړه ښځه هم په وخت د ضرورت کي پردي سړي ته مسه کول جائز دی کله چي يوه ښځه مړه سي او د هغه څوک محرم نه وي نو قبر ته دي د هغې همسايه ور کښته کړي کله چي نيک او صالح ضعيف موجود نه وي نو بيا هغه همسايه ځوان دي قبر ته ور کښته کړي چي نيک او صالح وي هو که محرم موجود وي که څه هم هغه د شيدو په خاطر محرم وي نو هغه دي و قبر ته کښته کړي .

که څه هم د مخکني حديث په باره کي دا اشکال پيدا وي چي علماء خو دا وائي چي د ښځي د مړي په قبر کي د کښته کولو لپاره خاوند او محارم اولی دي نو بي بي ام کلثوم ﷞ حضرت عثمان ﷛ يا خپله رسول الله ﷺ قبر ته ولي نه ور کښته کړ، نو د دې جواب دادی دا احتمال دی چي هغه وخت رسول الله ﷺ او حضرت عثمان ﷛ ته څه عذر پيښ سوی وو ځکه نه خو رسول الله ﷺ قبر ته ور کښته سو او نه حضرت عثمان ﷛ .

## د عمرو بن عاص وصيت

﴿۱۶۲۴﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ لِابْنِهِ وَهُوَ فِيْ سِيَاقِ الْمَوْتِ إِذَا أَنَا مُتُّ

د حضرت عمرو بن العاص ﷛ څخه روايت دئ چي هغه خپل زوی ته د زکندن په حالت کي وويل : کله چي زه مړ سم

فَلَا تَصْحَبْنِي نَائِحَةٌ وَلَا نَارٌ فَإِذَا دَفَنْتُمُونِي فَشُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ شَنًّا ثُمَّ أَقِيمُوا

نو زما د جنازې سره دې نه څوک غم کونکې وي او نه دې اور وي، کله چې تاسو ما ښخ کړئ نو پر ما کرار کرار خاوره اچوئ، د ښخولو وروسته زما د قبر سره دومره انتظار سئ

حَوْلَ قَبْرِي قَدْرَ مَا تُنْحَرُ جَزُورٌ وَيُقْسَمُ لَحْمُهَا حَتَّى أَسْتَأْنِسَ بِكُمْ وَاعْلَمَ مَاذَا أُرَاجِعُ بِهِ رُسُلَ رَبِّي . رواه مسلم

په څومره وخت کې اوښ حلالېدای سي او د هغه غوښې ويشل کېدای سي څکه زه ستاسو له کبله ارام تر لاسه کوم او په دې پوه سم چې د خپل پروردګار ملائکو ته څه جواب ورکوم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۱۳/۱ - ۱۱۲، رقم: ۱۹۲ - ۱۲۱.

**تشريح** : د جاهليت په زمانه کې دا رواج وو چې د لويې او ريا په توګه د مړي سره به يې اور اخيستی چې د دې په ذريعه خوشبو وغيره ولګوي يا څه بل کار ځيني واخيستل سي په شريعت کې د دې څخه منعه فرمايل سوې ده څکه حضرت عمرو بن عاص ﷺ دا وصيت وکړ چې زما د جنازې سره دې غزلې نه ويل کيږي چې دا يو غير اسلامي طريقه ده او نه دې اور وي چې دا هم د جاهليت د زمانې يوه نښه ده .

د دې څخه دا معلومه سوه چې د جنازې سره ګرېتې لګول په درختو او د اسې نورو شيانو باندې څراغان لګول ، او رونه ښېله ضرورته لګول منعه دي .

تر دې چې زه ارام تر لاسه کوم، د دې مطلب دادی چې پر قبر باندې ستاسو دعائې استقامت او د مغفرت ذکر او قرآن کريم ا استغفار او ايصال ثواب په وجه د سوال او جواب په مرحله کې په اسانې سره تيرسم او په قبر کې د الله تعالی د رحمتونو سره وصل سم د ابوداود د په يوه روايت کې نقل دي رسول الله ﷺ چې به د يوه مړي د ښخولو څخه فارغه سو نو د هغه د قبر سره به ودريدی او صحابه ته به مخاطب سو او ورته وه به يې فرمايل د خپل ورور استغفار وغواړئ او د ده لپاره دعائې استقامت او اثبات وغواړئ څکه چې دا وخت د ده سره سوال او جواب کيږي .

## په ښخولو کې تلوار کول

﴿۱۶۲۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دئ چې ما د سول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

يَقُوْلُ إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوْهُ وَأَسْرِعُوْا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ

چي فرمايل يې : هر كله چي په تاسو كي يو څوک مړ سي نو هغه مه زنډوئ بلكه ژر يې قبر ته ورئ او پكار دي چي د ښخولو وروسته د هغه سر ته

فَاتِحَةُ الْبَقَرَةِ وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان . وقال : والصحيح أنه موقوف عليه

لومړی سورة بقرة (تر مفلحون پوري) وويل سي او د پښو خــوا ته يې د سورة بقرة آخري آياتونه وويل سي (يعني د آمن الرسول څخه تر پايه پوري) مرقاة .

**تخريج** : البيهقي في شعب الايمان ١٦١٧، رقم: ٩٢٩۴.

**تشريح** : هغه بندي مه ساتئ يعني بغير د څه عذره د مړي په ښخولو كي ځنډ مه كوئ مگر څومره چي كيداى سي ژر تر ژره مړی د دنيا اخري ارام گاه يعني قبر ته وررسوئ علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمائي كله چي يوسی مړ سي نو د هغه په كفن وركولو او ښخولو كي ځنډ مه كوئ د ( فلا تجلسوا ) وروسته جمله ( و اسرعوا به ) يا خو د دې څخه د مخكي جملې د تاكيد په توگه راوړل سوې ده څرنگه چي په ترجمه كي ښكاره سوه يا بيا د دې جملې څخه دې خوا ته اشاره فرمايل كيږي چي كله جنازه په اخستو سره روان سي نو په چابكتيا سره تلل سنت دي يعني جنازه په اخستو سره دي په درميانه تگ سره ځي نه خو منډې وهل پكار دي او نه بالكل كرار تلل پكار دي .

## د ثواب لېږلو فضيلت

حضرت امام بن حنبل رحمة الله عليه فرمائي كله چي تاسو هديرې ته ولاړسئ نو هلته سورة فاتحه قل هو الله احد او معوذتين په ويلو سره د هغه ثواب اهل هديرې ور وبخښئ د ثواب رسولو لپاره قبرونو ته يعني د مړي لپاره خو دا مقصود دی چي هغه ايصال ثواب او دعائي مغفرت او داسي نورو څخه فائده حاصله كړي او قبر ته د تلونكي لپاره دا بهتره ده چي هلته په تلو سره عبرت حاصل كړي .

د حضرت علي ﷺ څخه بطريق مرفوع روايت دی چي كوم سړی هديرې ته ولاړ سي او هلته قل هو الله احد يوولس واره په ويلو سره د هغه ثواب اهل قبر ته وروبخښي نو هغه ته په هديرې

کي د ښځ سوي مړو د شمير په برابر ثواب ورته حاصليږي.
حضرت ابوهريره ﷛ روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم سړی چي هديرې ته ولاړ سي او سورة فاتحه، قل هو الله احد، او الهکم التکاثر په ويلو سره دا عرض وکړې چي ای الله ما ستا د کلام پاک څخه چي دا وخت څه ويلي دي د هغه ثواب په دې هديرې کي د ښځ سوو مومنانو خلکو او ښځو ته رسوم او په هديرې کي ښخ سوي مړي نر او ښځي د هغه ويونکي لپاره الله تعالی ته شفاعت کونکي سي.
حضرت حماد مکي رحمة الله عليه خپله يوه واقعه بيانوي وايي چي يوه شپه زه د مکې هديرې ته ورسيدم او هلته سر په اينښودو سره بيده سوم ناڅاپه په خوب کي څه وينم چي مړي په بيلو بيلو حلقو کي ناست دي ما وويل ايا قيامت قائم سوی دی چي تاسو ټول د قبرونو څخه راوتلي ياست هغوی وويل يا مګر زموږ د ورونو څخه يوه سړي قل هو الله احد په ويلو سره ثواب يې موږ ته رابخښلي دي نو موږ خلک د يوه کال څخه دلته ناست يو هغه ثواب په خپلو کي تقسيمو و.
حضرت انس ﷛ روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل کوم سړی چي هديرې ته ولاړ سي او هلته د ايصال ثواب په غرض سورة ياسين تلاوت کړي نو الله تعالی د هديرې په عذاب کي کمي کوي او هغه سړي ته په هديرې کي د ښخ سوو مړو د شمير په اندازه نيکۍ ورکوي.

## د حضرت امام شافعي رحمة الله عليه قول

علامه سيوطي رحمة الله عليه چي شافعي المذهب دی په شرح الصدور کي ليکلي دي دا مسئله مختلف فيه ده چي قرآن کريم په ويلو سره که د دې ثواب مړي ته وروبخښل سي نو ايا هغه ثواب ورته رسيږي که نه جمهور سلف يعني صحابه رضي الله عنهم او تابعين رحمة الله عليهم د مخکي زمانې علماء او درې سره امامان خودا وائي چي مړي ته د دې ثواب رسيږي خو امام شافعي رحمة الله عليه په دې اړه اختلاف لري.
بيا د دې وروسته سيوطي رحمة الله عليه د امام شافعي رحمة الله عليه د دلائلو څو جوابونه په ليکلو سره دا خبره ثابته کړې ده که يو سړی د خپل بدني اعمال او عباداتو ثواب لکه لمونځ روژه او د قرآن کريم تلاوت او داسي نور يو مړي ته وروبخښي نو هغه مړي ته د هغه ثواب رسيږي په دې اړه د نور تحقيق لپاره په شرح الصدور کي يا په مرقات کي تاسو کتلای سئ.

## بي بي عائشه ﷞ او دورور قبر

﴿۱۶۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ بِحُبْشِيٍّ

د حضرت ابو مليكة ﷺ څخه روايت دئ چي كله عبدالرحمن بن ابوبكر ﷺ په حبشي (مقام) كي وفات سو

وَهُوَ مَوْضِعٌ فَحُمِلَ إِلَى مَكَّةَ فَدُفِنَ فِيهَا فَلَمَّا قَدِمَتْ عَائِشَةُ أَتَتْ قَبْرَ عَبْدِ

نو د هغه مړی مكې ته راوړل سو او ښخ كړل سو ، كله چي حضرت عائشة (رض) د حج لپاره مكې ته راغلل نو د خپل ورور

الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ فَقَالَتْ وَكُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيمَةَ حِقْبَةً مِنَ الدَّهْرِ حَتَّى

عبدالرحمن بن ابوبكر قبر ته راغلل او دا شعر يې وو ايه : (ژباړه) : موږ دواړه خو په كراره كراره په جذيمه كي د دوو همنشينانو په ډول وو چي تر ډيره وخته پوري د يو بل څخه بيل سو

قِيلَ لَنْ يَتَصَدَّعَا فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّي وَمَالِكًا لِطُولِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعًا ثُمَّ

تر دې چي دا وويل سول چي دوی به هيڅكله نه بيليږي بيا تر ډيره وخته پوري د يو ځای اوسيدو څخه وروسته بيل سو نو داسي ښكاريدو لكه چي يو ځای مو شپه هم نه وي تيره كړې ) بيا

قَالَتْ وَاللَّهِ لَوْ حَضَرْتُكَ مَا دُفِنْتَ إِلَّا حَيْثُ مُتَّ وَلَوْ شَهِدْتُكَ مَا زُرْتُكَ. رواه الترمذي

حضرت عائشې (رض) وفرمايل : په الله دي مي قسم وي كه زه هغه وخت ستا سره موجود وای كوم وخت چي ته ښخېدلې نو ته به ما هيڅكله دلته نه وای ښخ كړی بلكه هلته به مي ښخ كړی وای كوم ځای چي ته مړ سوی وې او كه ستا د وفات په وخت كي زه ستا سره موجود وای نو ستا ليدني ته به نه راتلای . ترمذي

**تخريج** : سنن الترمذي ۳۷۱/۳، رقم: ۱۰۵۵.

**تشريح** : (حُبْشي) د مكې نژدې د يو كلي نوم وو ځيني حضرات وائي چي دا د مكې د يو ځای نوم دی بي بي عائشه رضي الله عنها د خپل ورور قبر ته ورغله ه هلته هغې د خپل ورور په

فراق كي د حال سره مناسب دوه شعرونه وويل دا شعرونه متمم بن نويره د خپل ورو مالک بن نويره په مرثيه كي ويلي وو چي خالد بن وليد ﷜ د حضرت ابوبكر صديق ﷜ د خلافت په زمانه كي قتل كړی وو ۰

په دې اشعارو كي متمم بن نويره خپل ځان او خپل ورور ته د جذيمه د دوو هم نشينانو سره مشابهت وركړی دی د دې قصه داده په يوه زمانه كي د عراق يو بادشاه وو چي د هغه نوم جذيمه وو په جزيره عرب كي د هغه تصرف وو د دې بادشاه دوه همنشينان وه چي دواړه ورونه وه په هغوی كي د يوه نوم مالک وو او د دوهم نوم عقيل وو دا دواړه څلويشت كاله تر اوږدې مودې پوري د جذيمه بادشاه هم نشين وو دا دواړه ورونه نعمان ووژل، د دوی د قتل واقعه هم ډيره عجيبه ده چي په مقامات حريري كي په تفصيل سره ذكر دي ۰

په هر حال متمم د خپل ورور په مرثيه كي وائي چي زه او ته دواړه هم نشين او په خپلو كي ډېر زيات محبت لرو او موږ د ډېر وخت راهسي يو دبله نه يو جلا سوی څرنګه چي د جذيمه دواړو هم نشينانو په خپلو كي تر دومره اوږدې مودې پوري انتهائي ژور اخلاص او محبت او هم نشيني لرله چي خلكو به د هغوی په ليدو سره ويل دا دواړه به هيڅ كله د يو بله څخه جلا نسي بيا تميم وائي كوم وخت چي مالک مړ سو او همداسي په دواړو كي جدائي وسوه نو اوس د دې باوجود چي موږ دواړه تر يوې اوږدې مودې پوري يو ځای وو خو اوس ماته دا محسوسيږي چي ګويا موږ دواړه د يوې شپې لپاره هم يو ځای نه سو پاته كيدای يعني د محبت او يكجائي هغه اوږده زمانه په څو لمحو كي ختمه سوه يا د يو خوب په شان محسوسيږي ۰

د بي بي عائشې رضي الله عنها الفاظ كه زه ستا د وفات پر وخت ستا سره موجوده وای نو دا وخت به ستا قبر ته نه راتلم د دې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ په هغو ښځو باندی لعنت كړی دی چي قبرونو ته ورځي ځكه زه به دلته قبر ته هيڅ كله نه وای راغلې خو ستا د وفات په وخت ستا زيارت مي نصيب سوی نه وو ځكه مجبورا اوس ستا قبر ته راغلې يم چي زما ستا قبر ته راتلل په اخري وخت كي ستا د ملاقات قائم مقام جوړ سي ۰

**د امام شافعي مستدل**

﴿۱۶۲۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ سَلَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْدًا وَرَشَّ عَلَى قَبْرِهِ مَاءً . رواه ابن ماجة .

د حضرت ابو رافع رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سر د خوا څخه قبر ته کښنته کړل سو او د هغه پر قبر اوبه وپاشل سوې . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۹۵، رقم: ۱۵۵۱.

**تشريح** : مړی په قبر کي د وراچولو په باره کي د حضرت امام شافعي رحمة الله عليه مذهب بيان سوی دی دا حديث د هغوی د دې مذهب دليل دی د حنفيه لخوا څخه د دې جواب دا ورکول سوی دی يا خو دا چي په ضرورت يا بيان جواز باندي محمول دی د دې پوره تفصيل د دې باب په دوهم فصل کي د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د روايت د تشريح په ضمن کي تر لاسه کيدای سي .

## د خاورو اچول

﴿۱۶۲۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ ثُمَّ أَتَى الْقَبْرَ فَحَثَّى عَلَيْهِ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ثَلَاثًا . رواه ابن ماجة .

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر يو جنازه لمونځ ادا کړ بيا د هغه قبر ته ورغلئ او د خاورو درې لپې يې د هغه د سر خوا ته واچولې . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۴۹۹، رقم: ۱۵۶۵.

## قبر ته څنګ وهل منعه دي

﴿۱۶۲۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ قَالَ رَآنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى قَبْرٍ فَقَالَ لَا تُؤْذِ صَاحِبَ هَذَا الْقَبْرِ أَوْ لَا تُؤْذِهِ . رواه احمد.

د حضرت عمرو بن حزم رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زه د يو قبر سره په څنګ وهلو باندي وليدم نو ويې فرمايل : ته دې قبر والا ته تکليف مه ورکوه ، يا يې دا وفرمايل : ده ته تکليف مه ورکوه . احمد .

**تخريج**: ليس هذا الحديث في المنشور من المسند ص ۸۵ حيث قال.....

**تشريح** : د تکليف ايذاء څخه غالبا دا مراد دی چي پر قبر باندي په څنګ وهلو سره ، پر پروتي يا په ناستي سره د صاحب قبر روح خفه کيږي ځکه چي په داسي کولو سره د هغه سپکاوی کيږي .

========

# بَابُ الْبُكَاءِ عَلَى الْمَيِّتِ

## پر مړي باندي ژړا کول

د يو قريب، ملګري او اړوند کس پر دائمي بېلتون باندي رنج او غم او مسرت او افسوس کيدل يوه فطري خبره ده مړ کيدونکی چي څومره زيات نژدې او عزيز وي د غم هغومره زيات وي دا نا ممکنه ده چي خپل عزيز او په متعلقين کي دي څوک مړ سي او څوک دي نه وژاړي سترګي دي اوښکي نه وبيوي او مخ دي د درد او غم تصوير جوړ نه کي بيا د دې فطري رنج غم دريم رخ د غم اظهار دی اوښکي بيونکی سترګي د هغه کيفيت کوي چي پر زړه باندي د جدائي د احساس تور پټو وغوړوي او پر مخ باندي د رنج او غم اوريدونکي وريځي د هغه د جذباتو اظهار کوي کوم چي په رګ رګ کي د دائمي فرق سبب ګرځي اسلام د ژوند په هره شعبه کي د ميانه روي لار ښودلې ده او پيغمبر اسلام څه د خوشحالي او څه د غم په هره مرحله باندي د انساني وقار معيار برقرار ساتلی دی نو ځکه د انساني همدردۍ لپاره ددې باب د راوړلو ضرورت وو چي په دې هکله د رسول الله ﷺ مقدس تعليم او عمل څه وو .

## د باب اړوند يو څو احکام او مسائل

د يو چاپر وفات نوحه او چغي وهلو بغير ژړل مکروه نه دي چغي او په نوحه سره ژړل او د مړي زيات او د حقيقت څخه ليري تعريف بيانول څرنګه چي دا د جاهليت د زمانې رواج وو مکروه دی البته د مړي واقعي او حقيقي تعريف بيانول مکروه نه دی .

که يو سړی مړ سي نو د هغه د لواحقينو سره تعزيت کول مستحب او ډير ښه کار دی او د تعزيت مفهوم دا دی چي لواحقينو ته د صبر او سکون نصيحت و سي او هغوی ته تسلي ورکول سي د يوه څخه زيات وار تعزيت دي نه کول کيږي د وفات په دريمه ورځ د مړي په کور کي جمع کيدل خوراک او څښاک کول او نور رسمونه ادا کول په قطعي توګه سره بدعت او حرام دی نه يوازي دا چي په شريعت کي د دې خبري څه حقيقت نسته مګر د مړي د وصيت څخه بغير د هغه مال خرڅول د يتيمانو وارثانو په مال کي تصرف کول بالکل نا جائز ده د قاموس مصنف مجدد الدين په سفر السعادة کي ليکلي دي مخکي د مړي لپاره يوازي دا طريقه وه چي خلک به صرف د جنازې د لمانځه لپاره جمع کيدل خو اوس دا طريقه ورځ او شپه په ټاکلو سره او غير ضروري تکلفات کولو سره قرآن خواني او د ختم وغيره کولو لپاره پر قبر باندي يا په څه بل ځای کي

خلک جمع کول بدعت دی.

د تعزیت لپاره په حجره یا مسجد کي ناسته جائز ده، نقل دي چي کوم وخت د حضرت جعفر، حضرت زید او حضرت ابن رواحه ﷺ په باره کي رسول الله ﷺ ته دا خبر ورسیدی چي دوی درې سره د موته په غزا کي شهیدان سوي دي نو رسول الله ﷺ ډیر زیات په غم سره په مسجد نبوي کي کښېنستی هلته خلک د تعزیت لپاره راتلل او رسول الله ﷺ تعزیت په کولو سره به تلل هو په تاکلو ورځو او په تاریخونو کي د تعزیت هغه طریقه چي وروسته رائج سوه هغه وخت نه وه.

وروستني ډیر علماء لیکي چي د ښخولو وروسته د مړي په کور کي د تعزیت لپاره په خاصه توګه سره جمع کیدل مکروه دي او دا خبره خو سخته مکروه ده چي د مړي اهل عیال یوازي د دې مقصد لپاره د کور پر دروازه کښیني او خلک هلته په جمع کیدو سره تعزیت کوي ځکه چي دا د زمانه جاهلیت طریقه ده په دې اړه صحیح طریقه داده کله چي خلک مړي ښخ کړي نو په خپلو کارو پسي دي ولاړ سي، د مړي اهل او عیال ته پکار ده چي هغوی هم په خپل کاروبار کي اخته سي همداسي د قبر څلور خوا ته حلقه په تړلو سره قرآن ویل مکروه ده.

د مړي د ښخولو وروسته یوازي تر درو ورځو پوري تعزیت کول پکار دي تر درو ورځو زیات تعزیت کول مکروه دي هو که چیري غم ځپونکي موجود نه وي نو بیا چي کله سره ویني هغه وخت دي تعزیت وکړي په دې کي هیڅ کراهت نسته.

د مړي د ښخولو وروسته تعزیت کول د ښخولو مخکي د تعزیت کولو څخه اولی دی خو دا مسئله په هغه صورت کي ده کله چي د مړي په اهل او عیال کي ډیر زیات د رنج او غم اظهار نه وي که اهل او عیال په زیات غم کي اخته وي نو بیا د ښخولو مخکي به تعزیت اولی وي.

په عمومي توګه سره د مړي ټوله اقارب خوا کوچني وي که لویان خلک وي که ښځي د ټولو سره تعزیت کول مستحب دی هو که ښځه ځوانه وي نو د هغې سره دي تعزیت نه کیږي البته د هغې ښځي محرم د هغه سره تعزیت کولای سي.

## د تعزیت پر وخت کوم الفاظ ویل پکار دي؟

مستحب دادی چي کله یو سړی د کور والا سره تعزیت کوي نو د هغوی سره دي صبر او تسلي د دې ډول الفاظ وائي الله تعالی دي مړی په خپل مغفرت او بخشش سره وبخښي د هغه خطاګاني دي معاف کړي پر هغه دي خپل رحمت وکړي پر دي پیښي دي تاسو ټولو ته د صبر توفیق درکړي او تاسو ټولو ته دي د دې مصیبت په بدله کي ثواب درکړي.

د تعزیت بهترین الفاظ هغه دي کوم چي رسول الله ﷺ فرمایلي وه:

| ان الله ما اخذ له ما اعطى وكل شيء عنده باجل مسمى. | پر هغه شي هم د الله تعالى ملكيت دى چي هغه واخست او پر هغه شي باندي هم د هغه ملكيت دى چي هغه وركړى. |
|---|---|

او كه كافر مړ سي او د هغه قريبان مسلمانان وي نو د هغه سره دي تعزيت داسي وكړه سي چي الله تعالى دي تاته ډير زيات ثواب در كړي او تادي په ښه صبر او سكون سره ونازوي او كه مړى مسلمان وي او قريبان يې كافران وي نو هغوى ته دي داسي وويل سي الله تعالى دي مړى په بخشش او په مغفرت سره ونازوي، تاسو ته دي صبر او سكون دركړي او كه مړى او قريبان يې دواړه كافران وي نو تعزيت دي په دې الفاظو سره وكړه سي: الله تعالى دي تاسو ته د دې بدله دركړي او ستاسو په اهل او عيال كي دي د دې كمي نه وكړي.

د غم او احساس په توګه تردرو ورځو پوري خپل كاروبار پريښودل او په كور كښينستل كه څه هم جائز دى مګر د دې پريښودل اولى دي د غم د اظهار پر وخت خلكو ته توري جامې اغوستل د مصيبت پر وخت جامې څيرل ګريوان څيري كول دا ټول شيان منعه دي هو كه ښځي توري جامې واغوندي نو په دې كي هيڅ تاوان نسته.

د چاپر مرګ تر حد زيات ژړا او انګولا كول مثلا مخ او لاسونه تورول، ګرېوان څېرل، مخ وهل، ويښتان شكول، پر سر باندي خاوري اچول، سينه وهل او پر قبرونو باندي اور بلول دا ټول د جاهليت د زمانې رسمونه دي او غلط كار دى ددې څخه منعه كول پكار دي.

په كوم كور كي چي مړى وسي هلته ډوډى پخول او استول هيڅ تاوان نه لري مګر دا ضروري او لازمي ګڼل او د هغه لپاره پور كول ډيره غلطه خبره ده همداسي پر دريمه ورځ خلك په خاصه توګه سره رابلل او ډوډى په خوړل هم بې فائدې كار دى.

دا خبره په خاصه توګه ياد ساتئ چي كوم خلك د دريمي پر نوم كوم خرافات او واهيات حركتونه كوي هغوى په ډيري زياتي ګمراهي كي اخته دي مثلاً د مرګ پر دريمه ورځ داسي انتظامات وكړه سي څرنګه چي په واده يا په كوزدې كي كيږي خلكو ته دعوت وركول كيږي فرش غوړيږي، خېمې درول كيږي، عطرونه تقسيميږي دا ټولي خبري بدعت او ډيري زياتي ګمراه كونكي دي د دې واهياتو او خرافاتو څخه ځان ساتل پكار دي.

په نصاب كي ليكلي دي په كومو ځايونو كي چي دا رسم شروع دى چي د سړي د مرګ په دريمه ورځ خوشبو لګول كيږي هغوى د ښځو سره په مشابهت كي اخته دي ځكه چي ښځي په دريمه ورځ ماتم د ختمولو لپاره خوشبو لګوي نو د دې څخه پرهيز كول پكار دى مګر دا ممانعت د

خوشبو لګولو په وجه نه دی مګر په دې وجه دی چې همداسې هغه وخت ښځو سره مشابهت پيدا کيږي او شريعت د ښځو سره د مشابهت اختيارولو څخه منعه فرمايلې ده.
د تعزيت اداب دا دی چې کله يو سړی د مړي کورته د غم شريکولو لپاره ولاړ سي نو هلته کور والا ته دې سلام وکړي مصافحه دې وکړي د هغوی سره دې ډير زيات تواضع او په نرمي سره دې خبري اترې کوي بې فائدې او زياتې خبرې دې نه کوي مګر يوازې د تسلي او اطمينان او صبر او سکون الفاظ دې ووايي او د خنداګانو او مسخرو څخه دې پرهيز وکړي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نبي کريم ﷺ د خپل زوی پر وفات غم

﴿۱۶۳۰﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ دَخَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې موږ د رسول الله ﷺ سره ولاړو

سَيْفٍ الْقَيْنِ وَكَانَ ظِئْرًا لِإِبْرَاهِيمَ فَأَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِبْرَاهِيمَ فَقَبَّلَهُ

ابو سيف پښ ته، چې د نبي کريم ﷺ د زوی ابراهيم د دائي خاوند وو، نبي کريم ﷺ ابراهيم په غيږ کې واخيستئ مچ يې کړی

وَشَمَّهُ ثُمَّ دَخَلْنَا عَلَيْهِ بَعْدَ ذٰلِكَ وَإِبْرَاهِيمُ يَجُودُ بِنَفْسِهِ فَجَعَلَتْ عَيْنَا

او بوی يې کړی (يعني خپل پزه او خوله يې د هغه پر مخ داسې کښېښودل لکه څوک چې بويوي) د دې پېښې څو ورځې وروسته موږ بيا ابو سيف ته ورغلو ابراهيم په دغه وخت کې پر زکندن وو د هغه په ليدو سره

رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ تَذْرِفَانِ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

د رسول الله ﷺ سترګې په بهېدو پيل سوې، عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله!

وَأَنْتَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ يَا ابْنَ عَوْفٍ إِنَّهَا رَحْمَةٌ ثُمَّ أَتْبَعَهَا بِأُخْرَى فَقَالَ

تاسو هم ژاړئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اې د عوف زويه! دا (اوښکي) رحمت دئ، د دې وروسته د رسول الله ﷺ د سترګو څخه بيا اوښکې رواني سوې رسول الله ﷺ وفرمايل:

ﷺ إِنَّ الْعَيْنَ تَدْمَعُ وَالْقَلْبَ يَحْزَنُ وَلَا نَقُولُ إِلَّا مَا يَرْضَى رَبُّنَا وَإِنَّا بِفِرَاقِكَ يَا إِبْرَاهِيمُ لَمَحْزُونُونَ. متفق عليه

سترګي اوښکي بیوي او زړه غمګین دئ مګر موږ په خپله ژبه سره هغه خبره کوو چي په هغه سره زموږ پروردګار راضي وي، ابراهیمه موږ ستا په بیلتون غمګین یو. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۱۷۲، رقم: ۱۳۰۳، ومسلم ۴\ ۱۸۰۷، رقم: ۶۲ - ۲۳۱۵.

**د لغاتو حل:** (القَين): الحداد (پښ)، ظِئرا: اى زوج مرضعة ابراهيم عليه السلام.

**تشريح** : د ابوسیف نوم براء وو او د هغه د ښځي نوم خوله بنت منذر وو چي انصاريه او د رسول الله ﷺ د زوئ حضرت ابراهيم ﷺ دائي وه د هغوی کور يې د کار په لحاظ درولی وو حضرت ابراهيم ﷺ يوازي د شپاړلس يا اوولس مياشتو وو چي په حق ورسېدی، په دې حديث کي د هغه د ناروغي او د زکندن د حالت بيان دی. رسول الله ﷺ د هغه د دائي کورته ورغلی او هغه غيږ کي په اخستو سره مينه محبت يې ورسره وکړ او هر کله چي د هغه اخري وخت يې وليدی نو په ژړا سو په دې وجه حضرت عبدالرحمان بن عوف عرض وکی د دې ډول زړه نرمونکي وختونو باندي خلک خو ژاړي خو ستاسو د عظمت شان او د کمال مغفرت څخه دا خبره ليري ده چي تاسو دي هم وژاړئ د دې جواب رسول الله ﷺ دا ورکړی چي دا رحمت دی يعني زما سترګي د بې صبري په وجه اوښکي نه بيوي څرنګه چي ته ګنې مګر حقيقت دا دی چي بچی په دې حالت کي په ليدو سره د رحم جذبه راپورته سي چي د اوښکو په شکل کي د سترګو څخه بهيږي.

زړه غمجن دی، په دې کي دې ته اشاره ده چي کوم خلک په داسي وختونو کي غمجن نه وي او د هغه زړه غم نه محسوسوي نو د هغه په سينه کي لړزېدونکی زړه نسته مګر د ډبري يوه ټوټه ده کله چي د سترګو مخکي د ځيګر د ټوټې ساه خېژي پر داسي نازک وخت باندي سترګي اوښکي نه بيوي نو دا صبر او ضبط نه دی مګر د احساس محبت نشته والی دی نو دا حال يعني غمجن کيدل د اهل کمال په نزد کامل تر دی په نسبت د دې شيانو چي د بچي مرګ واقع سي او پر مخ باندي د بشاشت او اطمينان اثار را ښکاره سي.

## د لمسي پر مرګ د رسول الله ﷺ اوښکي

﴿۱۶۳۱﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ ابْنِ زَيْدٍ قَالَ أَرْسَلَتْ ابْنَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د نبي كريم ﷺ لور بي بي زينب نبي كريم ﷺ ته د يو سړي په ذريعه دا پيغام وليږئ چي

إِلَيْهِ إِنَّ ابْنًا لِي قُبِضَ فَأْتِنَا فَأَرْسَلَ يُقْرِئُ السَّلَامَ وَيَقُولُ إِنَّ لِلّٰهِ مَا أَخَذَ وَلَهُ

زما د زوى ساه خيژي تاسو تشريف راوړئ ، رسول الله ﷺ په جواب كي د سلام څخه وروسته وفرمايل : كوم شى چي خداى واخلي هغه د خداى دئ

مَا أَعْطَى وَكُلٌّ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ تُقْسِمُ

او كوم شى چي هغه وركړي هغه هم د هغه دئ او د هغه سره د هريو شي وخت ټاكلئ دئ نو ته صبر كوه او د ثواب غوښتونكې سه ، بي بي زينب دوهم وار سړى وليږئ او رسول الله ﷺ ته يې د تشريف راوړلو لپاره قسم وركړ ،

عَلَيْهِ لَيَأْتِيَنَّهَا فَقَامَ وَمَعَهُ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَمَعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ

نو رسول الله ﷺ سمدستي را ولاړ سو دا وخت سعد بن عبادة ، معاذ بن جبل ، ابى بن كعب،

وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَرِجَالٌ فَرُفِعَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ الصَّبِيُّ وَنَفْسُهُ تَتَقَعْقَعُ قَالَ

زيد بن ثابت او نور صحابه كرام هم ورسره وه، كوچني رسول الله ﷺ ته راوړل سو او د رسول الله ﷺ په غيږ كي وركړل سو دغه وخت د زكندن حالت وو ،

حَسِبْتُهُ أَنَّهُ قَالَ كَأَنَّهَا شَنٌّ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ فَقَالَ سَعْدٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا هٰذَا

د هغه په ليدو سره د رسول الله ﷺ د ستركو څخه اوښكي رواني سوې ، سعد رضي الله عنه وويل: اې د الله رسوله ! دا څه دي ؟

فَقَالَ هٰذِهِ رَحْمَةٌ جَعَلَهَا اللّٰهُ فِي قُلُوبِ عِبَادِهِ وَإِنَّمَا يَرْحَمُ اللّٰهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَاءَ. متفق عليه

رسول الله ﷺ وفرمایل دا د خدای رحمت دئ چي الله ﷻ د خپلو بندگانو په زړو کي پیدا کړئ دئ او الله ﷻ په خپلو بندگانو کي پر هغه چا رحم کوي چي هغه مهربانه وي . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري)۳\۱۵۰،۱، رقم: ۱۲۸۴، ومسلم ۲\۶۳۵، رقم: ۱۱- ۹۲۳.

**د لغاتو حل**: (تتقعقع): ای تضطرب ولاتلبث علی حال واحدة (بې تابي کول).

**تشریح** : حضرت سعد ؓ دا گمان وکړی چي د ژړا ټول ډولونه حرام او مکروه دي او رسول الله ﷺ دا وخت سهوا ژاړي ځکه رسول الله ﷺ هغه خبر کړ چي داسي ژړا چي یوازي سترگي اوښکي بیوي حرام او مکروه نه دی مگر داسي ژړا خو د رحم د جذبې علامت دی چي په زړه کي راپورته کیږي نو په چغو سره ژړل کړېوان شکول او مخ وهل حرام او منعه دي .

## په چغو ژړل

﴿۱۶۳۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اشْتَکٰی سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ شَکْوٰی لَهٗ فَأَتَاهُ

د حضرت عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دئ چي سعد بن عبادة ؓ ناروغ سو ،

النَّبِيُّ ﷺ یَعُوْدُهٗ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ وَعَبْدِ اللهِ

نبي ﷺ د هغه پوښتني ته تشریف راوړئ ، عبدالرحمن بن عوف، سعد بن ابي وقاص، او عبدالله

بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَیْهِ فَوَجَدَهٗ فِي غَاشِیَةِ أَهْلِهٖ فَقَالَ

بن مسعود هم ورسره وه ، کله چي رسول الله ﷺ را ورسیدئ نو هغه د بې هوشي په حالت کي وو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه

قَدْ قَضٰی قَالُوْا لَا یَا رَسُوْلَ اللهِ فَبَکَی النَّبِيُّ ﷺ فَلَمَّا رَأَی الْقَوْمُ بُکَاءَ النَّبِيِّ

ایا وفات سو ؟ صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! نه، د دې په اوریدو سره رسول الله ﷺ ته ژړا ورغلل ، صحابه کرامو چي رسول الله ﷺ په ژړا ولیدئ

ﷺ بَکَوْا فَقَالَ أَلَا تَسْمَعُوْنَ إِنَّ اللهَ لَا یُعَذِّبُ بِدَمْعِ الْعَیْنِ وَلَا بِحُزْنِ الْقَلْبِ

نو هغوی هم په ژړا سول، رسول الله ﷺ وفرمایل : واورئ الله تعالی د سترگو په جاري کېدو عذاب نه ورکوي او نه د زړه په غمگین کېدو ،

وَلَكِنْ يُعَذِّبُ بِهٰذَا وَأَشَارَ إِلَى لِسَانِهِ أَوْ يَرْحَمُ وَإِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ. متفق عليه

مګر الله تعالی له دې کبله عذاب ورکوي او رحم هم کوي او رسول الله ﷺ ژبې ته اشاره وکړه، البته مړي ته د هغه د کورنۍ د ژړا په سبب عذاب ورکول کیږي (یعني په لوړ آواز سره ژړا او په چغو چغو سره ژړل). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۷۵، رقم: ۱۳۰۴، ومسلم ۲\۶۳۶، رقم: ۱۲- ۹۲۴.

**تشريح**: د حدیث د اخري الفاظو مطلب دادی که دومره اهل او عیال او د هغه کور والا په لوړ اواز یعني په چغو چغو ژاړي یا نوحه کوي نو هغه مړي ته عذاب کیږي د دې مسئلې تحقیق به په دریم فصل کې انشاء الله راسي.

﴿۱۶۲۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ. متفق عليه

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه څوک زموږ څخه نه دئ څوک چي مخ ووهي، ګریوان څیري کړي او د جاهلیت د زمانې په ډول په چغو چغو ژاړي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۶۳، رقم: ۱۲۹۴، ومسلم ۱\۹۹، رقم: ۱۶۵- ۱۰۳.

**تشريح**: دلته مخ وهونکی او ګریوان شلونکي لپاره چي کومه سزا فرمایل سوې ده دا سزا د هغه سړي لپاره هم ده چي د سر څخه پوړنۍ یا پټو وغورځوي یا د سر او بږیري وریښتان وشکوي ځکه چي د دې ټولو شیانو یو حکم دی.

﴿۱۶۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى قَالَ أُغْمِيَ عَلَى أَبِي مُوسَى فَأَقْبَلَتْ

د حضرت ابو بردة بن ابو موسی رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ابو موسی رضي الله عنه بې هوشه سو

امْرَأَتُهُ أُمُّ عَبْدِ اللهِ تَصِيحُ بِرَنَّةٍ قَالَا ثُمَّ أَفَاقَ قَالَ أَلَمْ تَعْلَمِي وَكَانَ يُحَدِّثُهَا

نو د هغه ښځه ام عبد الله په چغو چغو ژړا پیل وکړ، کله چي ابو موسی په هوش کې سو نو هغه ورته وویل: ایا تا ته څرګنده نه ده

أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَنَا بَرِيءٌ مِمَّنْ حَلَقَ وَسَلَقَ وَخَرَقَ. متفق عليه و لفظه للمسلم.

چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي زه د هغه چا څخه بېزاره يم چي په مصيبت کي د سر وربښتان شکوي، په چغو چغو ژاړي او جامې شکوي. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري)، ۳\ ۱۶۵، رقم: ۱۲۹۶، ومسلم ۱\ ۱۰۰، رقم: ۱۶۷- ۱۰۴.

**د لغاتو حل:** (حلق): اى حلق شعره لاجل المصيبة (د غمه سر خريل)، صلق: اى رفع صوته بالبکاء (په چغو ژړل). خرق: اى قطع ثوبه (جامې شلول).

**تشريح:** د جاهليت په زمانه کي به دا ډول افعال د ښځو څخه کيدل نو مسلمانانو ته د دې خبرو څخه پرهيز کول پکار دي ځکه چي رسول الله ﷺ د داسي خلکو څخه بيزاره کيږي کوم چي په دې غلط او باطلو شيانو کي اخته وي.

## د فرياد کولو بدي

﴿۱۶۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو مالک اشعري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يَتْرُكُونَهُنَّ الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ وَالطَّعْنُ

د جاهليت د زمانې څلور شيان دي چي زما امت به يې نه پريږدي: ۱: په حسب فخر کول. ۲: طعنه ورکول

فِي الْأَنْسَابِ وَالْاِسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ وَالنِّيَاحَةُ وَقَالَ النَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ

په نسب ۳: د ستورو څخه او به غوښتل ۴: وير او ماتم کول، که وير کونکې ښځه د مرګ څخه مخکي توبه ونه باسي

مَوْتِهَا تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ. رواه مسلم

نو د قيامت په ورځ به په داسي حال کي را پورته سي چي د هغې پر بدن به د قطران او خارش قميص وي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\ ٦۴۴، رقم: ۲۹- ۹۳۴.

**تشریح**: حسب هغو عادتونو ته وایي که په انسان کي موجود وي نو د هغه د موجودګي په وجه ځان بهتر او ښه وګڼي لکه شجاعت، مېړانه، فصاحت او داسي نور.

پر نسب باندي د طعن کولو مطلب دادی چي د یوه سړي په نسب کي داسي عیب پیدا کړي چي د فلاني سړي پلار خراب وو او د فلاني سړي نیکه د کمي درجې وو، په حسب فخر کولو او پر نسب باندي د طعن کولو په وجه خپل تعظیم او لوئ والي او د نورو خلکو سپکاوئ لازمیږي ځکه دا دواړه شیان خراب دي هو د اسلام او د کفر د امتیاز پر بناء دي په دې دواړو شیانو کي هیڅ تاوان نسته یعني که یو مسلمان د خپل ایمان او اسلام په وجه خپل ځان بزرګ او لوئ وګڼي او یو کافر د هغه د کفر په وجه حقیر او کمتر وګڼي نو دا جائز دی د ستورو په ذریعه اوبه غوښتلو څخه مراد دادي چي د ستورو پر تاثیر باندي د باران امید ساتل یعني دا عقیده ساتل چي فلانی ستورئ په فلاني منزل کي داخل سي نو باران به کیږي.

په دې اړه مسئله داده چي دا عقیده ساتل چي د فلاني ستوري فلانی منزل کي د داخلیدو په وجه به باران کیږي حرام دی مګر کله چي باران وي نو دا ویل واجب دی چي الله تعالی یوازي په خپل فضل او کرم سره موږ په باران اوبه کړو.

د نوحه کولو مطلب دادی چي یو سړی مړسي او پر هغه باندي واویلاء وکړه سي او د مړي ښه خصلتونه په ژړا ژړا کي داسي بیان کړه سي چي هغه څومره زړه ور وو هغه داسي وو او هغه داسي وو.

قطران د تار کول په ډول د یوې دوائي نوم دی چي تور او بدبویه داره وي او ابهل یعني د هغي اوني څخه چي هغه ته هوبیر هم وائي د هغه څخه تیل وځي دا د هغه اوښ پر بدن موږي چي هغه خارښ سي په دې کي حرارت او ګرمي زیاته وي ځکه هغه د اوښ خارش سوځوي د دې یو خاص اثر دا هم دی چي د اور اثر ډیر ژر قبلوي او ژر لنده کیږي د ارشاد د دې اخري جملې مطلب داسو که نوحه کونکې ښځه د خپل دې بد فعلي په وجه د توبې څخه بغیر مړه سي نو د قیامت په ورځ به د هغې پر بدن خارش مسلط کړه سي یا پر هغه قطران موږي چي د هغه په خارش کي زیات سوزش پیدا سي او هغه زیات تکلیف تر لاسه کوي.

﴿۱٦۳٦﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَأَةٍ تَبْكِي عِنْدَ

د حضرت انس ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د یوې ښځي په خوا کي تیر سو چي پر یو

قبر يې په چغو چغو ژړل،

قَبْرٍ فَقَالَ اتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِي قَالَتْ إِلَيْكَ عَنِّي فَإِنَّكَ لَمْ تُصَبْ بِمُصِيبَتِي وَلَمْ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د الله جل جلاله څخه و بيرېږه او صبر کوه ، هغې ښځې ورته وويل : پر خپل لار څه تا ته زما په ډول ستونزې نه دې رسيدلې،

تَعْرِفْهُ فَقِيلَ لَهَا إِنَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْ بَابَ النَّبِيِّ ﷺ فَلَمْ

هغې ښځې رسول الله ﷺ نه وو پيژندلئ ، بيا چې هغې ته وويل سول چې دا رسول الله ﷺ وو ، نو هغه ښځه د نبي کريم ﷺ دروازې ته راغلل

تَجِدْ عِنْدَهُ بَوَّابِينَ فَقَالَتْ لَمْ أَعْرِفْكَ فَقَالَ إِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى . متفق عليه

او هلته يې چوكيدار و نه ليدئ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره سوه او عرض يې وکړه : ما تاسو نه واست پيژندلی، رسول الله ﷺ وفرمايل : صبر د غم په پيل کې وي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴۸\۳، رقم: ۱۲۸۳، ومسلم ۶۳۷\۲، رقم: ۱۵- ۹۲۶.

**تشريح** : څومره ريښتنی او پر حقيقت باندې مبني قول دی چې کومه خبره وويل سي هغه ته ګوره چې ويو نکی څوک دی پر دې قول عمل نه يوازې دا چې د ربنتيا او نيکۍ لارې روښانه کوې مګر ډير واره جهالت او شرمندګي څخه هم سرې ساتي په دې پيښې نظر واچوه يوه ښځه غلط کار کوي رسول الله ﷺ هغې ته د نيکۍ پر لار د روانولو لپاره څه ارشاد فرمائي هغه ښځه په اتفاقي توګه سره رسول الله ﷺ نه پيژني نه يوازې دا چې د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه مخ اړوي مګر يو غلط جواب هم ورکوي وروسته چې هغې ته معلومه سوه چې دا د خير خبره کوونکي خو د الله تعالى رسول دی نو هغې ته دا احساس وسو چې زه په غلطه يم نو په ځغاستي د رسول په خدمت کې حاضره سوه او د خپلې غلطۍ او پښېمانۍ اقرار يې وکړ .

اوس وګورئ که هغې د دغه عارفانه قول مطابق د رسول الله ﷺ د پيژندلو څخه بغير د رسول الله ﷺ د ارشاد مخکې واطاعت ته سر کښته کړی وای نو نه يوازې دا چې د نيکۍ لار به يې هغه وخت تر لاسه کړې وای مګر وروسته د خجالت او شرمندګۍ څخه به ساتل سوې وای .

د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي کامل او جميل صبر چي پر هغه ثواب حاصليږي هغه دی چي د مصيبت پر وخت وکړه سي کنې په اخر کي خو خپله صبر راځي وروسته که چا صبر وکړئ نو څه صبر يې وکړی ؟

## نوحه کول حرام دی

د پورته ذکر سوو حديثو څخه دا خبره واضحه سوه چي نوحه کول او د مړي ښه خصلتونه په ژړا ژړا کي بيانول او په چغو چغو ژړل مخ وهل ګريوان شکول ويښتان شکول، مخ تورول. پر سر باندي خاوري اچول او داسي نور ټول شيان پر بې صبرۍ باندي دلالت کوي حرام دی.

## د درو اولادو نو مرګ

﴿۱۶۳۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَمُوْتُ لِمُسْلِمٍ ثَلاَثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَيَلِجَ النَّارَ اِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د کوم مسلمان چي درې کوچنيان مړه سي هغه به اور ته نه داخليږي، مګر د قسم پوره کولو لپاره، دا ددې آيت په لور اشاره ده : (وان منکم الا واردها) : يعني قسم دئ په تاسو کي هيڅوک داسي نسته چي په دوږخ کي به داخل نه سي که څه هم د يوې لحظې لپاره وي . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۵۴۱، رقم: ٦٦٥٦، ومسلم ۱۴\۲۰۲۸، رقم: ۱۵۰- ۲۶۳۲.

**تشريح** : د حديث اخري جمله هو د قسم پوره کولو لپاره به ځئ د دې څخه د الله تعالی ارشاد ( و ان منکم الا واردها الاية ) دې خوا ته اشاره ده ګويا په اصل کي دا ايت داسي دی و ان منکم والله الا واردها الاية، قسم مي دي په خدای وي په تاسو کي هيڅ څوک داسي نسته چي په دوږخ کي به داخيل نسي که څه هم هغه د بجلي يا هوا په ډول د يوې لمحې لپاره ولي داخل نسي د دې مطلب دادی چي د دوږخ پورته پر پل صراط قائم کړه سي کافر او خواه نيک وي يا بد يوازي دومره خبره به وي چي څوک بدکار وي هغه به د دې په ذريعه تکليف تر لاسه کوي په دې توګه چي هغه به د پل صراط څخه دوږخ ته راغورځي او نيک کار به هيڅ تکليف نه تر لاسه کوي په دې توګه چي هغه به په دې په تيريدو سره په جنت کي داخل سي نو د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي د کوم مسلمان درې کوچنيان مړه سي هغه به دوږخ ته اچول کيږي هو يوازي د دومري لمحې لپاره نو د هغه دوږخ ته تلل ممکن دي چي د الله تعالی قسم پوره سي او هغه د

مختصر وخت لپاره هم پر پل صراط باندي د تیریدو وقفه ده یعني د دې مطلب دانه دی چي په دوږخ کي به دننه داخل کړه سي او عذاب تر لاسه کي مګر مطلب دادی چي هغه به هیڅ ډول عذاب نه کي ترلاسه او یوازي پر پل صراط باندي تیریدل په دې ایت کي د مذکوره د خول دوږخ مصداق او د الله تعالی د قسم د ریښتیا او پوره کیدو لپاره کافي دی.

اهل عرف په خپل ورځني عرف کي وائي چي ما دا کار د خپل قسم پوره کولو لپاره وکی یعني دا کار مي یوازي په دومره اندازه وکی چي د دې په وجه قسم پوره سي او ښکاره ده چي د هغه لپاره د هغه کار چي ادنی حصه په کمه موده کي تېره سي د هغه قسم پوره کېدو لپاره کافي ده.

﴿۱۶۳۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ

د حضرت ابوهریرة رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د انصارو ښځو ته وفرمایل:

لَا يَمُوْتُ لِإِحْدَاكُنَّ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَتَحْتَسِبَهُ إِلَّا دَخَلَتِ الْجَنَّةَ فَقَالَتِ امْرَأَةٌ

په تاسو کي چي د یو چا درې ماشومان مړه سي او هغه په صبر او شکر سره د ثواب غوښتونکي وي نو په جنت کي به داخل سي، د دې په اوریدو سره په هغو ښځو کي یوې ښځي وویل:

مِنْهُنَّ أَوِ اثْنَيْنِ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ أَوِ اثْنَيْنِ. رواه مسلم و في رواية لهما ثلثة لم يبلغوا الحنث.

اې د الله رسوله! که د چا دوه ماشومان مړه سي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هو، ددوو لپاره هم (دا زیری دئ). مسلم او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي درې ماشومان چي بالغ سوي نه وي.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴\۲۰۲۸، رقم: ۱۵۱- ۲۶۳۲.

**تشریح**: د ثواب طلبګاره وي د دې مطلب دادی کله چي الله تعالی د چا درې بچې ځان ته وبولي نو هغوی دي د هغوی په مړه کیدو په چغو نه ژاړي مګر د صبر او شکر لمن دي ونیسي د (انا لله و انا الیه راجعون) په ویلو سره د الله تعالی د مرضي او د هغه د مصلحت مخکي دي سر کښته کړي نو هغه به په جنت کي داخله کړه سي.

اوس په دې اړه دوه احتماله دي یا خو به هغه د شروع څخه په غیر عذاب کي په اخته کولو جنت کي داخله کړه سي یا بیا دا چي د هغه د بچو د سفارش وروسته به د جنت د سعادت سره ونازول سي.

د ښځي په عرض کولو د رسول الله ﷺ یا (دوه بچي مړه سي) په باره کي علماء لیکي کله چي رسول الله ﷺ د درو ځامنو په باره کي ارشاد وفرمایه او ښځي د درو د تخصیص د ختمولو د خواهش اظهار وکړ نو د بې نیازه خدای تعالی له خوا څخه فورا د وحي په ذریعه نبي کریم ﷺ ته اطلاع ورکړه که دوه ځامن يې مړه سي نو هم دا سعادت به ورته حاصلیږي یا بیا دا چي رسول الله ﷺ به په دې اړه بطور خاص دعا وغوښتله او د الله تعالی په دربار کي دعا قبوله سوه نو رسول الله ﷺ هغې ښځې ته زیری ورکړ.

په دوهم روایت کي د نابالغ قید ځکه ولګېدی چي د کوچنیانو بچو سره د ښځو ډیر زیات محبت وي د غټو بچانو په نسبت کوچني بچیان خپلي مور ته زیات قریب او محبوب وي ځکه د هغوی په مرګ په طبعي توګه سره ښځو ته ډیر زیات غم او رنځ رسیږي.

## پر مرګ باندي د صبر جزا

﴿۱۶۳۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللهُ تَعَالَى مَا

د حضرت ابو هریرة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله پاک فرمایي: نسته

لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ عِنْدِي جَزَاءٌ إِذَا قَبَضْتُ صَفِيَّهُ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا ثُمَّ احْتَسَبَهُ إِلَّا الْجَنَّةُ. رواه البخاري

زما بنده لره زما څخه جزا هغه وخت چي قبض کړم هغه غوره ده ته په اهل دنیا کي بیا طلب د ثواب وکړی دی په هغه مګر جنت دی. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۴۱، رقم: ۶۴۲۴.

**تشریح**: مطلب دادی چي که د یوه سړي د اهل دنیا څخه څوک عزیز او محبوب لکه اولاد، مور، پلار یا د دوی څخه ماسیوا څوک داسي سړی چي هغه عزیز او محبوب لري وفات سي او هغه پر هغه صبر وکړي نو د هغه د دې صبر پر بناء به الله تعالی هغه ته جنت ورکړي.

د اهل دنیا د قید څخه معلومه سوه که د اهل اخرت څخه څوک عزیز او محبوب وفات سي او په هغه صبر وکړه سي نو تر دې هم زیات سعادت حاصلیږي او هغه دا چي الله تعالی به د هغه څخه ناراضه نه وي او د یوه بنده څخه د الله تعالی راضي کیدل د هغه په حق کي د دنیا او اخرت تر ټولو لوئ سعادت او تر ټولو لوئ فضیلت دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### پر وير كونكو لعنت

﴿۱۶۴۰﴾: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّائِحَةَ وَالْمُسْتَمِعَةَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر وير كونكې او وير اورېدونكي باندي لعنت ويلئ دئ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۴۹۲، رقم: ۳۱۲۸.

**تشريح**: د نوحه كونكي ښځي څخه مراد هغه ښځه ده چي د مړي ښه خصلتونه په ژړا ژړا كي بيان كړي او ځيني حضرات داسي فرمايي چي د مړي سره په زوره زوره چغو وهلو ته نوحه وايي او نوحه (اورېدونكي ښځي) هغه ښځي مراد دي چي د نوحه ويونكي ښځو سره قصدا ناستي وي د هغوی نوحه اوري او د هغوی د نوحې څخه خوند اخلي.

### مؤمن ته په هر حالت كي ثواب

﴿۱۶۴۱﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَجَبٌ لِلْمُؤْمِنِ إِنْ أَصَابَهُ خَيْرٌ حَمِدَ اللهَ وَشَكَرَ وَإِنْ أَصَابَتْهُ مُصِيبَةٌ حَمِدَ

د مؤمن بنده عجيبه حال دئ چي كله خير ورته ورسيږي نو د الله جل جلاله تعريف او شكر ادا كوي او كله چي ستونزه ورته ورسيږي نو هم حمد او شكر ادا كوي

اللهَ وَصَبَرَ فَالْمُؤْمِنُ يُؤْجَرُ فِي كُلِّ أَمْرِهِ حَتَّى فِي اللُّقْمَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى فِي امْرَأَتِهِ.

رواه البيهقي في شعب الإيمان

او هم صبر كونكی اوسي، نو مؤمن ته په دواړو حالتو كي ثواب تر لاسه كيږي تر دې چي كومه ګوله هغه پورته كړي او د خپل بي بي په خوله كي يې واچوي پر دې هم ثواب تر لاسه كوي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۱۱۶، رقم: ۴۴۸۵.

**تشريح** : د دې حديث په ذريعه د مومن فضيلت او د هغه دا امتياز د فخر په توګه بيانيږي چي هغه د ژوند په هره لحظه کي د يوه الله تعالى شکر ګزار وي که هغه ته څه نعمت او راحت حاصل سي نو د الله تعالى تعريف کوي او د هغه شکر اداء کوي او که هغه ته څه مصيبت ور ورسيږي نو بيا هم هغه په ژبه د الله تعالى شکر اداء کوي او د هغه تعريف په بيانولو سره هغه د خپل عبوديت اظهار کوي ځکه الله تعالى مومن ته دا سعادت ورکړی دی او بل دا چي په هر مباح کار باندي ثواب ورکوي په شرط د دې چي د خير او ثواب په نيت هغه کار وکړي يعني مومن که يو مباح کار وکړي که د هغه نيت د خير وي نو هغه ته پر هغه ثواب ورکول کيږي د مثال په توګه که يو سړی د خپلي ښځي په خوله کي ګوله ورکړي او د ګولې پر وخت د هغه نيت دا وي چي زه د دې خپل حق اداء کولو لپاره چي زما پر ذمه دی او د الله تعالى د رضا له خاطره د خپلي ښځي په خوله کي ګوله اچوم نو د هغه دا معمولي مباح کار هم د هغه په حق کي د ثواب په اعتبار يو لوی سعادت ګرځي.

## د مؤمن لپاره دوې دروازې

﴿۱۶۴۲﴾: وَعَنِ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُؤْمِنٍ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر مؤمن لپاره

اِلَّا وَلَهُ بَابَانِ بَابٌ يَصْعَدُ مِنْهُ عَمَلُهُ وَبَابٌ يَنْزِلُ مِنْهُ رِزْقُهُ فَإِذَا مَاتَ بَكَيَا

دوې دروازې وي پر يوه دروازه د هغه اعمال پورته خيژي او پر دوهمه دروازه د هغه رزق را کښته کيږي، هر کله چي مؤمن مړ کيږي نو دواړي دروازې پر هغه ژاړي

عَلَيْهِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ: فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْاَرْضُ. رواه الترمذي

او دا معنا ده د الله پاک ددې ارشاد: (فما بکت عليهم السماء والارض) پر کافرانو باندي آسمان او ځمکي هيڅ ونه ژړل. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۳۵۴، رقم: ۲۲۵۵.

**تشريح** : مطلب دا دی چي يوه دروازه خو هغه ده چي د هغه په ذريعه د مومن نيک اعمال چي پر ځمکه باندي د هغه په عمل نامه کي ليکل سوي دي اسمان ته خيژي او بيا هلته د اعمالو ليکلو په ځای کي دوهم وار په اعمال نامه کي ليکل کيږي، دوهمه دروازه هغه ده چي د هغه په

ذريعه رزق مځکي ته را کښته کيږي او د کوم په نصيب کي چي څومره رزق وي هغومره رسوي نو کوم مؤمن چي مري نو دواړي دروازې ژاړي ځکه چي د يوې دروازې څخه نېک اعمال راتلل او د دوهمي دروازې څخه رزق لېږل کېدی نو په دې وجه دواړي دروازې د مؤمن پر انتقال او ددې خوشبختی څخه پر محرومه کېدو ژاړي.

ددغه آيت کريمه څخه دا معلوميږي چي الله تعالی د کافرانو په هکله دا فرمايلي دي چي د هغوی لپاره نه آسمان وژړل او نه هم مځکي او دا چي کله مؤمن مړ سي نو په هغه باندي آسمان او مځکه دواړه ژاړي.

## د اولاد په مرګ ثواب

﴿۱۶۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَهُ فَرَطَانِ مِنْ أُمَّتِي أَدْخَلَهُ اللّٰهُ بِهِمَا الْجَنَّةَ فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ

زما په امت کي چي د يو چا دوه ماشومان مړه سوي وي نو الله تعالی دهغوی له کبله هغه په جنت کي داخلوي، بي بي عائشې رضي الله عنها پوښتنه وکړه او که د يو چا يو کوچني مړ سوئ وي،

مِنْ أُمَّتِكَ قَالَ وَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ يَا مُوَفَّقَةُ قَالَتْ فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَطٌ مِنْ

ستا په امت کي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: (تاته دي د نيکی توفيق درکړل سي) د چا چي يو کوچني مړ سوی وي د هغه لپاره هم دا حکم دئ، بي بي عائشې بيا پوښتنه وکړه او ستاسو په امت کي چي د يو چا يو کوچني هم نه وي مړ سوئ؟ (د هغه لپاره څه حکم دئ)

أُمَّتِكَ قَالَ فَأَنَا فَرَطُ أُمَّتِي لَنْ يُصَابُوا بِمِثْلِي. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب

رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د خپل امت د کاروان امير يم کومي ستونزي چي ما ته رسيدلي دي هغوی ته نه دي رسيدلي. ترمذي، دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳۷٦/۳، رقم: ۱۰٦۲.

**تشريح**: (فرط) هغه سړي ته وايي چي د قافلې څخه مخکي منزل ته په رسيدو سره د قافلې

والا لپاره د خوراک او څيښاک سامان تيار کړي، دلته په دې حديث کي د فرط څخه مراد هغه کوچني دی چي د بالغ کيدو څخه مخکي وفات سي، داسي ماشوم ته ځکه فرط ويل کيږي چي هغه آخرت ته مخکي په رسيدو سره د خپل مور او پلار لپاره د جنت د نعمتونو بندوبست کوي يعني هغه به د خپل مور او پلار لپاره د الله تعالی څخه په شفاعت کولو سره جنت ته به يې بيايي، د حديث په آخري جملې ( فانا فرط امتي ............الخ ) کي د فرط څخه مړ سوی ماشوم مراد نه دی .

رسول الله ﷺ په دغه وخت کي بي بي عائشې رضي الله تعالی عنها ته د کمال تعلق او د هغه د ذاتي ځانګړتيا، اوصاف او فضائلو له کبله سوفقه په ويلو سره مخاطب کړل چي په مجموعه کي دا د فضل او کمال لقب دی د دې معنی داده چي اې عائشې ! چاته چي د الله تعالی له خوا څخه د خير او د ښو خبرو د پوښتني کولو توفيق ورکړل سوي وي .

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي زه د خپل امت لپاره د منزل امير يم په دې توګه چي زه د دوی څخه مخکي اخرت ته په رسيدو سره به شفاعت کوم او هغوی به جنت ته بيايم ځکه چي د ثواب په اندازه مصيبت او ستونزه وي يعني مصيبت او ستونزه چي څومره سخت وي هغومره ثواب زيات تر لاسه کيږي نو د دې دنيا څخه پورته کيدل د هغوی لپاره دومره لوئ مصيبت او دومره لويه پيښه ده چي د دې برابر هيڅ لويه پيښه نسي کيدای نو زما څخه زما د امت هر فرد به حقيقا او حکما د دې حادثې او مصيبت سره مخامخ کيږي ځکه د کومو خلکو چي کوچني اولاد د وفات کيدو سره د هغوی لپاره د اخرت ذخيره سوې نه وي نو زما د وصال دا پيښه به د هغوی لپاره د پورتني سعادت او زيری په توګه کافي وي .

## د اولاد پر وفات صبر

﴿۱۶۴۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا مَاتَ وَلَدُ الْعَبْدِ قَالَ اللّٰهُ لِمَلَائِكَتِهِ قَبَضْتُمْ وَلَدَ عَبْدِي فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ

هر کله چي د يو مؤمن بنده زوی مړ کيږي نو الله تعالی ملائکو ته فرمايي : تاسو زما د بنده د زوئ روح قبض کړل ؟ هغوی وايي هو،

فَيَقُوْلُ قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ فَيَقُوْلُ مَاذَا قَالَ عَبْدِي فَيَقُوْلُوْنَ

الله تعالى فرمايي : تاسو د هغه د زړه ميوه وشكول، هغوى وايي هو، او الله تعالى پوښتنه كوي زما بنده څه وويل ؟ هغوى ورته وايي :

حَمِدَكَ وَاسْتَرْجَعَ فَيَقُولُ اللّٰهُ ابْنُوا لِعَبْدِي بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَسَمُّوهُ بَيْتَ الْحَمْدِ. رواه احمد والترمذي

ستا .تعريف يې وكړ او انا لله وانا اليه راجعون يې وويل ، الله تعالى فرمايي : زما د بنده لپاره په جنت كي يو كور جوړ كړئ او د هغه نوم بيت الحمد كښيږدئ . احمد ، ترمذي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴۱۱\۴، والترمذي ۳۴۱\۳، رقم: ۱۰۲۱.

**تشريح** : مومن بنده د خپل ځيګر د ټوټې پر وفات د الله رب العزت تعريف او لوئي په بيانولو سره د صبر او شكر لار اختياره كړي ځكه د عبوديت د دې عظيمي جذبې په صله كي هغه ته په جنت كي يو لوئ كور بيت الحمد وركول كيږي .

د دغه كور نوم بيت الحمد ځكه دى چي هغه په مصيبت او پيښي كي د الله تعالى حمد او ثناء او د تسليم په بدله كي وركول كيږي ځكه نو د دې نوم بيت الحمد يعني د حمد او ثناء كور دى .

**ستونزمن ته ډاډ وركول**

﴿۱۶۴۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ عَزّٰى

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي يو ستونزمن ته ډاډ وركړ

مُصَابًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ " . رواه الترمذي وابن ماجه وقال الترمذي : هذا حديث غريب لا نعرفه مرفوعاً إلا من حديث علي بن عاصم الراوي وقال : ورواه بعضهم عن محمد بن سوقة بهذا الإسناد موقوفا

نو هغه ته به د هغه سره سم ثواب رسيږي . ترمذي او ابن ماجه، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ دا حديث مرفوعا يوازي د علي بن عاصم څخه روايت دئ او ځينو د محمد بن سوقة څخه په دې اسنادو سره موقوفا روايت كړئ دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۸۵، رقم: ۱۰۷۳، وابن ماجه ۱\۵۱۱، رقم: ۱۶۰۲.

**تشريح**: مصيبت زده عام دی که څه هم څوک د مرګ په مصيبت کي اخته وي يا د دې څخه ماسيوا په بلي څه پيښي کي اخته وي او د هغه سره مخامخ وي په هر حال د حديث حاصل دا دی که يو سړی چاته اطمينان او ډاډ ورکړي چي د خپل يوه قريب پر مرګ باندي يا يو مصيبت زده ته پر صبر کولو باندي حاصليږي هغه ته د صبر تلقين کوي او بيا هغه سړی صبر کوي نو ګويا دا سړی د مصيبت زړه د صبر باعث جوړيږي ځکه چي (الدال علي الخير کفاعله) يعني کوم سړی چي د ښې خبري لار ښويي هغه ته هم پر هغه لار د تلونکي په ډول ثواب حاصليږي هغه هم اجر او په سعادت سره نازول کيږي او س په دې اړه عموميت دی که غواړي نو تسلي دي خپله مصيبت زده ته په رسيدو سره وکړي يا که پر دې باندي هم قدرت نه وي نو بيا د خط په ليکلو سره يا په په بله ذريعه سره اطمينان او سکون دي ورکړل سي د دواړو يو حکم دی مګر د مرفوع په حکم کي دی يا دا چي د ابن ماجه په دې روايت سره تقويت حاصليږي چي د هغه سند حسن او مرفوع دی.

ما من مسلم يعزی اخاه بمصيبة الا کساه الله من حلل الکرامة يوم القيامة.

ژباړه: کوم مسلمان چي د خپل يوه مسلمان ورور په مصيبت کي هغه ه صبر او تلقين وکړي الله تعالی به د قيامت په ورځ هغه ته د بزرګۍ فضيلت ورکوي.

**﴿۱۶۴۶﴾**: وَعَنْ اَبِيْ بَرْزَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ عَزّٰى ثَكْلٰى كُسِيَ بُرْدًا فِي الْجَنَّةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو برزة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي هغه ښځي ته ډاډ ورکړي د کومي چي زوی مړ سوئ وي، نو په جنت کي به غوره لباس ور واغوستل سي، ترمذي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۸۷، رقم: ۱۰۷۶.

## د مړي د کورنۍ لپاره ميلمستيا

**﴿۱۶۴۷﴾**: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ لَمَّا جَاءَ نَعْيُ جَعْفَرٍ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ

د حضرت عبد الله بن جعفر ﷛ څخه روايت دئ چي کله د جعفر ﷛ د مرګ خبر راغلئ نو نبي کريم ﷺ وفرمايل:

اصْنَعُوا لِأَهْلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَإِنَّهُ قَدْ جَاءَهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

د جعفر د کورنۍ لپاره ډوډۍ تیاره کړئ ځکه چي هغوی ته هغه مصیبت رسیدلئ دئ کوم چي هغوی د (ډوډۍ) څخه بوخت کړي دي . ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجة

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۴۹۷، رقم: ۳۱۳۲، والترمذي ۳\ ۳۲۳، رقم: ۹۹۸، وابن ماجة: ۱\ ۵۱۴، رقم: ۱۶۱۰.

**تشريح** : دا حديث پر دې دلالت کوي چي کله يو سړی مړ سي نو د هغه خپلوانو او همسايه ګانو ته د هغه د اهل او عيال لپاره پخه کړې ډوډۍ وراستول مستحب دي او ډوډۍ هم دومره وي چي د مړي کور والا يې يوه ورځ او يوه شپه په ماړه نس وخوري .

## د مړي کور ته استونکې ډوډۍ نور خلک خوړلای سي که نه ؟

په دې اړه د علماؤ اختلافي اقوال دي چي ډوډۍ د مړي کورته د هغه د خپلوانو او همسايه ګانو د خوا څخه راځي د مړي د کور والا څخه ماسيوا نورو خلکو ته خوړل جائز دي که نه ځيني علماء خو د عدم جواز قائل دي کله چي ځيني حضرات مثلا د ابوالقاسم رحمة الله عليه قول دی چي د هغه سړي لپاره په خوړلو کي هيڅ تاوان نسته چي د مړي په کفن ورکولو او ښخولو کي مصروفه وي .

او علماء ليکي کله چي د يو مړي کورته ډوډۍ په پخولو سره ورواستول سي نو پر دې وخت د دې خبري خيال ساتل پکار دی چي د مړي کور والا هم ډوډۍ خوري ځکه چي پر داسي غمناک ماحول کي خوراک څښاک ته څه خيال نه وي په خاصه توګه سره د مړي کور والا هم د غم په وجه د خوراک څښاک وغيره خواهش نه لري ځکه مناسب او بهتر دادی چي پر هغوی باندي ډوډۍ ضرور وخوړل سي چي د غم د ډېربنت او د ډوډۍ نه خوړلو په وجه په ضعف او کمزوري کي اخته نسي .

د نوحه ويونکو ښځو لپاره ډوډۍ تيارول چي خلک راټول سي او وې خوري بدعت او مکروه دی مګر په دې اړه د حضرت جابر ﷺ څخه دا قول نقل دی چي موږ دا نياحت يعني د نوحه ويونکو يو ډول شميرو نو د دې ارشاد څخه خو د دې شي صريح حرام کيدل معلوميږي .

امام غزالي رحمة الله عليه فرمائي د دې مقصد لپاره د مړي د کورنۍ له خوا څخه تياره کړې ډوډۍ کي ګډيدل مکروه دي ملا علي قاري رحمة الله عليه فرمائي دا کراهت په هغه صورت

كي دى كله چي هغه ډوډى په هغه مال سره تياره سوې يي چي د يتيم وي يا د هغه سړي ملكيت وي چي موجود نه وي او د هغه د اجازې څخه پرته د هغه په مال كي تصرف وكړي او كه ډوډى د داسي مال څخه تياره سوې وي چي د يتيم يا بل غير موجود سړي ملكيت وي نو بيا د هغه په ډوډى كي ګډون كول بېله كوم اختلافه حرام دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### پر مړي باندي وير

﴿۱۶۴۸﴾: عَنِ الْمُغِيْرَةَ ابْنِ شُعْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ نِيحَ عَلَيْهِ يُعَذَّبُ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ. متفق عليه

د حضرت مغيرة بن شعبة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: پر چا چي وير وكول سي نو د هغه وير له كبله به د قيامت په ورځ هغه ته عذاب وركړل سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۶۰، رقم: ۱۲۹۱، ومسلم ۲\۶۴۳، رقم: ۲۸- ۹۳۲.

﴿۱۶۴۹﴾: وَعَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا قَالَتْ سَمِعْتُ

د حضرت عمرة بنت عبد الرحمن رضي الله عنها څخه روايت دئ چي هغې وويل: ما واوريدل

عَائِشَةَ وَذُكِرَ لَهَا أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه او د هغې په مخكي دا يادونه وسول چي عبد الله بن عمر رضي الله عنهما داسي وايي چي پر مړي باندي د ژوندو خلكو د ژړا له كبله عذاب وي،

فَقَالَتْ عَائِشَةُ يَغْفِرُ اللّٰهُ لِأَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَكْذِبْ وَلٰكِنَّهُ نَسِيَ أَوْ

نو هغې وفرمايل: الله جل جلاله دي ابي عبد الرحمان و بخښي، هغه دروا غ نه دي ويلي مګر هيره څيني سوې يا

أَخْطَأَ إِنَّمَا مَرَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى يَهُودِيَّةٍ يُبْكَى عَلَيْهَا فَقَالَ

په بیان کي يې غلطي وکړه ، ښېښه داده چي رسول اللهﷺ د یهودي ښځي پر قبر تیریدئ چي پر
هغې ژړا کېده نو رسول الله ﷺ وفرمایل :

**إِنَّهُمْ لَيَبْكُونَ عَلَيْهَا وَإِنَّهَا لَتُعَذَّبُ فِي قَبْرِهَا . متفق علیه**

دا خلک پر دې ژاړي او پر هغې عذاب کیږي په قبر کي . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۵۲، رقم: ۱۲۸۹، ومسلم ۲\۶۴۳، رقم: ۲۷- ۹۳۲.

**تشریح** : الله تعالی دي یې وبخښي ، دا جمله په عربو کي پر داسي وخت باندي استعمال کیده کله چي يو سړي به په خپلي خبري يا په يو بحث کي خطا وکړه، د بي بي عائشې رضي الله عنها د ارشاد مقصد دادی چي عبدالله بن عمر رضي الله عنه په دې وخت کي د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه چي کوم نتیجه اخستې ده هغه صحیح نه ده ځکه چي د رسول الله ﷺ ارشاد چي د هغه خپلوان ژاړي او هغه په خپل قبر کي دننه په عذاب کي اخته ده د دې مطلب یوازي دا وو چي دا خلک څومره ناپوه او نادان دي چي هغه بدبخته ښځه خو په خپل قبر کي دننه د الله تعالی په عذاب کي اخته او خوار وزار ده څرنګه چي د کافرانو حال وي نو دا خلک هغه مرحومه ګڼي او د هغه سره د محبت او تعلق اظهار کوي نو رسول الله ﷺ دا خبره په خاصه توګه سره د هغه یهودی ښځي په باره کي فرمایلې ده همداسي د نورو کافرانو په باره کي به هم دا صورت حال وي چي د هغوی عزیزان او قریبان هم مرحوم په ګڼلو سره او د هغوی سره د خپل تعلق او محبت په اظهار کولو سره ژاړي بیا دا چي رسول الله ﷺ خو دا هم نه وه فرمایلي چي هغه د هغوی د ژړا په وجه په عذاب کي اخته ده .

که څه هم د بي بي عائشې رضي الله عنها د اعتراض حاصل دا سو چي رسول الله ﷺ خو د هغي ښځي د کفر په وجه فرمایلي وه چي هغه د خپل کفر په وجه په عذاب کي اخته ده او عبدالله بن عمر رضي الله عنه دا وګڼه چي رسول الله ﷺ بطور کلیه دا ارشاد وفرمایله چي مړی د ژوندو د ژړا په وجه په عذاب کي اخته کیږي .

دا خو د دې روایت وضاحت سو تر څو پوري چي د نفس مسئلې تعلق دی علماء لیکي په دې اړه د بي بي عائشې رضي الله عنها دا اعتراض هم د هغه لپاره پر خپل اجتهاد مبني دی ځکه چي د بي بي عائشې رضي الله عنها دا اعتراض هغه وخت صحیح کیدای سي کله چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد په بیلو بیلو الفاظو سره او د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه او د نورو صحابو څخه نقل دی، نو د بي بي عائشې رضي الله عنها دا فرمایل چي دا ارشاد پر هغه خاص وخت باندي

او يوازي د هغي يهودي ښځي په باره كي وو په هيڅ پوهه كي نه راځي په هر حال د دې مسئلې نور وضاحت د راتلونكي حديث په تشريح كي كتلاى سئ.

﴿۱۶۵۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ تُوُفِّيَتْ ابْنَةٌ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ

د حضرت عبيد الله بن ابي مليكة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د عثمان بن عفان رضي الله عنه لور مړه سوه

بِمَكَّةَ فَجِئْنَا لِنَشْهَدَهَا وَحَضَرَهَا ابْنُ عُمَرَ وَابْنُ عَبَّاسٍ فَإِنِّي لَجَالِسٌ بَيْنَهُمَا

په مكه كي، موږ د هغې په جنازه او ښخولو كي ګډون وكړ، ابن عمر رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه هم ګډون وكړ، زه د دوی دواړو په منځ كي ناست وم

فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ لِعَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ وَهُوَ مُوَاجِهُهُ أَلَا تَنْهَى عَنِ الْبُكَاءِ

عبد الله بن عمر رضي الله عنه، عمرو بن عثمان رضي الله عنه ته چي د هغه مخته ناست وو وويل: تاسو خپل قريبان ولي د ژړا څخه نه منعه كوئ

فَإِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ فَقَالَ ابْنُ

ځكه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي مړي ته د هغه د كورنۍ په ژړا عذاب وركول كيږي. (د دې په اوريدو سره) ابن عباس رضي الله عنه وويل:

عَبَّاسٍ قَدْ كَانَ عُمَرُ يَقُولُ بَعْضَ ذَلِكَ ثُمَّ حَدَّثَ فَقَالَ صَدَرْتُ مَعَ عُمَرَ مِنْ

حضرت عمر رضي الله عنه داسي څه ويلي دي (يعني په عامه توګه سره به يې د ژړا څخه منعه نه كولاى بلكه په چغو چغو ژړا به يې منعه كولاى) د دې وروسته ابن عباس رضي الله عنه دا پېښه بيان كړل چي زه يو وار د حضرت عمر رضي الله عنه سره

مَكَّةَ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَاءِ إِذَا هُوَ بِرَكْبٍ تَحْتَ ظِلِّ سمرة فَقَالَ اذْهَبْ فَانْظُرْ

د مكې څخه راستون سوم كله چي موږ بيداء نامي ځای ته راورسيدو نو حضرت عمر رضي الله عنه يوه قافله وليدل چي د كيكر تر يوې درختي لاندي تم وه، عمر رضي الله عنه ما ته وفرمايل: ورسه او وګوره

مَنْ هَؤُلَاءِ الرَّكْبُ فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ صُهَيْبٌ قَالَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ ادْعُهُ فَرَجَعْتُ

چي په دې قافلې كي كوم خلك دي ، زه ورغلم نو وه مي ليدل چي په هغوى كي حضرت صهيب رضي الله عنه وو ، ما حضرت عمر رضي الله عنه ددې څخه خبردار كړ ، هغه وويل : هغه راوغواړه ، زه ورغلم

إِلَى صُهَيْبٍ فَقُلْتُ ارْتَحِلْ فَالْحَقْ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ فَلَمَّا أَنْ أُصِيبَ عُمَرُ دَخَلَ

هغه ته مي وويل د امير المؤمنين حضرت عمر رضي الله عنه ملاقات ته راسه ، ددې وروسته په مدينه كي حضرت عمر رضي الله عنه ژوبل سو

صُهَيْبٌ يَبْكِي يَقُولُ وَا أَخَاهُ وَا صَاحِبَاهُ فَقَالَ عُمَرُ يَا صُهَيْبُ أَتَبْكِي عَلَيَّ وَقَدْ

نو صهيب رضي الله عنه ژړل او په دې ويلو سره د هغه په خدمت كي حاضر سو چي هاى زما وروره ! هاى زما اكا ، د دې په اوريدو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل : اې صهيبه ! ايا پر ما ژاړې؟ حال دا چي

قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم إِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ بِبَعْضِ بُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چي مړي ته د هغه د ځينو قريبانو د ژړا له كبله عذاب وركول كيږي ، ددې پېښي بيانولو وروسته ابن عباس رضي الله عنه وويل :

فَلَمَّا مَاتَ عُمَرُ ذَكَرْتُ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ فَقَالَتْ يَرْحَمُ اللَّهُ عُمَرَ لَا وَاللَّهِ مَا حَدَّثَ

د حضرت عمر رضي الله عنه د وفات وروسته بي بي عائشې رضي الله عنها ته ما ددې پېښي يادونه وكړه نو هغې وويل : الله جل جلاله دي پر عمر رضي الله عنه رحم وكړي په الله دي مي قسم وي ! د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث دا نه دئ

رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم إِنَّ اللَّهَ يُعَذِّبُ الْمُؤْمِنَ بِبُكَاءِ أَحَدٍ وَلَكِنْ قَالَ إِنَّ اللَّهَ يَزِيدُ

چي مړي ته د هغه د قريبانو د ژړا له كبله عذاب وركول كيږي بلكه حديث دا دئ چي الله جل جلاله

الْكَافِرَ عَذَابًا بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ قَالَ وَقَالَتْ عَائِشَةُ حَسْبُكُمُ الْقُرْآنُ { وَلَا

پر كافر مړي باندي د ژړا له كبله د هغه عذاب زياتوي ، ددې وروسته حضرت عائشې رضي الله عنها وفرمايل : (ددې په ثبوت كي) ستاسو لپاره د قرآن مجيد دا ارشاد بس دئ : (و لا

تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى } قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عِنْدَ ذَلِكَ وَاللَّهُ أَضْحَكَ وَأَبْكَى ، قَالَ

تزر وازرة وزر اخرى) : او هيڅوك به د بل څه بوج نه پورته كوي ، ابن عباس رضي الله عنه وويل : دې ته

نژدې نژدې دې آيت مفهوم دا هم دئ چې : (وانه هو اضحک وابکی) : او هم الله ﷻ څوک خندوي او هم يې ژړوي،

ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ فَوَاللَّهِ مَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ شَيْئًا . متفق عليه

ابن ابي ملكيه وايي دې تولي ېيښي د اوريدو وروسته حضرت ابن عمر ﷺ هم هيڅ ونه ويل . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۱۸۰- ۱۸۱، رقم: ۱۲۸۶- ۱۲۸۷- ۱۲۸۸، ومسلم ۲\ ۶۴۱- ۶۴۲، رقم: ۲۳- ۹۲۷، ۹۲۸، ۹۲۹.

**تشريح** : درويشتم هجري كال د ذي الحجې د مياشتي شپږويشتم تاريخ او د چارشنبې ورځ وه د سهار د لمانځه وخت حضرت عمر ﷺ مسجد نبوي ته د لمانځه وركولو لپاره ولاړى حاضرينو صفونه وتړل حضرت د مسجد په محراب كي ودريدى اوس يې لا لمونځ نه وو شروع كړى چي د مغيره ابن شعبه غلام ابولؤلؤ لعين هم تر شا ناست وو په دوو خنجرو يې پر حضرت عمر ﷺ باندي حمله وكړه، د خنجر په اړخ كي ولګيدى د ځينو خلكو وينا ده چي لعين شپږ ځايه وواهه، حضرت عمر ﷺ راولوېدى چي كله يې كور ته راوړى په ټوله مدينه كي دا خبر د برېښنا په ډول خپور سو، خلګ په ډلو ډلو حاضرېدل پېل سول چي په هغوى كي حضرت صهيب ﷺ هم وو، هغه چي حضرت عمر ﷺ په وينو رنګ وليدى نو بې اختياره په ژړا سو او دا يې وفرمايل: اې زما وروره! اې زماباداره!، حضرت ابن عباس ﷺ په دې پيښې سره دې ته اشاره كوي، په هر حال د حضرت صهيب ﷺ دا ژړا او وينا نوحه ګڼل نه دي پكار ځكه چي نوحه هغه وي چي په لوړ اواز سره د جاهليت د زمانې په شان وي، او دلته د هغه څخه هيڅ شى نه تر لاسه كيږي مګر حضرت عمر ﷺ د دې څخه هم صهيب ﷺ احتياطا منعه كړ چي د غم د اظهار دا مباح طريقه چيري د حد څخه تجاوز په كولو سره داسي مرحلې ته نه ورسيږي چي شريعت د هغه څخه منعه كوي .

بي بي عائشې رضي الله عنها چي قسم په كولو سره د حديث نفي وكړه نو هلته په حقيقت كي د هغې مراد د حديث نفي نه ده مګر د هغه نتيجه نفي ده چي حضرت عمر ﷺ د رسول الله ﷺ د حديث څخه اخذ كړې وه كنې تر څو پوري چي د نفس حديث تعلق دى د دې د صحيح كيدو هيڅ شک او شبهه نسته اختلاف يوازي د حديث په متعين كولو كي دى حضرت عمر ﷺ او حضرت عبدالله خو د دې حديث څخه دا نتيجه اخلي چي د مړي د عذاب تعلق د هغه د كور د والا په ژړا

سره دی يعني که د مړي کور والا پر مړي ژاړي نو هغه په عذاب کي اخته کيږي که څه هم مړی مومن وي يا کافر وي بي بي عائشه رضي الله عنها فرمائي د رسول الله ﷺ دا ارشاد د کافر په حق کي دی او هغه په هر صورت کي په عذاب کي اخته وي که څه هم د هغه کور والا پر هغه ژاړي که نه ژاړي هو دومر خبره ضرور ده چي د کور والا د ژړا په وجه د کافر سړي په عذاب کي زياتي کيږي او هغه هم په دې وجه کافر په ژړا سره خوشحاله او راضي کيږي تر دې چي ځيني کافرانو به د مرګ پر وخت دا وصيت کوی چي کله هغه مړ سي نو پر هغه دي وژړل سي او نوحه دي پر وکړل سي.

بي بي عائشه رضي الله عنها خپل مذهب چي د مړي د کورو والا لپاره د عذاب سبب نه جوړيږي پر دې باندي د آيت کريمه استدلال کوي چي ( ولا تزر وازرة وزر اخرى ) يعني د يوه سړي ګناه د بل په اعمال نه کي نه ليکل کيږي او څرګنده ده چي هر کله يو سړی د دوهم سړي د ګناه ذمه دار نه دی نو پر هغه د هغه سړي ګناه د سزا په حکم کي نسي کيدای که د مړي کور والا ژړا يا نوحه کوي نو دا د هغه فعل دی د هغوی ګناه ده د مړي په عمل نامه کي ولي وليکل سي او د هغوی د ګناه په وجه دي مړی ولي په عذاب کي اخته کړه سي د دې وروسته ابن عباس ﷺ هم په دې ويلو سره د حضرت عمر ﷺ د مذهب نفي او د بي بي عائشې رضي الله عنها د قول تائيد وکی چي د انسان ژړل ختندل او د هغه خوشحالي او غم د الله تعالی لخوا څخه دي هغه دا شيان پيدا کوي ځکه ژړا ته په عذاب کي څه دخل دی.

مګر د ابن عباس ﷺ پر دې قول دا اعتراض وارد کيږي چي همداسي خو د بندګانو ټول اعمال الله تعالی پيدا کوي بنده خو يوازي هغه کوي چي پر هغه د ثواب او عذاب ترتيب وي، که څوک نيک عمل کوي نو هغه ته ثواب حاصليږي او که څوک بدعمل کوي نو هغه ته عذاب ورکول کيږي، اوس خندا که يو سړی پر يو مسلمان ورور د زياتي خوشحالی څخه خاندي نو هغه ثواب تر لاسه کوي او که يو سړی د خپل مسلمان ورور په ليدو سره د مسخرو او سپکاوي په نيت وخاندي نو ګناه کاره کيږي همداسي د غم او خوشحالي معامله ده ځيني خوشحالی او غمونه داسي دي چي پر هغه سزا او جزا ورکول کيږي ځکه د بي بي عائشې ﷺ تائيد او د حضرت عمر ﷺ د مذهب په نفي کي د ابن عباس ﷺ دا ويل چي الله تعالی خندوي هم او ژړوي هم، پوهونکې خبره نه ده هو د ابن عباس ﷺ دا قول په دې قيد سره خو صحيح دی چي خندل او ژړل بي اختياره وي يعني که په خندا او ژړا کي اختيار داخل وي نو بيا به پر هغه د ثواب او عذاب ترتيب ضروري وي.

د حديث اخري جمله حضرت ابن عمر رضي الله عنه په دې اوريدو سره هيڅ نه وويل پر دې خبري دلالت نه كوي چي ابن عمر رضي الله عنه د دې قصې په اوريدو سره د ابن عباس رضي الله عنه دا خبره ومنل مگر هغه د چپتيا په اختيارولو سره بحث ختمول مناسب وگڼل څرنگه چي د عاقل لپاره اشاره كافي ده.

## پر مړي د ژړا منع

《۱۶۵۱》: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا جَاءَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي كله د ابن حارثه،

وَجَعْفَرٍ وَابْنِ رَوَاحَةَ جَلَسَ يُعْرَفُ فِيهِ الْحُزْنُ وَأَنَا أَنْظُرُ مِنْ صَائِرِ الْبَابِ تعني

جعفر او ابن رواحه د شهادت خبر رسول الله ﷺ ته راغلئ (چي په غزوه موته كي شهيدان سوي وه) نو رسول الله ﷺ په مسجد كي كښېنستئ او پر مخ مبارك يې د غم نښي څرگندي وي او ما د دروازې د سريو څخه په كور كي دننه د رسول الله ﷺ حال ليدئ،

شَقِّ الْبَابِ فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّ نِسَاءَ جَعْفَرٍ وَذَكَرَ بُكَاءَهُنَّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْهَاهُنَّ

يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ: د جعفر د كورنۍ ښځي داسي داسي كوي، يعني د هغوی د ژړا يادونه يې وكړه، رسول الله ﷺ هغه ته حكم وكړ چي هغوی د ژړا څخه منعه كړئ،

فَذَهَبَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ لَمْ يُطِعْنَهُ فَقَالَ انْهَهُنَّ فَأَتَاهُ الثَّالِثَةَ قَالَ وَاللهِ لَقَدْ

هغه سړی ورغلئ او دوهم وار حاضر سو او وه يې ويل هغوی نه منعه كيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل هغوی منعه كړه، هغه ولاړئ بيا راغلئ او وه يې ويل: په الله دي مي قسم وي

غَلَبْنَنَا يَا رَسُولَ اللهِ فَزَعَمَتْ أَنَّهُ قَالَ فَاحْثُ فِي أَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ فَقُلْتُ

اې دالله رسوله! هغوی پر موږ غالب راغلې يعني هغوی زموږ د منعه كېدو څه پروا ونه كړل، بي بي عائشه رضي الله عنها وايي زما خيال دادئ چي د هغه په جواب كي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي د هغوی په خوله كي خاوري واچوه، عائشة رضي الله عنها وايي چي ما په خپل زړه كي د هغه په اړه وويل:

أَرْغَمَ اللهُ أَنْفَكَ لَمْ تَفْعَلْ مَا أَمَرَكَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَلَمْ تَتْرُكْ رَسُولَ اللهِ

ﷺ مِنْ الْعَنَاءِ . متفق علیه

خدای دي ستا پزه په خاورو ولړي تا ته چي رسول الله ﷺ کوم حکم درکړئ نه خو تا په هغه عمل وکړلای سو او نه دي رسول الله ﷺ پر کراره پرېښودئ د خفګان رسولو څخه. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳\۱۶۱، رقم: ۱۲۹۹، ؤمسلم ۲\۶۴۴، ۶۴۵، رقم: ۳۰- ۹۳۵.

**د لغاتو حل**: (العَناء): بفتح العين المهملة أي: تعب الخاطر من سماع ارتكابهن الكبائر أو الصغائر، وعدم انزجارهن بالزواجر (په عذابول).

**تشریح** : د هغوی په خوله کي خاوري واچوه په ښکاره داسي معلومېږي چي دا د دې خبري کنایه ده چي هغوی پر خپل حال ودرېږي ځکه چي د سخت غم په وجه د ژړا او انګولا په حالت کي نصیحت پر هغوی اثر نه کوي.

د (ارغم الله) څخه تر اخیره پوري د بي بي عائشې رضي الله عنها د ارشاد مطلب دادی چي الله تعالی دي تا ذلیل کړي ځکه چي تا رسول الله ﷺ ته تکلیف ورسوی او هغوی ته د تکلیف رسولو سبب جوړ سوې ځکه د دې په اوریدو سره رسول الله ﷺ ته ډیر زیات غم ورسیدی چي ښځي په ګناه کبیره کي اخته دي او د منعه کولو سربېره د ژړا څخه لاس نه اخلي که تاسو په سختي سره هغوی د دې فعل څخه منعه کوي نو رسول الله ﷺ ته به دومره سخت روحاني تکلیف نه وای.

﴿۱۶۵۲﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ لَمَّا مَاتَ أَبُو سَلَمَةَ قُلْتُ غَرِيبٌ وَفِي أَرْضِ غُرْبَةٍ

د حضرت ام سلمه ﷺ څخه روایت دئ چي کله ابو مسلمه ﷺ (یعني د هغې خاوند) مړ سو نو ما په زړه کي وویل: ابو سلمه په سفر کي د هیواد څخه د باندي مړ سوئ دئ

لَأَبْكِيَنَّهُ بُكَاءً يُتَحَدَّثُ عَنْهُ فَكُنْتُ قَدْ تَهَيَّأْتُ لِلْبُكَاءِ عَلَيْهِ إِذْ أَقْبَلَتْ امْرَأَةٌ

زه به پر ده داسي ژاړم چي خلک به زما د ژړا یاد یو بل ته کوي نو زه د ژړا په تیاري کي بوخته وم چي یوه ښځه کورته راغله،

مِنْ الصَّعِيدِ تُرِيدُ أَنْ تُسْعِدَنِي فَاسْتَقْبَلَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

غالبا یې زما په غم کي د زما سره د ګډون اراده درلودل، ناڅاپه رسول الله ﷺ د هغې مخته ورغلئ

وَقَالَ أَتُرِيدِينَ أَنْ تُدْخِلِي الشَّيْطَانَ بَيْتًا أَخْرَجَهُ اللّٰهُ مِنْهُ مَرَّتَيْنِ فَكَفَفْتُ عَنِ الْبُكَاءِ فَلَمْ أَبْكِ . رواه مسلم

او وه يې فرمايل : ايا ته دا اراده لرې چي په دې كور كي شيطان داخل كړې حال دا چي دوه واره الله ﷻ هغه ددې كور څخه ايستلى دئ . ام سلمه وايي : د رسول الله ﷺ ددې الفاظو زه د ژړا څخه منعه كړم او بيا ما ونه ژړل . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم: ۲\۶۳۵،رقم: ۱۰- ۹۲۲.

**د لغاتو حل** : (تُسعدني) : اى تريد ان تساعدني في البكاء وتعينني في النداء (په ژړا كي مرسته).

**تشريح** : زه د ژړا په تياري كي مصروفه وم د دې مطلب دادى چي ما د ژړا كولو اراده كوله او په دې وخت كي د ژړا لپاره چي د كومو شيانو ضرورت وو لكه توري جامې او داسي نور مي ترتيبول .

په ښكاره داسي معلوميږي چي بي بي ام سلمه رضي الله عنها ته تر هغه وخته پوري دا معلومه سوې نه وه چي نوحه كول حرام دي كه هغې ته د دې حكم معلوم واى نو يقيني خبره ده چي هغې د دې خبري تصور هم نه سو كولاى .

د كور څخه دوه واره د شيطان د تلو څخه دا مراد دي چي يو وار خو هغه وخت شيطان د كور څخه را وايستل سو كله چي ابوسلمه ﷺ د كفر او شرك د توري جامې په كښلو سره د ايمان او اسلام نوراني جامه يې په تن كړه او په دوهم وار د كور څخه هغه وخت شيطان را وايستل سو كله چي ابوسلمه ﷺ د ظلم او جهل څخه نجات پيدا كړ او د دې دنيا څخه په ايمان او اسلام رخصت سو .

## دوير كولو څخه منع

﴿۱۶۵۳﴾ : وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ أُغْمِيَ عَلَى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ رَوَاحَةَ فَجَعَلَتْ

د نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دئ كله چي پر عبد الله بن رواحه باندي بې هوښي راغلل

أُخْتُهُ عَمْرَةُ تَبْكِي وَا جَبَلَاهُ وَا كَذَا وَا كَذَا تُعَدِّدُ عَلَيْهِ فَقَالَ حِينَ أَفَاقَ مَا قُلْتِ

نو د هغه خور عمره ژړل او دا يې ويل چي اې زما غره ! افسوس او اې داسي سړيه (يعني د هغه ښېگڼې يې بيانولې) كله چي عبد الله په هوښ كي راغلى نو هغه خپل خور ته وويل : تا چي څه وويل هغه ما ته د

تعريض په دول وويل سول

شَيْئًا إِلَّا قِيلَ لِي آنْتَ كَذٰلِكَ . زاد في رواية فلما مات لم تبك عليه . رواه البخاري

ايا ته داسي (غر) يې او په يوه روايت كي دا الفاظ زيات دي چي كله د عبدالله بن رواحه وفات سو نو د هغه خور پر هغه ونه ژړل. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۱۶\۷، رقم: ۴۲۶۷.

---

﴿۱۶۵۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ:

د حضرت ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي :

مَا مِنْ مَيِّتٍ يَمُوْتُ فَيَقُوْمُ بَاكِيْهِ فَيَقُوْلُ وَا جَبَلَاهُ وَا سَيِّدَاهُ أَوْ نَحْوَ ذٰلِكَ إِلَّا

هر كله چي يو مسلمان مړ كيږي او د هغه قريبان پر هغه ژاړي او دا وايي چي اې غره ! اې سرداره ! او داسي نور الفاظ...

وُكِّلَ بِهِ مَلَكَانِ يَلْهَزَانِهِ ويقولان أَهٰكَذَا كُنْتَ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب حسن .

نو الله تعالى دوې ملائكي پر مړي باندي ماموره كوي او هغوى يې په سوكانو وهي او ورته وايي ايا ته داسي وې . ترمذي . او ترمذي ويلي دي دا حديث غريب حسن دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳۲۶\۳، رقم: ۱۰۰۳.

**تشريح** : د مړي څخه حقيقي مړى او مرګ ته نژدې كس هم مراد اخستل كيداى سي پر مړي باندي د ژړا او په دې وجه د مړي په عذاب كي د اخته كيدو په باره كي څه خبري په تيرو صفحاتو كي بيان سوي دي ، دلته هم د دې مسئلې په باره كي پر څو نورو خبرو باندي هم پوهيدل پكار دي .

علامه سيوطي رحمة الله عليه په شرح الصدور كي دا حديث (ان الميت ليعذب ببكاء اهله) يعني مړي ته د هغه د كور والا د ژړا په وجه عذاب وركول كيږي د نقل كولو وروسته ويلي دي چي په دې اړه اختلافي اقوال دي چي ايا مړي ته د هغه د كور والا د ژړا په وجه عذاب وركول

كيږي او كه څنګه، په دې اړه كي چي څومره مذهبونه دي هغه علامه موصوف داسي سلسله وار نقل كړي دي.

اول: دا حديث د خپل ظاهري الفاظو او مفهوم مطابق مطلق دى يعني وصيت يا د كافر قيد نسته مګر پر مړي په چغو چغو ژړل او د نوحه كولو په وجه مړى په عذاب كي اخته كيدل دي د حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابن عمر رضي الله عنه هم دا رائې ده.

دوهم: مړى د هغه د كور والا د ژړا په وجه په مطلقا عذاب كي نه اخته كيږي.

دريم: د عذاب تعلق د حالت سره دى يعني مړى هغه وخت په عذاب كي اخته كيږي كله چي د هغه كورنۍ پر هغه ژاړي او هغه عذاب د هغوى د ژړا په وجه نه مګر دومره د خپلو ګناهونو او خرابو اعمالو په وجه دي.

څلورم: دا حديث په خاصه توګه سره د كافرانو په باره كي دي دا دواړه قولونه د بي بي عائشې رضي الله عنها دي.

پنځم: دا حديث او دغه سزا په خاصه توګه د هغه سړي په باره كي ده چي د هغه په نزد د نوحه رسم او رواج وي د امام بخاري رحمة الله عليه دا مذهب دى.

شپږم: دا سزا د هغه سړي په باره كي ده چي د نوحه لپاره وصيت وكړي يعني كوم سړى چي خپلو وارثانو ته وائي نو هغه به د د كور والا د ژړا او نوحه په وجه په عذاب اخته كيږي ځكه چي دا د هغه فعل دى.

اووم: دا سزا د هغه سړي په باره كي ده چي د نوحه كولو وصيت نه وكړي كوم سړي چي د خپلي كورنۍ په باره كي دا خيال ولري چي هغوى به زما د مرګ وروسته وير كوي نو هغه ته د نوحه نه كولو وصيت كول واجبيږي.

اتم: مړي ته د هغه د كورنۍ د ژړا په وجه هغه وخت عذاب وركول كيږي كله چي هغوى د مړي هغه خبري په ژړا كي بيان كړي كومي چي په شرعي توګه سره خرابي او ډير زيات د نفرت قابل وي څرنګه چي په د جاهليت په زمانه كي به څوک مړ سو نو خلكو به په دې ويلو سره ژړل چي اې د ښځو كونډي كوونكې! اې د اولاد يتيم كوونكې، اې د كور خرابونكې.

نهم: د عذاب څخه مراد د اهل ميت د پورتني طريقې په بيانولو سره د ژړا په وجه د ملائكو پر مړي غصه كيدل دي.

لسم: د مړي كورنۍ چي ساندي كوي نو مړى په خپل قبر كي د دننه په عذاب كي اخته كيږي ځيني حضرات فرمائي چي د عذاب څخه مراد دادى چي كله د مړي كور والا په غلطي طريقې

سره ژاړي او په دې اړه غير شرعي طريقه اختياروي نو په دې وجه مړي ته ډير سخت روحاني تكليف رسيږي ځرنګه چي عالم برزخ ته د دنيا څخه روح راځي او هلته د مخكي څخه موجود روحونه د هغه څخه د خپلو عزيزانو او متعلقينو په باره كي پوښتنه كوي كه يو روح ته د خپل متعلقينو په باره كي دا معلومه سي چي هغوى خراب اعمال او په ګناهونو كي اخته دي نو هغه روح ته په دې سره تكليف رسيږي او كه هغه ته معلومه سي چي د هغه متعلقين د نيكي او خير پر لار روان دي نو هغه خوشحاله كيږي.

په هر حال د دې مسئلې د پوره بحث حاصل دا سو كه مړى د هغه ګناه خپله سبب وي يعني كه هغه د مرګ مخكي دا وصيت وكړي چي پر ما دي وير وكړه سي يا په چغو چغو دي وژړل سي يا دا چي هغه وصيت خو ونه كړي خو په دې امور سره خوشحاله او راضي سي نو په دې صورت كي په حديث كي پورته عذاب به پر خپلي حقيقي معنى باندي محمول وي په دې توګه كه پر مړي باندي د مړي كور والا ساندي كوي نو هغه به په عذاب كي اخته كيږي او كه دا صورت نه وي يعني نه خو مړي وصيت كړى وي او نه هغه دا خبري خوښوي نو په دې شكل كي عذاب به پر خپلي حقيقي معنى باندي محمول نه وي مګر غم پورته كونكى به محمول وي كه څه هم د غم كولو د زكندن په حالت كي وي يا د مرګ وروسته كه كافر وي كه مسلمان په دې باره كي ټول برابر دي همدا سي د آيت ( ولا تزر وازرة وزر اخرى ) او هغه حديثونو په منځ كي چي په دې اړه مطلق نقل سوي دي مطابقت پيدا كوي.

## د نوحې او چغو منع

﴿١٦٥٥﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَاتَ مَيِّتٌ مِنْ آلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ كله چي د رسول الله ﷺ په كورنۍ كي يو كس وفات سو (يعني بي بي زينب رضي الله عنها)

وَسَلَّمَ فَاجْتَمَعَ النِّسَاءُ يَبْكِيْنَ عَلَيْهِ فَقَامَ عُمَرُ يَنْهَاهُنَّ وَيَطْرُدُهُنَّ فَقَالَ

نو ښځي را ټولي سوې او ژړل يې، حضرت عمر رضي الله عنه ولاړ سو او هغوى يې د ژړا څخه منعه كړې او وه يې ترټلې، ددې په ليدو سره

رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ دَعْهُنَّ يَا عُمَرُ فَاِنَّ الْعَيْنَ دَامِعَةٌ وَالْقَلْبَ مُصَابٌ وَالْعَهْدَ

قَرِيبٌ . رواه احمد والنسائي

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې عمره ! دوی پر خپل حال پرېږده ځکه چې سترګې ژاړي او زړه مصيبت زده دئ او د مرګ وخت نژدې دئ . (يعني تازه وفات دئ) احمد او نسائي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۴۴۴، والنسائي ۴\ ۱۹، رقم: ۱۸۵۸.

**تشريح** : په ښکاره خو دا معلوميږي چې په دغه وخت کې ښځې په کراره ژاړې چونکه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ددې احتياط په مراعت کولو سره چې داسې ونه سي چې ښځې نوحه ويل شروع کړي ، چونکه نوحه ويل د شريعت خلاف کار دی، دوی يې ددې کار څخه منعه کول غوښتل مګر نبي کريم ﷺ ، حضرت عمر رضي الله عنه ددې کار څخه منعه کړ او د دوی د عذر په بيانولو سره يې داسې اشاره وکړه چې په داسې دردناکه حالت کې ښځې د غم او تکليف د ښکاره کولو اجازه نه ورکول د احتياط تقاضا کيدای سي مګر دا د فطرت خلاف دی .

﴿۱۶۵۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَاتَتْ زَيْنَبُ ابْنَةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې کله د رسول الله ﷺ لور بي بي زينب وفات سوه

وَسَلَّمَ فَبَكَتُ النِّسَاءُ فَجَعَلَ عُمَرُ يَضْرِبُهُنَّ بِسَوْطِهِ فَأَخَّرَهُ رَسُولُ اللهِ ﷺ

نو ښځې په ژړا سوې ، حضرت عمر رضي الله عنه هغه ښځې په خپل کروړي (تازيانه) ووهلې ، رسول الله ﷺ حضرت عمر په خپل لاس سره منعه کړ

بِيَدِهِ وَقَالَ مَهْلًا يَا عُمَرُ ثُمَّ قَالَ إِيَّاكُنَّ وَنَعِيقَ الشَّيْطَانِ ثُمَّ قَالَ إِنَّهُ مَهْمَا

او ورته وه يې فرمايل : اې عمره ! نرمي کوه ددې وروسته يې خپلو ښځو ته وفرمايل : خپل ځان د شيطان د آواز څخه ليرې وساتئ يعني په: چغو چغو د ژړا څخه، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل

كَانَ مِنَ الْعَيْنِ وَالْقَلْبِ فَمِنَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَمِنَ الرَّحْمَةِ وَمَا كَانَ مِنَ الْيَدِ وَاللِّسَانِ فَمِنَ الشَّيْطَانِ . رواه احمد

څه چې د سترګو څخه وي يعني اوښکې او څه چې د زړه څخه وي يعني غم دا د الله تعالی د لورې دي او د رحمت سبب دئ او څه چې د لاس او ژبې څخه وي يعني ځان وهل، جامې شکول،

ورېښتان شکول، او په چغو چغو ویر او ماتم کول دا ټوله د شیطان د لوري وي . احمد .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ١\٣٣٥.

**تشريح** : د حديث د اخري جزء مطلب دادی چي د غم د اظهار پر وخت چي کوم شیان د لاسونو څخه ظاهرېږي لکه مخ وهل ، جامې څېرل، وېښتان شکول یا هغه شیان چي په ژبه سره کیږي لکه چغې او ساندي کوي، ویر کول یا د ژبې څخه داسي الفاظ راکښل چي الله تعالی ته خوښ نه وي دا ټول شیان د شیطان د خوا څخه دي په دې توګه چي کله شیطان سړی غولوي نو دا شیان ځیني صادر کیږي او شیطان دا شیان خوښوي .

## یوه واقعه

﴿۱۶۵۷﴾: وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ لَمَّا مَاتَ الْحَسَنُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ

د امام بخاري رح څخه دا روایت تعلیقا روایت دئ چي کله حسن بن حسن بن علي رضي الله عنهم وفات سو

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ ضَرَبَتْ امْرَأَتُهُ الْقُبَّةَ عَلَى قَبْرِهِ سَنَةً ثُمَّ رُفِعَتْ فَسَمِعُوا

نو د هغه ښځي د هغه پر قبر تر یو کال پوري خیمه ودرول او بیا یې ایسته کړل بیا یې غیبي آواز واوریدئ چي ویل یې :

صَائِحًا يَقُولُ أَلَا هَلْ وَجَدُوا مَا فَقَدُوا فَأَجَابَهُ الْآخَرُ بَلْ يَئِسُوا فَانْقَلَبُوا .

څه چي ورک سوي وه ایا د خیمې په درېدو سره هغه بیرته تر لاسه سو؟ دوهم آواز راغلی : چي ناامیده سوه او خیمه یې وکښل .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰۰،

**تشريح** : کوم وخت چي حسن بن علي رضي الله عنهما وفات سو نو د هغه ښځي پر قبر یوه خیمه ودرول چي پوره کال هلته ولاړه وه او خپله هم تر یوه کاله پوري هلته وه چي په دې خاطر د خپل خاوند د وفات غم ، مصیبت او بېلوالي احساس هره ورځ د هغې په زړه کي تازه کیدی .

په څرګنده دا معلومېږي چي هغې د خپل خاوند پر قبر باندي خیمه د دې لپاره درولې وه چي د هغه دوستان او خپلوان د ایصال ثواب او د قرآن ویلو لپاره راسي او خلک د دعائې مغفرت لپاره راجمعه سي .

## د ماتم او وير کولو منعه

﴿۱۶۵۸﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ الْحُصَيْنِ وَأَبِي بَرْزَةَ قَالَا خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ

د حضرت عمران بن حصين او ابو برزة (رض) څخه روايت دئ چي موږ دواړو د رسول الله ﷺ سره په يو جنازه کي ګډون وکړ،

فِي جِنَازَةٍ فَرَأَى قَوْمًا قَدْ طَرَحُوا أَرْدِيَتَهُمْ يَمْشُونَ فِي قُمُصٍ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

نو رسول الله ﷺ ځيني خلک وليدل چي هغوی خپل څادرونه غورزولي وه، قميصونه يې اغوستي... روان وه، رسول الله ﷺ د هغوی په ليدو سره وفرمايل:

ﷺ أَبِفِعْلِ الْجَاهِلِيَّةِ تَأْخُذُونَ أَوْ بِصُنْعِ الْجَاهِلِيَّةِ تَشَبَّهُونَ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ

ايا د جاهليت په فعل عمل کوئ يا د جاهليت د کارو ورته والی کوئ، ما اراده وکړه چي

أَدْعُوَ عَلَيْكُمْ دَعْوَةً تَرْجِعُونَ فِي غَيْرِ صُوَرِكُمْ قَالَ فَأَخَذُوا أَرْدِيَتَهُمْ وَلَمْ يَعُودُوا لِذَلِكَ . رواه ابن ماجه .

ستاسو لپاره دا ښيرا وکړم چي تاسو کورونو ته ستانه سئ نو په نورو شکلو کي را ستانه سئ، د راوي بيان دئ چي د رسول الله ﷺ د دې الفاظو په اورېدو سره خلکو خپل څادرونه پر سر کړل او بيا يې هيڅکله همداسي ونه کړل. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۴۷۶، رقم: ۱۴۸۵.

**تشريح**: د دې حديث څخه معلومه سوه چي په هغه زمانه کي دا رواج وو چي خلکو به د قميصونو پورته پټوان اچول.

په هر حال د جاهليت د زمانې يو رسم دا هم وو چي خلک به د جنازې سره تلل نو خپل پټوان به يې غورځول ګويا د دې څخه و خفګان ته اشاره کيږي.

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمائي کله چي دومره لږ تغير يعني د پټو په ايستلو باندي رسول الله ﷺ دومره سخته تنبيه او سزا وفرمايله نو د هغه خلکو به څه حشر وي چي تر دې زيات دير لوی رواجونه يې اختيار کړي وي.

## دوير كونكو ښځو د جنازې ځخه منع

﴿۱۶۵۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُتْبَعَ جِنَازَةٌ مَعَهَا رَانَّةٌ. رواه احمد وابن ماجة .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د هغه جنازې سره د تلو ځخه منعه فرمايلې ده چي د كوم سره وير كونكې ښځه وي . احمد او ابن ماجه

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۹۲، وابن ماجه ۱\۵۰۴، رقم: ۱۵۸۳.

**تشريح** : كه څه هم د جنازې سره تلل سنت دي مګر د دې بد فعل د موجودګي په وجه دا سنت پريښول پكار دى همدا سي د شرعي خلاف شي په موجودتيا كي د جنازې سره تلل نه دي پكار.

دا حديث د دې مسئلې بنياد دى چي په كوم مجلس كي د شرعي خلاف كارونه كيږي هلته تلل نه دي پكار كه څه هم دعوت قبلول سنت دى مګر پر داسي وخت باندي د غير خبرو او افعالو په وجه پر دې سنت عمل نه كول بهتر او اولى دي.

## كوچني به مور او پلار جنت ته بوځي

﴿۱۶۶۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلاً قَالَ لَهُ مَاتَ ابْنٌ لِيْ فَوَجَدْتُ عَلَيْهِ هَلْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي يو سړي هغه ته وويل : زما كوچني زوى مړ سوئ دي زه په هغه ډير غمجن يم ايا

سَمِعْتَ مِنْ خَلِيْلِكَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلاَمُهُ شَيْئًا يُطِيْبُ بِأَنْفُسِنَا عَنْ

تا د خپل دوست (نبي كريم ﷺ) ځخه يوه داسي خبره زموږ د ماشومانو په اړه اوريدلې ده چي زموږ زړونه په خوشحاله سي ؟

مَوْتَانَا قَالَ قَالَ نَعَمْ سَمِعْتُهُ ﷺ صِغَارُهُمْ دَعَامِيصُ الْجَنَّةِ يَلْقَى أَحَدُهُمْ

ابو هريرة رضي الله عنه وايي د دې په جواب كي ما ورته وويل : هو، ما د رسول الله ﷺ ځخه دا اوريدلي دي چي د مسلمانانو ماشومان به په جنت كي داسي وي لكه د درياب حيوانان،

أَبَاهُ فَيَأْخُذُ بِثَوْبِهِ فَلاَ يُفَارِقُهُ حَتَّى يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ . رواه مسلم و احمد واللفظ له

په دوی کي چي څوک د خپل پلار سره یو ځای کیږي نو د هغه لمن به نیسي او تر هغو پوري به یې نه پریږدي تر څو پوري چي جنت ته یې داخل نه کړي. مسلم او احمد.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴۱\۲۰۲۹، رقم: ۱۵۴ - ۲۶۳۵، والامام احمد في مسنده ۲\۴۸۸ و ۵۱۰.

**د لغاتو حل**: (دعامیص): جمع دعموص، وهو الدخال في الامور ای انهم سیاحون في الجنة، دخالون في منازلها لایمنعون من موضع.

**تشریح**: عامیص د دعموص جمع ده د عموص د اوبو یو کوچني تور حیوان دی چي په عامه توګه سره په تالابونو کي چي کله اوبه کمي سي څرګنده کیږي او دا حیوانان په همېشه اوبو کي نه اوسي مګر په اوبو کي غوټه خوري او وروسته دباندي راوځي دې حیوان ته په ځینو ځایو کي جولاها هم وائي.

عموص هغه سړي ته وائي چي د باچایانو او امیرانو په معاملاتو کي ډېر زیات دخیل وي او د هغوی پر فکر او پر عمل باندي تر ډېره حده پوري اثر اچوي.

په هر حال د وفات سوو ماشومانو په جنت کي په عموص سره په دې معنی تشبیه ورکړه سوې ده چي دا ماشومان په جنت کي سیل کوي او ګرځي څرنګه چي په دنیا کي د کوچني بچیانو څخه پرده نه کیږي او یو کورته د تلو څخه نه منعه کیږي او همداسي کوچنیان هم په جنت کي چیري چي غواړي هلته تللای سي، پر دوی باندي هیڅ پابندي نسته.

په دې حدیث کي په خاصه توګه د پلار ذکر سوی دی د دې وجه داده چي په دې وخت کي به یوازي د پلار په باره کي خبره چلیده ځکه چي د هغه پر ذکر اکتفاء وکړه سي کنې تر څو پوري چي د دې مسئلې تعلق دی هغه دا چي څرنګه کوچني بچي خپل پلار جنت ته بیایي همداسي خپله مور هم په جنت کي داخلوي څرنګه چي په ځیني حدیثونو کي د مور او پلار دواړو ذکر سوی دی.

## د اولاد د مړ کېدو اجر

﴿۱۶۶۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او عرض یې وکړ: ای د الله رسوله!

اللهِ ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيثِكَ فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا نَأْتِيكَ فِيهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا

نارینو ستاسو د حدیثو څخه ګټه تر لاسه کړه تاسو زموږ لپاره یوه ورځ وټاکئ چي موږ ستاسو

په خدمت كي حاضر سو او تاسو موږ ته هغه خبري وښياست

عَلَّمَكَ اللّٰهُ فَقَالَ اجْتَمِعْنَ فِي يَوْمِ كَذَا وَكَذَا فِي مَكَانِ كَذَا وَكَذَا فَاجْتَمَعْنَ فَأَتَاهُنَّ

كومي چي الله تعالى تاسو ته ښودلي دي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ښه دئ، تاسو په فلانۍ ورځ په فلاني وخت په فلاني ځاى كي يو ځاى سئ نو هغه ښځي پر هغه وخت راغلې

رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ فَعَلَّمَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَهُ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تُقَدِّمُ بَيْنَ يَدَيْهَا

رسول الله ﷺ تشريف راوړئ او هغوى ته يې هغه خبري وښودلې كومي چي الله تعالى رسول الله ﷺ ته ښودلي وې ، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو كي چي چا درې ماشومان مخكي ليږلي وي (يعني وفات سوي وي)

مِنْ وَلَدِهَا ثَلَاثَةً إِلَّا كَانَ لَهَا حِجَابًا مِنَ النَّارِ فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَوْ

نو هغه به ورته د اور پرده وي (يعني هغه به مو دوږخ ته نه پريږدي) په هغوى كي يوې ښځي وويل اې د الله رسوله ! كه چيري

اثْنَيْنِ فَأَعَادَتْهَا مَرَّتَيْنِ ثُمَّ قَالَ وَاثْنَيْنِ وَاثْنَيْنِ وَاثْنَيْنِ . رواه البخاري .

چا دوه ماشومان ليږلي وي ، دوه واره هغې دا الفاظ وويل ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوو هم دغه ثواب دئ . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱ \ ۱۹۵، رقم: ۱۰۱.

﴿۱۶۶۲﴾ : وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مِنْ مُسْلِمَيْنِ يُتَوَفَّى لَهُمَا ثَلَاثَةٌ إِلَّا أَدْخَلَهُمَا اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمَا

د كوم مسلمان (يعني ښځي او سړي) چي درې ماشومان وفات سي الله جل جلاله به هغه په جنت كي داخل كړي ،

فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَوِ اثْنَانِ قَالَ أَوِ اثْنَانِ قَالُوا أَوْ وَاحِدٌ قَالَ أَوْ وَاحِدٌ ثُمَّ

صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! که دوه ماشومان یې وفات سوي وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د دوو هم د غه ثواب دئ، صحابه کرامو بیا پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! او د یوه څه حکم دئ؟

قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ السِّقْطَ لَيَجُرُّ أُمَّهُ بِسَرَرِهِ إِلَى الْجَنَّةِ إِذَا احْتَسَبَتْهُ. رواه احمد و روي ابن ماجة من قوله والذي نفسي بيده

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د یوه هم دغه حکم دئ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما روح دی چي اوم کوچني چي ساقط سي خپله مور به د نامه په ذریعه جنت ته بیایي، په دې شرط چي د هغه مور صبر کړی وي او د ثواب غوښتونکې سوې وي. احمد، ابن ماجه.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۲۴۱، وابن ماجه ۱\۵۱۳، رقم: ۱۶۰۹.

**د لغاتو حل**: (بسرره): السرر هو ما تقطعه القابلة من السرة. (هغه نُو چي تر زېږون وروسته پرې کيږي).

**تشريح**: انول نال هغه کولمې ته وائي چي د پیدا کیدو پر وخت د کوچني د نُو سره موښتې وي. ارشاد (لیجر امه بسرره) کي د آنونال څخه کوچنی او د هغه د مور په منځ کي تعلق او علاقې ته اشاره ده، ګویا آنول نال به د رسی په ډول سي چي د هغه په ذریعه به هغه بچی خپله مور او پلار د جنت خوا ته راکشوي، په دې کي دې ته اشاره ده چي د هغه بچي د مړ کیدو دومره زیات ثواب دی چي اوس لا نیمګړي وه او د مور سره یې هم څه تعلق پیدا سوی نه وو نو د هغه بچي په مرګ به مور ته څومره ډېر ثواب تر لاسه کیږي.

《۱۶۶۳》: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ قَدَّمَ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي مخکي لیږلي وي (یعني مړه سوي وي)

ثَلَاثَةً مِنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنثَ كَانُوا لَهُ حِصْنًا حَصِينًا مِنَ النَّارِ قَالَ أَبُو

خپل درې نابالغ ماشومان نو هغه ماشومان به د هغه لپاره د دوږخ د اور څخه ټینګه پناه وي، ابوذر وویل:

ذَرٍ قَدَّمْتُ اثْنَيْنِ قَالَ وَاثْنَيْنِ فَقَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ سَيِّدُ الْقُرَّاءِ قَدَّمْتُ وَاحِدًا قَالَ وَوَاحِدًا . رواه الترمذي وابن ماجة و قال الترمذي هذا حديث غريب

ما دوه ماشومان مخكي ليږلي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د دوو حكم هم دغه دئ، ابو كعب چي د قاريانو سردار دئ وويل چي ما يو كوچني مخكي ليږلئ دئ (يعني يو اولاد مي مړ سوئ دئ) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د يوه هم دغه حكم دئ، ترمذي او ابن ماجه، ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۷۵، رقم: ۱۰۶۱، وابن ماجه ۱\۵۱۲، رقم: ۱۶۰۶.

﴿۱۶۶۴﴾: وَعَنْ قُرَّةَ الْمُزَنِيِّ أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْتِي النَّبِيَّ ﷺ وَمَعَهُ ابْنٌ لَهُ فَقَالَ لَهُ

د حضرت قرة بن مزني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی به د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضريدئ او د هغه سره به د هغه زوئ هم وو، يوه ورځ د هغه څخه

النَّبِيُّ ﷺ أَتُحِبُّهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَحَبَّكَ اللهُ كَمَا أُحِبُّهُ فَفَقَدَهُ النَّبِيُّ ﷺ

رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه چي ستا ددې زوئ سره ډېره مينه ده؟ هغه عرض وكړ اې د الله رسوله! ستا سره دي الله جل جلاله داسي مينه وكړي لكه څرنگه چي زه ددې زوئ سره مينه كوم، يو وار هغه سړی رانغلئ او هغه زوئ ورسره نه وو،

فَقَالَ لِي مَا فَعَلَ ابْنُ فُلَانٍ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ مَاتَ فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ لِأَبِيهِ

رسول الله ﷺ د صحابه كرامو څخه پوښتنه وكړه د فلاني سړي زوئ څه سو؟ صحابه كرامو عرض وكړ اې د الله رسوله! هغه مړ سوئ دئ، رسول الله ﷺ د هغه پلار ته وفرمايل:

أَمَا تُحِبُّ أَنْ لَا تَأْتِيَ بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ إِلَّا وَجَدْتَهُ يَنْتَظِرُكَ فَقَالَ الرَّجُلُ

ايا ته دا خوښوې چي ته د جنت دروازې ته ورسې او هلته خپل زوئ انتظار كونكی ووينې؟ (يعني دا چي ستا زوئ تا جنت ته بوزي) يو بل سړي چي دا واوريدل نو عرض يې وكړ:

يَا رَسُولَ اللهِ أَلَهُ خَاصَّةً أَمْ لِكُلِّنَا قَالَ بَلْ لِكُلِّكُمْ . رواه احمد

اې دالله رسوله ! دا زيرى يوازي ددې سړي لپاره دئ او كه زموږ ټولو لپاره ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ستاسو ټولو لپاره دئ ، احمد

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۵\۳۵.

## مړ كوچني مور اوپلار جنت ته بيايي

﴿۱۶۶۵﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ السِّقْطَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي

لَيُرَاغِمُ رَبَّهُ إِذَا أَدْخَلَ أَبَوَيْهِ النَّارَ فَيُقَالُ أَيُّهَا السِّقْطُ الْمُرَاغِمُ رَبَّهُ أَدْخِلْ

د اومه كوچني د مور او پلار الله تعالى دوږخ ته دداخلولو اراده وكړي نو هغه د الله تعالى سره جګړه كوي هغه ته به وويل سي اې جګړه كوونكې اوم ماشومه ! ته داخله كړه

أَبَوَيْكَ الْجَنَّةَ فَيَجُرُّهُمَا بِسَرَرِهِ حَتَّى يُدْخِلَهُمَا الْجَنَّةَ . رواه ابن ماجة .

خپل مور او پلار جنت ته ، نو هغه كوچني به خپل مور او پلار د نامه څخه راكاږي او هغوى به جنت ته بيايي . ابن ماجه

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۱\۵۱۳، رقم: ۱۶۰۸.

**د لغاتو حل** : (يُراغم) : يجادل ويخاصم (شخړه كوي).

## پر مصيبت باندي د صبر اجر

﴿۱۶۶۶﴾ : وَعَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُولُ اللهُ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى فرمايي :

سُبْحَانَهُ ابْنَ آدَمَ إِنْ صَبَرْتَ وَاحْتَسَبْتَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُولَى لَمْ أَرْضَ لَكَ ثَوَابًا دُونَ الْجَنَّةِ . رواه ابن ماجة .

اې انسانه ! كه ته پر لومړى صدمه صبر وكړې او د الله څخه د ثواب غوښتونكئ سې نو زه به ستا لپاره تر جنت په كم ثواب راضي نه سم . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۵۰۹، رقم: ۱۵۹۷.

## انا لله وانا اليه راجعون ويل

﴿۱۶۶۷﴾: وَعَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ وَلَا مُسْلِمَةٍ يُصَابُ بِمُصِيبَةٍ فَيَذْكُرُهَا وَإِنْ طَالَ عَهْدُهَا قَالَ عَبَّادٌ قَدُمَ عَهْدُهَا فَيُحْدِثُ لِذَلِكَ اسْتِرْجَاعًا إِلَّا جَدَّدَ اللّٰهُ لَهُ عِنْدَ ذَلِكَ فَأَعْطَاهُ مِثْلَ أَجْرِهَا يَوْمَ أُصِيبَ بِهَا. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت حسين بن علي رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كوم مسلمان سړي يا ښځي ته چي يو ستونزه ورسيږي او هغه هغه ستونزه په ياد كړي كه څه هم هر څومره زيات وخت تير سوئ وي او هر كله چي ورپه ياد سي او هغه وخت انا لله وانا اليه راجعون ووايي نو الله تعالى هغه ته هغه ثواب وركوي كوم ثواب چي د مصيبت په ورځ وركول كېدئ. احمد او بيهقي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۲۰۱، والبيهقي في شعب الايمان ۷\۱۱۷–۱۱۸، رقم: ۹۶۹۵.

﴿۱۶۶۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: "إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ أَحَدِكُمْ فَلْيَسْتَرْجِعْ فَإِنَّهُ مِنَ الْمَصَائِبِ". رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي چي د يو چا د څپليو تسمه وشكيږي نو هغه ته هم پكار دي چي انا لله وانا اليه راجعون ووايي ځكه چي دا هم يو ستونزه ده.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۷\۱۱۷، رقم: ۹۶۹۳.

**د لغاتو حل**: (شِسع): احد سبور النعل وهو الذي يدخل بين الاصبعين ويدخل طرفه في الثقب الذي في صدر النعل. (تسمې).

**تشريح**: د څپلې د تسمې د پرې كېدو څخه معمولي مصيبت او تكليف مراد دی د هغه

حاصل دادی چي که د يو معمولي درجې مصيبت او تکليف هم ورسيږي نو (انا لله) ويل پکار دي لکه په يوه روايت کي چي نقل دي يو وار نا څاپه يو څراغ مړ سو نو رسول الله ﷺ دغه آيت کريمه (انا لله) ووايه.

## پر نعمت باندي شکر او زحمت باندي صبر

﴿۱۶۶۹﴾: وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءَ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ

د حضرت ام درداء رضي الله عنها څخه روايت دئ چي ما د ابو درداء رضي الله عنه څخه اوريدلي دي چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

ﷺ يَقُولُ إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى قَالَ : يَا عِيْسٰى إِنِّيْ بَاعِثٌ مِّنْ بَعْدِكَ أُمَّةً إِذَا

چي فرمايل يې: الله تعالى حضرت عيسى عليه السلام ته وفرمايل: اې عيسى! زه ستا وروسته يو داسي قوم پيدا کوم چي هغو ته يو داسي شی تر لاسه سي چي هغه خوښوي

أَصَابَهُمْ مَا يُحِبُّوْنَ حَمِدُوا اللهَ وَإِنْ أَصَابَهُمْ مَا يَكْرَهُوْنَ احْتَسَبُوْا وَصَبَرُوْا

نو هغوی به د الله شکر ادا کړي او هرکله چي يو داشی ورته پېښ سي چي هغه نه خوښوي نو پر هغه صبر کوي

وَلاَ حِلْمَ وَلاَ عَقْلَ. فَقَالَ : يَا رَبِّ كَيْفَ يَكُوْنُ هٰذَا لَهُمْ وَلاَ حِلْمَ وَلاَ عَقْلَ؟

او د ثواب غوښتونکی وي يعني د مصيبت اخته کېدو له کبله د حلم او عقل څخه د بېگانه کېدو سربيره بيا هم صبر کوي

قَالَ : أُعْطِيْهِمْ مِنْ حِلْمِيْ وَعِلْمِيْ". رواهما البيهقي في شعب الإيمان

نو زه به ورته خپل بردباري او خپل عقل ورکړم. بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج:** البيهقي في شعب الايمان ۱۷ ۱۹۰، رقم: ۹۹۵۳.

**تشريح:** دلته د امت څخه د رسول الله ﷺ نيک او فرمانبرداره بندګان او صلحاء مراد دي د الله تعالى دا ارشاد چي نه به يې عقل وي نه به يې بردباري د دې مطلب دادی چي د دې باوجود د مصيبت او تکليف په وجه بردباري او عقل به يې ولاړ سي مګر پر تکليف او مصيبت باندي به صبر کوي او د ثواب غوښتونکي وي يعني بردباري او عقل دا دواړه داسي صفتونه دي چي د

دې په وجه انسان د مصيبت او حادثې پر وخت ژړا فرياد او بې صبري د اختيارولو څخه منعه کوي او په دې ګڼلو سره د صبر او سکون لمن به يې نيولې وي چې تاوان ګټه تکليف او راحت هر څه د الله تعالی د خوا څخه دي نو د دې دوو اوصافو څخه د کيدو سربېره د صبر او سکون لمن ټينګه نيول د تعجب قابله خبره ده ځکه حضرت عيسی عليه السلام پوښتنه وکړه چې کله د بردباري او عقل کمښت وي نو بيا صبر کول به څنګه ممکن وي او بيا د ثواب د اميد څه معنی ده د حضرت عيسی عليه السلام د دې اشکال او د هغوی د دې حيرت د جواب د بارګاه الوهيت څخه دا ورکول سو چې پر داسي وخت باندي به د امت مرحومه د افرادو رهنمائي د عقل او پوهي، حلم او بردباري هغه نور کوي چې کسبي به نه وي مګر د خپل خوا څخه به د عقل او بردباري دولت بلا کسبه ورته ورکړه سي چې د هغه په وجه به پر لوی مصيبت باندي هغوی صبر کوي او د ثواب اميد لرونکي به وي.

============

# بَابُ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ

## د قبرو د زيارت بيان

دلته د پورته عنوان په قائمولو سره هغه حديثونه نقل کيږي چې د هغه څخه قبرونو ته د تلو فضائل او اداب او په دې سره متعلق احکام او مسائل معلوميږي او دا ښودل سوي دي چې قبرونو ته د تلو مقصد څه دی او هلته د تلو څه فائده ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قبرو زيارت مستحب دی

﴿۱۶۷۰﴾: عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَيْتُكُمْ عَنْ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ما تاسو منعه کړي واست د

زِيَارَةِ الْقُبُورِ فَزُورُوهَا وَنَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُومِ الْأَضَاحِيِّ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَأَمْسِكُوا

قبرونو د زيارت کولو څخه نو اوس تاسو د هغه زيارت کوئ، ما تاسو د درو ورځو څخه وروسته د قرباني د غوښو خوړلو څخه منعه کړي واست

مَا بَدَا لَكُمْ وَنَهَيْتُكُمْ عَنِ النَّبِيذِ إِلَّا فِي سِقَاءٍ فَاشْرَبُوا فِي الْأَسْقِيَةِ كُلِّهَا وَلَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا. رواه مسلم

اوس تاسو د هغه قرباني غوښه تر څو پوري چي ساتلای سئ وساتئ او ما تاسو د نبيذو څخه منعه کړي واست مگر په ژي کي د دننه د نبيذو څخه مي نه واست منعه کړي اوس تاسو چي په کوم لوښي کي غواړئ چښئ مگر نشه راوستونکئ شی هيڅکله مه چښئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\ ۶۷۲، رقم: ۱۰۶- ۹۷۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د اسلام په شروع کي قبرونو ته د تلو څخه منعه فرمايلې ده ځکه چي د جاهليت زمانه نژدې وه نو دا انديښنه وه چي شايد خلک قبرونو ته په تلو سره د کفر او شرک خبري شروع نه کړي کله چي رسول الله ﷺ وليدل چي د اسلام په زړونو کي نقش حاصل کړي دي نو رسول الله ﷺ د قبرونو د زيارت کولو اجازت ورکړه د ټولو علماء په نزد د قبرونو زيارت کول مستحب دی ځکه چي قبرونو ته په تلو سره په زړه کي نرمي راځي مرگ را يادېږي او زړه او دماغ دې پر عقيدې باندي پخته کېږي چي دنيا فاني ده د دې څخه ماسيوا نوري ډيري فائدې دي بيا تر ټولو بهتره فائده دا هم ده چي قبرونو ته په تلو سره د مړو لپاره د رحمت او مغفرت د دعا موقع حاصلېږي چي د سنت څخه نقل دي چي رسول الله ﷺ به بقيع ته تشريف وړی او هلته مړو ته به يې سلام ادا کوی او د هغوی لپاره يې د مغفرت دعا کوله.

## د ښځو لپاره د قبرونو د زيارت مسئله

په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چي د اسلام په شروع کي چي د قبرونو د زيارت په باره کي کوم ممانعت فرمايل سوی وو هغه د ښځو په حق کي اوس هم پاته دی يا د خلکو په ډول هغوی ته هم قبرونو ته د تلو اجازت ورکول سوی دی د ځيني حضراتو رايه ده چي د خلکو په ډول ښځو ته هم قبرونو ته تلل صحيح دي خو د نورو حضراتو رايه داده چي د ښځو لپاره صحيح نه دي په دې اړه صحيح مسئله داده چي د ښځو لپاره يوازي د رسول الله ﷺ د روضه مطهره زيارت خو جائز دی مگر د دې ماسيوا نورو قبرونو ته تلل د هغوی لپاره صحيح نه دي د (باب الصلوٰة) حديث (لعن رسول الله ﷺ زائرات القبور .........الخ) د تشريح په ضمن کي په تفصيلي توگه سره مسئله فقهي په روايتونو کي بيان کړه سوې ده.

**د قبرونو د زيارت ډولونه**: د مقصد د اعتبار څخه قبرونو ته د تلو ډولونه دادي. اول:

يوازي د مرګ يادولو او اخرت ته د توجه كولو لپاره يوازي د قبرونو لېدل كافي دي، دا ضروري نه ده چي د صاحب قبر په باره كي دا هم معلوميدل پكار دي چي هغه څوک وو او څنګه وو . دوهم : د مغفرت دعاوي كول او د هغوی ته ثواب لېږل دا د هر مسلمان لپاره سنت ده، دريم : د حصول بركت او سعادت لپاره د اولياء الله او بزرګان دين د مزاراتو زيارت كول كيږي ځكه چي په برزخ كي د بزرګان دين او اولياء الله تصرف او د هغوی بركتونه بې شميره دي .

څلورم : د قريب او دوست د حق ادا كولو لپاره د خپلوانو، مور او پلار يا اندېوال قبر ته د دې لپاره تلل چي هلته په رسيدو سره د هغوی لپاره دعاء مغفرت او ايصال ثواب كول پر ځان د هغوی حق وبولي په حديث ابونعيم كي نقل دي كوم سړی چي د خپل مور او پلار يا په هغوی كي د يوه قبر زيارت د جمعې په ورځ وكړي نو د هغه دا فعل د حج برابر دی .

پنځم : د ديني وروركلوی ، ميني او انساني مهرباني په وجه څرنګه چي په يوه حديث كي نقل دي كله چي يو سړی د مومن ورور پر قبر تيريږي او هلته سلام او دعائې مغفرت ورته كوي نو مړی هغه پيژني او د هغه د سلام جواب وركوي .

**قبرونو ته د تللو اداب او احكام** : قبرونو ته د تللو څه احكام او اداب دادي چي شريعت ښودلي دي مثلا كله چي يو سړی دعاء مغفرت او ايثال ثواب د خاطره يو قبر ته ولاړ سي نو هلته د صاحب قبر مخ ته دي داسي ودريږي چي مخ يې د قبر خوا ته او شا يې د قبلې خوا ته وي دوهم قبر ته په رسيدو سره صاحب قبر ته سلام كوي دريم په قبر سره دي لاس نه لګوي څلورم قبر دي نه ښائسته كوي پنځم د قبر مخكي دي تعظيما نه كښته كوي او نه دي قبر ته سجده كوي شپږم د قبر خاوره دي پر مخ نه موږي چي دا د نصاراوو عادت دی .

ددې احكامو او ادابو برسېره ددا سو شيانو اختيارول كوم چي په شريعت كي وجود نه لري د ډيري ګمراهي او ضلالت خبره ده .

د قبر سره د قرآن كريم تلاوت كول مكروه نه دي بلكه مستحب دی كله چي يو سړی مړ سي هلته سورة اخلاص اوه واره په ويلو سره د هغه ثواب دي صاحب قبر ته وربخښي د نورو ورځو په نسبت د جمعې ورځ خصوصا د ورځي په شروع كي قبر ته تلل افضل دی په حرمين شريفين كي دا معمول دی چي خلک د جمعې په ورځ د ورځي په ابتدائي برخه كي معلی او بقيع ته زيات د قبور لپاره راځي او نقل دي چي د نورو ورځو په نسبت د جمعې په ورځ مړي ته زيات علم او ادراک وركول كيږي او هغه د جمعې په ورځ خپل قبر ته راتلونكي د نورو ورځو په

نسبت زيات پيژني ځرنګه چي مخکي هم ښودل سوي دي چي قبرونه بې ضرورته په پښنو سره پايمال کول يا پر هغه تلل مکروه دی دا مستحب دی چي د مرګ وروسته تر اوو ورځو پوري د مړي لخوا د الله تعالی په نامه څه خيرات کړي.

(ونهيتکم عن لحوم الاضاحي) د دې مطلب دادی چي د اسلام په شروع کي د مسلمانانو سره مال او دولت او اسباب معيشت پراخي نه وه اکثره خلک تنګ دست وه ځکه هر سړي قرباني نه سوه کولای رسول الله ﷺ قرباني کونکو ته فرمايلي وه د قربانۍ تر درو ورځو زياته په اېښودو سره مه خورئ مګر په مسکين او غريبانو خلکو کي يې ويشئ خو کله چي الله تعالی مسلمانانو ته مال او دولت او د اسباب معيشت وسعت ورکړ او د هغوی د تنګدستي او مفلسي دور ختم سو چي د هغه په وجه هغوی ته د نورو خلکو د قربانۍ د غوښو ضرورت پاته نه سو نو بيا رسول الله ﷺ اجازت ورکړه چي د قربانۍ غوښه چي تر څومره ورځو پوري وغواړي اېښودلای يې سي.

(نبيذ) يو خاص ډول شراب دي د هغه صورت دا وي چي خرما يا انګور په اوبو کي واچوي او هغه تر يوې مودې پوري په اوبو کي وي د دې وروسته هغه د يو شراب په ډول سي، دا نبيذ تر هغه وخته پوري حلال وي تر څو پوري چي په هغه کي نشه پيدا نسي رسول الله ﷺ په شروع کي حکم ورکړی وو چي نبيذ دي په ژي کي کښېښنول سي ځکه چي ژی نری وي په هغه کي اېښودل سوي نبيذ ژر ګرمېږي او د نشې اثر يې ځي.

په نورو لوښو کي د نبيذ د اېښودو څخه رسول الله ﷺ منعه وفرمايل مثلا لاکي لوښی وغيره کي دي نبيذ نه اچوي ځکه چي په دې ډول لوښو کي اېښودل سوي نبيذ ژر ګرمېدل چي د هغه په وجه به په هغه کي نشه پيدا کيدل او هغه وخت لږ مخکي شراب حرام سوی وه او خلکو اوس لا د شرابو لذت نه وو هير کړی ځکه انديښنه وه چي خلک په کرار کرار بيا د شرابو خوا ته متوجه نسي د دې وروسته چي د شرابو د حرمت حکم په پوره توګه سره د خلکو په زړونو کي قرار ونيوی او د شرابو څخه پرهيز لازم سو نو د دې خبري څه احتمال پاته نسو اوس د خلکو خواهشات بيا د شرابو خوا ته په څه حيثيت سره هم متوجه کيدای سي نو رسول الله ﷺ تاکيد وفرمايي چي نبيذ تر هغه پوري ځيښنل جائز دي تر څو پوري چي په هغه کي د نشې شبهه هم پاته نسي ځرنګه چي د حديث اخري الفاظ (ولا تشربوا مسکرا) څخه دا خبره واضحه کيږي او د هغه حاصل دادی چي د ممانعت تعلق د نشې سره دی د لوښي سره نه دي د لوښي ممانعت خو تر هغه وخته پوري يوازي د احتياط پيش نظر سوی وو اصل مقصد هغه وخت هم دا وو چي د

خلكو ميلان د نشې خوا ته دوهم وار ونسي .

## رسول الله ﷺ د خپل مور پر قبر

﴿۱۶۷۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ زَارَ النَّبِيُّ ﷺ قَبْرَ اُمِّهِ فَبَكَى وَأَبْكَى مَنْ حَوْلَهُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د خپل مور د قبر زيارت وكړ، رسول الله ﷺ وژړل او ورسره خلكو هم وژړل

فَقَالَ اسْتَأْذَنْتُ رَبِّي فِي أَنْ أَسْتَغْفِرَ لَهَا فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي وَاسْتَأْذَنْتُهُ فِي أَنْ أَزُورَ

رسول الله ﷺ وفرمايل: ما د خپل پروردگار څخه اجازت غوښتئ وو چي د خپلي مور د بخښني دعاء څيني وغوارم مگر ما ته اجازه رانه كړل سوه، بيا ما د هغې د قبر د زيارت اجازه وغوښتل

قَبْرَهَا فَأُذِنَ لِي فَزُورُوا الْقُبُورَ فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ الْمَوْتَ . رواه مسلم .

او ددې اجازه راكړل سول، نو تاسو د قبرونو زيارت كوئ ځكه چي دا مرگ په يادوي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۲/۶۷۱، رقم: ۱۰۸- ۹۷۶.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د مور محترمې نوم بي بي امنه وو، د رسول الله ﷺ عمر شپږ كاله وو چي بي بي امنه د رسول الله ﷺ په اخستو سره د خپلو خپلوانو د ملاقات لپاره مدينې منورې ته ولاړه كوم وخت چي هغه د مدينې څخه مكې ته دوهم وار راتلل او ابواء ته ورسيدل چي د مكې او مدينې په منځ كي د يو ځاى نوم دى نو هلته وفات سوه او هم هلته ښخه كړل سوه، يو وار چي رسول الله ﷺ د هغې قبر ته ولاړى نو د خپلي مور بي بي د بېلوالي په غم كي يې ډېر وژړل، د رسول الله ﷺ په ليدو سره هغه خلكو هم طاقت ونه كړ كوم چي د رسول الله ﷺ سره ملگري وه د رسول الله ﷺ اوښكو هغوى دومره متاثره كړل چي هغوى ټول هم په ژړا سوه .

## د رسول الله ﷺ مور او پلار

د دې حديث څخه دا خبره معلوميږي چي د رسول الله ﷺ مور بي بي د كفر په حالت كي وفات سوې وه د مخكي زمانې د علماؤ خيال دادى مگر وروستني علماؤ د رسول الله ﷺ د مور او پلار اسلام ثابت كړى دى بيا د دې هم درې صورتونه بيان كړي دي چي يا خو هغوى د حضرت ابراهيم عليه السلام پر دين قائم وه يا هغوى ته د اسلام دعوت نه وو رسيدلى او هغوى په ايام فطرت كي وه او په هغوى كي دنبوت د زمانې څخه مخكي وفات سوى وو يا دا چي الله تعالى د

رسول الله ﷺ د مور او پلار د دوهم وار ژوند په باره کي چي کوم حديثونه نقل کړي دي چي هغوی پر رسول الله ﷺ ايمان راوړی که څه هم د رسول الله ﷺ د مور او پلار دوهم وار ژوندي چي د کومو حديثونو څخه نقل دي هغه بذاته ضعيف دي مگر د تعدد طريق په ذريعه د دې تصحيح او تحسين سوی دی دا خبره گويا د مخکي زمانې د علماؤ څخه پټه ده خو الله تعالی وروسته علماؤ ته داڅرگنده کړه، شيخ جلال الدين سيوطي رحمة الله عليه په دې اړه تصنيف کړي دي او دا مسئله يې په دلائلو سره د مخالفينو د شبهاتو جواب يې ورکړی دی.

په هر حال دا مسئله ډيره نازکه ده ځکه د علماؤ دا فيصله ده چي په دې اړه چپتيا اختيار سي دا د الله تعالی معامله ده الله تعالی ښه په پوهيږي.

## قبر ته دورتلو دعاء

﴿۱۶۷۲﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُهُمْ إِذَا

د حضرت بريدة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به مسلمانانو ته ښودل چي کله

خَرَجُوا إِلَى الْمَقَابِرِ فَكَانَ قَائِلُهُمْ يَقُولُ فِي رِوَايَةِ أَبِي بَكْرٍ السَّلَامُ عَلَى أَهْلِ

تاسو قبرو ته ولاړ سئ نو دا کلمات واياست : السلام عليكم ..... ولكم العافية . ( اې

الدِّيَارِ وَفِي رِوَايَةِ زُهَيْرٍ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُسْلِمِينَ

کورونووالا! مؤمنانو او مسلمانانو پر تاسو دي سلامتيا وي

وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَلَاحِقُونَ نَسْأَلُ اللَّهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ . رواه مسلم

موږ به هم کله چي د الله تعالی خوښه وي ستاسره يو ځای کيږو او موږ د الله تعالی څخه د ځان لپاره او ستاسو لپاره د عافيت دعاء غواړو) مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۷۱، رقم: ۱۰۴- ۹۵۷.

**تشريح** : رسول الله ﷺ قبرونو ته کور ځکه وفرمايه چي څرنگه ژوندي انسانانو په خپلو کورونو کي اوسيږي همداسي مړی هم په خپلو خپلو قبرونو کي اوسيږي .

په ( اهل الديار من المومنين والمسلمين ) اکي من المومنين اهل الديار او د دې وضاحت دی همداسي والمسلمين د تاکيد لپاره استعمال سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۶۷۳﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَرَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ بِقُبُورِ الْمَدِينَةِ فَأَقْبَلَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په مدينه کي پر يو څو قبرو تير سو

عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهِ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ أَنْتُمْ

نو د هغو په لوري ېې مخ کړ او وه يې فرمايل : السلام عليكم ....بالاثر. اې د قبرو خاوندانو ! پر تاسو دي سلامتيا وي الله جل جلاله دي موږ او تاسو و بخښي تاسو

سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب .

زموږ څخه تر مخه ياست او موږ در پسې يو . ترمذي ، دا حديث حسن غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۶۹، رقم: ۱۰۵۳.

**تشريح** : د حديث الفاظ رسول الله ﷺ د قبرونو خوا ته مخ مبارک په کولو سره متوجه سو په دې کي د دې خبري دليل دی چي کله يو سړی اهل قبور ته سلام پيش کړي نو د هغه لپاره مستحب دی چي د هغه مخ دي د مړي مخ ته وي همداسي چي دعائې مغفرت او فاتحه خواني وغيره لپاره پر قبر ودريږي نو خپل مخ دي د مړي خوا ته ساتي د ټولو علماؤ او مجتهدينو دا مذهب دی او د دې مطابق د ټولو مسلمانانو عمل دی يوازي علامه ابن حجر رحمة الله عليه د دې خلاف دی هغه فرمائي زموږ په نزد مستحب دا دی چي پر قبر باندي حاضريدونکي دعائې مغفرت او فاتحه خواني پر وخت خپل مخ د قبلې خوا ته ساتي .

مظهر رحمة الله عليه فرمائي د مړي زيارت د هغه د ژوند د لېدني په ډول وي څرنگه چي د يوه سړي په ژوند کي د هغه سره د ملاقات پر وخت خپل مخ د هغه د مخ خوا ته متوجه کول کيږي همداسي د هغه د مرگ وروسته د هغه د ميت يا د هغه د قبر د زيارت پر وخت هم د مخ خيال ساتي بيا دا چي د يوه مړي په هغه طريقه او اداب کي خيال ساتل پکار دی کوم چي د هغه په ژوند کي د ناستي ولاړي پر وخت په خيال کي ساتل کيږي د مثال په توگه که يو سړی د يو داسي سړي د ملاقات پر وخت چي د خپل کمالات او فضائلو په وجه د لوړي مرتبې او د قدر خاوند وو، د ادب او احترام له موخي بالکل نږدې نه کښينستی بلکه د هغه څخه پر څه فاصله

كبنينستى نو اوس د هغه مړي يا د هغه د قبر د زيارت پر وخت هم په هغه فاصله سره دي ولاړ وي يا كښيني او كه د هغه په ژوند كي پر وخت د ملاقات هغه ته قريب كبنينستى نو كله چي د هغه د مړي د قبر زيارت كوي نو د هغه نژدې دي ودريږي يا دي كښيني.

كله چي د يوه قبر زيارت وكړل سي نو هغه وخت دي سورة فاتحه او قل هو الله احد درې واره ووايي او د هغه ثواب دي مړي ته په وربخښلو سره د هغه لپاره د بخښني دعا وكړي مگر دومره خبره بايد په خيال كي وي چي د قبر د زيارت پر وخت نه دي قبر ته لاس وروړي او نه دي يې ښائسته كوي ځكه چي دا د نصاراوو عادت دی همداسي قبر ته سجده كول د قبر مخكي ركوع كول او د قبر طواف كول هم ډيره سخته گناه ده او د ايمان او اسلام د دعوې خلاف ده، د دې خبرو څخه پرهيز كول پكار دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### قبر ته دورتلو دعاء

﴿۱۶۷۴﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّمَا كَانَ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چي كله به ددې شپه د رسول الله ﷺ سره وه

لَيْلَتُهَا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ يَخْرُجُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ إِلَى الْبَقِيعِ فَيَقُولُ

نو رسول الله ﷺ به د شپې په آخر كي د مديني هديرې (بقيع) ته تشريف وړئ او فرمايل به يې

السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ وَأَتَاكُمْ مَا تُوعَدُونَ غَدًا مُؤَجَّلُونَ وَإِنَّا إِنْ

السلام عليكم .... بقيع الغرقد. اې د مؤمنانو قومه! پر تاسو دي سلام وي او تاسو ته هغه شی راغلئ چي د هغه درسره وعده سوې وه سبا ته يعني د قيامت په ورځ او تاسو ته د يو ټاكل سوي وخت مهلت دركړل سو

شَاءَ اللّٰهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِأَهْلِ بَقِيعِ الْغَرْقَدِ. رواه مسلم

او موږ هم كه الله تعالى وغوښتل تاسو ته راتلونكي يو اې الله بقيع الغرقد والا وبخښې. (بقيع الغرقد د مديني د هديرې نوم دئ) .مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۶۹، رقم: ۱۰۲- ۹۷۴.

**تشریح** : په مدینه کي د یو ځای نوم بقیع دی چي په هغه کي د مدینې د خلګو قبرونه دي، دې هدیرې ته جنت البقیع هم ویل کیږي په دې ځای کي د غرقد درختي ډیري دي ځکه دې ته په دعاء مغفرت کي بقیع غرقد وفرمایل سو .

**قبر ته دورتلو دعاء**

﴿۱۶۷۵﴾ : وَعَنۡهَا قَالَتۡ کَیۡفَ أَقُولُ یَا رَسُولَ اللهِ تعني في زیارة القبور قَالَ قُولِي

د حضرت عائشي ﷺ څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي د قبرو د زیارت په وخت کي څه وایم ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : دا وایه

السَّلَامُ عَلَی أَهۡلِ الدِّیَارِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِینَ وَالۡمُسۡلِمِینَ وَیَرۡحَمُ اللهُ الۡمُسۡتَقۡدِمِینَ

(السلام علی..... للاحقون) : پر مؤمن او مسلمان کوروالاوو دي سلامتیا وي او الله ﷻ دي زموږ په مخکنیو

مِنَّا وَالۡمُسۡتَأۡخِرِینَ وَإِنَّا إِنۡ شَاءَ اللهُ بِکُمۡ لَلَاحِقُونَ . رواه مسلم .

او وروستنیو رحم وکړي او موږ هم که الله ﷻ وغواړي ستاسو سره یو ځای کیدونکي یو . مسلم .

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۶۶۹،رقم: ۱۰۳- ۹۷۴.

**تشریح** : د حضرت ابن عباس ﷺ څخه یو روایت نقل دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چي د خپل یوه مومن ورو قبر ته ورورسیږي چي په دنیا کي یې پیژندی بیا هغه ته سلام پیش کړي نو د قبر خاوند هغه پیژني او د هغه د سلام جواب ورکوي .

**د مور او پلار د قبرو زیارت**

﴿۱۶۷۶﴾ : وَعَنۡ مُحَمَّدِ بۡنِ النُّعۡمَانِ یَرۡفَعُ الۡحَدِیۡثَ إِلَی النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنۡ زَارَ قَبۡرَ أَبَوَیۡهِ أَوۡ أَحَدِهِمَا فِيۡ کُلِّ جُمُعَةٍ غُفِرَ لَهُ وَکُتِبَ بَرًّا " . رواه البیهقي في شعب الإیمان مرسلا

حضرت محمد بن النعمان ﷺ دا حدیث تر رسول الله ﷺ پوري رسولئ دئ او وایي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي هره اونۍ د خپل مور او پلار د قبرو زیارت کوي یا په هغو کي د یوه د

قبر ، نو هغه بخښل كيږي او نيک ليکل كيږي . بيهقي

**تخريج** : البيهقي في شعب الايمان ٦\٢٠١، رقم: ٧٩٠١.

## د قبرو زيارت كول

﴿١٦٧٧﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ فَزُوْرُوْهَا فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ . رواه ابن ماجه

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما به تاسو د قبرو د زيارت كولو څخه منعه كولاست ، اوس تاسو د هغو زيارت كوئ ځكه چي د قبرو زيارت كول سړى د دنيا څخه بې شوقه كوي او آخرت ورپه يادوي . ابن ماجه .

**تخريج** : سنن ابن ماجه ١\٥٠١، رقم: ١٥٧١.

**تشريح** : په حديث كي گويا قبرونو ته د تلو علت بيانيږي چي قبرونو ته ولي تلل پكار دي فرمايل كيږي چي قبرونو ته تلل په حقيقت كي د انسان په زړه او دماغ كي دنيا او د دنيا د شيانو څخه د بي شوقى اظهار پيدا كوي چي همدا كول پكار دي، نو د دنيا سره زړه لگول او په خپل ژوند باندي غرور كول نه دي پكار، لوى انسانان په دې دنيا كي پيدا سوه چا چي د خپل سلطنت او حكومت په مرسته د خدائي دعوه وكړه، چا د دولت او طاقت په نشه كي د خپلي برترۍ مظاهره وكړه، څوك د سائنس دان او ايجاداتو په دوكه كي د خپلي برتري مظاهره كوي او چا د عزت او اقتدار په زور امن او سكون جهنم او بهيدونكې وينه په درياب كي بدله كړه چي انجام يې څرگند دى .

هو كوم وخت چي هغوى تر خاورو لاندي سوه نو څوك نوم اخستونكي يې پاته نه سو كله چي د هغو بدنونه په درياب كي واچول سوه نو د ځپو يوې ځپې د كبر او غرور مجسمه يې د دريابي حيوان ته وروړسول او كله چي د هغوى بدن د اور شعلو ته حواله كړه سو نو د بې چارگي او بې كسى څخه پرته نور هيڅ نه وو .

قبرونو ته د تلو دوهمه وجه دا بيان سوې ده چي سړي ته اخرت رايادوي يعني قبرونو ته په رسيدو سره دا احساس پيدا كيږي چي د دې عالم څخه پرته يو بل عالم هم سته چي هلته تلل دي او هلته په تلو سره د دې عالم د يوه يوه عمل حساب وركول دي .

د دې څخه معلومه سوه چي هديرې ته په رسيدو سره قبرونو ته د عبرت په نظر وكتل سي او

مرګ را یاد کړه سي چي د مرګ یاد په حقیقت کي د دنیوي لذتونو فریب ځرګندونکی او د ګناهونو او معصیت هر خیرن والی پاکوونکی دی.

## د ښځو د قبرو د زیارت ځخه منعه

﴿۱۶۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُوْرِ. رواه أحمد والترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح وقال: قد رأى بعض أهل العلم أن هذا كان قبل أن يرخص النبي في زيارة القبور فلما رخص دخل في رخصته الرجال والنساء. وقال بعضهم: إنما كره زيارة القبور للنساء لقلة صبرهن وكثرة جزعهن. تم كلامه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه ځخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ پر هغه ښځو چي قبرو ته ډیري ځي لعنت ویلئ دئ، احمد، ترمذي، ابن ماجه، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن صحیح دئ (د ځیني عالمانو خیال دئ چي دا لعنت د اجازې تر مخه دئ بیا چي رسول الله ﷺ د قبرو د زیارت اجازه ورکړل نو په دې کي سړي او ښځي دواړه شامل سول، او ځیني علماء وایي چي د ښځو لپاره د قبرو زیارت کول مکروه دئ ځکه چي په دوی کي د صبر ماده کمه وي او هغوی ژړاوي او انګولاوي زیاتي کوي. د ترمذي کلام پوره سو.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\ ۳۴۲، رقم: ۱۰۵۶، وابن ماجه ۱\ ۵۰۲، رقم: ۱۵۷۵.

## د مړي لحاظ کول پکار دي

﴿۱۶۷۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِي الَّذِي دُفِنَ فِيهِ رَسُوْلُ اللهِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها ځخه روایت دئ چي زه به هغه حجرې ته تلم په کوم کي چي رسول الله ﷺ ښخ کړل سوئ وو

ﷺ وَأَبِي فَأَضَعُ ثَوْبِي فَأَقُوْلُ إِنَّمَا هُوَ زَوْجِي وَأَبِي فَلَمَّا دُفِنَ عُمَرُ مَعَهُمْ فَوَاللهِ

او ما به خپل جامې (څادر وغیره) لاندي اېښودل او په زړه کي به مي ویل چي دا زما خاوند دئ (یعني رسول الله ﷺ) او دا زما پلار دئ (یعني ابوبکر صدیق رضي الله عنه) نو د دوی څخه شرم او

حجاب کول پکار دي، بیا چې کله حضرت عمر ﷜ په هغه حجره کې ښخ کړل سو نو په الله قسم

مَا دَخَلْتُ إِلَّا وَأَنَا مَشْدُودَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِي حَيَاءً مِنْ عُمَرَ. رواه احمد.

چې بیا زه هیڅکله هم حجرې ته د ننه نه سوم مگر په داسي حال کې چې خپل بدن به مې د حضرت عمر څخه د حیاء له کبله په جامو کې نغښتئ وو. احمد.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ٦\٢٠٢.

**تشریح**: دا حدیث په وضاحت سره د دې خبرې دلیل وړاندې کوي چې د مړي او د قبرو د زیارت پر وخت هغه لحاظ ساتل پکار دی کوم چې د هغوی په ژوند کې کیدی په دې اړه د یوه صحابي حضرت عقبه بن عامر ﷜ دا ارشاد نقل دی.

که زه پر اور یا د توري پر تیرې ثوکي باندي خپله پښه کښېږدم چې د هغه په نتیجه کې زما پښه وسوزي یا پریکړل سي نو زما په نزد دا غوره ده په نسبت د دې خبرې چې زه د یوه سړي پر قبر و خېژم او زما په نزد پر قبرونو بولي کول داسي دي لکه یو څوک چې په ډک بازار کې د ټولو خلگو مخکې بولي کوي.

همداسي حضرت ابن ابي الدینا د حضرت سلیم بن غفیر په اړه دا نقلوي چې یو ځل هغه د یوې هدیرې سره تېرېدی نو هغه ته ډېر سخت د بولو حاجت پیدا سو د هغه د کیفیت په لیدو سره خلگو ورته وویل چې د سپرلۍ څخه ولې نه راکښته کیږې او قضاء حاجت ولې نه پوره کوې، هغه وفرمایل: سبحان الله (یعني دا څومره غلطه خبره تاسو کوئ)، په الله دي مي قسم وي زه د مړو څخه داسي حیا کوم لکه څرنگه چې د ژوندو څخه یې کوم.

=============

# كِتَابُ الـزكوة

## دزكات بيان

د زكوة معنى : د زكوة لفظي معنى د طهارت ، بركت او زياتيدو ده، د شريعت په اصطلاح كي زكوة د خپل مال د معين مقدار هغه برخه چي شريعت ټاكلې ده مستحق مالك جوړولو ته وايي، د زكوة لغوي او اصطلاحي معنى دواړو مخ ته په ايښودو سره په دې پوه سئ چي دا كار يعني د خپل مال د ټاكلي مقدار د يوې برخي مالك جوړول د مال پاته برخه پاكول په دې كي د الله تعالى لخوا څخه بركت وركول كيږي او د هغه مال نه يوازي دا چي په دنيا كي زياتيږي مگر په آخرت كي الله تعالى د هغه په ثواب كي زياتوب كوي او د هغه مالك د گناهونو د لويو خصلتونو مثلا بخل او داسي نورو څخه پاكوي ځكه دې فعل ته زكوة ويل كيږي.

زكوة ته صدقه هم ويل كيږي چي دا كار د خپل مال د يوې برخي په كښلو د ايمان د دعوې پر صحت او صداقت باندي دليل دى.

**زكوة كله فرض سو** : صدقه فطر په دوهم هجري كي واجب سوى وو د زكوة د فرضيت په باره كي كه څه هم د علماؤ په نزد اختلافي اقوال دي خو صحيح قول دادى چي د زكوة د فرضيت حكم خو د هجرت مخكي په مكه كي نازل سوى وو خو د دې حكم په نفاذ مدينه كي د هجرت پر دوهم كال د روژې پر اول تاريخ سوى دى او د دې اعلان وكړه سو.

**زكوة پر ټولو امتونو باندي فرض وو** : په اجتماعي توگه سره دا مسئله ده زكوة پر انبياء عليهم السلام باندي فرض او واجب نه دي البته څرنگه چي تيرو ټولو امتونو باندي فرض وو همداسي د امت محمدي څخه مخكي پر هر امت باندي زكوة فرض وو د زكوة اندازه د مال په تحديد كي اختلاف ضرور راغلى دى مگر دا خبره اټله يا حتمي ده چي د زكوة په باره كي اسلامي شريعت ډير اسان دى او د تيرو انبياء عليهم السلام په شريعتونو كي دومره اساني نه وه.

**د زكوة اهميت او تاكيد** : په قرآن كريم كي دوديرش ځايه د زكوة ذكر د لمانځه سره فرمايل سوى دى په مظاهر حق كي د د دوديرشو پر ځاى د درو اتيا شمير دى مگر دا صحيح نه معلوميږي د دې وخت د علماؤ تحقيق دادى چي په قرآن مجيد كي د لمانځه سره د زكوة ذكر دوديرش ځايه دى، د دې سره نه يوازي دا چي د لمانځه او زكوة د دواړو كمال اتصال ښكاره

زیات وي او هغه د نصاب حد ته ورسیږي نو په هغه کي زکوة واجبیږي خو دا خبره په خیال کي ساتل پکار ده چي هغه پور د زکوة لپاره مانع وجوب دی چي د هغه مطالبه د بندګانو لخوا څخه وي، نذر، کفارات فطرانه او د دې ډول نور مطالبات چي د هغه تعلق یوازي د الله تعالی د ذات سره دی او یوه بنده ته د هغه د مطالبې کولو حق نسته د زکوة لپاره مانع وجوب نه دی .هو داسي پور چي د هغه تعلق خو د الله تعالی سره وي خو د هغه د مطالبې او وصولي حق بندګانو ته رسیږي لکه زکوة عشر ، خراج وغیره چي امام هغه وخت د الله تعالی لخوا څخه د هغه مطالبه کولای سي نو دا هم د زکوة لپاره مانع وجود دی خو د وخت امام او حاکم په مال ظاهري کي مطالبه کولای سي مثلا په حیوانانو کي یا په هغه د تجارت په مال کي چي ښار ته راوړل کیږي یا استل کیږي یا په تقدو روپو کي، لیکن په هغه مال کي چي د هغه تجارت په ښار کي دننه محدود وي نو په هغه کي حاکم یا د ښځي مهر چي د هغه تقاضا ښځه کوي نو د هغې د مهر په اندازه په مال کي زکوة نه واجبیږي .

په بحر الرائق کي دی معتمد مذهب دادی چي پور د زکوة او صدقه فطر لپاره مانع وجوب دی او مطلقا پور مانع دی که څه هم معجل یا موجل وي که څه هم د ښځي مهر موجل وي چي د هغه مدت تاجیل طلاق یا پر مرګ باندي ختمیږي مګر ځیني حضرات فرمائي چي مهر موجل د زکوة لپاره مانع وجوب نه دی ځکه چي په عامه توګه سره د دې مطالبه نه کیږي پر خلاف د مهر معجل چي د هغه مطالبه کیږي خو ځیني علماؤ په دې اړه دا لیکلي دي که خاوند د ادائیګي مهر اراده ولري نو مهر موجل د زکوة لپاره مانع وجوب دی کنې نه دی ځکه چي دا په پور کي نه شمېرل کیږي .

د حضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه او صاحبین یعني امام ابویوسف او امام محمد رحمة الله علیهما په منځ کي په دې اړه اختلاف دی که د یوې ښځي خاوند مالداره وي نو هغه د خپل مهر په وجه چي د خپل د خاوند پر ذمه پاته دی غنیه به ګڼل کیږي او که نه؟، یعني هغه ښځه چي هغې ته زکوة نه ورکول کیږي د صاحبینو مذهب خو دادی چي داسي ښځه به غنیه کېدل معتبر وي یعني د زکوة مستحقه به نه وي مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي دا اختلاف یوازي د مهر معجل په باره کي دی د مهر مؤجل په صورت کي د درو سره حضراتو متفقه مذهب دادی چي داسي ښځه به مالداره نه وي .

**د ضرورت اصلي مطلب** : د ضرورت اصلیه څخه مراد دا شیان دي: د اوسیدو لپاره سرای، د اغوستلو لپاره جامې، د کور لپاره اسباب، د سپرلۍ لپاره آس ، موټر سائیکل او داسي نور،

د خدمت لپاره مزدور، د استعمال لپاره وسله، د اهل علم لپاره کتابونه، د کاریگر لپاره د هغه د کسب سامان اود اسي نور، د مثال په توگه يو سړي يو ځای د تجارت په نيت واخلی او هغه ځای د هغه د اوسيدو څخه فارغ هم وي نو په هغه کي زکوة واجبيږي همداسي په نورو شيانو کي هم قياس کيدای سي، که سرای، غلام او داسي نور د خپل ضرورت او حاجت لپاره وي او د هغه د تجارت نيت نه وي نو بيا په هغه کي زکوة نه واجبيږي .

**کامل ملکيت** : مخکي د زکوة واجب کيدو شرائط په بيانولو سره دا شرط هم بيان کړه سوی دی چي په مال کي د هغه ملکيت په پوره او کامله توگه سره وي د کامل ملکيت څخه مراد دادی چي د مال اصل مالک هم وي او هغه مال د هغه په قبضه کي هم وي کوم مال چي د هغه په قبضه کي نه وي يا مالک خو وي قبضه کي نه وي يا په قبضه کي وي نو پر هغه زکوة فرض نه دی د مکاتب په کټمل سوي مال کي زکوة نسته مکاتب هغه غلام دی چي د هغه اقا په دې شرط ازاد کړی وي چي هغه دومره روپی په کټلو سره هغه ته ورکړي کله چي هغومره روپی په کټلو سره هغه ته ورنه کړي غلام به وي او د ورکولو وروسته ته خپله پر خپل مکاتب باندي نه هغه مولی دی ځکه چي هغه مال د مکاتب په ملک کي نه دی د هغه په قبضه کي دی همداسي د مولی په قبضه کي نه دی که څه هم د هغه په ملک کي وي .

همداسي په مال ضمار کي هم زکوة نه واجب کيږي ځکه چي هغه مال په ملکيت کي خو وي خو په قبضه کي نه وي مال ضمار هغه ته وائي چي د خپلي رسائي دباندي وي د دې څو ډولونه دي اول هغه مال چي ورک سي دوهم هغه مال چي په ځنگل کي ښخ کړه سوی وي چيري چي يې ښخ کړی وي هغه ځيني هير سي دريم هغه مال چي په درياب کي غرق سي څلورم هغه مال چي يو سړی يې په زبردستي تر لاسه کي پنځم هغه مال چي د يوه ظالم د توري په زور واخسته سي شپږم هغه مال چي بطور قرض واخستل سي او وروسته د پوروړي د پور څخه منکر سي او څه تمسک او گواهي د هغه نه وي هغه پوروړی مالدار وي يا مفلس که انکار کوي نو څه تمسک يا گواهي وي يا خپله قاضي په دې پوهيږي چي هغه دومره مال په پور اخستی وو مگر په دې حال کي به زکوة په دې تفصيل سره واجب کيږي چي .

اول : که هغه پور د مال تجارت په بدله کي وي کله چي د نصاب پنځمه برخي وصولي سي نو د تيرو ورځو زکوة دي ادا کړي .

دوهم : که هغه پور د مال تجارت په بدله کي نه وي مثلا د کور اغوستو جامې خرڅي کړي يا د خدمت غلام خرڅ کړي يا د اوسيدو سرای خرڅ کړي او د هغه قيمت د رانيونکي پر ذمه پور سي

نو په هغه کي د تيرو ورځو زکوة هغه وخت واجب کيږي کله چي په اندازه نصاب وصول سي .

دريم : که پور د هغه شي په بدله کي وي چي مال نه دی مگر مهر وصيت او بدل خلع وغيره نو په دې کي زکوة هغه وخت واجب کيږي کله چي په اندازه نصاب وصول سي او پر هغه پوره کال تير سي يعني په هغه کي د تيرو ورځو څخه واجب کيږي مگر يوازي د هغه کال زکوة به واجب وي چي په هغه کي پر مال قابض وو مگر دا حکم د هغه سړي په باره کي دی چي د مخکي څخه صاحب نصاب وي که د مخکي څخه صاحب نصاب نه وي نو دا مال به د هغه په حق کي پر منزله د مال مستفاد وي په اول مال سره د دې مال به هم زکوة واجب وي او د يوه کال تيريدل به شرط نه وي .

**د زکوة د اداکيدو لپاره نيت شرط دی** : د زکوة د اداکيدو لپاره شرط دی چي زکوة ورکونکی د زکوة ورکولو نيت وکړي يعني دا اراده وکړي چي پر ما باندي څومره مال ورکول چي فرض دی زه يې د الله تعالی د رضا لپاره ورکوم يا کوم وخت چي د خپل مال څخه د زکوة برخه وکاږي هغه وخت د زکوة نيت دي وکړي چي دومره زکوة ورکوم .

که يو سړی خپل ټول مال د الله تعالی په لار کي خيرات کړي او د زکوة نيت ونه کړي نو د هغه د ذمې څخه زکوة ساقط کيږي يعني پر هغه د زکوة مطالبه نه پاته کيږي په شرط د دې چي هغه مال هغه د څه بل واجب په نيت نه وي وکړی هو که يو سړی ټول مال خو نه مگر لږ مال بغير د زکوة د نيت څخه د الله تعالی په لار کي خيرات کي نو د امام محمد رحمة الله عليه په نزد د هغه د مال زکوة ادا کيږي خو د امام ابويوسف رحمة الله عليه په نزد د هغه مال زکوة به ادا نه وي امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه څخه هم دا نقل دي او پر دې قول فتوی هم ده .

زکوة د ساقط کولو لپاره حيله کول مکروه دي که يو سړی دا وواييي چي مال د زکوة د ادا کولو څخه وساتل سي او د هغه صورت دا وکړي چي کال پوره کيږي نو څه ورځي مخکي خپل مال دوهم ته په هبه کولو سره هغه پر قابض کړي همدا سي د زکوة د اداکيدو څخه به وساتل سي که څه هم په دې صورت سره زکوة خو به ساقط سي خو دا ښه کار نه دی .

که يو سړی يو غلام د تجارت لپاره رانيسي خو وروسته د هغه څخه د خدمت اخستو نيت يې وسو نو هغه غلام به د تجارت لپاره پاته نسي مگر د خدمت لپاره به پاته سي ځکه زکوة نه واجب کيږي همدا سي که يو غلام د خدمت په نيت رانيسي بيا وروسته د هغه د تجارت نيت وکړي نو هغه غلام به تر هغه وخته پوري د تجارت په حکم کي داخل نه وي تر څو پوري چي هغه سړی هغه خرڅ نه کړي د خرڅ وروسته د هغه په قيمت کي زکوة واجب کيږي .

# د نصاب تعريف

د زكوة نصاب د مال هغه خاصي اندازې ته وايي چي په هغه كي شريعت زكوة فرض كړى دى او د كومي اندازې څخه چي په كوم مال كي زكوة نه فرض كيږي مثلا اوښ لپاره پنځه او پنځه ويشت او داسي نور شمير او د پسو لپاره څلويښت او يوسلو يوويشت او داسي نور شمير او د سپينو زرو لپاره دوه سوه درهمه او د سرو زرو لپاره شل مثقاله.

**د نصاب ډولونه** : د نصاب دوه ډولونه دي.

اول : نامي يعني زياتيدونكى مال دوهم : غير نامي يعني نه زياتيدونكى مال بيا دا چي د تجارت مال په نفع سره زياتيږي حيوانان د كوچنيانو په پيدائش سره زياتيږي د تقديري اطلاق سره زر سپين زرو باندي كيږي دا شيان په ظاهره خونه زياتيږي مگر د زياتيدو صلاحيت لري نصاب غير نامي اطلاق د كور او د كور پر هغو اسبابو باندي كيږي چي د ضرورت اصليه څخه ماسوا وي.

په نصاب نامي او په غير نامي كي فرق : نصاب نامي او غير نامي كي فرق دادى چي پر نصاب مالك باندي زكوة فرض وي او د هغه لپاره نور زكوة نذر او د صدقات واجبه مال اخستل صحيح نه دى او د هغه لپاره صدقه فطر وركول او قرباني كول واجب كيږي د نصاب غير نامي پر مالك باندي زكوة نه فرض كيږي خو د هغه لپاره هم زكوة نذر او صدقه واجبه مال اخستل صحيح نه دي او پر هغه هم صدقه فطر كول او قرباني كول واجب كيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### معاذ بن جبل ته لارښووني

﴿۱۶۸۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه وليږئ

الْيَمَنِ فَقَالَ إِنَّكَ تَأْتِي قَوْمًا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا

يمن ته او ورته وه يې فرمايل : ته يو داسي قوم ته ځې چي اهل كتاب دي (يعني يهود او نصارا دي) نو هغوى دې خبري شاهدي ته راوبله چي د الله جل جلاله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته

اللّٰهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللّٰهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ

او محمد ﷺ د الله تعالی رسول دئ او که هغوی دا ومني نو هغوی ته وښیه چي الله تعالی پر هغوی فرض کړي دي

خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لِذَلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللهَ

پنځه لمنځونه په شپه او ورځ کي که هغوی دا هم قبول کړي نو بیا هغوی ته وښیه چي الله تعالی

افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ فَتُرَدُّ فِي فُقَرَائِهِمْ فَإِنْ هُمْ

پر هغوی زکوة فرض کړی دئ چي د شتمنو څخه واخیستل سي او پر غریبانو وویشل سي، که

أَطَاعُوا لِذَلِكَ فَإِيَّاكَ وَكَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ حِجَابٌ. متفق علیه

هغوی دا هم ومني نو د هغوی غوره مال (په زکوة کي) مه اخله (بلکه درمیانه مال اخله) او (د زکوة په تر لاسه کولو کي) خپل ځان د مظلوم د ښیراوو څخه وساته ځکه چي د مظلوم د عاء او د الله تعالی په منځ کي پرده نسته. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳۵۷\۱۳، رقم: ۱۴۹۶، ومسلم ۱۱\۵۰، رقم: ۲۹-۱۹.

**تشریح**: که څه هم په یمن کي مشرک او ذمي کافر هم وو خو په ټولو قومو کي د اهل کتابو کثرت وو ځکه رسول الله ﷺ حضرت معاذ ؓ یمن ته د استولو په وخت د هغو خلکو څخه په خاصه توگه سره یوازي د اهل کتابو ذکر وکړ.

## د جنگ د اعلان څخه مخکښي کافرانو ته د اسلام دعوت ورکول واجب دی

ابن مالک رحمة الله علیه فرمائي دا حدیث په دې خبري دلالت کوي چي د کفارو په مقابله کي د اعلان جنگ مخکي د اسلام دعوت ورکول واجب دی مگر دا په هغه صورت کي دی کله چي کفارو ته د اسلام دعوت نه وو رسیدلی او هغوی د الله تعالی اخري دین خوا ته د مخکي څخه نه وه بلل سوي که صورت حال دا وي چي هغوی ته د اسلام دعوت مخکي رسیدلی وي نو اوس د جنگ مخکي هغوی ته د اسلام دعوت ورکول واجب نه دی مگر مستحب دی.

## د زکوة نه ادا کولو سزا

﴿۱۶۸۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَا مِنْ صَاحِبِ ذَهَبٍ وَلَا

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د سرو او

فِضَّةٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ صُفِّحَتْ لَهُ صَفَائِحُ مِنْ

سپینو زرو خاوند وي او هغه د هغه حق (یعني زکوة) ادا نه کړي نو د قیامت په ورځ به د هغه لپاره تخت جوړ سي

نَارٍ فَأُحْمِيَ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَيُكْوَى بِهَا جَنْبُهُ وَجَبِينُهُ وَظَهْرُهُ كُلَّمَا بَرَدَتْ

چي پر اور به تودیږي او په هغه تخت سره به د هغه بغلونه، تندی او ملا داغیږي او هر کله چي هغه یخ سي

أُعِيدَتْ لَهُ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ

نو بیا به د دوږخ په اور کي تودیږي او بیا به په داغیږي او همیشه به ورسره داسي کیږي، او دا ورځ په کومه ورځ چي به داسي ورسره کول کیږي دومره لویه وي چي د هغه اندازه به د دنیا د پنځوس زرو کلو برابر وي تر دې چي د بندګانو حساب کتاب به ختم سي

فَيَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ فَالْإِبِلُ قَالَ وَلَا

او جنت ته تلونکي به جنت ته او دوږخ ته تلونکي به دوږخ ته ولیږل سي . د رسول الله ﷺ د ارشاد اوریدو سره پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله ! دا حکم خو د زرو دئ د اوښانو څه حکم دئ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

صَاحِبُ إِبِلٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا وَمِنْ حَقِّهَا حَلَبُهَا يَوْمَ وِرْدِهَا إِلَّا إِذَا كَانَ

د اوښانو خاوند هم که هغه د اوښانو حق ادا نه کړي نو د قیامت په ورځ به د اوښانو خاوند

يَوْمُ الْقِيَامَةِ بُطِحَ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ أَوْفَرَ مَا كَانَتْ لَا يَفْقِدُ مِنْهَا فَصِيلًا وَاحِدًا

پر مخي د اوښانو مخکي په یو هوار میدان کي را وغورزول سي او د هغه ټول اوښان سره د بچیانو به هلته موجود وي یعني په شمیر به پوره وي او د اوښانو خاوند به په هغوی کي یو هم کم پیدا نه کړي، تر دې چي یو بچی به یې هم کم نه وي

تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا وَتَعَضُّهُ بِأَفْوَاهِهَا كُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ أُولَاهَا رُدَّ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا فِي يَوْمٍ

او دا اوښان او بچي به ښه څاربه وي خپل خاوند به تر پښو لاندي ميده كوي او په خپلو غاښو سره به يې چيچي او هر كله چي د اوښانو يو قطار د ميده كولو او چيچلو څخه وروسته ولاړ سي نو دوهم قطار به راسي تر پښو لاندي به يې ميده كوي او په غاښو به يې چيچي او هميشه به ورسره داسي كيږي

كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ فَيَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى

او په كومه ورځ چي به داسي كيږي د هغې ورځي اندازه به پنځوس زره كاله وي تر څو چي د بندګانو په منځ كي به پريكړه وسي

الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَالْبَقَرُ وَالْغَنَمُ قَالَ وَلَا صَاحِبُ بَقَرٍ

او هغوى به دوږخ او جنت ته ولاړ سي ، د دې په اوريدو سره د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول اې دالله رسوله ! د غواوو او د پسو د خاوند به څه حال وي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل

وَلَا غَنَمٍ لَا يُؤَدِّي مِنْهَا حَقَّهَا إِلَّا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ بُطِحَ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ لَا

څوك چي د هغوى حق (زكات) نه ادا كوي د قيامت په ورځ به په هوار ميدان كي پرمخي پريې ايستل سي

يَفْقِدُ مِنْهَا شَيْئًا لَيْسَ فِيهَا عَقْصَاءُ وَلَا جَلْحَاءُ وَلَا عَضْبَاءُ تَنْطَحُهُ بِقُرُونِهَا

او د هغه غواوو او پسو څخه به هيڅ شی كم نه وي او د هغوى ښكرونه به غونډ نه وي او نه به مات وي او نه به په هغوى كي بې ښكره وي يعني د ټولو پر سرونو به ښكرونه وي او سالم به وي

وَتَطَؤُهُ بِأَظْلَافِهَا كُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ أُولَاهَا رُدَّ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ

دا غواوي او پسونو به خپل خاوند په ښكرو وهي او په خپلو نوكانو سره به يې نوكاري كوي او هر كله چي يو قطار خپل كار وكړي ولاړ سي نو دوهم قطار به راسي خپل كار به كوي او همداسي به كيږي او په كومه ورځ چي به داسي كيږي د هغې ورځي اندازه به

خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ فَيَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا

پنځوس زره كاله وي تر څو چي د بندګانو په منځ كي پريكړه وسي او هغوى به پر خپله خپله لار

جنت او دوږخ ته ولاړ سي،

إِلَى النَّارِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَالْخَيْلُ قَالَ الْخَيْلُ ثَلَاثَةٌ هِيَ لِرَجُلٍ وِزْرٌ وَهِيَ

د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله ! د آسانو څه حکم دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : آسان پر درې ډوله دي د يو ډول سړي لپاره خو د ګناه سبب کيږي

لِرَجُلٍ سِتْرٌ وَهِيَ لِرَجُلٍ أَجْرٌ فَأَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ وِزْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا رِيَاءً وَفَخْرًا

او د يو ډول د سړي لپاره پرده وي او د يو ډول د سړي لپاره د ثواب سبب وي ، هغه آسان چي د ګناه سبب وي د هغه سړي آسان دي چي د فخر او غرور د ښکاره کولو لپاره د ريا لپاره

وَنِوَاءً عَلَى أَهْلِ الْإِسْلَامِ فَهِيَ لَهُ وِزْرٌ وَأَمَّا الَّتِي هِيَ لَهُ سِتْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي

يا د مسلمان سره د دښمني لپاره وي ، او هغه آسان چي د سړي لپاره پرده وي د هغه سړي آسان دي چي هغه د الله جل جلاله په لار کي د کار اخيستلو لپاره تړلي وي

سَبِيلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَمْ يَنْسَ حَقَّ اللّٰهِ فِي ظُهُورِهَا وَلَا رِقَابِهَا فَهِيَ لَهُ سِتْرٌ وَأَمَّا الَّتِي

او د هغوی په شاوو او غاړو کي هغه د الله تعالی حق نه هيروي دا آسان به د هغه لپاره پرده وي، او هغه آسان

هِيَ لَهُ أَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ فِي مَرْجٍ وَرَوْضَةٍ فَمَا

چي د ثواب سبب ګرځي د هغه سړي آسان دي چي د مسلمانانو لپاره يې د الله جل جلاله په لاره کي د جهاد لپاره تړلي وي او په وربشو او وښو سره به يې ساتل،

أَكَلَتْ مِنْ ذٰلِكَ الْمَرْجِ أَوِ الرَّوْضَةِ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا كُتِبَ لَهُ عَدَدَ مَا أَكَلَتْ حَسَنَاتٌ

خو مره وابښه چي دغه آسان خوري د هغه په حساب کي د هغه په اندازه نيکۍ ليکل کيږي،

وَكُتِبَ لَهُ عَدَدَ أَرْوَاثِهَا وَأَبْوَالِهَا حَسَنَاتٌ وَلَا تَقْطَعُ طِوَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا أَوْ

د هغو ګندګي او بولي هم په نيکيو کي شميرل کيږي، او کوم آس چي رسۍ وشکوي يو يا دوه ميدانه وځغلي

شَرَفَيْنِ إِلَّا كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ عَدَدَ آثَارِهَا وَأَرْوَاثِهَا حَسَنَاتٍ وَلَا مَرَّ بِهَا صَاحِبُهَا

اللہ تعالی د هغوی د قدمو نښې او ګندګې هم په نیکیو کې لیکي، او هر کله چې د هغوی خاوند هغه ویالې ته بوځي

عَلَى نَهْرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَلَا يُرِيدُ أَنْ يَسْقِيَهَا إِلَّا كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ عَدَدَ مَا شَرِبَتْ

او هغوی د ویالې څخه او به چښني که څه هم د خاوند اراده د اوبو ورکولو نه وي نو د اوبو د اندازې سره سم د هغه په حساب کې نیکۍ لیکل کیږي،

حَسَنَاتٍ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَالْحُمُرُ قَالَ مَا أُنْزِلَ عَلَيَّ فِي الْحُمُرِ شَيْءٌ إِلَّا هٰذِهِ

د دې بیان په اورېدو سره صحابه کرامو پوښتنه وکړه چې اې د اللہ رسوله! د خرو څه حکم دئ؟ رسول اللہ ﷺ ورته وفرمایل: پر ما د خرو حکم نه دئ نازل سوئ خو یوازې یو جامع

الْآيَةَ الْفَاذَّةَ الْجَامِعَةَ { فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ } . رواه مسلم

آیت: (فمن یعمل ...) څوک چې د یوې ذرې په اندازه نیکي وکړي هغه به ویني او څوک چې د یوې ذرې په اندازه بدي وکړي هغه به ویني. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۲/ ۶۸۰، ۶۸۲، رقم: ۲۴- ۹۸۷.

**د لغاتو حل**: (قرقر): الاملس، (عقصاء): ملتوية القرنين، الجلحاء: التي لا قرن لها، العضباء: مكسورة القرن. (النواء): المعاداة والمنازعة (شخړه او دښمني).

**تشريح**: د قیامت د ورځې اندازه د پنځوس زره کاله برابر اینبودل سوې ده مګر د دې تعلق د کافرانو سره دی یعنې د قیامت په ورځ به کافرانو ته د پنځوسو زرو کالو برابر معلومیږي پاته ګناه کارانو ته د هغوی د ګناه په اندازه دراز محسوسیږي که د چا ګناه کمه او معمولي وي نو هغه ته هغه ورځ په هغه اعتبار سره کم اوږده محسوسیږي او که د چا ګناه زیاته او د شدید نوعیت وي نو هغه ته به هغه ورځ هم په هغه اعتبار سره زیاته اوږده محسوسیږي خو د اللہ تعالی نیک بندګان یعنې مومنان کاملین ته به هغه پوره ورځ یوازې د دوو رکعتو لمانځه په اندازه معلومیږي ګویا په څومره وخت کې چې دوه رکعته لمونځ کیږي هغوی ته به هغه ورځ

يوازي د هغه وخت په اندازه محسوسيږي .

( فيري سبيله اما الى الجنة ..........الخ ) او هغه وخت به د جنت يا دوږخ خوا ته خپله لار ويني د دې مطلب دادی که د يوه سړي په اعمال نامه کي د زکوة پرينبنولو ماسيوا بله څه گناه نه وي او مذکوره عذاب چي په هغه کي اخته کړه سي د هغه دا گناه ليري کړي نو د دې وروسته به هغه جنت ته ځي او خدای دي نه کړي که د هغه په اعمال نامه کي د زکوة پرينبنولو ماسيوا نور گناهونه وي يا دا چي د مذکوره گناه وروسته هم د زکوة پرينبنولو گناه هم د هغه څخه ليري نسي نو بيا به هغه په دوږخ کي اچول کيږي .

( حتى يقضى بين العباد ) کي دې خوا ته اشاره ده چي د قيامت په ورځ به د حشر په ميدان کي نور د خدای مخلوق به په حساب کتاب کي مصروفه وي خو هغه خلک چي هغوی زکوة نه وي ادا کړی په عذاب کي په اخته وي .

( ومن حقها حلبها يوم وردها ) د اوښانو يو حق دا هم دی، د اوښانو والا دا قاعده وي چي هغوی خپل اوښان په دريمه يا څلورمه ورځ د اوبو د څښلو ځای ته د اوبو لپاره بوځي په عربو کي دا يو معمول هم وو چي کوم ځای ته به د اوبو د چښلو لپاره راوستل سوه هغه به هلته خلک جمع کيدل اوښانو والا به خپلو اوښانو ته هلته اوبه ورکولې او هلته به يې د اوښانو شېدې په لويشلو سره هلته جمع سوي خلکو باندي څيښل په دې اړه فرمايل سوي دي که څه هم د اوښانو واجب حق خو يوازي دادی چي د هغوی زکوة دي اداء کړه سي خو د هغوی او د نورو حقونو څخه يو مستحب حق دا هم دی چي په کومه ورځ اوښان د اوبو څيښلو لپاره ولاړ سي د هغې ورځي شېدې په لويشلو سره په غريبانو او مسکينانو وڅيښل سي دا کار که څه هم مستحب دی مگر د همدردي له موخي او د شکر د حق د اداء په بنياد گويا دا د واجب حکم لري ځکه په دې اړه په دومره اهميت سره بيان سوی دی د حديث د ظاهري الفاظو څخه دا معلوميږي چي د دې حق د عدم ادائيگي په صورت کي هم عذاب کيدای سي .

( ولا يريد ان يسقيها ) که څه هم د مالک اراده د هغوی د اوبو څښلو نه وي، د دې مطلب دادی چي مالک و اسانو ته د اوبو ورکولو اراده نلري مگر د دې ارادې او قصد بغير آس اوبه وڅيښي نو په دې اړه مذکوره بيان سوی دی د دې څخه اندازه لگول کيږي که چيري مالک په خپله دا اراده او قصد وکړي چي اسانو ته اوبه ورکړي نو هغه به څومره ثواب تر لاسه کوي د آسانو په باره کي د صحابوو رضي الله عنهم څخه پر يوې پوښتني باندي رسول الله ﷺ چي کوم جواب ورکړ هغه اسلوب د مخکي جوابو د اسلوب څخه جلا دی په دې وخت کي رسول الله ﷺ

چي د جواب كوم طرز اختيار كړى دى دې ته جواب على اسلوب الحكيم وائي ګويا رسول الله ﷺ پوښتنه كونكو ته وفرمايل چي د آسانو كوم حق واجب دى يوازي په دې اړه پوښتنه مه كوئ چي د دې اسانو په وجه د دې پالونكي د سعادت او نيک بختي څومره مقام حاصلوي او هغه ته د دې اسانو څخه څومره ګټي رسيږي همداسي دوهم اړخ هم چي د دې ساتونكو ته څومره ګناه حاصليږي او هغوى ته كوم تاوان رسوي.

په دې بنياد رسول الله ﷺ د اسانو درې ډولونه بيان كړي دي اول هغه اسان چي د خپل مالک لپاره د ګناه سبب ګرځي د دې په تشريح كي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي د دې څخه هغه اسان مراد دي چي د هغوى مالک اظهار فخر او يا د رياء لپاره ساتلي وي يعني آس د ساتلو څخه د هغه غرض دا وي چي خلک د هغه شان او شوكت ويني او پوه سي چي دى مجاهد دى حال دا چي په واقعي كي هغه مجاهد نه وي او د فخر څخه مراد دادى چي هغه آس په دغه نيت وساتي چي تر څان كشته پر خلكو باندي خپله لوئي ثرګنده كړي او د هغوى مخكي د فخر اظهار وكړي دوهم هغه آسان چي د خپل مالک لپاره پرده وي د دې وضاحت رسول الله ﷺ دا وفرمايه چي د دې څخه هغه اسان مراد دي چي د هغه مالک د دې لپاره تړلي وي چي هغه د الله تعالى په كار كي راسي دلته د الله تعالى په لار كي په كار د راتلو څخه جهاد مراد نه دى مګر مراد دادى چي د آسانو د ساتلو او تړلو مقصد اظهار فخر پر غرور او رياء باندي نه وي مګر هغه په ښه او نيک نيت سره وساتي مثلا اسان د دې مقصد لپاره وساتي چي هغه د الله تعالى په اطاعت او فرمانبرداري د ضرورتونو په وخت كي پر هغه سپاره سي او دا چي د خپل فقر او احتياج پرده پوشي وكړي ثرنګه چي په دې روايت كي فرمايل سوي دي ( ربطها تغنيا وتعففا ) يعني د نورو څخه مستغنى كيدو او د نورو مخكي د خپل احتياج او ضرورت د اظهار څخه د ساتلو لپاره د آس ساتل پكار دي مثلا تجارتي مقصد لپاره د عزيز قريب او دوست احباب ته د ورتلو لپاره پټي درمن ته د تلو راتلو لپاره د دې ډول د نورو مقاصدو پر وخت كه د آس ضرورت وي نو بل چا ته خواست كول په كښي راځي مګر كه خپل آس وي نو پكار به راسي او د پردو مخكي د اظهار ضرورت د شرمندګي څخه به وساتل سي ځكه په دې وخت كي رسول الله ﷺ آس خپل د مالک لپاره پوده ګرځولې ده چي يو خوا ته خو آس د خپل مالک د فقر او احتياج لپاره پرده وي په دې توګه چي د آس په وجه د نورو په نظرونو كي د هغه د مالک وقار قائم وي او د هغه عزت جوړوي دوهم خوا ته د آس مالک خپل ضرورت او د حاجت پر وخت د بل سړي مخكي د اظهار حاجت او د سوال او لاس د اوږدولو څخه وساتل سي.

په دې وخت کي د الله تعالی د لاري څخه دا مفهوم ځکه مراد اخستل کیږي چي په یوه عبارت کي تکرار رانسي ځکه چي د دریم ډول په ضمن کي مذکوره د الله تعالی د لاري څخه مراد جهاد دی.

په دې ضمن کي رسول الله ﷺ د آس د مالک یو وصف دا هم بیان کړی دی چي د هغوی د شا او د هغوی د غاړي او د خوراک په اړه هغه د الله تعالی حق هیر نه کړي.

په دې ارشاد کي د شا په باره کي د الله تعالی حق دادی چي پر هغه آس باندي د ښه او نیکو کارو لپاره سپورسي او که چا د هغه څخه د خپل سواري لپاره یا پر آسپو باندي د ختلو لپاره د هغه آس وغوښتی نو د هغه ضرورت دي ور پوره کړي همداسي د غاړي حق دادی چي د هغه زکوة یې ادا کړ خو د شوافع حضراتو لخوا څخه د دې ارشاد مطلب دا بیانیږي چي مالک د خپل آس خیرګیري وکړي په دې توګه چي د هغه په واښه دانه کي څه کمي ونه کړي هغه ته یې پوره خوراک ورکړ او که هغه ته څه مرض ورورسید یا څه تکلیف وسو نو هغه یې سمدستي لیري کړی.

**په آسونو کي زکوة سته که نسته** : په اصل کي د دې عبارت د مفهوم په تعین کي دا اختلاف ځکه راغلی دی چي د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد پر هغه آسانو باندي زکوة واجب کیږي کوم چي په ځنګل کي څرول کیږي بیا د آسونو مالک په دې اړه مختار دی که وغواړي نو هغوی په زکوة کي په هر آس پسي دي یو دینار ورکړي که څه هم د هغه قیمت په ټاکولو سره د هرو دووسوو درهمو څخه پنځه درهمه زکوة ادا کړي څرنګه چي د زکوة حساب دی.

د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد او د صاحبین رحمة الله علیهم په نزد پر اسانو باندي زکوة نه واجب کیږي د دې حضراتو دلیل د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي پر مسلمانانو باندي د هغوی د آسونو او په غلامانو کي صدقه واجب نه ده د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه د خوا څخه د دلیل په توګه دا حدیث پیش کیږي په هر آس پسي چي په ځنګل کي څري یو دینار دی.

تر څو پوري چي پر تعین قیمت باندي د زکوة تعلق دی په دې اړه ویل کیږي چي دا حضرت عمر فاروق رضی الله عنه څخه نقل دي امام شافعي رحمة الله علیه چي د دلیل په توګه کوم حدیث پیش کوي د دې په باره کي د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه لخوا څخه ویل کیږي چي د دې تعلق د غازي او مجاهد د آس سره دی همداسي د غلام څخه هغه غلام مراد دی چي د خدمت لپاره ساتل سوی وي.

دریم: هغه آسونه چي د خپل مالک لپاره د ثواب سبب او ذریعه جوړیږي د دې تشریح حضرت

دا وفرمایله چي د دې څخه هغه آسان مراد دي چي د هغه مالک د مسلمانانو لپاره د الله تعالی په لار کي ترلي وي دلته د الله تعالی د لار څخه مراد جهاد دی یعني هغه د دې مقصد لپاره آسونه ساتلي وي چي کله د جهاد وخت راسي نو هغه په سوریدو سره د اسلام د دشمنانو سره جنګ وکړي د ضرورت پر وخت نورو مسلمانانو ته یې ورکړي چي پر هغه په سپریدو سره جنګ یعني جهاد وکړي.

﴿۱۶۸۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ آتَاهُ اللّٰهُ مَالًا

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا ته چي الله تعالی شتمني ورکړې وي

فَلَمْ يُؤَدِّ زَكَاتَهُ مُثِّلَ لَهُ مَالُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ لَهُ زَبِيبَتَانِ يُطَوَّقُهُ

او د هغې زکوة یې ادا نه کړنو د قیامت په ورځ به د هغه د شتمنی څخه یو مار جوړ سي چي د هغه په سترګو کي به دوې توري شغلي وي او د مار څخه به طوق جوړ سي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُ بِلِهْزِمَتَيْهِ يَعْنِي بِشِدْقَيْهِ ثُمَّ يَقُولُ أَنَا مَالُكَ أَنَا

او د هغه په غاړه کي به واچول سي بیا به دا مار هغه تر دواړو ښکونه ونیسي او ورته وایي به زه ستا شتمني

كَنْزُكَ ثُمَّ تَلَا { لَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ } الْآيَةَ. رواه البخاري.

او ستا خزانه یم، ددې وروسته رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ (وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ ...) کوم خلک چي بخل کوي هغوی دي دا ګمان نه کوي ........ الخ. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲۶۸/۱۳، رقم: ۱۴۰۳.

**د لغاتو حل**: (شجاعا): الحیة الذکر (نر مار).

**تشریح**: د پک مار مطلب دادی چي د هغه پر سر به ویښتان نه وي او د اپک توب د مار د ډیر زیات زهرناک او د اوږده عمر کیدو علامت دی.

رسول الله ﷺ د خپل ارشاد وروسته بطور علامت د آیت کریمه تلاوت په فرمایلو سره خبر کړل په ښه ډول وا وری الله تعالی هم دا ارشاد فرمائي پوره آیت دادی:

وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُواْ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

ژباړه : كومو خلكو ته چي الله تعالى په خپل فضل سره مال وركړى دى او په هغه كي بخل كوي نو هغوى دي د خپل هغه مال په باره كي دا ګمان نه كوي چي د هغوى لپاره بهتر دى مګر هغه مال خو د هغوى په حق كي سراسر نقصان دى او ياد و لرئ چي د قيامت په ورځ د هغه مال چي په هغه كي بخل كوي طوق به ورته واچول سي يعني د هغوى هغه مال په طوق جوړولو سره د هغوى په غاړو كي واچول سي .

﴿۱۶۸۳﴾ : وَعَنْ أَبِي ذَرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُونُ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د چا سره چي

لَهُ إِبِلٌ أَوْ بَقَرٌ أَوْ غَنَمٌ لَا يُؤَدِّي حَقَّهَا إِلَّا أُتِيَ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْظَمَ مَا تَكُونُ

اوښان، غواوي يا پسونه وي او د هغوى حق (زكات) ادا نه كړي نو د قيامت په ورځ به دا شيان ډير لوى او

وَأَسْمَنَهُ تَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا وَتَنْطَحُهُ بِقُرُونِهَا كُلَّمَا جَازَتْ أُخْرَاهَا رُدَّتْ عَلَيْهِ أُولَاهَا حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ . متفق عليه

په بد شكل كي را وستل سي او هغه كس به په خپلو پښو سره ميده. كوي او په خپلو ښكرونو سره به يې وهي او د هغوى قطارونه به يو په بل پسې دا سي كوي تر څو چي د خلكو د حساب او كتاب پريكړه و سي . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۲۳، رقم: ۱۴۶۰، ومسلم ۲\۶۸۶، رقم: ۳۰- ۹۹۰.

## عاملين خوشحالوئ

﴿۱۶۸۴﴾ : وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِاللهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَاكُمُ الْمُصَدِّقُ فَلْيَصْدُرْ عَنْكُمْ وَهُوَ عَنْكُمْ رَاضٍ . رواه مسلم

د حضرت جرير بن عبد الله ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي تاسو ته زكوة اخيستونكي راسي نو تاسو ته پكار ده چي هغه ستاسو څخه راضي ولاړ سي . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۲\۶۸۶، رقم: ۲۹- ۹۸۹.

**تشريح** : مطلب دادی چي كله امام وخت يا د اسلامي ادارو د خوا څخه زكوة وصولونكي راسي نو د هغوی سره د عزت او احترام معامله كوي او هغوی ته پوره پوره زكوة وركړي چي هغوی راضي او خوشحاله خپلو اولادو ته ولاړ سي .

## زكوة ادا كونكي ته دعاء

﴿۱۶۸۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِيْ أَوْفٰى قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت عبدالله بن ابي اوفى ﷺ څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ ته

أَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَتِهِمْ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى آلِ فُلَانٍ فَأَتَاهُ أَبِيْ بِصَدَقَتِهِ فَقَالَ

يو قوم د زكوة وركولو لپاره راغلئ نو رسول الله ﷺ به فرمايل : اې الله ! پر آل د فلاني باندي رحمت نازل كړې ، يوه ورځ زما پلار د زكوة وركولو لپاره راغلئ نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى آلِ أَبِيْ أَوْفٰى. متفق عليه وَفِيْ رِوَايَةٍ إِذَا أَتَى الرَّجُلُ النَّبِيَّ بِصَدَقَتِهِ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ .

اې الله ! پر آل دابو اوفى رحمت نازل كړې . بخاري او مسلم او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي هر كله به يو سړی د نبي كريم ﷺ په خدمت كي د زكوة وركولو لپاره راغلئ نو رسول الله ﷺ به فرمايل : اې الله ! پر ده رحمت وكړې .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۶۱، رقم: ۱۴۹۷، ومسلم ۲\۷۵۶، ۷۵۷، رقم: ۱۷۶- ۱۰۷۸

**تشريح** : د يوه سړي په باره كي يوازي د هغه لپاره لفظ په صلوة سره دعا كول يعني داسي ويل چي ( اللهم على آل فلان ) صحيح نه دی لفظ صلوة سره دعا يوازي د انبياء كرام لپاره مخصوص ده هو كه يو سړی د انبياء سره په متعلق كولو سره لفظ صلوة سره دعا وكړي نو صحيح ده تر څو پوري چي د رسول الله ﷺ د ذات تعلق دی چي د زكوة راوړونكو لپاره به يې لفظ صلوة سره د رحمت دعا كوله نو په دې اړه ويل سوي دي چي دا د رسول الله ﷺ د خصائص څخه دی د بل چا لپاره دا جائز نه دی .

﴿۱۶۸۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمَرَ

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ حضرت عمر ﷛

عَلَى الصَّدَقَةِ فَقِيلَ مَنَعَ ابْنُ جَمِيلٍ وَخَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ وَالْعَبَّاسُ عَمُّ رَسُولِ

د زکوة کارکونکی وټاکئ، يو ځا رسول الله ﷺ خبر کړ چي ابن جميل، خالد بن وليد او عباس زکوة نه دئ ورکړئ،

اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَا يَنْقِمُ ابْنُ جَمِيلٍ إِلَّا أَنَّهُ كَانَ فَقِيرًا فَأَغْنَاهُ

نو رسول الله ﷺ وفرمايل: ابن جميل خو له دې کبله د زکوة ورکولو څخه انکار کړئ دی چي (په يوه زمانه کي) هغه مفلس او نيست مند وو او اوس الله تعالى او د هغه رسول هغه شتمن جوړ کړئ (د حضرت محمد ﷺ د دعاء په برکت دی غني سو)،

اللّٰهُ وَرَسُولُهُ وَأَمَّا خَالِدٌ فَإِنَّكُمْ تَظْلِمُونَ خَالِدًا قَدْ احْتَبَسَ أَدْرَاعَهُ وَأَعْتَادَهُ

او خالد بن وليد نو تاسو پر هغه ظلم کوئ (چي د هغه څخه زکات غواړئ) ځکه چي هغه خپل زغري او د جنګ ټول سامان د جهاد لپاره وقف کړئ دئ،

فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَأَمَّا الْعَبَّاسُ فَهِيَ عَلَيَّ وَمِثْلُهَا مَعَهَا ثُمَّ قَالَ يَا عُمَرُ أَمَا شَعَرْتَ أَنَّ عَمَّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ. متفق عليه

پاته سو عباس ﷛ نو د هغه زکوة پر ما واجب دئ او په مثل د دې نور هم، د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: اې عمر! ايا تا ته څرګنده نه ده چي د سړي اکا د هغه د پلار په ډول وي، بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۳۱، رقم: ۱۴۶۸، ومسلم ۲\۶۷۶، ۶۷۷، رقم: ۱۱– ۹۸۳

**تشريح**: ابن جميل مخکي منافق وو وروسته مسلمان سو هغه ډير زيات مسکين او محتاج وو هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو خواست يې وکړ چي زما لپاره د مال او دولت دعا وغواړه زه به د الله د راکړل سوو نعمتونو شکر ادا کوم رسول الله ﷺ د هغه لپاره دعا وکړه نو هغه د مال او دولت خاوند سو د هغه فرض وو چي الله تعالى د هغه د محتاجۍ په بدله کي

مال او دولت ورکړ حال دا چي د الله تعالی شکر يې ادا کړی وای خو هغه نا شکري وکړه تر دې چي د زکوة د ورکولو څخه يې هم انکار وکړ ځکه په دې حديث کي رسول الله ﷺ د هغه په باره کي د زجر او تنبيه په توګه مذکوره کلمات وفرمايل.

رسول الله ﷺ په خپل ارشاد مبارک (الله تعالی او د هغه رسول هغه دولت مند جوړ کړ) کي د ابن جميل د دولت مند کېدو په نسبت په دې اعتبار سره وفرمايل چي ما ددې مقصد لپاره د الله تعالی په دربار کي دعاء کړې وه او هغه مي د دعاء په وجه دولت مند کړ.

په دې ټول پوهيږي چي حضرت عباس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ اکا وو، رسول الله ﷺ د هغه زکوة پر خپله ذمه کړ چي رسول الله ﷺ د هغه څخه د دوو کالو په يوه وار زکوة مخکي وصول کړی وو يعني د هغه لخوا څخه د روان کال زکوة هم رسول الله ﷺ ته راغلی وو چي د هغه مطالبه کېده او د راروان کال زکوة هم ځيني اخسته سوی وو څرنګه چي رسول الله ﷺ په خپل ارشاد کي د ومثلها معها په ذريعه واضحه کړه.

## د زکوة اخيستونکی لپاره هديه نسته

﴿۱۶۸۷﴾: وَعَنْ اَبِي حُمَيْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو حميد الساعدي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د زکوة کارکونکئ وټاکئ

رَجُلًا مِنَ الْأَزْدِ يُقَالُ لَهُ ابْنُ الْأُتْبِيَّةِ عَلَى الصَّدَقَةِ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ هٰذَا لَكُمْ

د ازد د قبيلې څخه يو سړی چي ابن اللتبيه نوميدئ کله چي هغه مدينې ته راغلی نو مسلمانانو ته يې وويل: دا مال ستاسو دئ (يعني د زکوة مال)

وَهٰذَا أُهْدِيَ فَخَطَبَ النَّبِيُّ ﷺ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي

او دا مال ما ته د تحفې په ډول راکول سوی دئ، د دې پېښې په اوريدو سره رسول الله ﷺ د خلکو په وړاندي خطبه وويل، لومړی يې د الله تعالی حمد او ثناء بيان کړه بيا يې وفرمايل: زه

اَسْتَعْمِلُ رِجَالاً مِّنْكُمْ عَلٰى أُمُوْرٍ مِمَّا وَلاَّنِيَ اللهُ فَيَأْتِيْ أَحَدُهُمْ فَيَقُوْلُ هٰذَا

په تاسو کي ځيني خلک پر ځينو کارو وټاکم چي په هغه کي الله تعالی زه ټاکلی يم او بيا په تاسو کي يو سړی راځي او دا وايي چي دا

لَكُمْ وَهٰذَا هَدِيَّةٌ أُهْدِيَتْ لِيْ فَهَلاَّ جَلَسَ فِيْ بَيْتِ أَبِيْهِ أَوْ بَيْتِ أُمِّهِ فَيَنْظُرُ

ستاسو مال دئ او دا ما ته تحفه را کړل سوې ده، هغه سړی دي د خپل مور او پلار په کور کي کښيني او وه دي ګوري

أَيُهْدٰى لَهُ أَمْ لاَ ؟ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يَأْخُذُ أَحَدٌ مِنْهُ شَيْئًا إِلَّا جَاءَ بِهِ

چي هغه ته څوک تحفه را ليږي يا نه، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده په تاسو کي چي څوک يو شی د (استحقاق څخه پرته) اخلي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَحْمِلُهُ عَلٰى رَقَبَتِهِ إِنْ كَانَ بَعِيرًا لَهُ رُغَاءٌ أَوْ بَقَرَةً لَهَا خُوَارٌ أَوْ

هغه به د قيامت په ورځ د هغه پر څټ بار کړی را وړل سي که هغه شی اوښ وي نو د هغه آواز به وي که غوا وي نو د هغې آواز به وي او که

شَاةً تَيْعَرُ ثُمَّ رَفَعَ بِيَدِهِ حَتّٰى رَأَيْنَا عُفْرَةَ إِبْطَيْهِ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ

پسه وي نو د هغه آواز به وي (يعني دا شيان به د هغه پر څټ سپاره وي او آوازونه به کوي) ددې وروسته رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه دومره پورته کړل چي موږ د رسول الله ﷺ د بغلو سپين والی وليدئ او وه يې فرمايل: اې الله ما ستا حکم ورسوئ

اللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ . متفق عليه . قال الخطابي : وفي قوله : " هلا جلس في بيت أمه أو أبيه فينظر أيهدى إليه أم لا ؟ " دليل على أن كل أمر يتذرع به إلى محظور فهو محظور وكل دخل في العقود ينظر هل يكون حكمه عند الانفراد كحكمه عند الاقتران أم لا ؟ هكذا في شرح السنة

اې الله ما ستا حکم ورسوئ. بخاري او مسلم، خطابي ويلي دي چي د رسول الله ﷺ دا قول چي د خپل مور او پلار په کور کي کښيني ددې ليدو لپاره چي ايا هغه ته څوک تحفه را ليږي که يا، دا قول پر دې خبره د ليل دئ چي کوم شی د امر حرام ذريعه جوړه کړل سي هغه وسيله هم حرامه ده او هر هغه عقد چي په عقود کي داخل وي نو کتل کيږي چي ايا ددې حکم يوازيني وخت هغه

دئ چي د اجتماع په وخت کي دئ که یا ، همداسي په شرح السنة کي بیان سوئ دئ.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۲۰، رقم: ۲۵۹۷، ومسلم ۳\۱۴۶۳، رقم: ۲۶- ۱۸۳۲.

**تشریح** : دا قول چي هغه به يې لیدلی وو چي هغه ته څوک تحفه را استوي که نه. د دې مطلب دادی چي هغه سړي ته د تحفې وړاندیز د هغه د ذات په وجه نه دی مګر د هغه د عهدې په وجه دیکه هغه زکوٰة د وصولو لپاره عامل نه وای تاکل سوی مګر په خپل کور کي ناست وای نو هغه ته به هیڅ چا تحفه نه وای را استولې.

د دې څخه دا خبره معلومه سوه که عامل ته د هغه عزیز یا انډیوال تحفه ورکړي نو کتلای به سي که د هغه لپاره د هغه تحفې وړاندیز د هغه د عامل کیدو په وجه نه وو مګر د خپل تعلقات او د یارانه مراسمو په وجه دی او دا يې همیشه معمول دی نو هغه تحفه به د هغه لپاره جائز وي او که د تحفې وړاندیز یوازي د هغه د عهدې په وجه وي نو هغه تحفه به د هغه لپاره جائز نه وي څرنګه چي قاضي او نورو حاکمانو په دې اړه مسئله ده که د قاضي او حاکم دعوت وکړه سي یا هغه ته تحفه ورکړه سي نو هغه وخت دي هغه قبول کړه سي کله چي په دې پوه سي چي دا وړاندیز زما د موجوده عهدې په وجه نه دی مګر د خپل ذاتي تعلقاتو په وجه دی او د همیشه معمول مطابق دی.

خو ابن ملک رحمة الله علیه دا فرمائي چي عامل حاکم لپاره دا جائز نه دی چي هغه د چا تحفه قبوله کړي ځکه چي د تحفې وړاندیز یوازي او یوازي د هغه دا خواهش وي چي عامل زکوٰة کي څه برخه پرېږدي او حاکم د هغه سره غیر قانوني رعایت وکړي او دا مطلقا جائز نه دی.

خطابي رحمة الله علیه د دې حدیث څخه دوې قاعدې او شرعي اصول ثابتوي. اوله قاعده او شرعي وصول دا بیانوي که د یوه حرام شي د خاطره یو مباح او جائز شی وسیله او ذریعه جوړه کړه سي نو هغه مباح او جائز شی به هم د یوه حرام مقصد وسیله کیدو په وجه حرام سي د مثال په توګه دا سي پوه سئ چي یو سړی نفع او سود د حاصلولو لپاره یو سړي ته پور ورکوي او ظاهره ده چي پور ورکول یو جائز کار دی خو پور ورکونکی سود د حاصلولو لپاره پور ورکړي ځکه د هغه پور ورکول هم حرام سو همداسي کور چي یو سړی هغه بطور ګروي واخلي چي په هغه کي بغیر د کرائې سکونت اختیار کړي یا حیوان چي هغه رهن واخسته سي او بیا بېله معاوضې پر هغه سپرتیا کوي یا د هغه څخه دوهمه فائده حاصله کړي.

دوهمه قاعده او شرعي اصول يې دا بیان فرمایلی دی که دوې جلا جلا معاملې د یوه بل سره متعلق کړه سي نو هغه وخت به دا کتلای سي چي د دې دواړو معاملو جلا جلا حکم د هغو

دواړو د يو ځاى د متعلق کيدو د حکم مطابق دى که نه يعني که هغه مَعاملې جلا جلا جائز کيداى سي نو دواړه د يوبل سره د متعلق کيدو سره به هم صحيح وي او که دواړي معاملې جلا جلا صحيح نه وي نو دواړه د يو بل سره په متعلق کيدو سره به هم صحيح نه وي مثلاً يو سړى چا دوهم ته د لسو روپو شى په سل روپى خرڅ کړي چي هغه ته بيا زرو روپو پور ورکوي او د هغه سود د هغه شي د قيمت په توګه وصول کړي يعني څرنګه چي په هغه صورت کي نيوي روپى قرض کونکي ته حاصلي سوې چي د هغه د پور ګټه سود سوه دا صورت جائز نه دى ځکه که هغه د لسو روپو شى په سلو روپو خرڅوي او رانيونکي ته د پور اميد ور نه کړي نو هغه به هيڅ کله هغه په دومره زيات قيمت باندي نه واى اخيستى.

او چيري چي دوې معاملې داسي وي که يوه د دويمي څخه جلا کړي نو هم جائز او صحيح وي لکه هغه صورت مذکور کي د لسو روپو شى په لس روپى خرڅوي او د زرو روپو پور هم ورکولاى نو دا دواړي معاملې جلا جلا به جائز وي ځکه په يوې بلې سره متعلق او يو ځاى په کيدو سره به هم صحيح وي.

خطابي رحمة الله عليه د حديث څخه چي دا دوې قاعدې اخيستي دي په دې کي اوله قاعده خو بلا اختلاف د ټولو په نزد قابل قبول ده ځکه چي د ټولو امامانو مذهب کي دا قاعده تاکل سوې ده چي وسائل او ذرائع د مقاصد په حکم کي وي ځکه چي د نيکي وسيله به هم نيکي وي او د بدي وسيله به هم بدي وي مګر دوهمه قاعده د امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په نزد خو قابل قبول ده ځکه چي هغوى هر هغه حيله ناجائز ګرځوي چي د هغه په ذريعه د سود وغيره د حرمت څخه وساتل سي خو امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او د امام شافعي رحمة الله عليه دا دوهمه قاعده نه منى د دې حضراتو په نزد حيله مباح ده خو دومره خبره دي په خيال کي ساتل وي که څه هم امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه د دې قائدې قائل نه دى مګر د دې قائدې چي مثال ورکړه سوى دى هغه صورت د امام صاحب رحمة الله عليه په نزد هم د يوې دويمي شرعي قاعدې مطابق جائز نه دى د امام صاحب رحمة الله عليه په نزد د حيلې ځيني صورتونه صحيح دي په دې اړه ويل سوي دي چي هغوى د خطابي ذکر سوى د دوهمي قاعدې قائل نه دي.

## عامل دي خيانت نه کوي

﴿۱۶۸۸﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عَمِيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عدي بن عمير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ مِنْكُمْ عَلَى عَمَلٍ فَكَتَمَنَا مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ كَانَ غُلُولًا يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه مسلم

په تاسو کي چي يو څوک په يو کار مامور سي (يعني عامل يا حاکم وتاکل سي) او بيا هغه زموږ څخه د ستني په اندازه يا د دې څخه زيات يو شی پټ کړي نو دا پټول خيانت دئ او د قيامت په ورځ به هغه د هغه شي سره راځي . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴۶۵/۳، رقم: ۳۰- ۱۸۳۳.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### زکوة نه ورکونکي ته تنبيه

﴿۱۶۸۹﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ { وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله دا آيت نازل سو (والذين.... والفضة) او کوم خلک چي سره او سپين زر يو ځای کوي،

وَالْفِضَّةَ } قَالَ كَبُرَ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَا أُفَرِّجُ

نو مسلمانانو دا ګران فکر وکړ ، حضرت عمر رضي الله عنه خلکو ته وويل زه به ستاسو دا فکر ليري کړم

عَنْكُمْ فَانْطَلَقَ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ إِنَّهُ كَبُرَ عَلَى أَصْحَابِكَ هَذِهِ الْآيَةُ فَقَالَ

او دا مشکل به مو حل کړم ، نو حضرت عمر د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر او عرض يې وکړ اې د الله رسوله ! دا آيت ستاسو پر اصحابو دروند سوئ دئ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَمْ يَفْرِضِ الزَّكَاةَ إِلَّا لِيُطَيِّبَ مَا بَقِيَ

صحابه دا کیفیت په لیدو سره رسول الله ﷺ ته په دې اړه عرض وکړ چې په دې اړه رسول الله ﷺ وفرمایل چې زکوة خو فرض سوی دی چې د دې په ادا کولو سره پاته مال پاک سي د مال څخه چې زکوة ادا کړه سي نو کوم مال چې پاته سي هغه پاک سي اوس که هغه مال راټول کړي نو په هغه کې څه تاوان نسته په ایت کریمه کې چې کومه سزا بیان سوې ده هغه مطلقا د مال د جمع کولو په باره کې نه ده مګر د هغه صورت لپاره ده چې مال جمع کړه سي او د هغه زکوة ادا نه کړه سي که یو د زکوة د ایستلو وروسته مال جمع کړي نو د هغه لپاره هیڅ سزا نسته.

( و ذکر کلمة ) او د دې وروسته یې یوه بله کلمه ذکر کړل ، دا جمله د حدیث د راوي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ده یعني حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دغه وخت کې دا فرمائي چې رسول الله ﷺ : و انما فرض المواریث، څخه وروسته بله جمله ارشاد فرمایلې ده خو هغه جمله څه ده ماته یاد نه ده اوس خو ماته چې څومره اندازه یاد دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل الله تعالی میراث ځکه فرض کړی دی چې هغه ستاسو ستاسو د وارثانو حق سي ګویا د دې خبرې څخه هم رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل که مطلقا مال جمع کول د شریعت په نظر کې قابل نفرت کار وي نو الله تعالی به نه زکوة فرض کوی او نه میراث ، د زکوة او میراث فرض کیدل د دې خبري دلیل دی چې په جائزو طریقو سره مال جمع کول بد نه دي هو دومره خبره ضرور ده چې د هغه مال زکوة ادا کیدل پکار دي.

کله چې رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وښودل چې تر څو پوري زکوة ادا کیږي نو مال جمع کول منعه نه دي او د صحابه کرامو رضي الله عنهم د یو مشکل او بیرې څخه په وتلو سره د اطمینان او خوشحالۍ احساس وکړ، نو رسول الله ﷺ د هغوی د کیفیت په لېدو سره هغوی ته د هغه شي رغبت ورکړ چې د مال څخه په هر صورت ښه دی یعني ښځه که څه هم په دې اړه د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چې نیک بخته او ښائسته ښځه د مال څخه بهتره او افضله ده ځکه چې روپۍ، سره زر او سپین زر د ذخیره کېدو شیان نه دي بیا دا چې سره زر او سپین زر په جمع کولو سره په خپله خزانه کې محفوظ وساتي ظاهره ده چې په داسي صورت کې نه د هغه تاوان او نه راحت سته هو کله چې د خپل ضرورت په وخت کې هغه خرڅ کړي او هغه ستا څخه ولاړسي نو یوازي هغه وخت هغه ستا په کار راتلای سي پر خلاف د ښځې چې هغه تر څو پوري ستا سره وي ستا د ژوند ملګرې او د راحت باعث جوړیږي کله چې ته هغې ته وګورې نو ستا طبیعت خوشحالیږي، که ستا یو ضرورت وي نو هغه سمدستي پوره کوي، کله چې ته هغې ته یو حکم کوې نو سمدستي اطاعت کوي هر وخت ستا د نفساني سکون او راحت ذریعه جوړیږي

کله چي ته د کور څخه دباندي راوځي نو هغه ستا د کوچنیانو او ستا د مال او اسباب حفاظت کوي او د هغې څخه ستا اولاد پیدا کیږي چي نه یوازي دا چي په ژوند کي ستا قوت جوړیږي مگر د مرگه وروسته ستا جانشين کيدو سره خاندان او قوم ژوندی او روښانه ساتي همداسي د ښځي څخه ډېره زیاته گټه او راحت حاصلیږي بیا دا چي ښځه نه یوازي دا چي د خپل خاوند په دنیوي ژوند کي د اطمینان، سکون او خوشحالۍ باعث وي مگر په اخروي توگه سره هغه د ډیرو خرابو او بدو کارو څخه منعه کوي دا وجه ده چي په یوه مرفوع روایت کي دا نقل دي چي کوم سړي نکاح وکړه هغه خپل د ریمه برخه دین ټینگ کړ.

## زکوة پوره ادا کوئ

﴿۱۶۹۰﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن عتیک ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

سَيَأْتِيكُمْ رُكَيْبٌ مُبْغَضُونَ فَإِنْ جَاءُوكُمْ فَرَحِّبُوا بِهِمْ وَخَلُّوا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ

تاسو ته به یوه کوچنۍ قافله راسي (د زکوة اخیستلو لپاره) چي مبغوض به وي هر کله چي هغوی تاسو ته راسي نو تاسو ښه راغلاست ورته وایاست او د هغوی په خدمت کي

مَا يَبْتَغُونَ فَإِنْ عَدَلُوا فَلِأَنْفُسِهِمْ وَإِنْ ظَلَمُوا فَعَلَيْهَا وَأَرْضُوهُمْ فَإِنَّ تَمَامَ زَكَاتِكُمْ رِضَاهُمْ وَلْيَدْعُوا لَكُمْ. رواه ابوداؤد.

د زکوة مال حاضر کړئ او بل هیڅ شی د هغوی او خپل په منځ کي حائل نه کړئ که هغوی د زکوة په اخیستو کي د انصاف څخه کار واخلي نو هغوئ لپاره دا غوره ده او که ظلم وکړي نو د هغوی وبال پر هغو دئ او تاسو زکوة اخیستونکي راضي کړئ او پوره زکوة ورکول د هغوی رضامندي ده او کارکونکي ته پکار دي چي هغوی تاسو ته دعاء وکړي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۴۵، رقم: ۱۵۸۸.

**تشريح**: (و ان ظلموا) او که د ظلم معامله وکړي د دې مطلب دادی چي د زکوة د وصولولو په معامله کي که څه هم تاسو د خپل گمان او طبیعت مطابق دا ولي ونه گڼی چي عامل ستاسو سره ظلم کوي بیا هم هغه راضي کوي یا د دې څخه مراد دادی که بالفرض محال هغوی ظلم هم وکړي نو بیا هم د هغوی د رضا خیال ساتئ په دې صورت کي به دا وویل سي چي رسول الله ﷺ

دا جمله د مبالغې په توګه ارشاد وفرمایل چې دا خبره واضحه سي چې د عامل راضي کولو څومره اهمیت دی کنې ظاهره ده که یو سړی حقیقتا او واقعتا ظلم کوي نو د هغه د راضي کیدو څه صورت کیدای سي.

(و ارضوهم) مطلب څرنګه چې خپله هم په حدیث کي بیان سوی دی دادی چې تاسو د زکوة وصولونکو خوشحالولو او راضي کولو مخکي هیڅ کمي مه کوئ په دې توګه چې د زکوة کوم مال پر تاسو باندي په شرعي توګه سره واجب دی د هغه په ادا کولو کي خیانت او د ځنډ معامله مه کوئ مګر هغوی ته پوره زکوة ورکړئ.

که څه هم د زکوة د ادا کولو اصل فریضه د مال په ادا کولو سره پوره کیږي بیا هم زکوة وصولونکي خوشحالول د زکوة د ادا کولو یو جز دی دی نو په دې اړه احتیاط کول پکار دي. کوم سړی چې زکوة وصولولو ته ولاړ سي د هغه لپاره مستحب دادی چې هغه د زکوة ورکونکي په حق کي د رحمت او برکت دعا وکړي.

﴿۱۶۹۱﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِاللهِ قَالَ جَاءَ نَاسٌ يَعْنِي مِنَ الْأَعْرَابِ إِلَى

د حضرت جریر بن عبد الله رضی الله عنه څخه روایت دئ چې د خلکو یو ډله د رسول الله ﷺ په خدمت کي

رَسُولِ اللهِ ﷺ فَقَالُوا إِنَّ نَاسًا مِنَ الْمُصَدِّقِينَ يَأْتُونَا فَيَظْلِمُونَا قَالَ فَقَالَ

حاضر سول او عرض یې وکړ: زکوة اخیستونکی موږ ته راځي او پر موږ ظلم کوي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ وَإِنْ ظَلَمُونَا قَالَ أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ زَادَ

عُثْمَانُ وَإِنْ ظُلِمْتُمْ. رواه ابوداؤد.

تاسو زکوة اخیستونکي خلک راضي کړئ، . هغوی عرض وکړای دا الله رسوله! که څه هم هغوی پر موږ ظلم کوي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: زکوة اخیستونکي راضي کوئ که څه هم هغوی پر تاسو ظلم وکړي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲/۲۴۶، رقم: ۱۵۸۹.

**تشریح**: نفسیاتي خبره داده چې د کوم سړي څخه مال ځي د هغه په زړه کي څه نا څه تنګي راځي ځکه د زکوة د وصولونکو لخوا څخه هم د زکوة ورکونکو په زړه کي څه بنه خیالات نه وي

ځکه رسول الله ﷺ کلي والا ته وفرمايل که څه هم تاسو دا ګمان کوئ چي زكوة وصولونکی زموږ سره د ظلم معامله کوي خو تاسو په دې صورت کي هم هغوی راضي او د خوشحاله ساتلو کوشش کوئ.

## مال مه پټوئ

﴿۱۶۹۲﴾: وَعَنْ بَشِيْرِ ابْنِ الْخَصَاصِيَّةِ قَالَ قُلْنَا إِنَّ أَهْلَ الصَّدَقَةِ يَعْتَدُوْنَ عَلَيْنَا أَفَنَكْتُمُ مِنْ أَمْوَالِنَا بِقَدْرِ مَا يَعْتَدُوْنَ فَقَالَ لَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت بشير بن خصاصية رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي زكوة اخيستونکي پر موږ ظلم کوي يعني د اندازې څخه زيات مال راڅخه اخلي ايا په داسي حالت کي موږ خپل مال (د هغو څخه) پټوو، رسول الله ﷺ وفرمايل: يا، ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داوٗد ۲\ ۲۴۴، رقم: ۱۵۸۶.

**تشريح**: رسول الله ﷺ هغوی ته د زكوة د مال څخه د څه اندازه پټولو اجازت ځکه ورنه کړل چي غالبا هغوی د خپل ګمان مطابق دا وګڼل چي زكوة وصولونکی د هغوی څخه د واجب مقدار هم زيات زكوة وصولوي حال دا چي په حقيقت کي داسي نه وه مګر هغوی واجب مقدار وصولوی.

## د زكوة کارکونکی اجر

﴿۱۶۹۳﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

اَلْعَامِلُ عَلَى الصَّدَقَةِ بِالْحَقِّ كَالْغَازِيْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَرْجِعَ إِلٰى بَيْتِهِ.

رواه ابوداؤد والترمذي.

په انصاف او حق سره زكوة وصولونکی کارکونکی د الله په لار کي د غازي په ډول دئ تر څو چي هغه کور ته راستنيږي. ابوداؤد ترمذي.

**تخريج**: سنن ابیٔ داوٗد ۳\ ۳۴۸، رقم: ۲۹۳۶.

**تشريح**: په حق سره د دې مطلب دا دی چي يو عامل د ثواب او د الله تعالی د رضا حاصلولو په

خاطر د زکوة د وصولولو لپاره خپل ځان وقف کړي نو دهغه د صدق او اخلاص په بناء باندي د غازي د ثواب او اجر په اندازه ثواب ورکول کيږي.

## د زکوة وصولونکي لپاره هدايت

﴿۱۶۹۴﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ وَلَا تُؤْخَذُ صَدَقَاتُهُمْ اِلَّا فِيْ دُوْرِهِمْ. رواه ابوداؤد.

عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نه دي زکوة اخيستونکي حيوانان په را غوښتلو غواړي او نه دي زکوة ورکونکي حيوان ليري ځيني بيايي بلکه د حيوانان زکوة دي د هغو په کورو کي وصول کړل سي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۵۰، رقم: ۱۵۹۱.

**تشريح**: جلب مطلب دادی چي زکوة وصولونکی د زکوة ورکونکو د سرايونو څخه ليري په يو ځای کي مقيم وي او زکوة د اخستو لپاره حيوان هلته وغواړي.

د جنب مطلب دادی چي د حيوانانو مالک د خپل سرای څخه ليري ولاړ سي او زکوة وصولونکی زکاة د اخستو لپاره تکليف او پريشاني په برداشت کولو سره هلته ورسيږي او رسول الله ﷺ د دې دواړو خبرو څخه منعه کړې ده ځکه چي په اول صورت کي زکوة ورکونکي ته تکليف او پريشاني وي او په دوهم صورت کي د زکوة وصولونکي په پريشاني کي اخته کيږي د حديث اخري جمله د دې ممانعت د تاکيد په توګه استعمال سوی دی يا د حديث حاصل دا سو چي نه دي زکوة ورکونکی ليري ځي او نه دي زکوة وصولونکی چيري ليري ځای قيام نه کوي مګر د زکوة ورکونکو نژدې دي و واسيږي او د هغوی کورونو ته په وار وار تلو سره زکوة دي اخلي.

## د کال تيريدو سره زکوة

﴿۱۶۹۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنِ اسْتَفَادَ مَالًا فَلَا زَكَاةَ عَلَيْهِ حَتّٰى يَحُوْلَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ، رواه الترمذي و ذكر جماعة انهم وقفوه على ابن عمر

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي مال تر لاسه کړي نو پر هغه تر هغه وخته پوري زکوة نسته تر څو چي يو کال پر تير نه سي، ترمذي، د محدثينو يو

ډله یادونه کوي چې هغوی دا حدیث پر ابن عمر موقوف کړئ دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۳\۲۵-۲۶، رقم: ۶۳۱.

**تشریح**: مخکې په دې پوه سوي یاست چې مال مستفاد څه ته وائي، فرض کړئ که ستاسو سره اتیا بزې موجودي وي چې پر هغه کال نه وي تیر سوی په دې منځ کي یو څلویښت بزې تاسو ته نوري حاصلیږي که هغه په میراث کي حاصل سوي وي یا د تجارت څخه د ګټې په صورت کي، که څه هم یو چا تاسو ته هسې درکړې وي په هر حال همداسې د بزو شمیر د اتیا پر ځای د یو څلویښتو سو او دا یو څلویښت بزې چې تاسو ته د کال په منځ کي حاصل سوي دي دې ته مال مستفاد ویل کیږي ګویا د مال مستفاد تعریف داسو چې هغه د مال د جنس څخه وي او د کال په منځ کي حاصل سوی وي.

اوس حدیث ته راسئ، ابن مالک رحمة الله علیه فرمائي د دې حدیث مطلب دادی چې پر یوه سړي د مال په وجه زکوة فرض وي او د کال په منځ کي هغه ته نور مال د هغه جنسه حاصل سي مثلا مخکې بزې موجود وې نوري بزې ورته حاصلي سوې یا مخکې غواوي موجود وې نوري غواوي ورته حاصلي سي نو وروسته چې کوم مال حاصل سوی دی په هغه باندي تر هغه وخته پوري زکوة نسته تر څو چې کال نه وي پر تېر سوی. (دا د امام شافعي رحمه الله مذهب دی).

مګر امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه فرمائي چې اصل یعني د مخکې څخه پر موجود مال باندي پوره کال تیریدل بس دی وروسته حاصلیدونکي مال باندي پوره کال تیر سي یا تیر نسي زکوة پر جمعه سوي مال باندي واجبیږي.

په دې اختلاف باندي د مثال په توګه داسي پوه سئ مثلا د یوه سړي سره اتیا بزې وې پر هغه شپږ میاشتي تیري سوې چې بیا هغه ته یو څلویښت بزې تر لاسه سوې که څه هم هغه رانیولي یي یا په وراثت کي ورته حاصلي سوي یي یا په بله ذریعه سره یې حاصلي کړي وي خو هغه وروسته حاصلیدونکو پر یو څلویښتو بزو باندي زکوة نه واجب کیږي هو پر هغه بزو باندي هم د هغه د رانیولو یا په وراثت کي د حاصلیدلو د وخت څخه یو کال پوره سي نو زکوة پر واجب کیږي د امام شافعي رحمة الله علیه او د هغوی سره د امام احمد رحمة الله علیه دا مذهب دی، مګر د حضرت امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله او هغه سره د حضرت امام مالک رحمه الله په نزد هغه مال مستفاد (کوم چې وروسته حاصل سوی وي) د اصل (یعني د مخ څخه موجود مال) تابع کیږي کله چې مخکې په اتیا بزو باندي د یوه کال تېرېدو په وجه دوې بزې زکوة واجب کېږي دا چې په څلوېښتو بزو باندي یوه بزه زکوة واجبیږي چې دا د زکوة نصاب دی که چیري

يو ه دانه هم د ځلو ښتنو ځخه كمه وي نو بيا زكوة نه واجبيږي .

اوس پاته سوه دا خبره چي د حديث ځخه خو په ظاهره د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب تائيد كيږي په دې اړه د حنفي علماء د خوا ځخه دليل وركول كيږي چي د دې حديث هغه معنى نه ده كوم چي شافعي حضرات بيانوي مګر د دې مفهوم خو دادى چي كوم سړى په ابتدائي توګه باندي مال حاصل كړي نو پر هغه زكوة هغه وخت واجب كيږي كله چي يو كال پر تير سي نو په حديث كي د مال ځخه مستفاد مراد نه دى .

## تر كال تيريدو مخكي زكوة

﴿۱۶۹۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ الْعَبَّاسَ سَأَلَ النَّبِيَّ ﷺ فِي تَعْجِيلِ صَدَقَتِهِ قَبْلَ أَنْ تَحِلَّ فَرَخَّصَ لَهُ فِي ذٰلِكَ . رواه ابوداؤد والترمذي وابن ماجه والدارمي .

د حضرت علي ﷺ ځخه روايت دئ چي حضرت عباس ﷺ ځخه د رسول الله ﷺ ځخه د ژر زكوة ادا كولو په اړه پوښتنه وكړه (يعني د كال تيريدو ځخه وړاندي د زكوة وركولو پوښتنه يې وكړه ) رسول الله ﷺ دده اجازه وركړه . ابوداؤد ، ترمذي ، ابن ماجه ، دارمي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۲۷۵، رقم: ۱۶۲۴، والترمذي ۳\ ۶۳، رقم: ۶۷۸، وابن ماجه ۱\ ۵۷۲، رقم: ۱۷۹۵، والدارمي ۱\ ۴۷۰، رقم: ۱۶۳۶.

**تشريح** :د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه او اكثرو امامانو په نزد دا خبره جائز او درست ده چي پر مال باندي د كال تيريدو مخكي دي زكوة ادا كړل سي په شرط د دې چي زكوة وركونكى د شرعي نصاب مالك وي .

## د نابالغ د مال زكوة

﴿۱۶۹۷﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَطَبَ

عمرو بن شعيب د خپل پلار ځخه او هغه د خپل پلار ځخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ خطبه وويل

النَّاسَ فَقَالَ أَلَا مَنْ وَلِيَ يَتِيمًا لَهُ مَالٌ فَلْيَتَّجِرْ فِيهِ وَلَا يَتْرُكْهُ حَتَّى تَأْكُلَهُ الصَّدَقَةُ . رواه الترمذي و قال في اسناده مقال لان المثني بن الصباح ضعيف

خلكو ته او وه يې فرمايل : ځوک چي د يتيم سرپرست وي او د هغه يتيم سره مال وي نو هغه

سرپرست ته پکار دي چي د هغه په مال سره تجارت وکړي او هغه بې تجارته نه پرېږدي ، ځکه چي که سوداګري (تجارت) په مال ونه سي او زکات ځيني ورکول سي نو هغه مال کمېږي .
ترمذي ويلي دي ددې په اسنادو کي خبري سته ځکه چي مثنی بن صباح ضعيف دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۲، رقم: ۶۶۱.

**تشريح** : د امام شافعي رحمة الله عليه ، امام مالک رحمة الله او امام احمد رحمة الله عليه مذهب خو دادی چي د نابالغ په مال کي هم زکوة فرض دی کله چي امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمائي چي نابالغ که څه هم يتيم نه وي په هر صورت د هغه په مال کي زکوة فرض نه دی ځکه چي په يوه دوهم روايت کي دا ارشاد دی چي د درو کسانو د مکلف کولو څخه قلم منعه سوی دی يو بيده سړی تر څو پوري چي راويښ نسي دوهم نابالغ تر څو پوري چي هغه بلوغ ته نه وي رسيدلی ، دريم ليونی تر څو پوري چي ليونتوب يې ختم نسي ، دا روايت ابوداود نسائي او حاکم نقل کړی دی او حاکم دا روايت صحيح ګرځولی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### دزکوة نه ورکونکي سره جهاد

﴿۱۶۹۸﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ ﷺ وَاسْتُخْلِفَ اَبُو بَكْرٍ بَعْدَهُ

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي کله رسول الله ﷺ وفات سو نو ابوبکر صديق رضی الله عنه د رسول الله ﷺ خليفه و ټاکل سو ،

وَكَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ قَالَ عُمَرُ يَا اَبَا بَكْرٍ كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَقَدْ قَالَ

په عربو کي چي څوک کافر کيدل هغوی کافران سول ، حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د هغوی سره د جګړې اراده وکړه نو عمر رضی الله عنه ورته وويل ته ددې خلکو سره څنګه جګړه کوې حال دا چي

رَسُولُ اللهِ ﷺ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ فَمَنْ قَالَ لَا

رسول الله ﷺ دا وفرمايل : ما ته حکم سوئ دئ چي زه تر هغه وخته د خلکو سره و جنګيږم تر څو پوري چي هغوی لااله الاالله ونه وايي نو چا چي

إِلَهَ إِلَّا اللهُ فَقَدْ عَصَمَ مِنِّي مَالَهُ وَنَفْسَهُ إِلَّا بِحَقِّهِ وَحِسَابُهُ عَلَى اللهِ فَقَالَ أَبُو

لااله الاالله وويل نو هغه زما څخه خپل ځان او مال وساتئ ، خو د الله تعالی او اسلام حق پر هغه پاته سو ، حضرت ابوبکر صدیق ﷜ ورته وويل :

بَكْرٍ وَاللهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ فَإِنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ الْمَالِ وَاللهِ

قسم په خدای زه به د هغه کس سره جنګیږم چي د لمانځه او زکوة په منځ کي فرق کوي زکوة د مال حق دئ ، په الله دي مي قسم وي

لَوْ مَنَعُونِي عَنَاقًا كَانُوا يُؤَدُّونَهَا إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلَى مَنْعِهَا قَالَ

که خلک د میږو بچیان هم نه راکوي کوم چي به د رسول الله ﷺ په زمانه کي ورکول کېده نو زه به په دې انکار د هغوی سره وجنګیږم ،

عُمَرُ فَوَاللهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَأَيْتُ أَنْ قَدْ شَرَحَ اللهُ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ . متفق عليه

حضرت عمر﷜ وويل : قسم په خدای خبره هیڅ نه ده خو دا چي ما وليدل چي الله تعالی د ابوبکر﷜ سینه د غزا لپاره خلاصه کړې ده بیا ما ته څرګنده سوه چي د حضرت ابوبکر صدیق ﷜ رایه صحیح وه او هغه پر حق وو . بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۰۸۱۳، رقم: ۱۳۹۹، ومسلم ۱۱۵۱-۵۲، رقم: ۳۲-۲۰.

**د لغاتو حل:** (عناقا): العناق الانثى من ولد المعز اذا لم تستكمل السنه. (وری چي تر کال کم وي)

**تشريح** : کله چي رسول الله ﷺ د دې دنيا څخه تشريف يووړی او حضرت ابوبکر صديق ﷜ اول خليفه وټاکل سو نو څه نوي فتنې راپورته سوې په دې اړه موږ په لسم جلد کي د تذکره صديق لاندي څه رڼا اچولې ده او هلته د دې فتنوذکر په کولو سره په خصوصيت سره د فتنه ارتداء ذکر مو کړی دی د هغه متعلق مو ښودلي دي چي دا عظيمه فتنه حضرت ابوبکر ﷜ په څومره جرات او تدبير سره ختمه کړه او د مرګ پر ګودريې وروغورځول .

په پورته حديث کي د دې ډول يوي بلي فتنې خوا ته اشاره سوې ده د هغه صورت دا سو چي څه قبائل مثلا عطفان، بني سليم او ځينو نورو د زکوة ورکولو څخه انکار وکړ همداسي هغوی د اسلام پر دغه اهمي او بنيادي فريضې باندي عمل نه کول جلا خبره ده خو د هغي فريضې څخه انکار کول يوه دوهمه معنی لري دا وجه ده چي د زکوة څخه د منکر کېدو په خاطر هغوی

کافران سول، په حقیقي معنی کي استعمال سوی دی هسي د دې لفظ په باره کي دا تفصیل کیږي چي یا خو د هغه خلکو په باره کي لفظ د کفر په حقیقي معنی کي استعمال سوی دی ځکه چي د زکوة فرضیت قطعي دی او د فرضیت زکوة څخه انکار کفر دی یا دا چي هغو خلکو ته کافران ځکه ویل سوي دي چي هغوی د زکوة ورکولو څخه انکار وکی نو د هغوی په دغه سخت جرم او ټینګار باندي د کفر اطلاق وکړل سو .

په هر حال کومه معنی چي تاکل سوې ده د هغوی دا جرم دومره سخت وو چي حضرت ابوبکر صدیق ﷛ د هغوی سره د جنګ کولو اراده وکړه حضرت عمر ﷛ چي دا صورت حال ولیدی نو د هغه خلکو د ظاهري احوالو مطابق چي هغه خلک خو په ظاهره مسلمانان وه د هغوی په کفر کي تامل او اعتراض وکړ او حضرت ابوبکر صدیق ﷛ ورته حقیقت حال وښودی نو نه یوازي دا چي هغه هم د حضرت ابوبکر ﷛ پر فیصله همنوا سو مګر هغه ته کامل یقین هم وسو چي د حضرت ابوبکر ﷛ خواست ایماني او د هغوی تدبیر چي کومه فیصله کړې ده هغه بالکل صحیح ده .

په ځینو روایتونو کي نقل دي چي نورو صحابه کرامو حتی چي حضرت علي ﷛ هم حضرت ابوبکر ﷛ د جنګ کولو څخه منعه کړی او ورته یې وویل چي د عهد خلافت ابتدائي دور دی مخالف ډېر زیات دي داسي نه وي چي فتنه او فساد را پورته سي او اسلام ته تاوان ورسیږي ځکه په دې معامله کي هم سوچ کول پکار دی خو حضرت ابوبکر ﷛ په ډېر جرات او مېړانه سره دا جواب ورکړ که په دې معامله کي ټول خلک یوې خوا ته سي او زه یوازي پاته سم نو بیا هم خپله فیصله به بدله نه کړم او د شعائر دین حفاظت او د اسلام د نظریات او اعمال د تحفظ لپاره چي ما کوم قدم پورته کړی دی په دې کي بدلون نه راځي او زه به د پوره قوم سره یوازي جنګ کوم د دې څخه حضرت ابوبکر ﷛ د صحیح رائې، جرات او مېړاني اندازه لګیږي .

د رسول الله ﷺ ارشاد : ( لا اله الا الله ) وو ایاست ، په دې کي د لا الله الا الله څخه مراد پوره کلمه توحید یعني لا اله الا الله محمد رسول الله ده ځکه چي پر دې خبري باندي اجماع او اتفاق دی چي د اسلام قبلولو لپاره یوازي لا الله الا الله ویل معتبر نه دي مګر د الله تعالی د وحدانیت په اقرار سره د رسول الله ﷺ د پیغمبري اقرار هم ضروري دی .

الا بحقه، ماسوا د اسلام، د دې مطلب دادی که پر هغه دیت لازم دی یا څه بل ډول حق د هغه پر ذمه دی نو د هغه ادا کول په هر صورت کي ضروري دي همداسي په قصاص وغیره کي به قتل کیږي .

( وحسابه علی الله ) او د هغه حساب د الله تعالی پر ذمه دی د دې مطلب دادی چي کوم سړی لا اله الا الله ووائي او خپل ځان مسلمان ظاهر کړي نو موږ به د هغه د مسلمانیدو اعلان کوو او د هغه سره به جنګ نه کوو او نه به موږ د هغه د باطن تحقیق او تفتیش کوو چي ایا هغه خپل په ایمان او اسلام کي مخلص او صادق دي که نه مګر د هغه باطن حال به الله تعالی ته ورسپارو که هغه په ظاهري توګه سره مسلمان سوی دی او په زړه سره یې ایمان نه وای راوړی څرنګه چي د منافقانو حال دی نو په دې اړه الله تعالی پوه سه او هغه پوه سه.

( من فرق بین الصلوة والزکوة ) کوم سړی چي د لمانځه او د روژې په مینځ کي فرق وکړي یعني د لمانځه د وجوب خو قائل وي خو د زکوة د وجوب منکر وي یا لمونځ خو کوي مګر زکوة نه ورکوي.

عناق د بزې هغه زوئ ته وائي چي د یوه کال د عمر وي حضرت ابوبکر ﷺ په خپل ارشاد کي د خپلي بچی فرض او واجب حق د غوښتلو په اړه بطور مبالغه فرمایلي دي دلته دا پر حقیقت باندي محمول دی ځکه چي نه خو د بزې هغه بچی د یوه کال څخه کم وي په زکوة کي اخستل کیږي او نه د بزې پر داسي ځامنو باندي زکوة واجب کیږي په زکوة کي د اخستو لپاره اولی درجه مسنه ده یعني هغه بچی چي د یوه کال وي که بچی د بزو سره وي نو بیا په هغوی کي زکوة واجب کیږي مګر په هر صورت په زکوة کي به مسنه ورکول کیږي دا حکم د غواوو او اوښانو دی چي د زکوة په توګه به مسنه ورکول کیږي په وروستني یو قسط کي غالبا ښودل سوي دي چي د بزو مسنه خو هغه ده چي د هغه عمر یو کال وي او د غوا مسنه هغه ده چي د هغه عمر دوه کاله وي او د اوښ مسنه هغه ده چي د پنځو کالو وي.

اوس په اخرکي په دې خبره هم پوه سئ چي حضرت ابوبکر ﷺ دا وفرمایل چي زه به هغوی د دې انکار په وجه د هغوی سره جنګ کوم، دلته د کفر په اړه چي کوم تفصیل بیان سوی دی همداسي د هغه قول په باره کي هم دا تفصیل دی که هغوی د وجوب زکوة منکر سوي دي نو زه به د هغوی د کفر او ارتداد په وجه د هغوی سره جنګ کوم او که هغه منکر زکوة خو نه دي سوي مګر زکوة نه ادا کوي نو بیا به د هغوی سره زما جنګ شعائر اسلام د حفاظت او د فتنې د بندیز لپاره وي.

## بې زکاته مال به مار سي

﴿۱۶۹۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَكُونُ كَنْزُ أَحَدِكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

شُجَاعًا أَقْرَعَ يَفِرُّ مِنْهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يَطْلُبُهُ حَتَّى يُلْقِمَهُ أَصَابِعَهُ . رواه احمد .

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو خزانه به د قيامت په ورځ يو مار پک جوړ کړل سي د هغه خاوند به ځيني تښتي او هغه به ورپسې ځغلي تر څو چي هغه لاندي کړي او د هغه ګوتي به ګوله کړي . احمد .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۲\۵۳۰.

**تشريح** : د خزانې څخه مراد هغه مال دی چي د هغه مالک يې راټولوي او د هغه زکوة نه ادا کوي دا حکم د هغه ټولو مالونو دی چي په ناجائزه او حرامي طريقې سره جمع کړه سوی وي.

د حديث اخري جمله حتى يلقمه اصابعه د دې دوې معناوي کيدای سي يوه خو دا معنی چي په ترجمه کي ظاهره سوې ده هغه مار به د مالک ګوتي ګوله کړي ځکه په هغو لاسونو يې مال ګټلی وو او د هغه زکوة يې نه وو ادا کړی په دې صورت کي لفظ اصابعه به د ضمير بدل وي.

دوهمه معنی دا کېدلای سي چي مالک به خپلي ګوتي د لقمې په ډول د مار په خوله ورکوي کله کله دا کيدای سي چي د مار او داسي نورو د وهم څخه بې اختياره خپلي ګوتي د هغه په خوله چخي ليکن دا دوهمه معنی څرنګه چي د انسان لږ زړه ته لويږي او په دې کي د خلکو اشکال او اعتراضات پيدا کيږي نو په دې وجه سره اوله معنی تر دوهمي معنی زياته صحيح ده .

﴿۱۷۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ لنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ رَجُلٍ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

لَا يُؤَدِّي زَكَاةَ مَالِهِ إِلَّا جَعَلَ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي عُنُقِهِ شُجَاعًا ثُمَّ قَرَأَ عَلَيْنَا

د خپل مال زکوة ادا نه کړي نو د قيامت په ورځ به د هغه مال څخه الله تعالی مار جوړ کړي او د هغه په څټ کي به زړېدلی وي، بيا رسول الله ﷺ د دې په اړه

مِصْدَاقَهُ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ { وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ } . الاية. رواه الترمذي و النسائي وابن ماجة .

د قرآن کريم دا آيت تلاوت کړ : ولا يحسبن الذين ....... ترمذي ، نسائي او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\٢١٦١٣، رقم: ٣٠١٢، والنسائي ٥\١١١٥ – ١٢، رقم: ٢٤٤٠، وابن ماجه ١\٥٦٨، رقم: ١٧٨٤.

## په حلال مال كي حرام مال يو ځاى كول

(۱۷۰۱): وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا

د حضرت عائشې ﷛ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې

خَالَطَتِ الزَّكَاةُ مَالاً قَطُّ إِلاَّ أَهْلَكَتْهُ " . رواه الشافعي والبخاري في تاريخه

په كوم مال كي زكوة ګډه وه سي (يعني زكوة ځيني بيل نه سي) نو هغه مال ضائع كيږي، شافعي، بخاري

والحميدي وزاد قال : يكون قد وجب عليك صدقة فلا تخرجها فيهلك

او حميدي په دې روايت كي دا الفاظ زيات كړي چي پر تا زكوة واجب وي او ته هغه ورنه كړې

الحرام الحلال . وقد احتج به من يرى تعلق الزكاة بالعين هكذا في

نو حرام حلالو لره ضائع كوي دا حديث د هغه خلكو لپاره دليل دئ چي د زكوة عين سره د متعلق كيدو قائل دي ، او همداسي په

المنتقى وروى البيهقي في شعب الإيمان عن أحمد بن حنبل بإسناده إلى

منتقى كي دي او بيهقي په شعب الايمان كي د احمد بن حنبل څخه روايت كړئ دئ چي د هغه

عائشة . وقال أحمد في " خالطت " : تفسيره أن الرجل يأخذ الزكاة وهو

موسر أو غني وإنما هي للفقراء

اسناد بي بي عائشې ته رسيږي .او احمد د لفظ (خالطت) تفسير داسي بيان كړئ دئ چي هغه څوك زكوة اخلي چي خپله په زكوة ادا كولو مامور وي يا غني وي حال دا چي زكوة د فقيرانو لپاره دئ.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٣\٢٧٣، رقم: ٣٥٢٢، وترتيب مسند الامام الشافعي ١\٢٢٠، رقم: ٦٠٧، والتاريخ الكبير للبخاري ١\١\١٨٠، رقم: ٥٤٩.

**تشريح** : د رسول اللهﷺ د ارشاد دوې معناوي بيان سوي دي، امام بخاري رحمة الله عليه خو د دې مطلب دا بيانوي چي مثلا يو سړی صاحب نصاب دی او پر هغه زکوة واجب دی خو هغه د خپل مال څخه هغه برخه نه کاږي کوم چي بطور زکوة پر هغه کښل واجب دي همداسي د ملا هغه برخه چي د زکوة په توګه هغه ته کښل يې پکار وو او اوس د نه کښلو په صورت کي د هغه په حق کي حرام مال دی د هغه په اصل مال کي مخلوط سو .

امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه د دې حديث معنی دا بيانوي چي مثلا يو سړی مالدار يعني صاحب نصاب دی چي د هغه په وجه هغه د بل چا څخه زکوة په اخستو مستحق نه دی خو هغه د بل زکوة اخلی او د هغه زکوة چي د هغه په حق کي حرام دی په خپل اصل مال سره يې مخلوط کوي .

په هر حال دلته چي کومه معنی تعين سوې ده هغه د دواړو اقوالو په نظر کي نيولو د حديث مفهوم دا کيږي چي حرام مال که په هغه مال کي د زکوة هغه واجب سوې حصه نه وي ايستل سوې يا صاحب نصاب د بل چا د زکوة حاصل سوی مال واخلي په اصل کي هغه حلال مال تباه کوي نو په همدې ډول د داسي حرام مال د اخيستلو په وجه هغه پوره مال په يوه نه بله طريقه باندي ضائع کيږي يا په هغه کي تاوان پېښيږي يا د مال څخه برکت پورته کيږي يا د ګټي کولو قابل نه جوړيږي ، ځکه چي د مرام مال څخه ګټه اخيستل هم شرعا جواز نلري .

## د زکوة د اداينې تعلق په عين مال سره دی يا په ذمه سره دی

د روايت په اخر کي يوې اختلافي مسئلې ته اشاره سوې ده چي د زکوة ادا کولو تعلق په عين مال سره دی؟ د مثال په توګه په دې داسي پوه سي مثلا يو سړی مالدار يعني صاحب نصاب دی پر هغه زکوة واجب دی اوس سوال دادی چي ايا هغه د زکوة په توګه په اندازه واجب مال د هغه څخه مال کاږي کوم چي د هغه سره دی يا که هغه د مال څخه د زکوة په اندازه برخه ونه کاږي مګر د هغه قيمت ادا کړي نو په دې مسئله کي د امام شافعي رحمة الله عليه او نورو امامانو مذهب دادی چي د زکوة تعلق يوازي د مال سره دی مګر پر کوم مال چي زکوة واجب دی د هغه مال څخه په اندازه واجب مال په ايستلو سره زکوة دي ادا کړي او دا خبره هغوی د حديث د لفظ ( خالطت) څخه اخيستې ده، مګر امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمائي چي د زکوة تعلق په ذمه سره دی د دې مطلب دادی که صاحب نصاب د هغه مال څخه چي پر هغه زکوة واجب دی د زکوة په اندازه مال ونه کاږي مګر د هغو مره مال قيمت په زکوة کي ادا کړي نو زکوة به ادا سي او هغه به بري الذمه سي .

خو دا خبره دي هم په ذهن کي وي چي دا حديث د امام شافعي رحمة الله عليه او داسي نورو د مذکوره مذهب دليل هغه وخت کيدای سي کله چي د حديث دا معنی د حديث اصل مفهوم وګرځول سي چي د امام بخاري رحمة الله عليه لخوا څخه بيان سوی دی.
د حنفي مذهب دليلونه ملا علي قاري رحمة الله عليه په مرقات کي او د شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه په اشعه اللمعات کي په وضاحت او تفصيل سره بيان کړي دي د اوږدوالي په وجه هغه دلته نه دي نقل سوي، اهل علم دغه کتابونو ته مراجعه کولای سي.

=========

# بَابُ ما تَجِب فيه الزكوة

## په کومو شيانو کي زکوة واجب دی

شريعت پر څلور ډوله مالو باندي زکوة فرض کړی دی اول سائمه يعني پر څاريو باندي، دوهم پر سرو او سپينو زرو باندي، دريم پر تجارتي مال باندي که هر ډول مال وي، څلورم د فصل او درختو پر پيداوار باندي که څه هم دا څلورم ډول فقهاؤ د زکوة په لفظ سره نه دی ذکر کړی مګر دې ته عشره وائي په متفقه توګه سره د ټولو امامانو پر دې خبري اتفاق دی چي حيوان يعني اوښ، غوا، بزه ميږه، پسه او ګاميښي کي زکوة واجب دی که نر وي او يا ماده، ددې څخه پرته په نورو حيوانانو کي زکوة واجب نه دی، البته د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد په آسونو کي هم زکوة واجب دی، د دې تفصيل به په راتلونکو صفحاتو کي بيان کړل سي، همداسي په متفقه توګه سره د ټولو امامانو په نزد په سرو او سپينو زرو کي او د تجارت په مال کي زکوة واجب دی.
د کومو شيانو څخه چي تر يوه کاله پوري قائم نه پاته کيږي لکه بادرنګ، هندوانه او نوري شنګياوي او سبزيجات په دې کي د نورو امامانو په نزد زکاة واجب نه دی البته په خرما او وڅکو کي زکوة واجب دی کله چي د هغه شمير تر پنځه وسقه پوري نه وي تر پنځو وسقو څخه په کم مقدار کي وي په هغه کي هم زکوة واجب نه دی.
د حضرت امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد په هر هغه شي کي لسمه کښل واجب دي کوم شی چي د مځکي څخه پيدا وي که څه هم پيداوار يې کم وي که زيات مګر بانس لرګی او په وښو کي عشر واجب نه دی په دې اړه د امام صاحب دليل د رسول الله ﷺ دا ارشاد دی:
ما اخرجته الارض ففيه العشر

ژباړه : د ځمکي څخه په پيدا کونکي هر شي کي لسمه برخه کښل واجب دي
د ځمکي په پيداوار کي د عشر واجب کيدو لپاره څه معين مقدار شرط نه دی همداسي کال تيريدل هم شرط نه دی مګر څومره او کله چي پيداوار وي هغه وخت لسمه برخه کښل واجب کيږي د نورو مالو پر خلاف چي په هغه کي زکوة هغه وخت واجب کيږي کله چي هغه په اندازه د نصاب وي او پر هغه يو کال پوره تېر سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د زکوة نصاب

﴿۱۷۰۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نه سته په کم کي

خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ صَدَقَةٌ وَلَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ أَوَاقٍ مِنَ الْوَرِقِ

تر پنځو وسقو خرماوو زکوة واجب نه دئ او تر پنځه اوقيه څخه کم سپينو زرو باندي

صَدَقَةٌ وَلَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسِ ذَوْدٍ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ. متفق عليه

زکوة واجب نه دئ او تر پنځو سرو (دانو) اوښانو څخه په کم کي زکوة واجب نه دئ، بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۲۲، رقم: ۱۴۵۹، ومسلم ۲\۶۷۳، رقم ۱- ۹۷۹.

**د لغاتو حل**: (ذَوْدٍ): الذوذ هو مابين الاثنين الى التسع وقيل ما بين الثلاث الى العشرة والمراد منه خمس ابل من الذوذ لا خمس اذواد.

**تشريح** : يو وسق د اتو صاع (کاسو) برابر دی، يو صاع د اته رطل برابر او يو رطل د څلورديرشو تولې يوه نيمي ماشې برابر دی په دې شمير سره پنځه وسقه د انګريزي حسابه د اتيا تولو د سير په حساب سره پنځه ويشت من دوولس نيم سيره برابر وي که څه هم پنځه ويشت منه سيره يا تر دې زيات په خرما کي لسمه برخه د زکوة په توګه راوکښل سي تر دې اندازې کم که خرما پيدا سي نو د دې حديث پر موجب په هغه کي د زکوة په توګه لسمه برخه نه واجب کيږي امام شافعي رحمة الله عليه او په حنفيانو کي د امام ابويوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه دا مذهب دی د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د ځمکي په پيداوار کي څه نصاب نه دی تاکل سوی څومره چي پيداوار وي د هغه لسمه برخه کښل واجب دي، مثلاً که

چیري لس سېره پیداوار وي نو په هغه کي یو سیر زکوة واجبیږي ، که چیري په لس سیره کي یو چو ټانګ هم اضافه سي نو د هغه برخي څخه هم یو چټانګ ایستل کیږي .

د مځکي د نور پیداوار مثلاً غنم ، اوربشي ، نخود او داسي نور هم په دې حکم کي دي د مځکي د پیداوار د عشره په باره کي د حنفیانو په نزد فتوی د امام اعظم رحمة الله علیه پر قول ده دا حدیث د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه د مذهب په ظاهره خلاف معلومیږي ځکه د هغوی د خوا څخه د دې حدیث ترجمه دا بیانیږي ځکه چي هغه وخت به د خرما رانیول او اخستل د وسق په حساب کیده او د یوه وسق خرما قیمت په څلویشت درهمه وه په دې حساب سره د پنځه وسقو قیمت د دوو سوو درهمه سو چي د تجارت په مال کي د زکوة لپاره متعین نصاب دی .

اواق د اوقیه جمعه ده : یو اوقیه د څلویښتو درهمو یعني لس نیمي تولې برابر وي همداسي پنځه اوقیه د دوو سوو درهمو یعني د دوپنځوس نیم توله تقریبا دوه سوه شپاړلس ګرام، دو پنځوس تولې چي د سپینو زرو د زکوة نصاب دی، په دې اندازه کي په کمو سپینو زرو کي زکوة واجب نه دی ګویا کوم سړی چي د دوو سوو درهمو مالک وي هغه بطور زکوة پنځه درهمه ادا کوي .

دا خو د درهم نصاب وو په سپینو زرو کي د سکې څخه ماسیوا په څه دوهم صورت کي وي مثلاً د سپین زر زیورات او لوښي وي یا د سپینو زرو سکې وي نو هغه دي هم پر دې قیاس کړه سي او همداسي د هغه زکوة دي ادا کړه سي بیا هم په تفصیل سره سپین زر داسي وګڼي .

یو درهم درې ماشه او یو رتي دی او د پنځو حصو د رتي برابر وي همداسي په دوو سوو کي شپږ سوه دیرش ماشې یعني دوپنځوس نیم توله سپین زر سوه نو د دوو سوو درهمو زکوة د څلویشتمي حصې مطابق پنځه درهمه سوه چي پنځلس ماشې شپږ رتي یعني په یو توله کي ماشه د شپږ رتي برابر وي همداسي د درهم څخه ماسیوا د سپینو زرو په زیوراتو یا د لوښو وغیره په صورت کي د دوپنځوس نیمي تولې سوه نو د دوو سوو درهمو زکوة د څلویښتمي برخي مطابق پنځه درهمه سوه چي پنځلس ماشې شپږ رتي یعني په یوه توله کي ماشه د شپږ رتي برابر وي همداسي د درهم څخه ماسیوا د سپینو زرو په لوښو او داسي نورو په صورت کي دوپنځوس نیمي تولې یو پر دوه وي، نو د هغه د زکوة په توګه څلویښتمه برخه په یو توله کي ماشه شپږ رتې یا دومره د سپینو زرو قیمت د زکوة په توګه ادا کیږي او که سپین زر د سکې په شکل کي وي یا په کومه زمانه کي چي د سپینو زرو سکې جاري وي هغه وخت د دې حساب او تفصیل ضرورت محسوس کیدی اوس که څه هم د سپینو زرو سکې نسته بیا هم په مظاهر حق

قدیم کي دا تفصیل لیکل سوی دی ځکه دلته هم هغه نقل سوی دی هسي خو د سپینو زرو د زکوة دا بالکل صفا سکه ده د موجوده سپینو زرو څلویښتمه برخه یا د هغه برخي قیمت به په زکوة کي ادا کیږي او یوه سکه دولس ماشې او د قیمت د اعتبار څخه د یوې روپی وي نو په دې حساب سره دوپنځوس یو پر دوه توله یعني هغه دوولس ماشې والا یوه روپي پنځه انې واجب کیږي او که سکه یوولس یو پر دوه ماشه او د قیمت د اعتبار څخه د یوې روپي وي نو په دې حساب سره د دوپنځوس نیم توله سپین زر قیمت به څلور پنځوس روپی دوولس انې شپږ پر درویشت پائې برابر وي چي پر هغه زکوة واجب کیږي نو د دې څخه به د هغه سپینو زرو د روپو په حساب سره یعني هغه یوولس یو پر دوه ماشې والا یوه روپي پنځه انې لس پایانې د زکوة په توګه ورکول پکار دي .

د نصاب دا ټول حصاب د پوهید و لپاره لیکل سوي دي که د حساب څخه زیاتي روپی وي نو د هغه هم حساب دادی چي دوه یو پر دوه دوې نیمي روپی سلیزه یعني په هرو سلو روپو کي د دوې نیمي روپو پر حساب به زکوة ادا کیږي .

که څه هم په حدیث کي د سروزرو حساب نه دی ذکر سوی مګر په دې اړه هم پوه سئ چي د سروزرو شمیر شل مثقاله یعني اوه نیمي تولې دي تر دې کم زکوة نه واجب کیږي که په دې مقدار کي تر دې زیات مقدار کي سره زر وي نو د موجوده مقدار څلویښتمه برخه یا د هغه برخه قیمت به د زکوة په توګه ادا کیږي .

که سره زر او سپین زر دواړه په مجموعي اعتبار سره په اندازه د نصاب وي نو په هغه کي به زکوة واجب وي مثلاً د یوه سړي سره شپږ ویشت تولې سپین زر دي او د هغه سره د پاو کم شپږ ویشت توله سپین زر د قیمت په اندازه سره زر هم وي نو هغه سړی به صاحب نصاب سي او پر هغه به زکوة واجب وي همداسي که د یوه سړي سره شپږ ویشت تولې سپین زر قیمت په اندازه د تجارت مال وي او د هغه سره د پاو بالا شپږویشتو تولو سپینو زرو په اندازه نقدي روپی وي نو هغه به هم صاحب نصاب حسابیږي . او پر هغه به زکوة واجب وي .

سره زر او سپین زر په هر شکل او صورت کي چي وي په هر صورت په هغه کي زکوة واجب کیږي د دې څخه معلومه سوه چي په یو ځای کي سپین زر وي د هغه د اندازې به هم اندازه لګول کیږي که هغه اندازه نصاب ته ورسیږي نو د هغه زکوة به ادا کول کیږي ، ملغلري، لعل او مرجان یا په یاقوت او نورو جواهراتو کي زکوة نه واجب کیږي که څه هم د لکونو روپو د قیمت وي هو که جواهرات د تجارت په مقصد سره وي نو پر هغه به زکوة واجب وي .

## په غلام او آس كي زكوة نسته

﴿۱۷۰۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ صَدَقَةٌ فِيْ عَبْدِهٖ وَلَا فِيْ فَرَسِهٖ ، و في رواية قال ليس في عبده صدقة الا صدقة الفطر . متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر مسلمانانو د هغه په آس او غلام كي زكوة واجب نه دئ ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي د مسلمانانو په غلام كي زكوة واجب نه دئ مگر صدقه فطر پر واجب دئ . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۲۷/۱۳، رقم: ۱۴۶۴؛ ومسلم ۶۷۵/۲، رقم: ۸- ۹۸۲.

**تشريح** : د حديث مطلب دادی كه غلام او آسونو د تجارت لپاره نه وي نو په هغوی كي زكوة واجب نه دی د امام شافعي رحمة الله عليه امام ابويوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه مذهب دادی مگر د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي كوم آسان او آسپي يو ځای د كال په اخره برخه كي په ځنگل او دښتو كي څري په هغوی كي هم زكوة واجب دی د هغه نصاب دادی چي سريو دينار يا د هغه پوره قيمت په ټاكلو سره په هرو دوو سوو درهمو باندي په حساب سره يعني د قيمت څلويښتمه برخه دی په زكوة كي دي ادا كړه سي . فتاوی قاضي خان په درمختار او فتاوی عالمگيري كي ليكلي دي د حنفيه په نزد فتوی د امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليه پر قول ده چي پر آسانو باندي زكوة واجب نه دی .

## د نصاب تفصيل

﴿۱۷۰۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَتَبَ لَهٗ هٰذَا الْكِتَابَ لَمَّا وَجَّهَهٗ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ابوبكر صديق رضی اللہ عنہ هغه د بحرين په لور وليږئ نو دا حكم نامه يې وليكل

إِلَى الْبَحْرَيْنِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ هٰذِهٖ فَرِيْضَةُ الصَّدَقَةِ الَّتِيْ فَرَضَ

د الله جل جلاله په نامه سره پيل كوم چي ډير مهربان او زيات رحم كوونكئ دئ ، دا د هغه زكوة بيان دئ چي فرض كړئ دئ

رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ عَلَى الْمُسْلِمِينَ وَالَّتِي أَمَرَ اللّٰهُ بِهَا رَسُولَهُ فَمَنْ سُئِلَهَا مِنْ

رسول الله ﷺ د الله تعالى په حکم سره پر مسلمانانو ، کله چي زکوة وغوښتل سي

الْمُسْلِمِينَ عَلَى وَجْهِهَا فَلْيُعْطِهَا وَمَنْ سُئِلَ فَوْقَهَا فَلَا يُعْطِ فِي أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ

نو ددې پيمانې سره سم دي ورکړل سي او که ددې څخه زيات وغوښتل سي نو نه دي يې
ورکوي : په څليرويشتو

مِنَ الْإِبِلِ فَمَا دُونَهَا مِنَ الْغَنَمِ مِنْ كُلِّ خَمْسٍ شَاةٌ إِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ

اوښانو يا ددې څخه په کم کي زکوة داسي واجب دئ چي د هرو پنځو اوښانو پر سر يو پسه دئ
او هر کله چي پوره پنځه ويشت اوښان وي

إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ أُنْثَى فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَثَلَاثِينَ إِلَى

نو تر پنځه ديرشو پوري يوه يوکلنه اوښه ده، د شپږ ديرشو څخه تر

خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ أُنْثَى فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَأَرْبَعِينَ إِلَى سِتِّينَ

پنځه څلوېښتو پوري دوه کلنه اوښه ده، او د شپږ څلوېښتو څخه تر شپيتو پوري

فَفِيهَا حِقَّةٌ طَرُوقَةُ الْجَمَلِ فَإِذَا بَلَغَتْ وَاحِدَةً وَسِتِّينَ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ

درې کلنه اوښه ده چي لائقه د ختو د اوښ وي او د يو شپيتو څخه تر پنځه اويا پوري

فَفِيهَا جَذَعَةٌ فَإِذَا بَلَغَتْ يَعْنِي سِتًّا وَسَبْعِينَ إِلَى تِسْعِينَ فَفِيهَا بِنْتَا لَبُونٍ

هغه اوښه چي د څلورو کاله وي او په پنځم کال کي داخله سوې وي، او د شپږ اويا څخه تر نيوي پوري
دوه دوه کلني اوښي

فَإِذَا بَلَغَتْ إِحْدَى وَتِسْعِينَ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِيهَا حِقَّتَانِ طَرُوقَتَا

او د يو نيوي څخه تر يو سل اوشلو پوري دوې اوښي چي د درو درو کالو وي،

الْجَمَلِ فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ وَفِي كُلِّ

او هر کله چي د يوسل او شلو څخه زيات سي نو د هر څلوېښتو پر سر دوه کلنه اوښه او د هر

خَمْسِينَ حِقَّةٌ وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ إِلَّا أَرْبَعٌ مِنَ الْإِبِلِ فَلَيْسَ فِيهَا صَدَقَةٌ إِلَّا

پنځوسو پر سر د درو درو کلو اوښه او د چا سره چي يوازي څلور اوښان وي نو پر هغه زکوۃ واجب نه دئ، مگر

أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ فَفِيهَا شَاةٌ ومن بلغت عنده من

که خاوند يې وغواړي نو په نفلي ډول سره يې ورکولای سي. هر کله چي پنځه اوښان سي نو يو پسه پر واجب دی او د چا سره چي

الإبل صدقة الجذعة وليست عنده جذعة وعنده حقة فإنها تقبل منه

دومره اوښان وي چي په هغه کي څلور کلنه اوښه واجب وي يعني د يو شپيته څخه تر پنځه او يا پوري او هغه سره څلور کلنه اوښه نه وي درې کلنه وي نو درې کلنه اوښه دي ځيني قبوله کړي

الحقة ويجعل معها شاتين أن أستيسرتا له أو عشرين درهما ومن بلغت

او که ورسره وي نو دوه پسونه دي ورکړي يا شل درهم دي ورسره کړي. او د چا سره چي

عنده صدقة الحقة وليست عنده الحقة وعنده الجذعة فإنها تقبل منه

دومره اوښان وي چي په هغو کي درې کلنه اوښه واجب وي يعني د شپږ څلوېښتو څخه تر شپيتو او ښانو پوري وي او د هغه سره درې کلنه اوښه نه وي بلکه څلور کلنه اوښه ورسره وي

الجذعة ويعطيه المصدق عشرين درهما أو شاتين . ومن بلغت عنده

نو څلور کلنه اوښه به د هغه څخه اخيستل کيږي او د زکوۃ اخيستونکئ به هغه ته دوه پسونه يا شل درهمه بيرته ورکوي او د چا سره چي

صدقة الحقة وليست إلا عنده بنت لبون فإنها تقبل منه بنت لبون

دومره اوښان وي چي درې کلنه اوښه پر واجب وي او د هغه سره درې کلنه اوښه نه وي بلکه دوه کلنه ورسره وي نو دوه کلنه اوښه دي ځيني واخيستل سي

ويعطي معها شاتين أو عشرين درهماً . ومن بلغت صدقته بنت لبون

او زكوة وركونكى دي دوه پسونه يا شل درهمه هغه ته نور وركړي ، او د چا سره چي دومره اوښان وي چي

وعنده حقة فإنها تقبل منه الحقة ويعطيه المصدق عشرين درهما أو

پر هغو دوه كلنه اوښه واجب كيږي او د هغه سره دوه كلنه اوښه نه وي نو درې كلنه ه دي ځيني واخيستل سي او زكوة اخيستونكى دي هغه ته شل درهمه يا

شاتين . ومن بلغت صدقته بنت لبون وليست عنده وعنده بنت مخاض

دوه پسونه وركړي ، او د چا سره چي دومره اوښان وي چي په هغو كي دوه كلنه اوښه واجب وي او د هغه سره دوه كلنه اوښه نه وي بلكه يو كلنه اوښه ورسره وي

فإنها تقبل منه بنت مخاض ويعطي معها عشرين درهماً أو شاتين . ومن

نو يو كلنه اوښه دي قبوله كړي او زكوة وركونكى دي شل درهمه يا دوه پسونه نور هم وركړي ،

بلغت صدقته بنت مخاض وليست عنده وعنده بنت لبون فإنها تقبل

او د چا سره چي دومره اوښان وي چي پر هغو يو كلنه اوښه واجب وي او د هغه سره دوه كلنه اوښه وي نو هغه دوه كلنه اوښه دي واخلي

منه ويعطيه المصدق عشرين درهماً أو شاتين . فإن لم تكن عنده بنت

او زكوة اخيستونكئ دي شل درهمه يا دوه پسونه بيرته وركړي او كه يو كلنه اوښه نه وي

مخاض على وجهها وعنده ابن لبون فإنه يقبل منه وليس معه شيء وَفِي

دوه كلن (نر) ا وښ وي نو هغه دي وركړي او هيڅ شى دي بيرته نه وركول كيږي ·

صَدَقَةِ الْغَنَمِ فِي سَائِمَتِهَا إِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ شَاةٌ فَإِذَا زَادَتْ

د پسو زكوة دادئ : كه د پسو پيونكئ وي نو د څلوېښتو څخه تر شپيتو پسو پوري يو پسه واجب دئ

عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ إِلَى مِائَتَيْنِ فَفِيهَا شَاتَانِ فَإِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَتَيْنِ إِلَى ثَلَاثِ

او د شپږ شلو څخه (۱۲۰) چي تر دوو سوو پوري وي نو دوه پسونه دي ، او دوو سوو څخه تر
درو سوو پوري

مِائَةٍ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِ مِائَةٍ فَفِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ فَإِذَا

درې پسونه دي او كه تر درو سوو زيات وي نو په هر سلو كي يو پسه دئ . او كه

كَانَتْ سَائِمَةُ الرَّجُلِ نَاقِصَةً مِنْ أَرْبَعِينَ شَاةً وَاحِدَةً فَلَيْسَ فِيهَا صَدَقَةٌ إِلَّا

څرونكي پسونه تر څلوېښتو كم وي نو په هغو كي زكوة واجب نه دئ مگر كه

أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا. ولا يجمع بين متفرق ولا يفرق بين مجتمع خشية الصدقة

د هغه خاوند وغواړي نو د نفل په ډول څه وركولای سي، په زكوة كي دي زوړ (حيوان) نه وركول كيږي
او نه هم عيب داره ، او دا حكم د اوښانو او غواوو هم دئ، او په زكوة كي دي بكر (نر) نه وركول كيږي

وما كان من خليطين فإنهما يتراجعان بينهما بالسوية وَفِي الرِّقَّةِ رُبُعُ

البته كه زكوة اخيستونكي د يو مصلحت په وجه بوک (نر پسه) اخيستل وغواړي نو څه پروا
نسته، ډول ډول حيوانان يو ځای كول نه دي پكار يعني د څو ډولو حيوانانو يو ځای كولو څخه
دي شمير نه پوره كول كيږي او نه دي د زكوة د بيري څخه حيوانان بيل بيل كړل سي او كوم
شرعي نصاب چي د دوو برخه لرونكو يعني د دوو شريكانو په منځ كي واجب دئ هغه دي دواړه
برابر وويشي ،

الْعُشْرِ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ إِلَّا تِسْعِينَ وَمِائَةً فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا.

رواه البخاري

او په سپينو زرو كي څلوېښتمه برخه زكوة واجب دئ كه د يو چا سره يو سل نيوي درهمه وي نو
په هغو كي زكوة واجب نه دئ البته كه د هغه خاوند و غواړي د خيرات په ډول يې وركړي نو
كولای سي . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۱۷، رقم: ۱۴۵۴.

**د لغاتو حل:** (بنت المخاض): من الابل التي استكملت سنة من عمرها ولم تتم الثانية.، (بنت اللبون): ولد الناقة اذا استكمل سنتين، (الحقة): من الابل التي اتمت الثالثة من عمرها ودخلت في الرابعة، (الجذع): هو من الغنم ما كان عمره اكثر من ستة اشهر ومن الابل ما اتم السنة الرابعة ودخل في الخامسة،

**تشريح** : په تيرو صفحاتو كي يو حديث تير سوى دى په هغه كي فرمايل سوي دي چي تاسو زكاة وصولونكي خوشحاله كوئ، كه څه هم هغوى ستاسو سره د ظلم معامله و كړي همداسي يو حديث بل تير سوى دى په هغه كي بيان سوى دى چي ځينو خلكو رسول الله ﷺ ته عرض وكړى چي زكوة وصولونكي زياتي كوي يعني د واجب مقدار څخه زيات مال اخلي، نو ايا موږ د هغوى څخه زيات غوښتونكي مال پټ كړو؟ يعني هغوى ته يې ور نه كړو، د دې په جواب كي رسول الله ﷺ هغوى د داسي كولو څخه منعه كړل مگر دلته فرمايل سوي دي چي د كوم سړي څخه زياته مطالبه وكړه سي هغه دي نه ادا كوي، په ظاهره په دغه روايتونو كي اختلاف معلوميږي د دې جواب دادى چي هغه وخت زكوة وصولونكي صحابه وو ظاهره ده چي نه خو هغوى ظالمان وه او نه د شرعي مقدرا څخه د زيات مال غوښتنه يې كوله او نه د صحابه په اړه داسي تصور كيداى سو خلكو د خپل گمان او خيال مطابق دا وگڼله چي زموږ سره د ظلم او زياتي معامله كيږي رسول الله ﷺ د دې حقيقت په نظ كي نيولو دا حكم وكړى چي هغوى دي په هر صورت خوشحاله كړل سي او هغوى چي څه غواړي د هغه په وركولو كي دي انديښنه نه كوي او دلته د حضرت ابوبكر ﷺ په ارشاد كي د زكوة وصولونكو څخه صحابه مراد نه دي مگر نور خلك مراد دي او ظاهره ده چي د صحابه ماسيوا نورو خلكو ته د داسي خبرو ظاهريدل ممكن نه وو ځكه حضرت ابوبكر ﷺ دا تحرير وفرمايه چي د زياتي مطالبې اداينه دي نه كيږي، په دې وضاحت سره په حديثو كي چي په ظاهره اختلاف په نظر راتلى هغه ختم سو.

( فاذا ازادت على عشرين ومائة ............الخ ) او كله چي شمير د يوسلو شل څخه زيات سي قاضي رحمة الله عليه فرمائي دا حديث شمير د مذكور څخه د تجاوز كولو په صورت كي استقرار او پر حساب باندي دلالت كوي يعني اوښان چي د يوسلو شلو څخه زيات وي نو د هغوى د زكوة حساب به د نوي سره نه شروع كوي مگر په داسي صورت كي هغه د هر څلويښتو زياتو باندي دو كليزې اوښه او د هر پنځوسو زياتو باندي د درو كليزو اوښي په حساب سره زكوة ادا كول پكار دي، د اكثرو امامانو مذهب دادى خو امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمائي چي د نوي سره به حساب شروع كي د اوښانو شمير چي د يوسلو شلو څخه تجاوز وكړي

هغه وخت به دوې حقې يعني درې کليزې اوښې او يوه بزه واجب کيږي او همداسي تر اخيره پورې، د اول ترتيب مطابق به حساب کول کيږي او د امام نخعي رحمة الله عليه او امام ثوري رحمة الله عليه هم دا قول دی د دې حضراتو دليل دا ارشاد دی کله چې د اوښانو شمير تر سلو زيات سي نو د هغه حساب دي د نوي سره وکړل سي، د حضرت علي کرم الله وجهه څخه هم همداسي نقل دي.

د اوښانو د زکوة په باره کي په دومره خبري باندي پوه سئ چي د هغه د زکوة په توګه ماده يعني اوښه يا د هغې قيمت واجب کيږي کله چي د غوا او بزې زکوة کي د نر او مادې څه تخصيص نسته مګر د هغه د زکوة په توګه نر يا د هغه قيمت او ماده يا د هغې قيمت دواړه کيدای سي.

(مالم يکن عنده بنت مخاض علی وجهها) او که د هغه سره د ورکولو قابله يو کليزه اوښه نه وي ابن مالک رحمة الله عليه د دې وضاحت په اړه فرمايلي دي د دې درې معناوي کيدای سي اوله د هغه سره يوه کليزه اوښه موجوده نه وي دوهم يو کليزه اوښه موجوده خو وي خو صحيح نه وي ناروغه وي په دې صورت کي هم ګويا هغه د نه کيدو په درجه کي وي دريم يوه کليزه اوښه خو موجوده وي خو د اوسط درجې نه وي ډيره قيمتي او د اعلی درجې وي معلومه دي وي چي په زکاة کي د اوسط درجې مال ورکولو حکم دی.

په هر حال په دې کي چي کوم صورت هم دی د هغه حکم دا بيان سوی دی چي په داسي صورت کي ابن لبون يعني دوه کليزه اوښ به د زکوة په توګه ورکول کيږي بيا د دې وضاحت يې هم فرمايلی دی چي د ابن لبون سره نور څه اخستل ورکول واجب نه دي ځرنګه چي د اوښو په باره کي حکم ورکړه سوی دی که پر يو سړي باندي د زکوة په توګه د ورکولو لپاره دوې کليزې اوښه واجب وه او د هغه سره دوې کليزې اوښه موجود نه وي مګر درې کليزې اوښه وي نو زکوة وصولونکی دي د هغه درې کليزې اوښه واخلي خو هغه دي زکوة ورکونکي ته د دوو کليزو اوښي پر ځای درې کليزه اوښه ورکولو په صورت کي دوې بزې يا شل درهمه ورکړي، ځرنګه چي د دې پر خلاف صورت هم بيان سوی دی که زکوة ورکونکی د درو کليزو اوښي پر ځای چي پر هغه واجب ده خو موجود نه ده دوې کليزې اوښه دي ورکړي نو د هغه سره دي دوې بزې يا شل درهمه نور ورکړي چي د زکوة په مال کي تاوان پاته نسي په هر حال د دې څخه معلومه سوه چي فضيلت تانيت د عمر د زياتوالي په بدل کي کيږي.

که څه هم د ځريدونکي قيد يوازي د بزې د زکوة په نصاب کي لګول سوی دی مګر د دې

تعلق د هر څاروي نسره دی يعني که څه هم بزه وي يا اوښ وي يا غوا وي، په دې کي زکوة هغه وخت واجب کيږي کله چي هغه د کال پر اکثرو حصو باندي يعني د نيم کال څخه زيات په ځنګل کي وڅروي که په هغوی کي يو حيوان داسي وي چي د کال په اکثر برخه کي په کور کي ورته خوراک ورکول سي نو په هغه کي زکوة نه واجبيږي.

د بزو نصاب څلويښت بيان سوی دی که د څلويښتو څخه کمي بزې وي نو په هغه کي زکوة نه واجب کيږي بيا چي څلويښت بزې وي نو يوه بزه د زکوة په توګه واجب کيږي او که د څلويښتو زيات وي نو په يو سل اوشلو بزو کي يوه بزه واجبيږي همداسي تر دروسوو بزو پوري د شمير د نصاب زکوة د بيانولو وروسته فرمايل سوي دي کله چي شمير تر دروسوو زيات سي نو بيا به دا حساب وي چي پر هرو سلو بزو باندي يوه بزه واجبيږي او څلور بزې هغه وخت واجبيږي کله چي شمير پوره څلورسوه سي د اکثرو امامانو او علماؤ دا مذهب دی مګر د حسن ابن صالح قول په دې اړه دادی چي تر درو وروسته که يوه بزه هم زياته وي نو څلور بزې واجبيږي.

(ولا ذات عوار) او عيب دار دی نه ورکول کيږي په زکوة کي، د عيب لرونکي مال نه اخستلو حکم په هغه صورت کي دی کله چي پوره مال يا څه مال داسي وي چي په هغه کي څه عيب او خرابي نه وي که پوره مال عيب داره وي نو بيا په هغه کي د اوسطي درجې په کتلو سره به ورکول سي.

په زکوة کي د مينده اخستلو څخه منعه ځکه سوې ده چي مينده د راتلونکي نسل لپاره ساتل کيږي که مينده واخستل سي نو د بزو د مالک به تاوان وي يا هغه به د دې په وجه په پريشاني کي اخته سي يا د مينده اخستلو څخه منعه ځکه فرمايل سوې ده چي د دې غوښه بد خونده او بدبوداره وي.

(ولا يجمع بين متفرق ........الخ) او متفرق حيوان دي يوځای نه کړه سي د دې جملې په مطلب د پوهيدو مخکي د مسئلې په حقيقت پوه سئ چي مفهوم په ذهن کي قرار ونيسي، مسئله داده چي ايا زکوة پر رمه يعني مجموعه باندي دی که اشخاص يعني د مال د مالک اعتبار به وي امام شافعي رحمة الله عليه خو فرمائي چي زکوة د ګلې په اعتبار ورکول کيږي د هغوی په نزد د مالک اعتبار نه وي او دا چي حضرت امام ابو حنيفة رحمه الله و رمې ته اعتبار نه ورکوي بلکه د هغې مالک ته اعتبار ورکوي، په دې مسئله د مثال په توګه داسي پوه سئ چي د يو سړي سره اتيا بزې وي خو هغه بزې يو ځای يعني په يوه رمه کي نه وي مګر جلا جلا په رمو

كي وي نو د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد زكوة پر رمه باندي واجب كيږي ځكه چي د هغوى د مذهب مطابق د هغه دواړو رمو څخه به دوې بزې زكوة وي، ليكن د حضرت امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب مطابق د دواړو رمو څخه به يوه بزه د زكوة په توگه ايستل كيږي كه څه هم اتيا بزې په دوو گلو كي تقسيم وي خو په ملكيت كي د يوه سړي دي ځكه د دې حساب مطابق چي د څلويښتو څخه تر يو سلو شلو پورې په تعداد كي يوه بزه واجب كيږي د هغه سړي څخه به هم يوه بزه وصول كيږي دوهم مثال دادى چي د دوو خلكو اتيا بزې وي چي په يوه رمه كي وي نو د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب مطابق د هغي رمې څخه به يوه بزه واخستل سي او د امام اعظم رحمة الله عليه د مذهب مطابق دوې بزې زكوة كيږي ځكه چي هغه اتيا بزې كه څه هم په يوه رمه كي وي مگر د هغه مالكان جلا جلا دي او هغوى دواړه د څلويښتو څلويښتو بزو مالكان وي چي د هغوى پر جلا شمير باندي يوه بزه واجب كيږي .

دا مسئله په ذهن كي په ايښودو سره اوس پوه سئ چي د حديث د دې جملې ( ولا يجمع بين متفرق .........الخ ) مطلب د امام شفعي رحمة الله عليه په نزد خو دادى چي د دې ممانعت په تعلق سره دى كه څه هم د مثال په توگه څلويښت بزې د هغه وي او څلويښت بزې د بل چا وي او دا دواړه شمير جلا جلا وي نو دا بزې چي جلا جلا او متفرق دي د زكوة كمولو لپاره دي يو ځاى نه كړل سي يعني مالك دا سوچ په كولو سره كه دا بزې جلا جلا په دوو رمو كي وي نو په دې كي به دوې بزې وركول وي او كه دواړي رمې په يو ځاى كولو سره يوه رمه كړه سي نو بيا به يوه بزه وركول وي هغه دي نه يو ځاى كوي . .

همداسي (ولا يفرق بين مجتمع ) او نه دي حيوانان جلا كوي په دې كي د دې ممانعت تعلق هم د مالك سره دى مثلا كه د هغه سره شل بزې وي چي د دوهم سړي د بزو په رمه كي يو ځاى سوي وي نو مالك دي بزې د هغو بزو د رمې څخه جلا كوي په دې سوچ كولو سره دا بزې په هغه رمه كي وي نو زكوة به وركول وي او كه هغه بزه د هغي رمې څخه جلا كړه سي نو د زكوة څخه به وساتل سي .

د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د دې ممانعت تعلق ساعي يعني د زكوة وصولونكي سره دى چي هغه زكوة د اخستو لپاره متفرق بزې يو ځاى نه كړي مثلا د دوو جلا جلا خلكو سره دومره بزې وي چي جلا جلا خو حد نصاب ته نه رسيږي او پر هغه زكوة نه واجب كيږي څرنگه چي د دواړو سره شل شل بزې وي خو كله چي د دواړو بزو يو ځاى كړه سي نو پر هغوى زكوة واجب سي نو زكاة وصولونكي لپاره دا صحيح نه دي چي هغه زكوة د اخستو لپاره

هغه بزې يو ځاى كړي همدا سي د دوهم ممانعت تعلق هم د زكوة وصولونكي سره دى چي زكوة د اخستو لپاره جلا جلا ځاروي يو ځاى نه كړي مثلا د يو سړي سره اتيا بزې داسي وي چي څلويښت خو يو ځاى وي او څلويښت خوپه دوهم ځاى كي دي نو زكوة وصولونكى د دې دواړو ځايونو د بزو دوې جلا جلا نصاب په ګرځولو سره هغه د هغه سړي څخه دي دوې بزې نه وصلوي مګر د دواړو ځايونو د بزو يو نصاب دي وګرځوي او د قاعدې مطابق يوه بزه دي وصول كړي ځكه چي بزې كه څه هم جلا جلا وي مګر په ملكيت كي د يوه سړي دي نو د دواړو ځايونو مجموعه پر بزو باندي چي د هغه شمير اتيا دي يوه بزه واجبيږي .

( وما كان من خليطين ) په كوم نصاب كي چي دوه خلك شريكان وي د دې جملي وضاحت هم يوه مسئله په پوهيدو باندي موقوفه ده مسئله داده چي مثلا دوه سوه بزې دي چي په هغه كي دوه خلك شريكان دي په دې حساب سره چي د يوه سړي څلويښت بزې دي او د بل يوسل او شپيته، اوس سوال دادى چي پر بزو باندي د زكوة په توګه خو دوې بزې واجب دي خو هغه دوې بزې به د هغو دواړو څخه په كوم حساب سره وصوليږي ظاهره چي دا خو نسي كيداى چي پر اول سړي باندي خو د هغه د برخي پيش نظر د يوې بزې دو خمس واجب سي او پاته پر دوهم سړي باندي واجب سي مګر داسي به كيږي چي زكوة وصولونكى به د قاعدې مطابق د دواړو خلكو څخه يوه يوه بزه وصوله كړي خو په دې صورت كي اول سړي ته به تاوان وي ځكه چي هغه په ګډو بزو كي د هغه برخه يوازي څلويښت بزې دي هغه به هم يوه بزه وركوي او دوهم سړى به هم يوه بزه وركوي چي د هغه برخه يو سلو شپيته بزې دي په دې اړه فرمايل سوي دي چي زكوة وصولونكى به د دواړو څخه يوه يوه بزه وصوله كړي مګر بيا وروسته دواړو ته پكار ده چي هغوى د خپلي خپلي برخي سره سم حساب وكړي يعني اول سړى چي د هغه څلويښت بزې دي دوهم سړي څخه چي د هغه يوسلو شپيته بزې دي د خپلي وركړي بزې دريم خمس وصول كړي په دې حساب سره د څلويښتو بزو پر مالک باندي د هغه د برخي سره سم دوه خمسه راځي او پاته د يوسل او شپيتو بزو پر مالک باندي به د هغه د برخي سره سم راځي نو ارشاد ( فانهما يتراجعان بالسوية ) هغوى ته پكار دي چي هغوى دواړه برابر تقسيم كړي د دې دا معنى ده .

## د كښتو زكات

﴿۱۷۰۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ فِيمَا سَقَتْ السَّمَاءُ وَالْعُيُونُ أَوْ كَانَ عَثَرِيًّا الْعُشْرُ وَمَا سُقِيَ بِالنَّضْحِ نِصْفُ الْعُشْرِ . رواه البخاري

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كومه مځكه چي آسمان (باران) اوبه كړي وي يا چينو او يا په خپله شنه سوې وي نو په هغې كي لسمه برخه (زكوة) واجب دئ او كومه مځكه چي په څاه اوبه كيږي د هغې د حاصلاتو شلمه برخه واجب ده . بخاري .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۴۷، رقم: ۱۴۸۳.

**د لغاتو حل** : (عشريا): هو من النخل الذي يشرب بعروقه من ماء المطر يجتمع في حفيرة.

**تشريح** : مطلب دادی چي كومه مځكه په باران سره اوبه كيږي يا د چينو ويالو او ناليو په ذريعه هغه ته اوبه راځي نو د داسي مځكي څخه چي كومه غله وغيره پيدا كيږي په هغه كي به لسمه برخه بطور زكوة وركول واجب دی .

عشری، هغه مځكي ته وائي چي د عاثور څخه اوبه كيږي او عاثور هغه كندي ته وائي چي مځكه د تالاب په ډول وكيندل سي او د هغه څخه كښتو او داسي نورو ته اوبه وركول كيږي ځيني حضرات وائي عشری هغي مځكي ته وائي چي اوبو ته د نژدې كيدو په وجه هميشه تازه او شنه وي .

## د خزانو زكوة

﴿۱۷۰۶﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه حيوان څوک ژوبل كړي نو معاف دئ كه په څاه كي ولويږي مړ سي نو معاف دئ ، كه په كان كښلو كي څوک مړ سي نو معاف دئ او په كان يا پخوانی ښخه سوې خزانه كي پنځمه برخه زكوة واجب دئ بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۶۴، رقم: ۱۴۹۹، ومسلم ۳\۱۳۳۴، رقم: ۴۵- ۱۷۱۰.

**تشريح** : يو حيوان آس، غوائی، ګاميښه او داسي نور كه يو سړی زخمي كړي يا ضائع كړي يا څوک مړ كړي او په دغه وخت كي د حيوان سره د هغه مالک نه وي او دا چي د ورځي وخت وي نو د حيوان زخمي كول يا څه شی ور ضائع كول معاف دي يعني د هغه پر مالک د هغه څه بدله او جرمانه نه راځي هو كه حيوان په داسي حال كي څوک زخمي كړي يا يو شی يې ورورک كړي چي پر هغه څوک سپور وي يا د هغه سره شړونكی او بيونكی وي نو په داسي صورت كي

د حیوان پر مالک بدله او جرمانه واجب کیږي ځکه چي په دې کي به کوتاهي او لا پرواهي ته دخل وي همداسي که یو حیوان د شپې وخت په خلاصیدو سره څوک زخمي کړي یا څه شی یې وروک کړي نو د هغه پر مالک به د هغه تاوان راځي ځکه چي د شپې حیوان تړل کیږي خو هغه حیوان په تړلو سره د لاپرواهي او کوتاهي ثبوت ورکړ په دغه باره کي پورته حدیث که څه هم عام دی او په دې کي څه قید او تخصیص نسته خو د نورو حدیثونو او دلائلو په نظر کي نیولو پورته قید ذکر سوی دی.

(والبئر جبار) که په څاه کیندلو کي څوک مړ سي نو معاف دی د دې مطلب دادی مثلا یو سړی څاه کیندل غواړي او هغه څاه د کینلو لپاره د یوه مزدور خدمتونه حاصل کړي دبي اوس که هغه مزدور په څاه کیندلو کي و ځاته ایله سي یا د ساه په بندېدو سره مړسي نو پر څاه کنونکي باندي هیڅ تاوان یعني دیت وغیره نه واجبیږي همداسي که یو سړی په خپله مځکه یا داسي افتاده مځکه کي چي د هغه د مالک درک نه وي څاه کیندي او په هغه څاه کي یو سړی یا حیوان وغیره په غورځیدو سره مړ سي نو په دې صورت کي هم پر هغه هیڅ تاوان نه راځي هو که څاه په لاره کي یا په څه بله مځکي کي د مالک د اجازې پرته کیندل سوی وي او په هغه څاه کي څوک سړی یا حیوان وغیره په ورغورځیدو سره مړ سي نو په دې صورت کي به د څاه کیندلو پر عاقله باندي تاوان یعني خونه بها واجب کیږي دا حکم به د هغه سړي په باره کي لارګو وي چي سره زر سپین زر د فیروزه یا خاورو د کښلو لپاره د مځکي څه برخه وکیندي.

**عاقله څه ته وائي** ؟ عاقله یوه فقهي اصطلاح ده د دې په معنی د مثال په توګه داسي پوه سئ چي د یو سړي څخه یو جرم کیږي مثلا هغه پر ښکار باندي توپک وچلوي ناڅاپه بېله کوم قصد او ارادې د هغه مرمۍ د ښکار پر ځای په یو انسان کي ولګیږي او هغه مړ کړي یا د پورته صورت سره سم یو سړی په لار کي څاه کیندي او په هغه څاه کي په غورځیدو سره مړسي نو د کوم سړي په مرمۍ سره چي مرګ وسي یا د کوم سړي کیندل سوي څاه کي څوک په غورځیدو سره چي مړسي د هغه ملګري او رفیق ته عاقله وائي فرض که هغه سړی په فوج یا په پولیس کي ملازم دی نو د هغه ملګري فوجي یا سپاهي ته عاقله وائي او که هغه چیري ملازم نه وي نو بیا د هغه قبیله او خاندان ته به عاقله وائي.

**پر عاقله باندي تاوان ولي** ؟ اوس سوال دا پیدا کیږي چي غلطي خو د هغه سړي ده خو جرمانه یا تاوان د هغه ملګرو یا د هغه د اهل خاندان او پر قبیله والا باندي ولي ده د دې وجه داده کله چي د هغه سړي څخه څه غلطي وسوه او په هغه غلطي کي هم د هغه قصد او ارادې ته

څه دخل نه وو که څه هم هغه د دې څه جرمانه ولي نسي کیدای چي هغه پر هغه غلطي باندي پښیمانه نه وي او د هغه د لاپرواهي او کوتاهي آئنده د څه لوئي پیښي ذریعه جوړه سي ځکه ضروري سوه چي جرمانه او تاوان پر هغو خلکو باندي لازمه کړه سي چي د هغه نژدې اوسیدونکي او د هغه سره متعلق وي چي هغوی په مذکوره توګه سره په واک کي سي او د آئنده لپاره د هغه څخه داسي حرکت نه وسي.

**په حدیث کي د رکاز څخه څه مراد دي** : امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه فرمائي په حدیث کي چي د کوم رکاز ذکر سوی دی د هغه څخه معدن مراد دی مګر اهل حجاز د رکاز څخه د جاهلیت په زمانه کي په مځکه کي پټي خزانې مراد اخلي تر څو پوري چي د حدیث ظاهري مفهوم او د دې وسیاق وسباق دی د دې پیش نظر هغه معنی زیاته بهتره معلومیږي کومه چي امام اعظم رحمة الله علیه اخستې ده بیا دا چي خپله د رسول الله ﷺ یو ارشاد هم د رکاز د معنی وضاحت کوي نقل دي چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي رکاز هغه سره او سپین زر دي چي هغه الله تعالی په مځکه کي د هغه د تخلیق په وخت کي پیدا کړي دي.

## د کان څخه د وتونکو شیانو ډولونه

دلته په دې هم پوهیدل پکار دي چي کوم شیان چي د کان څخه را ایستل کیږي د هغه درې ډولونه دادي:

اول هغه شیان چي منجمد وي او په اور کي په اچولو سره نرم سي او د منقش کیدو قابل وي یعني کومي سکې وغیره د منقش کیدو په کار راتلای سي لکه سره زر سپین زر او داسي نور.

دوهم: د هغو شیانو څخه چي منجمد نه وي لکه اوبه، تېل او داسي نور.

دریم: د هغه شیانو څخه چي په اور کي په اچولو سره نه نرمیږي او نه د سکې وغیره لپاره استعمالیدای سي لکه ډبره چونا هړتال او یاقوت وغیره په دې درو ډولو کي یوازي په اول ډول کي د زکوة په توګه خمس یعني پنځمه برخه کښل واجب دي او د دې لپاره د یوه کال تیریدل شرط نه دي د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په معدنیاتو کي یوازي سره او سپین زر کي زکوة واجب کیږي نور معدنیات مثلا وسپنه، مس او داسي نورو کي زکوة نه واجبیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د غواو غوايي زكوة

﴿١٧٠٧﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ عَفَوْتُ عَنِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ما معاف كړ زكوة

الْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ فَهَاتُوا صَدَقَةَ الرِّقَةِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمًا وَلَيْسَ فِي

د هغه غلامانو او آسانو (چي د تجارت لپاره نه وي) او تاسو زكوة د سپينو زرو څلوېښت درهمو باندي يو درهم ادا كوئ

تِسْعِينَ وَمِائَةٍ شَيْءٌ فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَتَيْنِ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ، رواه الترمذي

او پر يو سل نيوي درهمو باندي زكوة نسته او هر كله چي پوره دوه سوه درهمه سي نو پر هغه پنځه درهمه واجب دي . ترمذي،

وابوداؤد وفي رواية لابي داؤد عَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ زُهَيْرٌ أَحْسِبُهُ

او ابوداؤد، د ابوداؤد په يوه روايت كي دي چي د زهير څخه نقل دئ چي زهير وويل : زما په خيال كي حارث اعور ته چي هغه وويل چي حضرت علي بيان وكړ چي

عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّه قَالَ هَاتُوا رُبُعَ الْعُشْرِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ

رسول الله ﷺ وفرمايل : په هر څلوېښت درهمو كي تاسو څلوېښتمه برخه ادا كوئ

وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ شَيْءٌ حَتَّى تَتِمَّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَفِيهَا

او تر هغه وخته پوري پر تاسو هيڅ واجب نه دي تر څو پوري چي پوره دوه سوه درهم نه سي بيا هر كله چي پوره دوه سوه درهمه سي نو په هغو كي

خَمْسَةُ دَرَاهِمَ فَمَا زَادَ فَعَلَى حِسَابِ ذٰلِكَ وَفِي الْغَنَمِ فِي أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ الى

پنځه درهمه واجب دي او څومره چي د دوو سوو درهمو څخه زيات وي په هغه حساب سره زكوة واجب دئ او په پسو كي پر هر څلوېښت باندي يو پسه واجب دئ، تر

عشرين ومائة فان زادت واحدة فشاتان الى مائتين فان زادت فثلث

یو سل او شلو پوري او هر کله چي پر دې شمير باندې يو هم زيات سي نو دوه پسونه واجب دئ تر دوو سوو پوري او که تر دوو سوو زيات سي نو پر درو سوو باندې درې

شياة فان لم تكن الا تسع و ثلثون فليس عليك فيها شئا وَفِي الْبَقَرِ فِي كُلِّ

پسونه واجب دي او که تر درو سوو زيات سي نو په هر سل کي يو پسه واجب دئ، او که کم يعني يو کم څلوېښت پسونه وي نو پر هغو هيڅ شي واجب نه دئ او په غواوو کي پر هر

ثَلَاثِينَ تَبِيعٌ وَفِي الْأَرْبَعِينَ مُسِنَّةٌ وَلَيْسَ عَلَى الْعَوَامِلِ شَيْءٌ.

دېرشو غواوو باندي يو کلن ګيلګی او پر څلوېښتو باندي يوه غوا چي دوه کلنه وي او د کار پر حيوانانو باندې زکوة نسته.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۳۲، رقم: ۱۵۷۴، والترمذي ۳\۱۶،

**تشريح**: (فما زاد فعلى حساب ذالک): چي د تر دوو سوو درهمو زيات وي نو په هغه کي به په دې شمير سره زکوة واجب وي په حنفيه کي صاحبين يعني امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليه دا مذهب دی چي د دوو سوو درهمو څخه کوم مقدار زيات وي د هغه شمير په کولو سره څلوېښتمه برخه دي په توګه د زکوة ادا کړه سي خو امام اعظم ابو حنيفهٔ رحمة الله عليه فرمائي چي تر دوو سوو زيات په اندازه کي هلته زکوة واجب کيږي چي کله هغه اندازه تر څلوېښت درهمه پوري وي او که زيات مقدار او څلوېښت ته نه ورسيږي نو بيا په هغه کي زکوة نه واجب کيږي مګر د دوو سوو درهمو زکوة به ورکول کيږي امام صاحب په دې حديث کي زيات مقدار د څلوېښتو درهمو پر زيات باندې محمول کړی دی او دا هغوی ځکه ويلي دي چي په ټولو حديثونو کي تطبيق يعني مطابقت وسي او څه اختلاف نه سي څرګنده.

د غوا په نصاب کي د زکوة په توګه د غوائي ورکولو لپاره فرمايل سوي دي د غوا د زکوة په توګه نر او ماده دواړه برابر دي که غوا ورکړي که غويئ ورکړي څرنګه چي په راتلونکي روايت کي د دې وضاحت هم سته د غوا او بزې د زکوة په توګه ماده ورکول ضروري نه دي د اوښانو پر خلاف چي په هغه کي ماده ورکول افضل دي مګر په غوا او بزې کي د دې څه قيد او تخصيص نسته.

علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمایي که غواوي یا غوایان تر ځلویښتو زیات وي نو په هغه زیاته اندازه کي تر هغه وخته پوري څه شی نه واجب کیږي تر څو پوري چي شمیر شپیتو ته نه ورسیږي کله چي شمیر شپیته سي په هغه کي دوه تبیعې یعني د یوه کال دوه غوایان یا د دې عمر دوې غواوي به ورکول وي بیا د دې وروسته په هرو ځلویښتو کي یوه مسنه یعني دوه کلیزه غوا یا دوه کلیزه غوایی به ورکول کیږي او په هرو دیرشو کي یوه یوه تبیعه واجب کیږي مثلا اویا سي نو یوه مسنه او یوه تبیعه اتیا سي نو دوې مسنې او که نیوي سي نو درې تبعې او کله چي سل سي نو دوې تبیعې او یوه مسنه واجب کیږي همداسي په هرو دیرشو کي یوه تبیعه او په هرو ځلویښتو کي د یوې مسنې شمیر ته به زکوة ادا کول کیږي.

د علامه ابن حجر رحمة الله علیه قول که غواوي یا غویان تر ځلویښتو پر زیاتو اندازه کي تر هغه وخته پوري هیڅ شی نه واجب کیږي تر څو پوري چي شمیر شپیتو ته نه ورسیږي په حنفیه کي د صاحبین دا مذهب دی مگر د امام اعظم رحمة الله علیه مذهب دادی چي تر ځلویښتو کوم شمیر هم زائد سي د هغه هم حساب په ورکولو سره زکوة به ادا کیږي تر دې چي شمیر شپیتو ته ورسیږي کله چي تعداد و شپېتو ته ورسیږي نو دوې تبعي واجبیږي پاته حساب به د پورته ترتیب سره سم وي که تر ځلویښتو ځخه یوه هم غوا یا غویی زیات وي نو مسنه ځلویښتمه برخه یا د یو تبیعه دیرشمه برخه یعني د هغه د قیمت ځلویښتمه یا دیرشمه برخه ورکول به ضروري وي همداسي کوم مقدار هم چي زیات وي د هغه به هغه مطابق حساب کول کیږي په حنفیه کي صاحب هدایه او د هغوی د متبعینو په رایه کي د امام صاحب رحمة الله علیه دا قول معتبر دی.

د حدیث اخري جمله (ولیس علی العوامل شيء) د کار روزگار په حیوانانو کي هیڅ هم واجب نه دي د دې مطلب دادی چي کوم حیوان د کار روزگار وي او په ضروریاتو کي استعمالیږي لکه غویان د یوي کولو یا د ځاه ځخه اوبه د راکښلو یا د بارو ړلو راوړلو د کار لپاره وي که څه هم د هغوی شمیر په اندازه نصاب وي په هغوی کي زکوة نه واجب کیږي دا حکم د اوښانو او داسي نورو په باره کي هم دی امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه امام شافعي رحمة الله علیه او امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه د دوی هم دا مذهب دی مگر امام مالک رحمة الله علیه فرمائي چي په داسي حیوانانو کي هم زکوة واجب کیږي.

﴿۱۷۰۸﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ أَمَرَهُ

د حضرت معاذ ﷜ ځخه روایت دئ چي کله رسول الله ﷺ هغه د یمن په لور ولیږئ حکم یې ورکړ

أَنْ يَأْخُذَ مِنَ الْبَقَرِ مِنْ كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعًا أَوْ تَبِيعَةً وَمِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنَّةً.

رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي والدارمي .

چي په غواوو كي پر ديرشو غواوو د يو كلن گيلگي زكوة اخله او په څلوېښتو كي دوه كلنه غوا اخله . ابوداؤد ، ترمذي او نسائي

**تخريج:** سنن ابي داوٗد ۱۲\۲۳۶، رقم: ۱۵۷۸، والترمذي ۳\۲۰، رقم: ۶۲۳، والنسائي ۵\۲۵۰۲۶، رقم: ۲۴۴۹، والدارمي ۱\۴۶۵، رقم: ۱۶۲۴.

**د لغاتو حل:** (التبيع): ما اتم الحول من البقر. (يو كلن گيلگى).

## زيات زكات اخيستل

﴿۱۷۰۹﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ كَمَانِعِهَا. رواه ابوداؤد والترمذي .

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په زكوة كي زياتي كونكى د هغه چا په ډول دئ چي د زكوة څخه انكار كونكى وي يعني د دواړو يو ډول گناه ده . ابوداؤد او ترمذي .

**تخريج:** سنن ابي داوٗد ۲\۲۴۳، رقم: ۱۵۸۵، والترمذي ۳\۳۸، رقم: ۶۴۶.

## د غلې او خرماوو زكوة

﴿۱۷۱۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ فِي حَبٍّ وَلَا تَمْرٍ صَدَقَةٌ حَتَّى تَبْلُغَ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ . رواه النسائي .

د حضرت ابوسعيد خدري ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په غله او خرماوو كي زكوة نسته تر څو چي د هغو اندازه پنځو وسقو (ديرشو منو) ته ونه رسيږي . نسائي

**تخريج:** سنن النسائي ۵\۴۰، رقم: ۲۴۸۴.

**تشريح :** د غلې او خرما د زكوة په باره كي په تيرو صفحو كي په تفصيل سره بيان سوى دى هلته پر يو ځاى باندي د وسق وضاحت هم سوى دى .

﴿۱۷۱۱﴾: وَعَنْ مُوْسٰى بْنِ طَلْحَةَ قَالَ عِنْدَنَا كِتَابُ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ عَنِ النَّبِيِّ

د حضرت موسى بن طلحه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زموږ سره د معاذ بن جبل هغه خط موجود دئ چي هغه ته نبي كريم ﷺ ليږلئ وو ،

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ إِنَّمَا أَمَرَهُ أَنْ يَّأْخُذَ الصَّدَقَةَ مِنَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالزَّبِيْبِ وَالتَّمْرِ . مرسل رواه في شرح السنة

د معاذ بيان دئ چي نبي كريم ﷺ ما ته حكم راكړئ وو چي د غنمو ، اوربشو ، انگورو او خرماوو باندي زكوة وصول كړم . شرح السنة مرسلاً .

**تخريج**: شرح السنة ٦\٤٠، رقم: ١٥٧٩.

**تشريح**: د دې مطلب دانه دی چي د ځمكي د پيداوارو څخه نه يوازي په دې څلورو شيانو كي زكوة واجب دی مگر د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد خو د ځمكي په هر پيداوار كي زكوة واجب كيږي چي د انساني ژوند لپاره غذا جوړيدای سي او د حنفيه په نزد د ځمكي په هر پيداوار كي زكوة دی كه څه هم هغه د انساني ژوند لپاره غذا وي يا نه وي تر څو پوري چي د دې حديث تعلق دی نو په دې اړه ويل كيږي چي په دې علاقه كي يوازي دا څلور شيان پيداكيدل ځكه د دې څلورو شيانو په خاصه توگه سره ذكر سوی دی .

## دانگورو زكات

﴿۱۷۱۲﴾: وَعَنْ عَتَّابِ ابْنِ اَسِيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ فِي زَكَاةِ الْكُرُوْمِ إِنَّهَا

د عتاب ابن اسيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د انگورو په اړه دا فرمايلي دي

تُخْرَصُ كَمَا يُخْرَصُ النَّخْلُ ثُمَّ تُؤَدّٰى زَكَاتُهُ زَبِيبًا كَمَا تُؤَدّٰى زَكَاةُ النَّخْلِ تَمْرًا . رواه الترمذي و ابوداؤد .

چي انگور دي اندازه كړل سي او د وچو انگورو موافق دي زكوة ادا كړل سي څنگه چي د وچو خرماوو ادا كيږي . ترمذي ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ٢\٢٥٧، ٢٥٨، رقم: ١٦٠٣، والترمذي ٣\٣٦، رقم: ٦٤٤.

**تشریح** : مطلب دادی چي په انګورو او خرما کي خوږوالی پیدا سي نو یوما هر سړی دی په دې اړه دا اندازه لګوي چي د وچ کیدو وروسته به دا څومره وي بیا چي هغه وچ سي نو د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه د مذهب سره سم هغه چي هر څومره وي د هغه لسمه برخه دي په توګه د زکوة ادا کړه سي صاحبین او د امام شافعي رحمة الله علیه د مذهب سره سم که د هغه اندازي حد نصاب یعني تر پنځه وسقه پوري ورسیږي نو لسمه برخه دي ادا کړه سي.

﴿۱۷۱۳﴾: وَعَنْ سَهْلِ ابْنِ اَبِي حَثْمَةَ حَدَّثَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن ابي حثمة ﷺ څخه روایت ذئ چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي

كَانَ يَقُولُ إِذَا خَرَصْتُمْ فَخُذُوا وَدَعُوا الثُّلُثَ فَإِنْ لَمْ تَدَعُوا الثُّلُثَ فَدَعُوا الرُّبُعَ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي

هر کله چي تاسو د خرماوو او انګورو زکوة اندازه کړئ نو د واجب اندازه سوي اندازې څخه دریمه حصه پریږدي او که دریمه حصه نه پریږدي نو څلورمه حصه پریږدي (مالک ته) . ترمذي، ابوداؤد او نسائي.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۲۵۸- ۲۶۰، رقم: ۱۶۰۵، والترمذي ۳\ ۳۵، رقم: ۶۴۳، والنسائي ۵\ ۴۲، رقم: ۲۴۹۰.

**تشریح** : په اصل کي د زکوة وصولونکي ته خطاب دی چي کله تاسو د زکوة اندازه وټاکل نو هغه تعین سوې اندازه دوه په دریمي کي تاسو واخلئ او یو په درې کي د احسان په وجه ومالک ته پرېږدئ تر څو هغه په خپلو همسایګانو او مسافرانو باندي وخوري د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه او امام مالک رحمة الله علیه دا مذهب دی که څه هم د امام شافعي رحمة الله علیه اول قول هم دادی خو د هغوی وروسته قول دادی چي د زکوة د واجب اندازې څخه هیڅ برخه دي هم نه پریږدي.

د دې حدیث تاویل هغوی دا کوي چي د دې تعلق د خیبر د یهودیانو سره وو رسول الله ﷺ د خیبر د یهودیانو سره نیم کاره معامله کړې وه چي نیمه خرما به د هغوی وي او نیمه به دربار رسالت ته استول کیږي څکه رسول الله ﷺ د خرما اندازه کونکو ته دا حکم ورکړی وو چي مخکي دي په هغه ټوله خرما کي دریمه برخه یا څلورمه برخه د هغه یهودیانو لپاره د احسان د

مخه پرېږدي بيا پاته خرما دي نيمی نيمی تقسيم کړي يوه برخه دي يهوديانو ته ورکړه سي او يوه برخه دي دربار نبوت ته واستول سي.

## په خرماوو کي زکات

﴿۱۷۱۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَبْعَثُ عَبْدَ اللهِ بْنَ رَوَاحَةَ إِلَى يَهُودَ فَيَخْرُصُ النَّخْلَ حِينَ يَطِيبُ قَبْلَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به عبدالله بن رواحه د خيبر د يهودو په لور ليږئ او هغه به د خرماوو اندازه هغه وخت کول چي په هغو کي به خوږوالی پيدا سو مگر د خوراک به لا نه وه. ابوداؤد

**تخريج:** سنن ابي داوُد ۲\۲٦۰، رقم: ۱٦۰٦.

## په عسلو کي زکات

﴿۱۷۱۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ فِي الْعَسَلِ فِي كُلِّ عَشَرَةِ أَزُقٍّ زِقٌّ. رواه الترمذي و قال في اسناده مقال ولا يصح عن النبي ﷺ في هذا الباب كثير شئ.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په لس ژيو شاتو کي دي يو ژی شات واخيستل سي، ترمذي ويلي دي ددې حديث په سند کي شبه ده او د شاتو په اړه د رسول الله ﷺ څخه زيات نقل نسته

**تخريج:** سنن الترمذي ۳\۲۴، رقم: ٦۲۹.

**د لغاتو حل:** (الزق): وعاء من جلد توضع فيه السوائل.

**تشريح**: د عسلو د زکوة په باره کي د امامانو اختلاف دی امام شافعي رحمة الله عليه فرمائي په شاتو کي زکوة نسته خو د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد په شاتو کي زکوة واجب دی که څه هم په کم مقدار کي وي يا په زياته اندازه کي وي په شرط د دې چي د عشرې د مځکي څخه وتلي وي د هغوی دليل دا ارشاد دی چي د مځکي په هر پيداوار کي عشر واجب دی او کوم شات چي په غرونو کي وي په هغه کي هم د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد لسمه برخه د

زکوة په توګه کښل واجب دي .

## په زيوراتو کي زکوة

﴿۱۷۱۶﴾: وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَتْ خَطَبَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د ښځي بي بي زينب څخه روايت دئ چي زموږ په وړاندي رسول الله ﷺ خطبه وويل چي :

وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ فَإِنَّكُنَّ أَكْثَرُ أَهْلِ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه الترمذي

اې ښځو د خپل مال زکوة ورکوئ که څه هم هغه ستاسو جامې وي ځکه په تاسو کي به د قيامت په ورځ زياتي دوږخياني وي . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۲۸، رقم: ۹۳۵.

**تشريح** : اکثره د دوږخيانو وي، د دې مطلب دادی چي ښځه اکثره وخت د دنيا او د دنيا د شيانو په محبت کي راچاپيره وي چي د هغه په وجه نه يوازي دا چي زکوة نه ادا کوي مګر د الله تعالی په لار کي د خپل مال د خرڅولو په هغوی کي جذبه هم نه وي ځکه د ښځو اکثريت ته دوږخيان ويل سوي دي ښځي خبري کړه سوې که تاسو د دوږخ د دردناکه عذاب څخه ځان ساتل غواړئ نو د دنيا محبت او دنيوي عيش او عشرت د طمع او حرص څخه ځانونه وساتئ الله تعالی چي تاسو ته څه مال درکړی دی پر هغه صبر وکړئ د هغه څخه زکوة او صدقه وباسئ چي د قيامت په ورځ د الله تعالی رحمت ستاسو سره وي او تاسو دوږخ ته د تلو څخه وساتل سئ .

د ښځو جامې زيور د زکوة په باره کي د امامانو اختلاف دی د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب خو دادی چي په مطلق زرو کي زکوة واجب دی کله چي هغه حد نصاب ته ورسيږي د امام شافعي رحمة الله عليه اول قول هم دادی امام مالک رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه فرمائي د ښځو په هغو جامو کي زکوة واجب نه دی چي د هغه استعمالول مباح دي د کومو زيوراتو استعمالول چي حرام دي د دې حضراتو په نزد په هغه کي زکوة واجب کيږي د امام شافعي رحمة الله عليه اخري قول هم دادی د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه د مذهب دليل دا حديث دی چي د هغه څخه په مطلقا زيوراتو کي د زکوة وجوب ثابتيږي .

﴿۱۷۱۷﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ أَتَتَا رَسُولَ

حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي دوې ښځي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضري سوې

اللهِ ﷺ وَفِي أَيْدِيهِمَا سُوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ لَهُمَا أَتُؤَدِّيَانِ زَكَاتَهُ قَالَتَا لَا

او د هغو په لاسو کي دوه باهوګان وه د سرو زرو، رسول الله ﷺ د هغو څخه پوښتنه وکړه ايا تاسو ددې زکوة ورکوئ؟ هغوی وويل: نه،

فَقَالَ لَهُمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى ﷺ أَتُحِبَّانِ أَنْ يُسَوِّرَكُمَا اللهُ بِسُوَارَيْنِ مِنْ نَارٍ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا تاسو غواړئ چي الله تعالى تاسو ته د اور باهوګان واچوي،

قَالَتَا لَا قَالَ فَأَدِّيَا زَكَاتَهُ. رواه الترمذي و قال هذا حديث قد روي المثني

هغوی عرض وکړ: نه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: ددې زکوة ادا کړئ، ترمذي ويلي دي دا

ابن الصباح عن عمروبن شعيب نحو هذا والمثني ابن الصباح وابن لهيعة يضعفان في الحديث و لا يصح في هذا الباب عن النبي ﷺ شئ.

حديث مثنى بن صباح د عمربن شعيب څخه داسي روايت کړئ دئ ابن صباح او ابن لهيه دواړه ضعيف دي په دې اړه د نبي کريم ﷺ څخه صحيح حديث منقول نه دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۲۹، رقم: ۶۳۷.

**تشريح**: دا حديث هم په وضاحت سره د دې خبري دليل دی چي په زيوراتو کي زکوة واجب دی د امام ترمذي رحمة الله عليه دا ويل چي په دې اړه د رسول الله ﷺ څه صحيح حديث نقل نه دی دا خبره صحيح نه ده ځکه چي د حديثونو په نورو کتابونو کي ددې مسئلې په اړوند صحيح حديثونه نقل دي چي ملا علي قاري رحمه الله هم په مرقات کي نقل کړي دي.

﴿۱۷۱۸﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَلْبَسُ أَوْضَاحًا مِنْ ذَهَبٍ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَكَنْزٌ هُوَ فَقَالَ مَا بَلَغَ أَنْ تُؤَدَّى زَكَاتُهُ فَزُكِّيَ فَلَيْسَ بِكَنْزٍ. رواه مالك و ابوداؤد.

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دئ چي ما به اوضاح (د کالو نوم دئ) اغوستل چي د سرو زرو وه، ما یوه ورځ د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ایا دا (کالي) هم کنز (خزانه) دئ (د کوم سزا چي په قرآن کریم کي راغلئ دئ)؟ رسول الله ﷺ وفرمایل که دا هغه اندازې ته رسیږي چي پر هغه زکوة واجب دئ او د هغه زکوة ادا کړل سي نو بیا دا کنز نه دئ. مالک ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۱۲- ۲۱۳، رقم: ۱۵۶۴، ولم نجده عند مالک.

**د لغاتو حل**: الاوضاح: نوع من الحلي يعمل من الفضة. (یو ډول جامې چي سره زر پکښې کار سوي وي.)

**تشریح**: د بي بي ام سلمه ﷺ د پوښتني مطلب دا وو چي قرآن کریم د مال جمع کولو په باره کي دا سزا بیان کړې ده:

وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ

ژباړه: کوم خلک چي سره او سپین زر جمع کوي او هغه د الله تعالی په لار کي نه خرڅوي نو هغوی د دردونکي عذاب څخه خبر کړی.

نو ایا زما د سرو زرو زیور هم په دغه وعید کي داخل دي؟ د دې جواب رسول الله ﷺ دا ورکړ چي مال په اندازه د نصاب وي چي د هغه زکوة ادا کړه سي نو هغه مال په دې سزا کي داخل نه دی ځکه چي قرآن کریم خو د دردونکي عذاب خبر د هغه مال مالک ته ورکوي چي هغه بغیر زکوة ورکولو جمع کړي.

## د تجارت مال

﴿۱۷۱۹﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُنَا أَنْ نُخْرِجَ الصَّدَقَةَ مِنَ الَّذِي نُعِدُّ لِلْبَيْعِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به موږ ته حکم راکوئ چي کوم مال موږ د تجارت لپاره تیار کړئ دئ په هغو کي زکوة ورکوو. ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۱۱، رقم: ۱۵۶۲.

## د کانو د زکوة مسئله

﴿۱۷۲۰﴾: وَعَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمنِ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ

حضرت ربیعة بن ابي عبد الرحمن رضي الله عنهم د ډیرو صحابه کرامو څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ

أَقْطَعَ بِلَالَ بْنَ الْحَارِثِ الْمُزَنِيَّ مَعَادِنَ الْقَبَلِيَّةِ وَهِيَ مِنْ نَاحِيَةِ الْفُرْعِ فَتِلْكَ

بلال بن حارث مزني ﷛ ته د قبليه نامي ځاى كانونه وركړي وه او د هغو كانو څخه تر اوسه پوري يوازي زكوة اخيستل كيږي

الْمَعَادِنُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهَا إِلَّا الزَّكَاةُ إِلَى الْيَوْمِ . رواه ابوداؤد .

يعني څلوېښتمه برخه او خمس (پنځمه برخه) ځيني نه سي اخيستل كيدلاى ځنګه چي د كانو په اړه حكم دئ . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\۴۴۳، رقم: ۲۰۶۱.

**تشريح**: (قبليه) د قبل خوا ته منسوب دى چي په قرع كي د يو ځاى نوم دى او فرع د مكې او مدينې په مينځ كي يوه علاقه ده په قبل كي چي كوم كانونه وه رسول الله ﷺ هغه بلال ابن حارث مزني ﷛ ته وركړي وه چي د هغو كانو څخه څه په لاس راوړي او په هغه سره خپل ژوندي تېروي .

د حديث د اخري جملې مطلب دادى چي د هغو كانونو څخه زكوة يعني څلويښتمه برخه اخسته كيږي ګويا خمس دي نه ځني اخلي ځرنګه چي د كانو متعلق حكم دى امام مالک رحمة الله عليه او د يوه قول مطابق د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادى چي په كانو كي هم څلويښتمه برخه واجب كيږي خمس واجب نه دى خو د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دادى چي په كانو كي پنځمه برخه واجب كيږي څلويښتمه برخه نه واجب كيږي د امام شافعي رحمة الله عليه يو قول دا هم دى، د امام شافعي رحمة الله عليه يو دريم قول دا هم دى كه د كان څخه د راوړونكي شيانو د لوئ محنت او مشقت په نتيجه كي حاصل سي نو څلويښتمه برخه واجب كيږي كنه نو په بل صورت كي خمس واجبيږي .

په هر حال حديث د حنفيه مذهب خلاف دى ځكه په دې اړه ويل سوي دي چي د حديث د مفهوم څخه دا خبره نه ثابتيږي چي د دې كانو څخه د خمس پر ځاى څلويښتمه برخه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د يوه حكم سره سم اخسته كيږي مګر دا سي معلوميږي چي د هغه وخت حاكمانو په خپل ذاتي اجتهاد سره په هغو كانونو كي د خمس پر ځاى څلويښتمه برخه ضروري ګرځولې وي او ظاهره ده چي زموږ د مذهب بنياد د كتاب الله، سنت صحيحه او په قياس دى، ملا علي قاري رحمة الله عليه په مرقات كي دا خبره په ډير تفصيل سره راوړي ده اهل علم هغه كتاب ته مراجعه كولاى سي

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### زكوة په كومو شيانو كي سته

﴿۱۷۲۱﴾: عَنْ عَلِيٍّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نه سته په سبزيجاتو كي

صَدَقَةٌ وَلاَ فِي الْعَرَايَا صَدَقَةٌ وَلاَ فِيْ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ وَلاَ فِي

زكوة او نه په هغه درختو كي چي د چا څخه مستعار (العرايا) هغه درخته چي مالک يې بل چا ته اجازه وركړې وي چي ميوه يې ته خوره اخيستل سوي وي او پر پنځو وسقو (ديرش منه) كم اندازه باندي زكوة واجب نه دئ او نه

الْعَوَامِلِ صَدَقَةٌ وَلاَ فِي الْجَبْهَةِ صَدَقَةٌ قَالَ الصَّقْرُ : اَلْجَبْهَةُ الْخَيْلُ وَالْبِغَالُ وَالْعَبِيْدُ . رواه الدار قطني

د كار پر حيوانانو زكوة سته ، او نه پر جبهة باندي زكوة سته . صقر راوي وايي چي جبهة (آس، غاتره، او غلام ته وايي) دارقطني . (مستعار : د يو څو ورځو لپاره په پور اخيستل سوي ته وايي) .

**تخريج**: سنن الدار قطني ۲\۹۴، رقم: ۱.

**د لغاتو حل**: العرايا جمع عرية وهي النخلة التي يعطيها مالكها لغيره لياكل ثمرها عاما او اكثر.

**تشريح** : په تركاريو او سبزيو كي د زكوة په باره كي پوره تفصيل د باب بالكل په شروع كي بيان سوى دى عرايا د عرية جمعه ده عريه د خرما هغه ونې ته وائي چي د هغه مالک يې يو محتاج او ضرورت مند ته بطور رعايت وركړي او د پوره كال خرما د هغه ملكيت جوړه كړه چي په هغه خرما سره خپل احتياج او ضرورت پوره كړه سي دلته د داسي خرما په باره كي فرمايل سوي دي چي په هغوى كي زكوة واجب نه دى ځكه چي هغه وجوب د زكوة څخه مخكي د خپل مالک د ملكيت څخه وځي .

د دې څخه ماسيوا په حديث كي چي د كومو شيانو د زكوة په باره كي فرمايل سوي دي د هغه تولو تفصيلي ذكر په تيرو صفحو كي پر مختلفو ځايو باندي بيان سوي دي .

## زکوٰة په کومو شیانو کي دئ

﴿۱۷۲۲﴾: وَعَنْ طَاوُسٍ أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ أُتِيَ بِوَقْصِ الْبَقَرِ فَقَالَ لَمْ يَأْمُرْنِي

د حضرت طاؤس رحمه الله څخه روایت دئ چي معاذ بن جبل رضي الله عنه ته د غواوو دومره شمیر راوړل سو چي په هغو کي زکوٰة واجب نه وو ، هغه وویل:

فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ . رواه الدارقطني والشافعي وقال: الوقص ما لم يبلغ الفريضة

نبي کریم ﷺ ما ته پر دومره شمیر باندي د زکوٰة اخیستلو حکم نه دئ راکړئ ، دارقطني او شافعي، مګر شافعي ویلي دي چي د وقص څخه مراد هغه اندازه ده چي د نصاب څخه کم وي او فرضیت ته و نه رسیږي .

**تخریج**: سنن الدار قطني ۲\۹۹، رقم: ۲۱، وترتيب مسند الامام الشافعي ۱\۲۳۷، رقم: ۶۴۹.

**تشریح**: علامه طیبي رحمة الله علیه فرمائي وقص د قاف په زیر سره د حیوانانو هغه شمیر ته وائي چي فرض حد نصاب ته نه رسیږي که څه هم ابتدائي داسي شمیر وي یا د دوو نصابو په مینځ کي وي .

په دې خبره د مثال په توګه داسي پوه سئ چي غواوي یا غوایان تر دیرشو کم په شمیر کي وي نو په هغه کي زکوٰة واجب نه دی تر دیرشو کم هغه شمیر چي په ابتدائي توګه سره حد نصاب ته نه وي رسیدلي تر دیرشو کم دې تعداد ته وقص ویل کیږي .

د دوو نصابو په مینځ کي وقص دادی مثلا دیرش غواوي یا پر غوایانو باندي زکوٰة واجب کیږي کله چي شمیر تر دیرشو زیات سي خو څلویښتو ته نه رسیږي د دې منځنی تعداد د یو دیرشو څخه واخله تر نه دیرشو پوري د زکوٰة په توګه څه ورکول نه واجبیږي هو کله چي شمیر پوره څلویښت سي نو د زکوٰة مقدار زیاتیږي د یو دیرشو څخه واخله تر نه دیرشو پوري شمیر ته وقص وائي همداسي د څلویښتو وروسته د زکوٰة اندازه هغه وخت زیاتیږي کله چي شمیر پوره شپیته سي د دې دواړو شمیر د منځني شمېر ته وقص وائي ځکه چي په دې شمیر کي زکوٰة نه واجب کیږي بیا چي شمیر د شپیتو څخه زیات سي د زکوٰة اندازه هغه وخت زیاتیږي کله چي شمیر اویا سي د دې دواړو شمیر د منځني شمېر ته هم وقص ویل کیږي ځکه چي په دې شمیر

کي هم زکوة نه واجب کيږي همداسي د هر دوهمي وروسته حکم متغير کيږي په دې توګه د زکوة په اندازه کي اضافه کيږي د دوو ددويمو په مينځ کي چي څومره غوايان او غواوي وي هغه ټولو ته وقص وائي او په هغه کي زکوة معاف دی .

په حديث کي چي د کوم وقص تذکره سوې ده د هغه څخه ابتدائي وقص يعني تر ديرشو کم شمير مراد دی ځکه چي حضرت معاذ رضي الله عنه ته کومي غواوي چي راوسته سوې د هغه شمير تر ديرشو کم وو .

د دوو نصابو په مينځ کي پر وقص باندي د صاحبين په نزد مطلقا زکوة نه واجب کيږي مګر د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه په نزد د څلويښتو څخه تر شپيتو پوري په مينځ کي (وقص) خو زکوة واجب کيږي خو په پاته وقص کي نه واجب کيږي .

د دې مسئلې پوره تفصيل د دې باب د دوهم فصل په شروع کي بيان سوی دی د دې حديث په باره کي ميرک رحمة الله عليه وائي د دې اسناد منقطع دی ځکه چي حضرت معاذ رضي الله عنه سره د طاؤس ملاقات ثابت نه دی .

==========

## بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ (د سرسايې بيان)

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

**سرسايه پر چا واجب ده**

﴿۱۷۲۳﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ فَرَضَ رَسُولُ اللهِ ﷺ زَكَاةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ صدقه فطر (سرسايه) فرض کړې ده

أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ عَلَى الْعَبْدِ وَالْحُرِّ وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى وَالصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ مِنَ

پر مسلمانانو باندي پر هر غلام، آزاد، نر، ښځي، کوچنی او سپين ږيري باندي يو صاع (کاسه) اوربشي يا خرماوي

الْمُسْلِمِينَ وَأَمَرَ بِهَا أَنْ تُؤَدَّى قَبْلَ خُرُوجِ النَّاسِ إِلَى الصَّلَاةِ. متفق عليه

او حکم يې کړئ دئ چي دا دي لمانځه ته تر تلو وړاندي ادا کړل سي . بخاري او مسلم . صاع

تقريبا څلور سيره كيږي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)؛ ۳۶۷\۱۳، رقم: ۱۵۰۳، ومسلم ۶۷۷\۱۲، رقم: ۱۲- ۹۸۴.

**تشريح**: د امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په نزد صدقه فطر فرض ده د امام مالک رحمة الله عليه په نزد سنت موكده ده او د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په مذهب كي واجب ده په حديث كي ذكر سوى لفظ (فرض) د امام شافعي رحمة الله عليه او حضرت امام احمد رحمة الله عليه په نزد پر خپلي ظاهري معنى باندي محمول دى امام مالک رحمة الله عليه فرض معنى وتاكله حنفي حضرات فرمائي صدقه فطر په دليل قطعي سره ثابته نه ده ځكه صدقه فطر د عمل د اعتبار څخه خو د فرض برابر ده مگر په اعتقادي توگه دې ته فرض نه ويل كيږي د دې مطلب دادى چي واجب ده فرض نه ده .

د امام شافعي رحمه الله په مذهب كي په هر هغه چا صدقه فطر واجب ده چي خپلو لپاره يا د هغه كسانو لپاره چي د كوم له طرفه صدقه فطر وركول د هغه پر ذمه وي د يوې ورځي د خوراک نفقه ولري او د هغه د صدقه فطر د اندازې څخه هم زياته وي ، د امام اعظم ابوحنفيه رحمة الله عليه د مذهب سره سم صدقه فطر پر هغه سړي باندي واجب كيږي چي غني وي يعني هغه د خپل ضرورت اصليه څخه ماسيوا دوپنځوس نيمي تولې سپين زر په اندازه اسباب وغيره مالک وي يا د هغه په اندازه سپين زر په خپل ملكيت كي لري او هغه د پور څخه محفوظ وي .

د صدقه فطر وجوب د كوچني اختر د سهار راختلو وخت دى كوم سړى چي د سهار راختلو څخه مخكي مړ سي پر هغه صدقه فطر نه واجب كيږي همداسي كوم سړى چي د سهار د راختلو وروسته اسلام راوړي او او مال تر لاسه كي يا د كوم بچي چي د سهار راختلو مخكي پيدائش وسي پر هغه صدقه فطر واجب نه ده، يو صاع د درې نيمو سيرو برابر دي په تيرو صفحو كي هم د څه اوزانو په باره كي تفصيلي بيان سوى دى .

كوم غلام چي د خدمت لپاره وي د هغه د خوا څخه د هغه پر مالک باندي صدقه فطر وركول واجب ده هو كوم غلام چي د تجارت لپاره وي د هغه د خوا څخه صدقه فطر وركول واجب نه دي همداسي كوم غلام چي وتښتي د هغه د خوا څخه هم صدقه فطر وركول واجب نه دي هو كله چي دوهم وار بيرته راسي نو هغه وخت وركول واجب دي .

اولاد كه كوچني وي او مالداره نه وي نو د هغه د خوا څخه د هغه پر پلار صدقه فطر وركول واجب دي هو كه كوچني اولاد مالداره وي نو بيا د هغه صدقه فطر وركول د هغه پر پلار واجب نه ده مگر د هغه د مال څخه به وركول كيږي .

غټ زوی چي ليونی وي د هغه حكم هم د كوچني اولاد په ډول دی همداسي د لوئ اولاد د خوا څخه پر پلار باندي او د ښځي د خوا څخه پر خاوند باندي د هغوی صدقه فطر وركول واجب نه ده هو كه پلار د خپل هوښيار اولاد د خوا څخه يا يو خاوند د خپلي ښځي د خوا څخه د هغوی صدقه د هغوی په اجازت سره د احسان له موخي ادا كوي نو جائز دي.

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي په حديث كي من المسلمين لفظ د (عبد) او د هغه وروسته الفاظ حال واقع كيږي نو پر هيڅ مسلمان باندي د خپل كافر غلام د خوا څخه صدقه فطر واجب نه ده خو صاحب هدايه ليكلي دي د كافر غلام صدقه فطر هم د هغه پر مسلمان مالک باندي واجبيږي هغه د دې په ثبوت كي يو حديث هم نقل كړی دی چي هدايه په مرقات كي يې تاسو ووينئ حنفيه دلته فتوی د صاحب هدايه د قول سره سم ده (علم الفقه)

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي صدقه فطر د اختر د لمانځه مخكي ادا كول مستحب ده كه يو سړی تر دې هم مخكي كه څه هم يوه مياشت مخكي يا تر يوې مياشتي زيات مخكي ادا كړي نو جائز ده د اختر د لمانځه وروسته يا زيارت په څنډ سره صدقه فطر نه ساقطيږي په هر صورت وركول ضروري ده.

## د سر سايې اندازه

﴿۱۷۲۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنَّا نُخْرِجُ زَكَاةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِنْ

د حضرت ابوسعيد خدري ﷺ څخه روايت دئ چي موږ به صدقه فطر وركول يو صاع

طَعَامٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ أَقِطٍ أَوْ صَاعًا مِنْ زَبِيبٍ. متفق عليه

د خوراک (يعني غنمو) څخه يا د وربشو څخه يا د خرماوو څخه يو صاع يا د پنير څخه يو صاع يا د وچو انګورو څخه يو صاع. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۷۱۱۳، رقم: ۱۵۰۶، ومسلم ۶۷۸۱۲، رقم: ۱۷- ۹۸۵.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه فرمائي چي د طعام څخه مراد غنم دي مګر حنفي علماء وائي چي د دوډی څخه د غنمو ماسيوا نوري غلې هم مراد دي په دې صورت كي به پر دوډی باندي د دې وروسته عطف خاص د علی العام د ډول څخه وي.

(قروط)، یو خاص ډول پنیر ته وائي دا پنیر به داسي جوړیدی چي مستې په جامو کي په ترلو سره به یې زړول ، د مستو تولي اوبه به په څڅیدو څڅیدو سره توی سوې اوپاته مانده برخه به د پنیر په ډول په جامو کي پاته سوه هغه برخي ته به یې قروط (چکیده) ویل.

وچ انګور د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد د غنمو په ډول دي څکه د دې څخه د صدقه فطر په ډول نیم صاع ورکول پکار دي البته صاحبین وچ انګور د اوربشو په مثل ګڼي څکه د دې حضراتو په نزد د دې څخه د صدقه فطر په توګه یو صاع ورکول پکار دي امام حسن رحمة الله علیه د امام اعظم رحمة الله علیه هم یو قول دا نقل کړی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۷۲۵﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فِي آخِرِ رَمَضَانَ أَخْرِجُوا صَدَقَةَ صَوْمِكُمْ فَرَضَ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دئ چي هغه د روژې په آخر کي خلکو ته وویل: تاسو د خپلو روژو صدقه ادا کړئ دا صدقه فرض کړې ده

رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ هٰذِهِ الصَّدَقَةَ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ أَوْ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ قَمْحٍ عَلَى كُلِّ حُرٍّ أَوْ مَمْلُوكٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ. رواه ابوداؤد والنسائي

رسول الله ﷺ پر هر یو مسلمان که هغه آزاد وي یا غلام، ښځه وي یا نر، کوچنی وي یا لوی د هر یوه د لوري څخه د یو صاع د خرماوو څخه یا اوربشو څخه او نیم صاع د غنمو څخه (ورکوئ) ابوداؤد او نسائي.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۷۲، رقم: ۱۶۲۲، والنسائي ۵\۵۰، رقم: ۲۵۰۷.

**تشریح**: امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه د دې حدیث سره سم وائي د صدقه فطر په ډول که غنم ورکړه سي نو د هغه اندازه نیمی صاع کیدل پکار دي.

### د سرسایې حکمت

﴿۱۷۲۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ فَرَضَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ طُهْرَةً لِلصَّائِمِ مِنَ اللَّغْوِ وَالرَّفَثِ وَطُعْمَةً لِلْمَسَاكِينِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د پالتو خبرو او لغو کلام څخه د پاکولو لپاره رسول الله ﷺ صدقه فطر واجب کړي ده او د مسکينانو د خوراک لپاره يې واجب کړي ده. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۶۲، رقم: ۱۶۰۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي صدقه قطر د دې لپاره واجب کړه سوې ده چي د تقصيراتو کوتاهي او د ګناهونو په وجه په روژو کي چي کوم خلل پيښ سي نو صدقه فطر د هغه کوتاهيو قائم مقام سي او پر مسکينانو او غريبانو باندي د اختر په ورځ د خلکو څخه د سوال کولو څخه وساتل سي او هغوی صدقه فطر په اخستو سره د اختر په خوشحاليو کي د نورو مسلمانانو سره ګډون وکړي دار قطني د دې روايت په اخر کي دا الفاظ ذکر کړي دي. چي کوم سړی صدقه فطر د اختر د لمانځه مخکي ادا کړي د هغه صدقه مقبوله صدقه وي او کوم سړی چي د اختر د لمانځه وروسته يې ادا کړي نو د هغه صدقه به صرف د صدقو څخه يوه صدقه وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د سرسايې اندازه

﴿۱۷۲۷﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ بَعَثَ مُنَادِيًا

حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ يو اعلان کوونکی وليږی

فِي فِجَاجِ مَكَّةَ أَلَا إِنَّ صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى حُرٍّ أَوْ

د مکې په کوڅو کي چي صدقه فطر پر هر مسلمان واجب ده که نارينه وي يا ښځينه، آزاد وي يا

عَبْدٍ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ مُدَّانِ مِنْ قَمْحٍ أَوْ سِوَاهُ صَاعٌ مِنْ طَعَامٍ. رواه الترمذي

غلام، کوچنی وي يا لوی دوه مد (نصف صاع) د غنمو څخه او د دې څخه پرته نور د خوراک د شيانو څخه يو صاع. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۶۰، رقم: ۶۷۴.

**تشريح**: د دوو مد څخه مراد نيم صاع دي ځکه چي د يوه مد غله وزن د څورلسو چټانګو نژدې وي او يو صاع د درې نيمو سيرو برابر وي نو د صدقه فطر په توګه غنم پاو کم دوه سيره ورکول پکار دي د غنمو اوړه او د غنمو ستوان هم د غنمو په مثل دي ځکه دا دواړه شيان هم په دې

اندازه کي ورکول پکار دي .

﴿۱۸۲۸﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ أَوْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ عَنْ

حضرت عبدالله بن ثعلبه يا ثعلبه بن عبدالله بن ابي صغير د

أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعٌ مِنْ بُرٍّ أَوْ قَمْحٍ عَلَى كُلِّ

خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: صدقه فطر واجب ده يو صاع د غنمو د

اثْنَيْنِ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى أَمَّا غَنِيُّكُمْ فَيُزَكِّيهِ اللّٰهُ وَأَمَّا

دواړو د لوري که هغه کوچني وي يا لوی، آزاد وي يا غلام، سړی وي يا ښځه. ستاسو غني الله پاکوي او

فَقِيرُكُمْ فَيَرُدُّ اللّٰهُ تَعَالَى عَلَيْهِ أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَاهُ . رواه ابوداؤد.

ستاسو فقير ته الله تعالى زيات ورکوي څومره چي هغه ورکړې وي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۲۷۰، رقم: ۱۶۱۹.

**تشريح** : د مشکاة په نسخو کي د حديث د راوي نوم که څه هم داسي ليکل سوی دی مگر صحيح داسي دی عبدالله ابن ثعلبه ابن ابي صغيريا ابن ابي صعير عن ابيه ........، حضرت ثعلبه صحابي دی د هغه څخه د هغه زوئ عبدالله دا روايت نقل کړی دی .

د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي غني دي صدقه فطر ادا کوي او فقير دي هم صدقه فطر ورکوي د دې دواړو په باره کي فرمايل سوي دي الله تعالى غني د هغه د صدقه فطر ورکولو په وجه پاکيزه جوړوي او فقير ته د هغه څخه زياته ورکوي څومره چي پر هغه د صدقه فطر په توګه ورکړې ده د زکوة او صدقاتو په مسئلو کي د فقير لفظ په اصطلاحي معنى کي استعماليږي د شريعت په اصطلاح کي فقير هغه سړي ته وائي چي د يو داسي مال د نصاب مالک نه وي چي پر هغه زکوة فرض کيږي خو بالکل خالي لاسه هم نه وي حاصل دا چي د فقير څخه د موجوده دور فقير مراد اخستل نه دي پکار ځکه چي نن صبا خو فقير سوالګر وي ،دا بشارت که څه هم د غني لپاره دی چي الله تعالى د هغه په مال کي هم د هغه څخه ډير برکت ورکوي څومره چي هغه ورکړی وي مگر دلته زيری د فقير سره ځکه خاص کړ تر څو د هغه حوصله افزايي وسي او دا چي هغه د صدقه ورکولو څخه لاس په سر نسي.

# بَابُ من لا تحل له الصدقة

## هغه كسان چي زكوة اخيستل ورته حلال نه دي

په دغه باب كي هغه حديثونه نقل كيږي د هغه څخه به معلومه سي چي د زكوة مال كومو كومو خلكو ته اخستل او د هغه څخه فائده اخستل جائز نه ده په دې باب سره متعلق ډيري زياتي مسئلې دي ځكه مناسبه ده چي مخكي هغه ټولي مسئلې په تفصيلي توګه سره نمبر وار نقل كړه سي.

اول : كوم سړى چي صاحب نصاب وي او پر هغه زكوة واجب وي نو هغه دي د زكوة مال خپل اصل ته نه وركړي يعني مور پلار انا نيكه او د هغوى پورته بزرګانو ته كه څه هم د پلار د خوا څخه وي يا د مور د خوا څخه په هغوى كي هيڅ چاته زكوة وركول صحيح او جائز نه دي همداسي خپل فرع ته يعني زوى، لور، لمسى، كړوسى، او د هغوى په اولاد كي هيڅ چاته هم زكوة وركول صحيح نه دي د امام اعظم رحمة الله عليه د قول سره سم خاوند ښځي ته او ښځه دي خاوند ته زكوة نه وركوي خو د صاحبين رحمة الله عليهما قول دادى كه ښځه خپل خاوند ته زكوة وركړي نو صحيح دي د دوى څخه ماسيوا پاته خپلوانو ته د زكوة مال وركول صحيح دي په شرط د دې چي هغوى د زكوة مستحق وي يعني غني سيد هاشمي او كافر نه وي مګر د نورو په مقابله كي خپلو خپلوانو ته وركول بهتر دي په دې اړه علماء ليكي كه زكوة په دې ترتيب سره وركړه سي نو ډير ښه دى چي مخكي خور ورور ته وركړه سي د هغوى وروسته د هغوى اولاد ته بيا اكا او امه د پلار خور ته د هغوى وروسته د هغوى اولاد ته بيا ماما، خاله د مور خور ته د هغوى وروسته د هغوى اولاد ته بيا هغه خلكو ته چي ذوى الارحام وي بيا خپل پردي همسايګانو ته بيا خپل هم كسبه ته بيا خپل هموطن ته دا حكم د صدقه فطر او نذر هم دى چي په لاندي ترتيب سره وركول افضل دي هسي كه يو سړى غير او پردي ته وركوي نو څه تاوان نه لري خو بهتر او افضل دادي چي خپل قريبان او عزيزان مخته سي.

دوهم : خپل غلام او خپلي مينزي ته زكوة وركول صحيح نه دي دا حكم د ام ولد يعني د هغي مينزي دى چي هغه د خپل مالك څخه اولاد وي چي د هغه مالك دي هغه ته هم زكوة نه وركوي.

دريم : د خسرګنى قريبانو ته زكوة وركول صحيح دى، مثلا خواښي، خسر، اخښى، خوښينه، يا د كومو خلكو سره چي د دوى په وجه قرابت وي همداسي زوم او مږور ته زكوة وركول صحيح

دي او د ميرې مور هم زكوة وركول جائز دی .
څلورم : د زكوة مال غني ته وركول صحيح نه دي غني هغه سړي ته وائي چي په اندازه نصاب د مال مالک وي مال كه څه هم نامي وي كه غير نامي نامي مال هغه ته وائي چي په هغه كي اضافه او زياتي كيږي لكه د تجارت مال نقدي روپی، سره زر او سپين زر او د سرو او سپينو زرو زيورات دا مال د شرعي قاعدې سره سم د زياتيدو صلاحيت لري همداسي داسي حيوانان هم حقيقتا نامي مال دی چي د تجارت يا زياتيدو لپاره وي ، غير نامي مال هغه ته وائي چي په هغه كي اضافه او زياتي نه كيږي لكه قلعه، ځايونه، جامې، لوښي او داسي نور دا شيان هم كه د ضرورت اصليه څخه زائد وي او په اندازه د نصاب وي او د پور څخه ساتل سوي وي نو هم زكوة اخستل صحيح نه دي دا ستوګني سرای، د استعمال جامې، د خوراک سامان، د خوراک پخولو لپاره لوښي، د اهل علم د ليكلو ويلو كتابونه، د جنګ لپاره اوزار اسلحه، او د كاريګرانو اوزار او دا هغه شيان دي چي په ضرورت اصليه كي حسابيږي .
پنځم : هاشمي ته زكوة وركول جائز نه دي د پنځو خلكو اولاد ته هاشمي ويل كيږي :
اول : د حضرت علي رضي الله عنه اولاد .كه څه هم د بي بي فاطمې څخه پيدا وي يا د نورو بيبيانو څخه .دوهم : د حضرت جعفر رضي الله عنه اولاد . دريم : د حضرت عقيل رضي الله عنه اولاد . څلورم : د حضرت عباس رضي الله عنه اولاد ، پنځم د حارث ابن عبد المطلب اولاد ، د دې پنځو په سلسله نصب سره تعلق لرونكو ته هاشمي وائي د دوی غلام او مينزو ته هم زكوة وركول جائز نه دی همداسي كه د دوی غلام او مينزي ازادي سي بيا هم هغوی ته د زكوة مال اخستل او خوړل جائز نه دي .
شپږم : كافر ته د زكوة مال وركول صحيح نه دي كه څه هم حربي وي كه ذمي وي .اووم : كه يو سړی غني يا كافر يا خپل پلار يا خپل زوئ يا خپلي ښځي ته د زكوة مستحق په ګڼلو سره د زكوة مال يې وركړ يا زكوة د وركولو په وخت كي هغه ته معلومه نه سوه چي دی هاشمي دی يا كافر دی يا خپل پلار يې دی يا زوئ يې دی يا ښځه يې ده بيا د زكوة وركولو وروسته هغه ته حقيقت معلوم سو نو د هغه د ذمې څخه زكوة ادا سو اوس دوهم وار د زكوة وركولو ضرورت نسته .
اتم : د مسجد د تعمير او د مرمت لپاره يا د مړي د ښخولو او د كفن لپاره يا د مړي د پور د اداكيدو لپاره د زكوة مال وركول جائز نه دي كه يو سړی په دې كي د څه كار لپاره د زكوة مال وركړ نو د هغه زكوة نه ادا كيږي .
**د زكوة مستحقين** : د زكاة مستحقين فقيران دي او د شريعت په اصطلاح كي فقير هغه

سړي ته وائي چي د نصاب څخه د كم مال مالک وي، مساكين كم د زكوة مستحقان وي، مسكينان هغه خلكو ته وائي چي د هغوى سره هيڅ هم نه وي د زكوة مستحق دى ، د وخت د حاكم له خوا چي كوم خلک پر زكوة وصولولو باندي مقرر وي هغوى هم د زكوة مستحقين دي كه څه هم هغوى خپله غنيان وي، په دې هم پوه سئ چي د هاشمي لپاره هغه تنخواه هم جائز نه ده كوم چي زكوة وصولونكي ته وركول كيږي هغه خلک هم د زكوة مستحقين دي چي جهاد يا د حج د سفر مسافر وي او د هغوى سره روپى نه وي پاته سوي كه څه هم په خپل وطن كي زياتي روپى ورسره موجودي وي همداسي هغه مسافرانو ته هم د زكوة مال اخستل صحيح دي كه څه هم د يوه مسافر په خپل وطن كي هر څومره مال او زر وي مگر په اخر كي په دې خبره ي پوه سئ كوم سړي ته چي د يوې ورځي په اندازه د ژوند اسباب ميسر وي د هغه لپاره د سوال لاس غزول بالكل صحيح نه دي . (مولانا محمد اسحاق دهلوي رحمة الله عليه ) .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### نبي كريم ﷺ ته د زكوة مال خوړل حرام وو

﴿۱۷۲۹﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرَةٍ فِي الطَّرِيقِ قَالَ لَوْلَا أَنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ مِنَ الصَّدَقَةِ لَأَكَلْتُهَا . متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر لاره روان وو او يوه خرما يې پر لاره پيدا كړه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : كه زه نه بيريدلاى چي دا خرما د زكوة ده نو ما به خوړلې واى . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۲۹۳، رقم: ۲۰۵۵، ومسلم ۱۲\۷۵۲، رقم: ۱۶۴- ۱۰۷۱.

**تشريح** : د دې حديث څخه څو مسئلې راوځي اوله مسئله داده چي رسول الله ﷺ ته د زكوة مال خوړل حرام وو علماء ليكي د رسول الله ﷺ په حق كي مطلقا د صدقې مال خوړل حرام وو كه څه هم د صدقه واجبه يعني زكوة وغيره مال وي يا د صدقه نافله رسول الله ﷺ به په خپل استعمال كي نه راوستل، دوهمه مسئله داده چي د بني هاشم لپاره صدقه واجبه اخستل او هغه استعمالول خو حرام دي مگر صدقه نافله ورته حرامه نه ده دريمه مسئله په لار كي پروت يو داسي شى په پورته كولو سره خوړل يا خپل په استعمال كي راوستل جائز دي كه څه هم هغه

اندازه او په شمير كي ډير لږ وي او دا ګمان وي چي د دې مالک به دا تلاش نه کړي څلورمه مسئله د بنده مومن لپاره دا خبره اولى او افضله ده چي د هر هغه شي څخه پرهيز وکړي چي په هغه کي د حرمت ذره اندازه هم شبه وي .

## نبوي كورنۍ ته زكات اخيستل حرام دي

﴿۱۷۳۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَخَذَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا تَمْرَةً

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي حسن بن علي ﷺ يوه خرما

مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ فَجَعَلَهَا فِي فِيهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِخْ كِخْ

د خرماوو څخه پورته کړه او په خوله کي يې واچول ، نبي کريم ﷺ د هغه د منع کولو او خرما غورزولو لپاره کخ کخ وويل ،

لِيَطْرَحَهَا ثُمَّ قَالَ أَمَا شَعَرْتَ أَنَّا لَا نَأْكُلُ الصَّدَقَةَ . متفق عليه

بيا يې فرمايل : ايا تا ته څرګنده نه ده چي موږ خلک (يعني بنوهاشم) صدقه او زکوة نه خورو . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۳۵۴، رقم: ۱۴۹۱، ومسلم ۲\ ۷۵۱، رقم: ۱۶۱- ۱۰۶۹.

**تشريح** : ( اما شعرت ) ايا ته نه پوهيږې د دې جملې استعمال پر داسي وخت باندي کيږي کله چي مخاطب د څه واضحه او ظاهر امر پر خلاف يوه خبره کوي که څه هم مخاطب د امر څخه بې خبره وي ګويا د دې جملې مطلب دا وي چي دا امر دومره واضحه او د ظاهريدو باوجود په تا پټ څنګه دی او ته د دې څخه لاعلم ولې يې .

په هر حال ظاهره ده چي حضرت حسن ﷺ خو هغه وخت بالکل کم عمره وو د دې ټولو خبرو څخه څه خبر وو خو رسول الله ﷺ د دې باوجود د هغه په دې اندازه سره ځکه مخاطب کړ چي نور خلک په دې اړه خبر سي او هغوی ته د بني هاشم په حق کي د صدقه زکوة د مال د حرمت علم وسي .

د دې حديث څخه دا نکته هم لاس ته راغله چي پر مور او پلار باندي ي واجب دی چي خپل اولاد د شرعي خلاف کارونو او غلطو حرکتو څخه منعه کړي په دې وجه حنفي علماء فرمائي د مور او پلار لپاره دا حرام دي چي هغوی خپلو ځامنو ته د ريشمو جامې او د سرو او سپينو زرو زيورات ورواچوي .

## زکوة د انسان خیري ده

﴿۱۷۳۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيْعَةِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِنَّ هٰذِهِ الصَّدَقَاتِ إِنَّمَا هِيَ أَوْسَاخُ النَّاسِ وَإِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِمُحَمَّدٍ وَلَا لِآلِ مُحَمَّدٍ. مسلم

د عبد المطلب بن ربيعة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دا صدقې (زکوة او داسي نور) د خلکو خیري دي او ددې خوراک د محمد ﷺ او د هغه د اولاد لپاره جائز نه دئ. مسلم

**تخریج**: صحيح مسلم ۲\۷۵۳، رقم: ۱۶۷- ۱۰۷۲.

**تشریح**: زکوة ته خیري ځکه ویل سوی دی چي څرنګه د انسان د بدن تو له چټلي په ښره صفا کیږي همداسي زکوة په ورکولو سره پاکیزګي پیدا کیږي دا حدیث په دې خبري دلالت کوي چي د رسول الله ﷺ لپاره د زکوة مال اخستل حرام وو همداسي د رسول الله ﷺ اولاد ته هم زکوة اخستل حرام دی که څه هم هغوی زکوة پر وصولولو باندي مقرر وي یا محتاج او مفلس وي د حنفيه صحيح مذهب دا دی.

## نبي کریم ﷺ به یوازي تحفه خوړل

﴿۱۷۳۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُتِيَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ ته یو چا خوراک راوړئ نو

بِطَعَامٍ سَأَلَ عَنْهُ أَهَدِيَّةٌ أَمْ صَدَقَةٌ فَإِنْ قِيلَ صَدَقَةٌ قَالَ لِأَصْحَابِهِ كُلُوا وَلَمْ

پوښتنه به يې کول چي دا هدیه ده او که صدقه، که هغه به ویل چي دا صدقه ده نو رسول الله ﷺ به صحابه کرامو ته وفرمایل تاسو یې وخورئ او

يَأْكُلْ وَإِنْ قِيلَ هَدِيَّةٌ ضَرَبَ بِيَدِهِ ﷺ فَأَكَلَ مَعَهُمْ. متفق عليه

په خپله یې نه خوړل، او که هغه به ویل چي هدیه ده نو رسول الله ﷺ به د خوراک لپاره لاس وړاندي کړي او د صحابه کرامو سره به یې خوړل. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۰۳، رقم: ۲۵۷۶، ومسلم ۲\۷۵۶، رقم: ۱۷۵- ۱۰۷۷.

**تشریح**: صدقه هغه مال ته ویل کیږي چي یو محتاج او ضرورتمند ته د مهرباني د مخه ورکول کیږي او د هغه څخه مقصد دا وي چي د الله تعالی رضا حاصله سي او په اخرت کي د هغه اجر او

ثواب ترلاسه کوي د صدقه مال اخستونکي ته يو ډول ذلت او کمتري محسوسيږي ځکه رسول الله ﷺ لپاره صدقه اخستل مطلقا حرام وو.

د هديه مطلب داوي چي يو سړی د خپل يوه لوئ او عظيم المرتبت سړي په خدمت کي څه شی د تعظيم او تکريم د مخه پيښ کړي د هديې يو خاص اړخ هم دادی چي په دنيوي توګه سره د هغه تعلق په طرفين سره دی په دې توګه چي کوم سړی چاته څه شی هديه کي نو هغه په دنيا کي د هغه بدله هم ترلاسه کوي چي چاته هغه دا هديه ورکړې ده هغه هغه ته هم څه وخت څه شی د هديې په توګه ورکوي کله چي په صدقه کي د دې سوال نه پيدا کيږي.

## د تمليک مسئله

﴿۱۷۳۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلَاثُ سُنَنٍ إِحْدَى السُّنَنِ أَنَّهَا

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چي د بريرې (د بي بي عائشي مينځي) له کبله درې سنت په وجود کي راغلل يو خو دا چي هغه

عُتِقَتْ فَخُيِّرَتْ فِيْ زَوْجِهَا وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ وَدَخَلَ

آزاده سوه او اختيار ورکړل سو چي هغه خپل خاوند قائم وساتي، دوهم دا چي رسول الله ﷺ وفرمايل د مينځي ميراث د هغه چا دئ څوک چي يې آزاده کړي. دريم دا چي

رَسُوْلُ اللَّهِ ﷺ وَالْبُرْمَةُ تَفُوْرُ بِلَحْمٍ فَقُرِّبَ إِلَيْهِ خُبْزٌ وَأُدْمٌ مِنْ أُدْمِ الْبَيْتِ

رسول الله ﷺ کور ته تشريف راوړ او وه يې ليدل چي د غوښو کټو بنه په جوش باندي ده بيا رسول الله ﷺ ته ډوډی او د کور سبزيجات وړاندي سول،

فَقَالَ أَلَمْ أَرَ بُرْمَةً فيها لحم؟ قالوا: بَلٰى وَلٰكِنْ ذٰلِكَ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى

رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا کټو نه ده پخه چي په هغه کي غوښه وه؟ عرض يې وکړ: هو، مګر هغه د صدقې غوښه ده چي

بَرِيرَةَ وَأَنْتَ لَا تَأْكُلُ الصَّدَقَةَ قَالَ هو عَلَيْهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ. متفق عليه.

بريره ته ورکړل سوه او تاسو صدقه نه خورئ، رسول الله ﷺ وفرمايل: دا غوښه د بريره لپاره صدقه ده او زموږ لپاره هديه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۹\۴۰۴، رقم: ۵۲۷۹ ومسلم: ۲\۱۱۴۴، رقم: ۱۴- ۱۵۰۴.

**د لغاتو حل**: (البُرمة)؛ القدر (دېګ).

**تشريح**: د حديث د اولو الفاظو مطلب دادی چي بريره ﷺ چي د بي بي عائشې رضي الله عنها آزاده سوې مينځه وه د هغې په سبب درې شرعي احكام نافذ سوه اول حكم دا چي بريره ازاده سوه نو هغې ته اختيار وركړه سو كه څه هم د خپل خاوند مغيث په نكاح كي پاته سي يا د هغه څخه بېلوالى اختيار كړي.

دې ته د علماء په نزد خيار عتق ويل كيږي يعني كومه مينزه چي د چا په نكاح كي وي نو د ازاد كيدو وروسته هغې ته اختيار دى كه غواړي نو د خاوند په نكاح كي دي پاته سي او كه غواړي نو بېلوالى دي ځيني وكړي مگر امام شافعي رحمة الله عليه فرمائي مينزي ته به دا اختيار هغه وخت حاصل وي كله چي د هغه خاوند غلام وي حنفيه وائي د هغه خاوند كه څه هم غلام وي يا ازاد هغه به په دواړو صورتونو كي مختاره وي.

د بريره خاوند مغيث غلام وو كله چي بريره د ازاد كيدو وروسته د هغه څخه جلاولاى اختيار كړه گويا هغه يې قبول نه كړ نو مغيث ډير پريشانه سو تر دې چي هغه د بريره په عشق او فراق كي په ژړا او فرياد په كولو سره گرځېدى خو پر بريره باندي د دې هيڅ أثر ونه سو او د هغه څخه جلا سوه.

د بريره په سبب دوهم حكم دا نافذ سو ولاء يعني د مينزي ميراث د هغه سړي لپاره دى چا چي هغه ازاده كړې وه د دې تفصيل دادى چي بريره د يو يهودي مينزه وه هغه مكاتب كړه يعني يهودي هغې ته ويلي وه كه ته دومره درهمه راكړې نو ازاده به سې كوم وخت چي بريره په مطلوبه شمير درهم د جمع كولو څخه عاجزه سوه نو د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت كي حاضره سوه كه هغه څه وركړي نو خپل مالک ته به وركولو سره ازادي حاصله كړي بي بي عائشې رضي الله عنها ورته وفرمايل د خپل مالک څخه پوښتنه وكړه كه هغه تاخرڅوي نو زه به دي رانيسم بريره خپل مالک ته ورغله هغه ته يې د بي بي عائشې رضي الله عنها خواهش بيان كړ هغه خرڅولو ته تيار سو خو هغه دا هم وويل زه به په دې شرط تا خرڅه كړم چي ولاء يعني د بريره د ميراث به موږ حقداره يو بي بي عائشې رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته دا خبر وركړ چي يهودي داسي وائي او د هغه دا شرط دى رسول الله ﷺ وفرمايل يهودي غلط وائي، د ميرات حق د هغه چا دى چي هغه ازاده كړي اې عائشې ته هغه په رانيولو سره ازاده كړه د هغه ميراث به ستا وي د يهودي دا شرط باطل دى.

دریم حکم چي د بریره په سبب نافذ سو د هغه ذکر د حدیث په اخر کي سوی دی د دې حاصل او مطلب دادی که مستحق زکوة ته د زکوة مال ورکړه سي او مستحق زکوة هغه مال په اخستو سره یو داسي سړي ته ورکړي چي د زکوة مستحق نه وي نو د هغه لپاره به دا مال حلال او جائز وي ځکه چي زکوة ورکونکی خو یو صحیح او مستحق سړي ته مال ورکړ او هغه مال د هغه مستحق زکوة ملکیت سو اوس هغه چي کوم سړي ته خپل مال ورکوي جائز او صحیح به وي په اصطلاح کي دې ته تملیک ویل کیږي کوم چي جائز او حلال دی.

## د تحفې بدله ورکول

﴿۱۷۳۴﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ وَيُثِيبُ عَلَيْهَا. رواه البخاري

د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به هدیه قبلول او د هغې بدله به یې ورکول. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۱۰، رقم: ۲۵۸۵.

## معمولي شی قبلول

﴿۱۷۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ دُعِيتُ إِلَى كُرَاعٍ لَأَجَبْتُ وَلَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ ذِرَاعٌ لَقَبِلْتُ. رواه البخاري

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که د پسه د پنډۍ ما ته بلنه راکړل سي نو زه به یې قبلوم او که ما ته یو ورون په تحفه کي راکړل سي نو ره یې قبلوم (مراد ادنی او معمولي شی دئ) بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۹۹، رقم: ۲۵۶۸.

**تشریح**: کراع د پسه ورون ته وائي د رسول الله ﷺ مطلب دادی که یو سړی ماته یوازي د بزې پنډۍ چي یو معمولي شی دی د خوراک لپاره راواستوي نو زه به د هغه دعوت قبول کړم همداسي رسول الله ﷺ دا هم وفرمایل که یو سړی ماته د تحفې په توګه د بزې لاس هم راواستوي نو زه به یې په ډیري خوشحالي سره قبول کړم.

په دې ارشاد کې دې ته اشاره ده چې رسول الله ﷺ به د الله تعالى د مخلوق سره په ډېر تواضع، شفقت او محبت سره مخامخ کېدی، رسول الله ﷺ دا نه غوښتل چې د ده د ذات مبارک په وجه یو د کوچني ته هم د معمولي درجې تکلیف ورسیږي هغه د خپل ځان د کمترۍ احساس ونه کړي ګویا نبي کریم ﷺ ددې ارشاد په ذریعه د دې خبرې ترغیب هم ورکړ که یو سړی تاسو ته د ډېرې زیاتې معمولي درجې تحفه راوړي نو هغه په خوشحالي او رغبت سره قبوله کړي.

**د مسکین پیژندنه**

﴿۱۷۳۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الْمِسْكِينُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: مسکین هغه څوک نه دئ

الَّذِي يَطُوفُ عَلَى النَّاسِ تَرُدُّهُ اللُّقْمَةُ وَاللُّقْمَتَانِ وَالتَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ وَلَكِنْ

چې د خلکو څخه یې غواړي او هغه یوه ګوله یا دوې ګولې یا یوه خرما یا دوې خرماوې ورکړي

الْمِسْكِينُ الَّذِي لَا يَجِدُ غِنًى يُغْنِيهِ وَلَا يُفْطَنُ بِهِ فَيُتَصَدَّقُ عَلَيْهِ وَلَا يَقُومُ فَيَسْأَلُ النَّاسَ. متفق عليه.

بلکه مسکین هغه دئ چې دومره مال نه لري چې هغه بې پروا کړي او نه چا ته د هغه محتاج کېدل معلوم وي. چې هغه ته صدقه ورکړل سي او نه هغه چا ته د غوښتلو لپاره ورسي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۴۱، رقم: ۱۴۷۹، ومسلم ۲\۷۱۹، رقم: ۱۰۱–۱۰۳۹.

**تشريح**: لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې د زکوة او صدقاتو ارزښت او فضیلت بیان سوی دی همداسې الله تعالى په قرآن کریم کې د زکوة مصارف (ورکسان) هم بیان کړي دي، د الله تعالى ارشاد دی:

إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ

ژباړه: بېله شکه د صدقې مال یوازې د فقیرانو، مسکینانو، عمالو او د مؤلف القلوب (یعني هغه خلکو لپاره چې د هغوی زړه مائل کړل سي) او د غلامانو په ازادولو کې او د پوروړي د پور اداکولو لپاره او د الله تعالى په لار کې د خرڅولو لپاره او د مسافر لپاره دی.

په دغه آيت كريمه كي اته ډوله خلک بيان سوي دي چي د صدقو مال مثلا زكوة او داسي نورو د اخستلو مستحقين وي، د دوی پرته بل چاته د زكوة مال وركول جائز نه دي په دوی كي د حنفيه په نزد د مولفة القلوب برخه ساقط سوې ده ځكه چي د هغوی په نزد د زكات مستحقين يوازي پر اوو ډولو باندي پاته سوي دي، مولفة القلوب د اسلام په لومړنۍ زمانه كي رسول الله ﷺ به د ځنيو خلكو د زړه مائله كولو لپاره د صدقاتو مال وركوی، په هغوی كي به ځيني كافران وه چي هغوی ته د وركولو څخه مقصد دا وو چي د هغوی په زړه كي د اسلام مينه پيدا سي او مسلمان سي، او ځيني كافرانو ته له دې كبله وركول كيدی چي هغوی د خپلو فلانونو او بدامنۍ د كارو څخه لاس واخلي، ځيني خلک داسي هم وه چي نوي په اسلام كي داخل سوي وه هغوی ته په دې وجه زكوة وركول كيدی چي د هغوی په زړه كي د اسلام بنياد ټينګ سي.

په هر حال د حديث مطلب دادی چي په دغه آيت كي د كومو مسكينانو ذكر سوی دی د هغوی څخه هغه مسكين مراد نه دی كوم چي په عام توګه ورته مسكين ويل كيږي او د هغوی كار دا وي چي د سوال كولو لپاره دروازه پر دروازه ګرځي، كومي دروازې ته چي ورسيږي د ډوډۍ يوه ټوټه يا لږ اوړه په جوال كي اچولو سره يې رخصت كړي، مګر حقيقي مسكين خو هغه وي چي د اوربشو ډوډۍ هم تر لاسه نه كړي مګر د هغوی د شرافت او عزت دا حالت وي چي د هغوی په خوا كي اوسيدونكي همسايګان هم د هغوی اصل حقيقت نه پيژني هغوی د خلكو مخكي لاس نه اوږدوي د خپل اړتيا لاس په خپرولو سره كور په كور نه ګرځي مګر هغوی پر خپل الله ﷻ باندي باور او يقين لري او په خپلو كورونو كي په صبر سره ناست وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نبوي كورنۍ ازاد كړي غلام ته زكات وركول

«۱۷۳۷»: وَعَنْ اَبِيْ رَافِعٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ

د حضرت ابو رافع ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د بني مخزوم يو سړی

عَلَى الصَّدَقَةِ فَقَالَ لِأَبِي رَافِعٍ اصْحَبْنِي كَيْمَا تُصِيبَ مِنْهَا فَقَالَ لَا حَتَّى آتِيَ

د زكوة وصولولو لپاره وټاكئ، هغه ابو رافع ته وويل چي ته هم زما سره ولاړ سه چي تا ته هم د زكوة څخه څه تر لاسه سي، ابو رافع ورته وويل: تر څو چي

رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ فَأَسْأَلَهُ فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَسَأَلَهُ فَقَالَ إِنَّ الصَّدَقَةَ لَا

د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه ونه کړم نه د رسره ځم، نو ابورافع د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د هغه سړي سره يې د تلو اجازه وغوښتل رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زکاة

تَحِلُّ لَنَا وَإِنَّ مَوَالِيَ الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي

موږ خلکو (يعني بنو هاشم) لپاره حلال نه دئ او د بنو هاشم آزاد کړل سوی غلام هم د بنو هاشم په حکم کي داخل دئ. ترمذي، ابوداؤد، نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۹۸، رقم: ۱۶۵۰، والترمذي ۳\۴۶، رقم: ۶۵۷، والنسائي ۵\۱۰۷، رقم: ۲۶۱۱.

**تشريح**: حضرت ابو رافع رضی الله عنه د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو، رسول الله ﷺ هغه د زکوة مال اخستو څخه منعه کړی، څرنګه چي موږ ته د زکوة مال اخستل صحيح نه دی همداسي ستا لپاره هم د زکوة مال اخستل حلال نه دي نو دديْ څخه معلومه سوه چي د بني هاشم غلامانو ته هم د زکوة مال اخستل رواه نه دی.

## زکات د چا لپاره حلال نه دئ

﴿۱۷۳۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ. رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي و رواه احمد والنسائي وابن ماجه عن ابي هريرة.

د شتمن لپاره زکوة اخيستل رواه نه دئ او نه د هغه چا لپاره چي روغ او توانا وي (او د کار کسب کولو توان لري)،. ترمذي ابوداؤد، نسائي، دارمي، احمد، ابن ماجه د ابوهريرة څخه.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۸۵، رقم: ۱۶۳۴، والترمذي ۳\۴۲، رقم: ۶۵۲، والدارمي ۱\۴۷۲، رقم: ۱۶۹۹.

**تشريح**: غني (شتمن) پر درې ډوله وي: اول هغه سړی چي پر هغه زکوة فرض وي يعني هغه سړی د نصاب خاوند وي او د هغه پر نصاب باندي يو کال تير سوی وي، دوهم هغه سړی چي د زکوة اخيستو وړ نه وي او پر هغه سرسايه او قرباني کول واجب وي يعني هغه سړی چي د چا

سره د ضرورت اصليه څخه پرته د نصاب په اندازه يعني پنځه ويشت نيم تولې د سپينو زرو په اندازه مال وي، دريم هغه سړی چي د هغه لپاره د صدقې مال خو حلال وي مگر هغه ته د سوال لاس غزول حرام وي يعني هغه سړی چي د يوې ورځي ډوډۍ او د ستر پټولو لپاره د جامو خاوند وي.

د روغ رمټ مطلب دادی لکه څرنګه چي د غني لپاره د زكوة مال حلال نه دی همداسي د هغه سړي لپاره هم زكوة حلال او جائز نه دی کوم چي روغ رمټ وي يعني د هغه اندامونه سالم او قوي وي او هغه پر دومره گټه کولو باندي قادر وي چي د هغه په ذريعه خپل ځان او کورنۍ وساتل سي، د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب ددغه حديث سره سم دی د هغه په نزد د يو داسي سړي لپاره د زكوة مال اخستل حلال نه دی کوم چي د گټي وړ وي مگر د حنفيه مذهب دادی چي هر هغه سړي ته زكوة اخستل حلال دی کوم چي د پورتني نصاب خاوند نه وي که څه هم هغه روغ رمټ او د گټي قابل وي.

رسول الله ﷺ هغه اړو صحابه كرامو ته د صدقو او زكوة مال ورکړ حال دا چي هغوی روغ جوړ هم وه او د گټي وړ هم وه او ترپايه پوري د رسول الله ﷺ دا معمول وو.

د دغه حديث په اړه ويل سوي دي چي يا خو دا منسوخ دی يا د دې حديث مراد ظاهر دی چي کوم سړی روغ او جوړ وي او د مزدورۍ په کولو سره د خپل ځان او کورنۍ لپاره د ژوند تېرولو د اسباب برابرولو قدرت او طاقت لري نو د هغه لپاره دا غوره او مناسب نه دهٔ چي هغه د زكوة او صدقو مال په اخستو سره پر دغه ذلت باندي مطمئن او راضي سي او د تولني يو ناکاره سړی جوړ سي مگر د هغه لپاره خو غوره او اولی داده چي هغه د خپلو لاسو په ذريعه خپله محنت او گټه وکړي او همداسي په ماحول کي عزت مند ژوند تير کړي.

## زکات دچا لپاره حلال نه دئ

﴿۱۷۳۹﴾: عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ قَالَ أَخْبَرَنِي رَجُلَانِ أَنَّهُمَا أَتَيَا

د حضرت عبيدالله بن عدي بن الخيار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما ته دوو کسانو بيان وکړ چي

النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَهُوَ يُقَسِّمُ الصَّدَقَةَ فَسَأَلَاهُ

هغوی په حجة الوداع کي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول، دغه وخت رسول الله ﷺ د زكوة مال ويشئ، هغوی د رسول الله ﷺ څخه د زكوة مال وغوښتئ،

مِنْهَا فَرَفَعَ فِينَا الْبَصَرَ وَخَفَضَهُ فَرَآنَا جَلْدَيْنِ فَقَالَ إِنْ شِئْتُمَا أَعْطَيْتُكُمَا

رسول الله ﷺ هغوی ته په غور سره وکتل بیا یې لاندې باندې ورته وکتل او موږ دواړه یې قوي ولیدلو بیا یې وفرمایل: که تاسو غواړئ نو زه به یې تاسو ته درکړم

وَلَا حَظَّ فِيهَا لِغَنِيٍّ وَلَا لِقَوِيٍّ مُكْتَسِبٍ. رواه ابوداؤد والنسائي.

مګر په دې کې نه خو د شتمن برخه شته او نه د هغه چا چې د کار او کسب توان لري. ابوداؤد، او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۸۵، رقم: ۱۶۳۳، والنسائي ۵\۹۹- ۱۰۰، رقم: ۲۵۹۷.

**تشريح**: (حجة الوداع) د رسول الله ﷺ اخري حج ته وائي چې په هغه کې رسول الله ﷺ د الله تعالی د احکامو وضاحت وکړ او خلکو ته یې دا وویل او بیا د هغه څخه څو میاشتې وروسته د رفیق اعلی سره یو ځای سو یعني وفات سو.

د امام شافعي رحمة الله علیه د مذهب سره سم د حدیث د اخري جملو مطلب به دا وي چې ستاسو خلکو لپاره د صدقې مال خوړل حرام دی مګر که تاسو حرام مال خوړل غواړی نو زه یې درکوم ګویا رسول الله ﷺ د زجر په توګه همداسې ارشاد وفرمایه.

د حنفیه په نزد د دې مطلب دادی که تاسو د دې مال څخه اخستل غواړی نو زه به یې درکوم مګر په دې پوه سی چې کوم سړی روغ او جوړ وي او پر کټې باندې قدرت لري د هغه لپاره د صدقې مال خوړل هیڅ مناسب کار نه دی.

### په ځینو حالاتو کې د غني لپاره زکوة

﴿۱۷۴۰﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ

د حضرت عطاء بن یسار څخه مرسلا روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زکوة روا نه دی

لِغَنِيٍّ إِلَّا لِخَمْسَةٍ لِغَازٍ فِي سَبِيلِ اللهِ أَوْ لِعَامِلٍ عَلَيْهَا أَوْ لِغَارِمٍ أَوْ لِرَجُلٍ اشْتَرَاهَا

د شتمن لپاره، مګر یوازې د پنځو کسانو لپاره حلال دئ: د خدای ﷻ په لار کې جهاد کونکي لپاره، دوهم د زکوة کارکونکي لپاره، دریم د تاوان پوره کولو والا لپاره، څلورم د هغه چا لپاره چې د یو مفلس څخه د زکوة مال خرید کړي،

بِمَالِهِ أَوْ لِرَجُلٍ لَهُ جَارٌ مِسْكِينٌ فَتُصُدِّقَ عَلَى الْمِسْكِينِ فَأَهْدَى الْمِسْكِينُ

**لِلْغَنِيِّ . رواه مالك و ابوداؤد و في رواية لابي داوٗد عن ابي سعيد اوابن السبيل**

پنځم د هغه چا لپاره چي د هغه همسايه غريب وي او هغه ته زكوة وركړل سي او هغه د زكوة د مال ځخه هغه غني ته هديه وركړې وي . مالک ، ابوداؤد ، د ابوداؤد په يوه روايت كي دي چي ابو سعيد ځخه د مسافر لفظ هم نقل دئ .

**تخريج** : الامام مالک في الموطا ۱\۲۶۸، رقم: ۲۹. وابوداؤد: ۲\۲۸۶، رقم: ۱۶۳۵.

**تشريح** : د تاوان زغمونكي غني ځخه مراد هغه مالداره او غني دی چي هغه ته د يو تاوان او جرمانې په توګه يو لوئ شمير يا د ځه مال يوه لويه برخه ادا كول وي كه ځه هم هغه مالداره وي خو د هغه پر ذمه د تاوان او جرمانې كوم شمير يا مال چي وي هغه د هغه د موجوده مال او شمير ځخه هم زيات دی نو د هغه لپاره جائز او حلال وي چي هغه زكوة په اخستو سره د هغه سره تاوان هم پوره كړي اوس هغه تاوان كه د ديت په صورت كي وي يا په دا شكل كي وي چي يو سړی د بل پو روړی وو هغه طرفين د جنګ جګړي ځخه د ساتلو لپاره يا په ځه بلي وجي د هغه سړي پور پر خپله ذمه واخستی چي د هغه د خوا ځخه دا قرض به زه ادا كوم په دې وجه هغه پو روړی سو يا دا شكل هم مراد اخستل كيږي چي هغه خپله د چاپوروړی وي او خپل پور د ادا كولو لپاره هغه ته د رقم او مال ضرورت وي د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب سره سم هغه غازي چي غني مالداره وي زكوة اخستلای سي او هغه ته زكوة اخستل صحيح دي مګر د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد هغه ته زكوة وركول جائز نه دی ځكه چي په نورو حديثونو كي مطلقا غني ته زكوة د وركولو ځخه منعه فرمايل سوې ده د غني لپاره د صدقو مال حلال نه دی بيا دا چي رسول الله ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته چي كوم حكم فرمايلی وو په هغه كي رسول الله ﷺ دا ارشاد فرمايلی وو چي كوم قوم ته ته تللی يې د هغه قوم د مالدارانو ځخه زكوة وصول كړه او د هغوی پر مسكينانو او فقيرانو باندي يې تقسيم كړه هغه حديث چي په هغه كي د حضرت معاذ ﷺ په باره كي مذكوره حكم نقل دی دلته د ذكر سوي حديث ځخه زيات قوي دی .

د دې ځخه ماسيوا په حديث كي چي ذكر سوی دی هغه په ټولو صورتونو كي په متفقه توګه سره د ټولو امامانو په نزد صحيح دی زكوة وصولونكي ته خو د زكوة مال اخستل ځكه صحيح دی چي هغه د خپل محنت او عمل اجرت اخلي په دې صورت كي د هغوی فقيران او غنيان دواړه برابر دي، تاوان وړونكی كه ځه هم غني وي مګر پر هغه چي كوم پور يا مطالبه د هغه د موجوده مال ځخه د زياتي په وجه د هغه د مال ځخه د نه كيدو برابر ده همدا سي د

پاته دوو صورتونو معامله هم ظاهره ده چي زکوة ته مستحق زکوة ته حاصل سو نو لکه هغه سړی چي خپلي محلې ته ورسيدی و هغه مستحق زکوة د هغه مال مالک سو او س که غواړي هغه دي خرڅ کړي که غواړي چاته دي يې د تحفې په توګه ورواستوي.

## د زکات وېش الله ﷻ کړئ دئ

﴿۱۷۷۱﴾: وَعَنْ زِيَادِبْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت زياد بن الحارث الصدائي ﷺ څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ ته راغلم

وَسَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ فَذَكَرَ حَدِيثًا طَوِيلًا فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ أَعْطِنِي مِنَ الصَّدَقَةِ

او د رسول الله ﷺ په لاس مي بيعت وکړ، د دې وروسته هغه يو اوږد حديث بيان کړ بيا يې وويل: يو کس د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د زکوة مال يې وغوښتئ

فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى لَمْ يَرْضَ بِحُكْمِ نَبِيٍّ وَلَا غَيْرِهِ فِي

، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل: د زکوة په اړه الله تعالى نه خو د يو نبي په حکم راضي سو او نه د غير نبي

الصَّدَقَاتِ حَتَّى حَكَمَ فِيهَا هُوَ فَجَزَّأَهَا ثَمَانِيَةَ أَجْزَاءٍ فَإِنْ كُنْتَ مِنْ تِلْكَ الْأَجْزَاءِ أَعْطَيْتُكَ. رواه ابوداؤد.

بلکه خپله الله تعالى د زکوة مصرف (وړ) بيان کړ، الله تعالى زکوة پر اته برخو ويشلئ دئ يعني د اتو ډولو کسانو لپاره الله تعالى د زکوة مال حلال کړئ دئ که ته د هغو اتو کسانو څخه يې نو زه به زکوة درکړم. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد: ۲\۲۸۱ - ۲۸۳، رقم: ۱۶۳۰.

**تشريح**: آيت کريمه ( انما الصدقات للفقراء والمساکين الاية ) چي په هغه کي د زکاة د مستحقينو ذکر سوی دی چي ذکر يې لږ مخکي وسو، د دې ايت سره سم د زکوة د مستحقينو شمير اته داسي ښيي: اول فقير، دوهم مسکين، دريم عاملين زکوة، څلورم مولفة قلوب، د دې په باره کي ښودل سوي دي چي د امام اعظم ابو حنفيه رحمة الله عليه په نزد د تاليف قلب مصرف اوس نسته، پنځم غلام، شپږم پوروړی يا تاواني، اووم د الله تعالى په لار کي جهاد کونکی. د حج د سفر مسافر او طالب علم، اتم مسافرين.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دریم فصل)

### حضرت عمر رضي الله عنه او دزکات شیدې

﴿۱۷۴۲﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ أَنَّهُ قَالَ شَرِبَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لَبَنًا فَأَعْجَبَهُ

د حضرت زید بن اسلم رحمه الله څخه روایت دئ چې عمر بن الخطاب رضي الله عنه یوه ورځ شیدې وڅښلې او ښه پرولګېدلې،

فَسَأَلَ الَّذِي سَقَاهُ مِنْ أَيْنَ هَذَا اللَّبَنُ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مَاءٍ قَدْ سَمَّاهُ فَإِذَا

چا چې شیدې ورکړې وې د هغه څخه یې پوښتنه وکړه چې دا شیدې د کوم ځای دي؟ هغه ورته وویل: د اوبو یو ځای ته

نَعَمٌ مِنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ وَهُمْ يَسْقُونَ فَحَلَبُوا لِي مِنْ أَلْبَانِهَا فَجَعَلْتُهُ فِي

د زکوة اوښان راغلل هلته یې اوبه څښلې، د اوښانو خاوند د هغه شیدې ولوښلې او دا لږ شیدې

سِقَائِي فَهُوَ هَذَا فَأَدْخَلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَدَهُ فَاسْتَقَاءَهُ. رواه مالك و البيهقي في شعب الايمان

ما په خپل زي کې واچولې دا هغه شیدې دي، عمر رضي الله عنه په خوله کې ګوته ننه ایستل او هغه شیدې یې قی کړې. مالک، بیهقي په شعب الایمان کې.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۲۶۹، رقم: ۳۱، البیهقي في شعب الایمان ۵\۶۰، رقم: ۵۷۷۱.

**تشريح**: د حضرت عمر رضي الله عنه دا عمل د کمال تقوی او د ډیر زیاتي پرهیزګاري پر بناء وو کنه تر څو چې د مسئلې خبره ده دا خو ښودل سوي دي مستحق زکوة د زکوة مال د مالک کیدو وروسته که هغه چا غیر مستحق زکوة ته هبه کړل یا د تحفې په توګه یې ورکړي نو هغه په استعمال کي راوستل او هغه خوړل جائز دي په تیرو صفحاتو کي چې د بریره کومه واقعه تیره سوې ده په هغه کي رسول الله ﷺ د دې مسئلې جواز بیان فرمایلی دی.

===========

# بَابُ مَنْ لاَ تَحِلّ لَهُ الْمَسْئَلَةُ وِمَنْ تَحِلّ لَهُ

## چا ته سوال کول روا نه دي او چا ته روا دی

علماء ليکي د کوم سړي سره چې د يوې ورځې په اندازه غذا او د ستر پټولو په اندازه جامه وي نو هغه ته د چا مخکي د سوال لاس زغول نه دی پکار ځکه چې بغير ضرورت او حاجت غوښتل حرام دي هو د کوم سړي سره چې د يوې ورځي غذا او د ستر پټولو په اندازه جامه نه وي نو د هغه لپاره سوال کول حلال دی کوم محتاج او فقير چې د يوې روځي د غذا مالک وي او هغه د ګټي قدرت لري نو هغه ته زکوة اخستل خو حلال دی خو د خلکو څخه سوال کول ورته حرام دی کوم مسکين او محتاج ته چې د يوې ورځي غذا هم حاصله نه وي او هغه د ګټلو قدرت هم نه لري نو هغه ته سوال کول حلال دی.

نووي رحمة الله عليه د مسلم په شرح کي ليکلي دي د علماء په دې خبره اتفاق دی چې بغير د ضرورت او حاجته د خلکو څخه غوښتل منعه دي البته کوم سړی چې د ګټي قدرت لري د هغه په باره کي اختلافي اقوال دي زيات صحيح قول خو دا دی چې داسي سړي ته چې په ګټلو سره خپله ګزاره کولای سي د خلکو څخه سوال کول ورته حرام دي مګر ځيني حضرات ورته مکروه وائي هغه هم په درو شرطونو سره اول دا چې په سوال کولو سره خپل ځان ذليل نه کړي دوهم دا چې په غوښتلو کي د مبالغې کار وانه خلي دريم دا چې د کوم سړي څخه سوال کوي هغه ته تکليف نه ورسوي که په دې درو شرطونو کي يو هم پوره نه وي نو بيا سوال کول بالاتفاق حرام دی.

ابن مبارک رحمة الله عليه نقل کړي دي هغه فرمائي کوم سوالګر چې د الله لپاره، په ويلو سره سوال وکړي نو ماته ښه نه معلوميږي چې هغه ته څه ورکړه سي ځکه چې دنيا او د دنيا شيان کمتر او حقير دي کله چې هغه د دنيا د يو شي لپاره د لوجه الله په ويلو سره سوال وکړي نو ګويا هغه د هغه شي لويي او عزت وکړ چې الله تعالى کمتر او حقير ګرځولي دی داسي سړي ته د زجر او تنبيه له مخي هيڅ ورکول نه دي پکار او که يو سړی په دې ويلو سره سوال وکړي چې بحق الله يا بحق محمد راکړه نو هغه ته څه ورکول نه واجب کيږي او که يو سړی خپل څه غلط او دروا غ او حاجت او ضرورت په ظاهريدو سره د چا څخه څه واخلي نو هغه د هغه شي نه مالک کيږي که څه هم هغه شی د هغه په حق کي ناجائز او حرام کيږي همداسي که يو سړی چا ته دا ووائي چې زه سيد يم او ماته د فلاني شي يا دومره روپو ضرورت دی او هغه سائل سيد په ګڼلو

سره د هغه سوال پوره کړي خو په حقیقت کي هغه سید نه وي نو هغه هم د هغه غوښتلي شي مالک نه دی چي په نتیجه کي هغه شی د هغه په حق کي ناجائز او حرام دی.

همداسي که یو سړی سوالگر ته د نیک بخت او صالح په گڼلو سره څه شی ورکړي حال دا چي هغه سائل په باطني توگه سره گناه کار وي، که ورکونکي ته د هغه د گناه خبر سوی وای نو هغه شی به یې نه ورکولای، نو په دې صورت کي هم سائل د هغه مالک نه دی هغه شی د هغه لپاره حرام دی او هغه شی د هغه مالک ته دوهم وار ورکول پر هغه واجبیږي که یو سړی چاته د هغه د بدزباني یا د هغه د چغل خوري د مضر اثراتو څخه د ساتلو لپاره څه شی ورکړي نو هغه شی به د هغه په حق کي حرام وي.

او که یو فقیر یو سړي ته د غوښتلو لپاره راسي او د هغه لاس او پښې ور مچ کړي چي د هغه په وجه د هغه سوال پوره کړي نو دا مکروه دي مگر هغه سړي ته پکار ده چي هغه فقیر خپل لاس او پښې مچولو ته نه پرېږدي.

هغه سائل او فقیرانو ته هیڅ ورکول نه دي پکار چي نغاره، ډول یا هارمونیم او داسي نور شیان ږغوي په دروازه کي سوال کوي او گرځي، او سازکونکی (ډم) خو تر ټولو بد تر دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### سوال کول چا ته روا دئ

﴿۱۷۴۳﴾: عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ مُخَارِقٍ الْهِلَالِيِّ قَالَ تَحَمَّلْتُ حَمَالَةً فَأَتَيْتُ رَسُولَ

د حضرت قبیصه بن خارق الهلالي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د یو پور ضمانت پر غاړه واخیستئ، بیا زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْأَلُهُ فِيهَا فَقَالَ أَقِمْ حَتَّى تَأْتِيَنَا الصَّدَقَةُ فَنَأْمُرَ

د پور د اداکولو لپاره مي سوال وکړ، رسول الله ﷺ و فرمایل: یو څو ورځي تم سه موږ ته د زکوة مال راتلونکی دئ د هغه څخه به یې درکړو،

لَكَ بِهَا قَالَ ثُمَّ قَالَ يَا قَبِيصَةُ إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ إِلَّا لِأَحَدِ ثَلَاثَةٍ رَجُلٍ

بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: اې قبیصه! سوال کول یوازي درو کسانو ته جائز دي:

تَحَمَّلَ حَمَالَةً فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى يُصِيبَهَا ثُمَّ يُمْسِكُ وَرَجُلٌ أَصَابَتْهُ

يو هغه چا ته چي د يو پور ضمانت يې کړې وي هغه ته دومره اندازه غوښتل جائز دي چي په هغه سره خپل پور ادا کړي او د هغه وروسته بيا څه ونه غواړي، دوهم هغه کس ته چي په يو آفت او

جَائِحَةٌ اجْتَاحَتْ مَالَهُ فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ أَوْ

ستونزه کي اخته وي هغه ته دومره غوښتل پکار دي چي په هغه سره يې ضرورت پوره سي يا

قَالَ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ وَرَجُلٌ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ حَتَّى يَقُومَ ثَلَاثَةٌ مِنْ ذَوِي الْحِجَا

ژوند يې قائم سي، دريم هغه کس ته چي لوږه پر راسي او د محل دري کسان د دې شاهدي ورکړي

مِنْ قَوْمِهِ لَقَدْ أَصَابَتْ فُلَانًا فَاقَةٌ فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ

چي اوږی دئ نو هغه ته هم سوال کول جائز دي يوازي دومره چي ژوند يې پر قائم پاته سي .

عَيْشٍ أَوْ قَالَ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ فَمَا سِوَاهُنَّ مِنَ الْمَسْأَلَةِ يَا قَبِيصَةُ سُحْتًا

يَأْكُلُهَا صَاحِبُهَا سُحْتًا. رواه مسلم .

د دې خلکو څخه پرته اې قبيصه ! بل چا ته سوال کول صحيح نه دي او که يو څوک د دې څخه پرته سوال کوي نو دا سوال حرام دئ او هغه حرام مال خوري . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۷۲۲، رقم: ۱۰۹- ۱۰۴۴.

**تشريح**: حماله هغه مال ته وائي چي پر يوه سړي د ديت په توګه څو خلکو ته مال ورکول ضروري وي او څوک دوهم سړی د هغه مال د عدم ادائيګي په وجه په خپلو کي جنګ جګړي د ختمولو لپاره په مينځ کي پريوځي او هغه مال پر خپله ذمه واخلي يو د هغه په وجه پوروړی سي .
د حديث په اخري کي دري صاحب عقل او فراست خلکو شهادت چي ذکر سوی دی هغه د احتياج او ضرورت واقعي او حقيقي د کيدو لپاره په توګه د مبالغې دی او د دې خبري احساس د پيدا کولو لپاره دی چي خلک سوال کول اسان ونه ګڼي او د دې خراب کار څخه ځان وساتي .

## ناحقه سوال کول روا نه دي

﴿۱۷۴۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَأَلَ النَّاسَ أَمْوَالَهُمْ تَكَثُّرًا فَإِنَّمَا يَسْأَلُ جَمْرًا فَلْيَسْتَقِلَّ أَوْلِيَسْتَكْثِرْ . رواه مسلم

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د خلکو څخه ددې لپاره سوال وکړي چي د هغوی څخه مال واخلي او خپل مال زيات کړي نو هغه ګويا د اور سکروټه غواړي اوس نو هغه ته اختيار دئ که ډير غواړي او يا لږ غواړي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۷۲۰، رقم: ۱۰۵- ۱۰۴۱.

**تشريح**: د مال د زياتيدو مطلب دادی چي يو سړی د خپل احتياج او ضرورت په وجه نه مګر يوازي د دې لپاره د خلکو څخه سوال کوي چي د هغه مال زيات سي.
د اور د سکروټو څخه مراد د دوږخ د اور سکروټې دي د دې مطلب دادی چي داسي سړی د خپل حاجت پوره کولو لپاره نه مګر يوازي د مال زياتولو لپاره د چا څخه څه غواړي نو هغه به د خپلي دې هوس او د طمعي په وجه د دوږخ په اور کي غورځول کيږي کم يا زيات رسول الله ﷺ په توګه تنبيه ارشاد وفرمايله د دې وضاحت دادی چي بلا ضرورته د خلکو څخه سوال کول د دنيوي او اخروي اعتبار څخه په هر صورت تاواني دی او د ذلت او رسوائي باعث دی که څه هم هغه د څه حقير شي لپاره سوال وکړي او که د يو قيمتي ګران او اعلی شي لپاره سوال وکړي.

## د سوال کولو پای

﴿۱۷۴۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عُمَرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَسْأَلُ النَّاسَ حَتّٰى يَأْتِيَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَيْسَ فِي وَجْهِهِ مُضْعَةُ لَحْمٍ . متفق عليه

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو کس به هميشه د خلکو څخه سوال کوي تر دې چي د قيامت په ورځ به هغه په داسي حال کي راسي چي د هغه پر مخ به د غوښو يوه ټوټه هم نه وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۳۸، رقم: ۱۴۷۴، ومسلم ۲\۷۲۰، رقم: ۱۰۴- ۱۰۴۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم خلک بې ضرورته يوازي د کاروبار په توګه سوال کوي د قيامت په ورځ به د هغوی پر مخ به په ميدان حشر کي ذليل او رسوا کولو سره راوسته سي يا

حقیقتا به د هغوی دا حال وي چي هغوی د دې خراب او غلط فعل د سزا په توګه د هغوی پر مخ به غوښه نه وي همداسي به دا خلک د حشر په میدان کي د مخلوق خدا په مینځ کي په دې ویلو سره بې ابرو او رسوا کړه سي چي دوی په دنیا کي سوال کول خپل کاروبار ګرځولی وو نن به د هغه سزا تر لاسه کوي.

## په سوال کولو کي ټینګار کول ښه نه دئ

﴿۱۷۴۶﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُلْحِفُوا

د حضرت معاویة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: مبالغه مه کوئ

فِي الْمَسْأَلَةِ فَوَاللّٰهِ لَا يَسْأَلُنِي أَحَدٌ مِنْكُمْ شَيْئًا فَتُخْرِجَ لَهُ مَسْأَلَتُهُ مِنِّي شَيْئًا

په سوال کولو کي په الله دي مي قسم وي زما څخه چي څوک یو شی په داسي حال کي وغواړي

وَأَنَا لَهُ كَارِهٌ فَيُبَارَكَ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتُهُ. رواه مسلم

چي د هغه ورکول زه بد ګڼم نو کوم شی چي زه ورکړم او په هغه کي دي برکت راسي (یعني دا دواړه نه سي یو ځای کیدلای) یعني څوک چي زما څخه یو شی غواړي او د هغه ورکول زه بد ګڼم نو په هغه کي دي برکت نه وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۷۱۸، رقم: ۹۹-۱۰۳۸.

**د لغاتو حل**: (لاتُلحِفوا): الحف في المسالة: اى الح فيها ولزمها (په فقر کي ټینګار کول).

**تشريح**: مطلب دادی چي دا سړی په ډیري زیاتي مبالغې سره زما څخه سوال کوي که څه هم زه د هغه سوال رد نه کړم او هغه ته زه ورکړم خو زما دا خوښه نه وي، شی او برکت دواړه یو ځای جمع کیدای نسي نو زه چي یې په ناخوښي سره کوم شی ورکړم په هغه کي برکت نه وي.

## فقر کول سپکاوی دئ

﴿۱۷۴۷﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت زبیر بن العوم رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

لَأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ فَيَأْتِيَ بِحُزْمَةِ الْحَطَبِ عَلَى ظَهْرِهِ فَيَبِيعَهَا فَيَكُفَّ

په تاسو کي چي څوک خپله رسۍ واخلي او پر شا د لرګو یو پیټی راوړي هغه خرڅ کړي

اللّٰهُ بِهَا وَجْهَهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَسْأَلَ النَّاسَ أَعْطَوْهُ أَوْ مَنَعُوهُ. رواه البخاري

او الله تعالی د معاش په دې ذريعه د هغه عزت برقرار وساتي نو دا تر دې غوره ده چې هغه د خلکو څخه سوال وکړي او هغوی يې ورکړي يا يې نه ورکړي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۳۵، رقم: ۱۴۷۱.

## د سوال نه کولو اراده کول

﴿۱۷۴۸﴾: وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حكيم بن حزام رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه سوال وکړ

فَأَعْطَانِي ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَأَعْطَانِي ثُمَّ قَالَ يَا حَكِيمُ إِنَّ هٰذَا

او هغه زما سوال پوره کړ، بيا مي سوال وکړ او بيا يې راکړل، بيا يې راته وفرمايل: اې حكيم!

الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ فَمَنْ أَخَذَهُ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُورِكَ لَهُ فِيهِ وَمَنْ أَخَذَهُ

دا مال شين او خوږ دئ څوک چې دا په بې پرواهي سره تر لاسه کړي يعني د حرص او طمع څخه پرته نو په هغه کي برکت راځي او څوک چې

بِإِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيهِ كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنْ

دا د نفس د طمعي سره تر لاسه کړي نو په هغه کي برکت نه راځي او د هغه حالت د هغه چا په ډول دئ چې خوري يې مگر نس يې نه مړيږي او (اې حكيمه!) لوړ لاس تر لاندي لاس غوره دئ (يعني خيرات ورکول تر اخيستلو غوره دئ)

الْيَدِ السُّفْلَى قَالَ حَكِيمٌ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا أَرْزَأُ

حكيم وايي د دې وروسته ما عرض وکړ اې دالله رسوله! په هغه ذات دي مي قسم وي چې تاسو يې په حق سره رالیږلي ياست اوس به زه د هيچا د مال څخه څه کم نه کړم

أَحَدًا بَعْدَكَ شَيْئًا حَتَّى أُفَارِقَ الدُّنْيَا. متفق عليه

تر څو چې د دنيا څخه بيل سم. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۳۵، رقم: ۱۴۷۲، ومسلم ۲\۷۱۷، رقم: ۹۶- ۱۰۳۵.

**د لغاتو حل**: (لا ارزا): ای لا انقص ماله بالطلب منه.

﴿۱۷۴۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ عَلَى

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر منبر وفرمايل :

الْمِنْبَرِ وَذَكَرَ الصَّدَقَةَ وَالتَّعَفُّفَ وَالْمَسْأَلَةَ الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى

او د صدقې او سوال کولو څخه د منع کيدو يادونه يې وفرمايل چي لوړ لاس تر لاندي لاس غوره دئ

فَالْيَدُ الْعُلْيَا هِيَ الْمُنْفِقَةُ وَالسُّفْلَى هِيَ السَّائِلَةُ. متفق عليه

او لوړ لاس خرڅ کونکی او ورکونکی لاس دئ او لاندي لاس د سوال کونکي لاس دئ.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۹۴، رقم: ۱۴۲۹، ومسلم ۲\۷۱۷، رقم: ۹۴- ۱۰۳۳.

## د سوال نه کولو فضيلت

﴿۱۷۵۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ إِنَّ نَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ سَأَلُوا رَسُولَ

د ابو سعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د انصارو څو کسانو د رسول الله ﷺ څخه سوال وکړ

اللّٰهِ ﷺ فَأَعْطَاهُمْ ثُمَّ سَأَلُوهُ فَأَعْطَاهُمْ ثُمَّ سَأَلُوهُ فَأَعْطَاهُمْ حَتَّى نَفِدَ مَا

رسول الله ﷺ د هغوی سوال پوره کړ تر څو چي څه د رسول الله ﷺ سره وه هغه ختم سول،

عِنْدَهُ فَقَالَ مَا يَكُونُ عِنْدِي مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ أَدَّخِرَهُ عَنْكُمْ وَمَنْ يَسْتَعْفِفْ

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: په مال کي چي کوم شی زما سره وي زه به هغه ستاسو څخه منع نه کړم او
څوک چي د سوال کولو څخه ځان ژغورل غواړي

يُعِفَّهُ اللّٰهُ وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللّٰهُ وَمَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللّٰهُ وَمَا أُعْطِيَ أَحَدٌ

عَطَاءً خَيْرًا وَأَوْسَعَ مِنَ الصَّبْرِ. متفق عليه

نو الله تعالی هغه ژغوري او څوک چي بې پرواهي ځرګندوي الله تعالی هغه بې پروا کوي څوک

چي د صبر غوښتونکی سي الله تعالی هغه ته صبر ورکوي او د صبر څخه غوره او پراخ شی هیچا ته ورکول سوی نه دئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۳۵، رقم: ۱۴۶۹، ومسلم ۲\۷۲۹، رقم: ۱۲۴- ۱۰۵۳.

## کوم شی چي پرته د سوال څخه راځي هغه اخله

﴿۱۷۵۱﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به

يُعْطِينِي الْعَطَاءَ فَأَقُولُ أَعْطِهِ مَنْ هُوَ أَفْقَرُ إِلَيْهِ مِنِّي فَقَالَ خُذْهُ فَتَمَوَّلْهُ وَ

ما ته د زکوٰة تر لاسه کولو مزدوري راکول نو ما به ویل چي زما څخه زیات څوک اړ وي هغه ته یې ورکړه ، رسول الله ﷺ راته وفرمایل: په خپل مال کي یې ګډ کړه او

تَصَدَّقْ بِهِ فَمَا جَاءَكَ مِنْ هَذَا الْمَالِ وَأَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ وَلَا سَائِلٍ فَخُذْهُ وَمَا لَا فَلَا تُتْبِعْهُ نَفْسَكَ . متفق عليه

خیرات یې کړه. کوم شی چي په دې مال کي تا ته پرته د طمع او غوښتني څخه تر لاسه سي هغه اخله او کوم چي درته داسي تر لاسه نه سي نو په هغه مه پسې کیږه . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۳۷، رقم: ۱۴۷۳، ومسلم ۲\۷۲۳، رقم: ۱۱۰- ۱۰۴۵.

**تشريح**: د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي کوم شی بغیر د څه طمعي او بغیر د غوښتلو حاصل سي د هغه د حاصلولو لپاره طمع مه کوه او مه د هغه منتظر اوسه لکه چي وویل سي (لارد ولا کد) .

په یو بل حديث کي نقل دي کوم سړي ته چي څه مال یا څه شی بغیر د طمعي او حرص حاصل سي او هغه واپس کړي نو ګویا هغه شی الله تعالی ته واپس کی یعني د الله تعالی د یو نعمت ناشکري یې وکړه .

**یوه د عبرت کیسه**: نقل دي چي یو وار امام احمد رحمة الله علیه بازار ته ولاړی او هلته یې څه سامان رانیوی چي بنان جلال هغه په پورته کولو سره د امام احمد رحمة الله علیه سره یې د هغه کورته راوړی، کوم وخت چي هغه کورته داخل سو نو وې لیدل چي هلته ډوډۍ د پخولو

لپاره پرانستې پرتې دي امام صاحب خپل ځوی ته حکم وکی چي یوه ډوډۍ بنان ته ورکړه، زوی چي بنان ته ډوډۍ ورکول نو هغه انکار وکی، بنان چي د کور څخه دباندې راووتی نو امام احمد رحمة الله علیه خپل زوئ ته وویل: اوس هغه ته ورسه او ډوډۍ ورکړه، زوئ یې دباندې په راوتلو سره بنان ته ډوډۍ ورکړه نو هغه سمدستي قبوله کړه هغه ته ډیر تعجب وسو چي مخکي خو یې د ډوډۍ اخستو څخه انکار وکی او اوس سمدستي قبوله کړه اخر دا څه پیښه ده هغه د امام احمد رحمة الله علیه څخه د دې پوښتنه وکړه امام صاحب ورته وفرمایل بنان چي په کور کي داخل سو نو هغه د خوراک یو ښه شی ولیدی، د انساني او طبیعي تقاضا سره سم د هغه ورته خواهش وسو او په زړه کي د هغه طمعه پیدا سوه ځکه چي تا ډوډۍ ورکوله نو هغه دا خوښه نه کړل چي د خپل طبع خواهش تابع جوړ سي نو هغه د ډوډۍ څخه انکار وکی خو کله چي دباندې ووتی او هغه د ډوډۍ څخ قطع نظر په کولو سره روان سو او بیا ته راغلې او هغه ته دې ډوډۍ ورکړه نو اوس هغه ته هغه ډوډۍ بغیر د طمعي او خواهش سره حاصله سوه ځکه هغه د الله تعالی د نعمت په ګنلو سره سمدستي قبوله کړه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### سوال کول بې عزتي ده

﴿۱۷۵۲﴾: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اَلْمَسَائِلُ كُدُوحٌ

د سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: سوال کول یو زخم دئ

يَكْدَحُ بِهَا الرَّجُلُ وَجْهَهُ فَمَنْ شَاءَ أَبْقَى عَلَى وَجْهِهِ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَ إِلَّا أَنْ

چي په هغه سوال کونکی خپل مخ ژوبل کوي (یعني په سوال سره خپل عزت دلاسه ورکوي) څوک چي غواړي نو پر خپل مخ دي یې پاته وساتي او څوک چي پاته ساتل نه غواړي نو هغه دي یې پرېږدي مګر دا چي

يَسْأَلَ الرَّجُلُ ذَا سُلْطَانٍ أَوْ فِي أَمْرٍ لَا يَجِدُ مِنْهُ بُدًّا. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي

سړی د حاکم څخه سوال وکړي یا د یو داسي شي سوال وکړي چي ډیر ضروري وي. ابوداؤد، نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲/ ۲۸۹، ۲۹۰، رقم: ۱۶۳۹، والترمذي ۳/ ۶۴ - ۶۵، رقم: ۶۸۱، والنسائي ۵/ ۱۰۰، رقم: ۲۵۹۸.

**د لغاتو حل** : (کدوح): ای جروح (زخمونه)

**تشریح**: مطلب دادی که تاسو سوال کوی نو کم تر کمه د داسي سړي ځخه چي پر هغه ستا حق هم دی او هغه حاکم یا بادشاه دی چي د هغه په تصرف کي بیت المال او خزانه وي نو تاسو د هغه ځخه خپل حق غواړی، تاسو یې مستحقین یاست نو هغه به د بیت المال ځخه درکړي.

**د عطاء سلطاني د قبلولو مسئله** : علامه طیبي رحمة الله علیه فرمائي په دې اړه اختلافي اقوال دي چي ایا عطائې سلطاني یعني د بادشاه او حاکم عطیه قبلول جائز دي که نه ؟ په دې اړه صحیح قول دادی که بیت المال او په خزانه کي حرام مال زیات وي نو د هغه ځخه ځه غوښتل یا د هغه ځخه عطیه سلطاني قبلول حرام دي او که داسي صورت نه وي نو بیا حلال دي.

د دې حدیث د اخري جملې مطلب دادی که ځه واقعي مجبوري او ضرورت وي چي د چا ځخه د غوښتلو ماسیوا بله چاره نه وي مثلا د چا ضامن سوی وي د طوفان او سیلاب په وجه فصل یې تباه سوی وي یا د ځه پیښي او مصیبت په وجه دې ته رسیدلی وي نو په دې صورتونو کي د سوال کولو اجازت دی مګر یو سړی که حالت اضطراري ته رسیدلی وي که ځه هم هغه اضطراري حالت د هغه د جامو د خوا ځخه وي چي د ستر پټولو لپاره ورسره جامه نه وي یا د ډوډۍ خوړلو لپاره ځه نه وي چي د سختي لوږي ځخه یې بالکل ساه خیژي نو په داسي صورت کي د چا ځخه غوښتل او خپل اضطراري حالت لیري کول واجب دی.

امام غزالي رحمة الله علیه فرمائي همداسي د هغه سړي لپاره سوال کول واجب کیږي چي د حج استطاعت یې درلودی خو حج یې ونه کی تر دې چي مفلس سو نو اوس هغه سړي ته پکار ده چي هغه د خلکو ځخه د سفر خرڅ په غوښتلو سره د حج لپاره ولاړ سي.

**د سوال کولو پای**

﴿۱۷۵۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ سَأَلَ النَّاسَ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ځخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ځوک چي د خلکو ځخه سوال کوي

وَلَهُ مَا يُغْنِيهِ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَسْئَلَتُهُ فِيْ وَجْهِهِ خُمُوْشٌ أَوْ خُدُوْشٌ أَوْ

حال دا چي د هغه سره هغه شی وي چي هغه غني جوړ کړي نو د قیامت په ورځ به هغه په داسي حالت کي راسي چي د هغه سوال به د هغه پر مخ د زخم په شـــــکل وي،

كُدُوحٌ قِيْلَ يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا الْغِنَى قَالَ خَمْسُونَ دِرْهَمًا أَوْ قِيمَتُهَا مِنَ الذَّهَبِ. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي وابن ماجه والدارمي.

پوښتنه وسول اې د الله رسوله! غني کونکی کوم شی دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: پنځوس درهم يا د دې قيمت سره زر، ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ١٢/ ٢٧٧، رقم: ١٦٢٦، والترمذي ٣/ ٤٠-٤١، رقم: ٦٥٠، والنسائي ٥/ ٩٧، رقم: ٢٥٩١، وابن ماجه ١/ ٥٨٩، رقم: ١٨٤٠، والدارمي ١/ ٤٧٢، رقم: ١٦٤٠.

**د لغاتو حل:** (خموش): الخدوش وخدش الجلد: قشره بعود او نحوه. (داغ او زخم)

**تشريح:** خموش جمع د خمش ده، خدوش جمع ده خدش او كدوح جمع د كد ده، ځيني علماء فرمائي دا ټول الفاظ قريب المعنى دي په دې توګه چې د دې ټولو معنى حاصل زخم دی ګويا په حديث کي لفظ او د راوي شک ظاهروي چې رسول الله ﷺ په دې درو کي کوم يو لفظ ارشاد فرمايلی دی.

مګر ځيني نور علماء فرمائي چې دا درې سره الفاظ متباٸن دي يعني د دې درو سرو جلا جلا معناوي دي د خموش معنى ده د لرګي په ذريعه پوست کنبل د خروښ معنى ده د نوکانو په ذريعه پوست کنبل او د کدح معنى ده د غاښونو په ذريعه پوست کنبل، ګويا همداسي د قيامت په ورځ د سائلينو تفاوت ته اشاره ده چې کوم سړی کوم سوال کوي د هغه پر مخ به معمولي زخم وي څوک چې زيات سوال کوي د هغه پر مخ به دير ژور زخم وي او څوک چې د سوال کولو درمياني درجه اختياروي د هغه پر مخ به د زخم هم درميانه درجه وي.

﴿١٧٥٣﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن الحنظلية رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ سَأَلَ وَعِنْدَهُ مَا يُغْنِيهِ فَإِنَّمَا يَسْتَكْثِرُ مِنَ النَّارِ قَالَ النُّفَيْلِيُّ وهو احد

څوک چې سوال وکړي او د هغه سره دومره مال وي چې هغه غني کړي نو هغه ډير بدل د اور غواړي، نفيلي چې د دې حديث راوي دئ

رواته فِي مَوْضِعٍ آخَرَ وَمَا الْغِنَى الَّذِي لَا تَنْبَغِي مَعَهُ الْمَسْأَلَةُ قَالَ قَدْرُ مَا

په یو بل ځای کي وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دې وروسته سوال کول جائز نه دي چي په اندازه

يُغَدِّيهِ وَيُعَشِّيهِ وَقَالَ النُّفَيْلِيُّ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ أَنْ يَكُونَ لَهُ شِبْعُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ أَوْ لَيْلَةٍ وَيَوْمٍ . رواه ابوداؤد .

د يوې ورځي او شپې په ماړه نس خوراک ترلاسه کړي، او په يو بل ځای کي يې ويلي دي چي په اندازه د يوې ورځي يا يوې ورځي او شپې د خوراک ترلاسه کول.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱۲\۲۸۰ رقم: ۱۶۲۹.

**تشريح**: د سهار او مابنام د ډوډی په اندازه، د دې مطلب دادی چي د کوم سړي سره په دومره اندازه کي غذائي ضرورت موجود وي چي هغه يوه ورځ او يوه شپه خپل نس ډک کړای سي نو هغه غني دی يعني اوس د هغه لپاره جائز نه ده چي د چا مخ ته لاس وغزوي يعني سوال وکړي.
اوس د دې مخکي د ابن مسعود ﷺ چي کوم روايت تير سوی دی د هغه څخه خو دا معلوميږي چي د مال شمير چي د هغه په وجه سړی مستغنی سي او د چا څخه سوال نه کوي پنځوس درهمه دي يعني کوم سړی چي د پنځوسو درهمو مالک وي د هغه لپاره د چا څخه سوال کول حرام دی دلته چي کوم روايت نقل سوی دی په هغه کي دا اندازه د سهار او مابنام د ډوډی په اندازه بيان سوی دی او د دې وروست د عطاء ابن يسار چي کوم روايت راروان دی د هغه څخه دا خبره ثابتيږي چي کوم سړی يو اوقيه يعني د څلويښتو درهمو مالک وي هغه ته به مستغني ويل کيږي د هغه لپاره د چا څخه سوال کول مطلقا جائز نه دي.
ګويا دا درې روايتونه دي په دې کي په خپلو کي اختلاف دی د امام احمد رحمة الله عليه ابن مبارک رحمة الله عليه او اسحاق رحمة الله عليه عمل خو پر اول روايت دی چي د ابن مسعود ﷺ څخه نقل دی ځيني علماء دريم روايت معمول ګرځولی دی چي د عطاء ابن يسار څخه نقل دی د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه دا مذهب دی چي کوم سړی د يوې ورځي د غذائي ضروریاتو مالک وي هغه ته به مستغنی ويل کيږي او د هغه لپاره د چا څخه سوال کول حرام دی ګويا د امام مالک رحمة الله عليه په نزد دا حديث د نورو حديثونو لپاره ناسخ دی.

﴿۱۷۵۵﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ

حضرت عطاء بن يسار د بنو اسد د يو سړي څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

ﷺ مَنْ سَأَلَ مِنْكُمْ وَلَهُ أُوقِيَّةٌ أَوْ عِدْلُهَا فَقَدْ سَأَلَ إِلْحَافًا . رواه مالك و ابو داؤد والنسائي .

څوک چي په تاسو کي سوال وکړي او د هغه سره يوه اوقيه (څلوېښت درهمه يا دهغو بيه) موجود وي نو هغه د يو مجبورۍ څخه پرته سوال وکړ . مالک، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج:** مالک في الموطا ۲\۹۹۹، رقم: ۱۱، سنن ابي داؤد ۲\۲۷۸، رقم: ۱۶۲۷، والنسائي ۵\۹۸ - ۹۹، رقم: ۲۵۹۵.

**تشريح:** د الحاف مطلب دادی چي هغه د اطراري کيفيت څخه ماسوا او بېله ضرورته په ډيري مبالغې سره سوال وکړي کوم چي په خلګو کي ډېر بد او منعه دی، په قرآن کريم کي د فقراء په دې توګه تعريف سوی دی : ولا يسالون الناس الحافا : يعني هغوی د خلکو څخه په مبنلېدو سره سوال نه کوي چي تر څو د هغه سوال پوره نسي نو نه يې پرېږدي .

## سوال کول په انتهايي مجبورۍ کي

﴿۱۷۵۶﴾ : وَعَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حبشي بن جناده رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ لِغَنِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ إِلَّا لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ أَوْ غُرْمٍ

سوال کول د شتمن لپاره جائز نه دئ او نه هغه چا ته چي روغ او توانا وي مګر د هغه کس لپاره جائز دئ چي مفلسۍ پر مځکي غورزولی وي

مُفْظِعٍ وَمَنْ سَأَلَ النَّاسَ لِيُثْرِيَ بِهِ مَالَهُ كَانَ خُمُوشًا فِي وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

يا چي ډير پوروړی وي او څوک چي يوازي ددې لپاره د خلکو څخه سوال کوي چي ددې په ذريعه سره خپل مال زيات کړي نو دا سوال به د قيامت په ورځ د هغه پر مخ يو زخم وي .

وَرَضْفًا يَأْكُلُهُ مِنْ جَهَنَّمَ وَمَنْ شَاءَ فَلْيُقِلَّ وَمَنْ شَاءَ فَلْيُكْثِرْ . رواه الترمذي

او په دوږخ کي به تودې دبري جوړې کړل سي او هغه به خوري ، نو څوک چي غواړي سوال دي کم کړي او د چا چي زړه غواړي نو زيات دي يې کړي . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۴۳۲، رقم: ۶۵۳.

**د لغاتو حل**: (رضفا): الحجارة المحماة: (توده دبره).

**تشريح**: پر مځکه يې غورځولي وي دا کنايه ده چې شدت محتاجي او مفلسي پر مځکه غورځولې ده چې د ولاړيدو توان هم نه لري ګويا مطلب دادی د چا مځکي لاس غزول يوازي د ډيري زياتي محتاجي ير وخت جائز دی د حديث اخري جمله په توګه د تنبيه او تهديد ارشاد فرمايل سوې ده څرنګه چې د کافرانو ظالمانو او د الله تعالی د باغيانو په باره کي بطور تهديد د قرآن کريم دا آيت دی :

فَمَن شَاءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاءَ فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا

ژباړه : څوک چې غواړي مومن دې سي او څوک چې غواړي کافر دې سي موږ خو د ظالمانو لپاره اور تيار کړی دی يعني اور مو ورته ټاکلی دی.

﴿۱۷۵۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د انصارو يو سړی د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو

يَسْأَلُهُ فَقَالَ أَمَا فِي بَيْتِكَ شَيْءٌ فَقَالَ بَلَى حِلْسٌ نَلْبَسُ بَعْضَهُ وَنَبْسُطُ بَعْضَهُ

او سوال کول يې پيل کړ، رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه ايا ستاسو په کور کي هيڅ هم نسته، هغه عرض وکړ يو غټ کمبل سته چې د هغه يوه برخه پر مځکه غوړوم او يوه برخه يې اغوندم

وَقَعْبٌ نَشْرَبُ فِيهِ مِنَ الْمَاءِ قَالَ ائْتِنِي بِهِمَا قَالَ فَأَتَاهُ بِهِمَا فَأَخَذَهُمَا رَسُولُ

او يوه پياله ده چې په هغه کي اوبه څښم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دا دواړه شيان راوړه، هغه سړي دا دواړه شيان راوړل، رسول الله ﷺ هغه په لاس کي واخيستل

اللَّهِ ﷺ بِيَدِهِ وَقَالَ مَنْ يَشْتَرِي هَذَيْنِ قَالَ رَجُلٌ أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمٍ قَالَ:

او وه يې فرمايل: دا څوک رانيسي؟ يو سړي وويل: زه يې په يوه درهم رانيسم، رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا قَالَ رَجُلٌ أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمَيْنِ فَأَعْطَاهُمَا

د يوه درهم څخه په زيات يې څوک رانيسي؟ دوه واره يا دري واره رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمايل،

يوه سړي وويل : زه يې په دوو درهمو رانيسم ، رسول الله ﷺ هغه دواړه شيان هغه ته ورکړل

إِيَّاهُ وَأَخَذَ الدِّرْهَمَيْنِ وَأَعْطَاهُمَا الْأَنْصَارِيَّ وَقَالَ اشْتَرِ بِأَحَدِهِمَا طَعَامًا

او د هغه څخه يې دوه درهمه واخيستل او هغه انصاري ته يې ورکړل بيا يې ورته وفرمايل : په دې کې ديوه درهم د خوراک او څښاک شيان رانيسه

فَانْبِذْهُ إِلَى أَهْلِكَ وَاشْتَرِ بِالْآخَرِ قَدُومًا فَأْتِنِي بِهِ فَأَتَاهُ بِهِ فَشَدَّ فِيهِ رَسُولُ

او خپلې کورنۍ ته يې ورسوه او په دوهم د رهم تبر رانيسه او ما ته يې راوړه ، هغه تبر رانيوئ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې يې حاضر کړ ، رسول الله ﷺ په خپل مبارک لاس په هغه تبر کې لاستی واچوئ

اللهِ ﷺ عُودًا بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ لَهُ اذْهَبْ فَاحْتَطِبْ وَبِعْ وَلَا أَرَيَنَّكَ خَمْسَةَ عَشَرَ

او بيا يې تبر ورکړ او ورته وه يې فرمايل : ولاړ سه لرګي يو ځای کوه او پلوره يې او س چې تر پنځلسو ورځو پورې دې زه ونه وينم ،

يَوْمًا فَذَهَبَ الرَّجُلُ يَحْتَطِبُ وَيَبِيعُ فَجَاءَ وَقَدْ أَصَابَ عَشْرَةَ دَرَاهِمَ

هغه سړی ولاړئ لرګي به يې راوړل او پلورل به يې ، يوه ورځ هغه سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو نو د هغه سره لس زره درهم وه

فَاشْتَرَى بِبَعْضِهَا ثَوْبًا وَبِبَعْضِهَا طَعَامًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ هَذَا خَيْرٌ لَكَ

په هغو کې يې په يو څه جامې رانيولې او په يو څه يې د خوراک شيان ، بيا هغه ته رسول الله ﷺ وفرمايل : دا ستا لپاره تر هغه کار غوره دئ

مِنْ أَنْ تَجِيءَ الْمَسْأَلَةُ نُكْتَةً فِي وَجْهِكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَصْلُحُ إِلَّا

چې ته ګرځې او سوال کوې او د قيامت په ورځ ستا پر مخ د سوال داغ وي ، سوال جائز نه دی مګر

لِثَلَاثَةٍ لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ أَوْ لِذِي غُرْمٍ مُفْظِعٍ أَوْ لِذِي دَمٍ مُوجِعٍ . رواه ابوداؤد وروي ابن ماجة الى قوله يوم القيامة .

د درو كسانو لپاره : يو خو د هغه مفلس لپاره چې مفلسی پر مځکه غورزولی وي ، دوهم د هغه پوروړی لپاره چې د هغه پور دروند وي ، دریم د هغه چا لپاره چې د یو چا د دیت (وژني) ضامن وي او د هغه د ادا کولو توان نه لري . ابو داؤد ، او ابن ماجه تر يوم القيامة، پوري روايت کړئ دئ .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۲۹۲، رقم: ۱۶۴۱، وابن ماجه ۲\ ۷۴۰، رقم: ۲۱۹۸.

**د لغاتو حل**: (حِلس): هو الكساء الذي يلي ظهر البعير تحت القتب (غټ کمبل). (تعب): قدح ضخم غليظ. (پند لوښی).

## يوازي الله تعالى ته حاجت بيانول

﴿۱۷۵۸﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : چا ته چې

أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ فَأَنْزَلَهَا بِالنَّاسِ لَمْ تُسَدَّ فَاقَتُهُ وَمَنْ أَنْزَلَهَا بِاللّٰهِ أَوْشَكَ اللّٰهُ لَهُ

فاقه وي يعني يو سخت حاجت يې وي او هغه يې پر خلکو څرګند کړي د حاجت لپاره يې خواهش کړی وي نو د هغه حاجت به نه سي پوره. چا چې خپل حاجت الله ﷻ ته بيان کړ

بِالْغِنَى إِمَّا بِمَوْتٍ عَاجِلٍ أَوْ غِنًى عَاجِلٍ . رواه ابوداؤد والترمذي .

نو الله ﷻ به ژر د هغه حاجت په اندازه د بسوالي پوره کړي يعني يا خو به هغه غني کړي يا به يې ژر مړ کړي . ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۲۹۶، رقم: ۱۶۴۵، والترمذي ۴\ ۴۸۷، رقم: ۲۳۲۶.

**تشريح**: د حديث په اخري جمله (او غنى آجل ) کي لفظ د اجل د مصابيح په اکثرو نسخو او په جامع الاصول کي په عين سره يعني عاجل قوم مراد دی چې د هغه مطلب به دا وي چې الله تعالى هغه ته ژر ګټه او اطمينان ورکړي په دې توګه چې هغه به ژر شتمن او مالدار کړي، . مګر په سنن ابي داود او ترمذي کي چيري چې دا روايت نقل سوی دی نو دا لفظ په الف يعني آجل دی او صحيح هم دا دی ځکه چې ژباړه يې د همدې سره سمه ده .

داسي معلوميږي چې دا حديث د قرآن کريم د دغه آيت کريمه په رڼا کي فرمايل سوی دی :

وَمَن يَتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهُ

ژباړه: څوک چي د الله تعالی څخه بیرېږي نو د هغه لپاره د وتلو ځای پیدا کوي او هغه ته د داسي ځای څخه رزق ورکوي چي د هغه ځای څخه یې ګمان هم نه کیږي او کوم سړی چئ په الله تعالی باور لري الله تعالی هم د هغه لپاره کافي دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د چا څخه سوال کول پکار دي

﴿۱۷۵۹﴾: وَعَنِ ابْنِ الْفِرَاسِيِّ أَنَّ الْفِرَاسِيَّ قَالَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن فراسي رضی الله عنه څخه روایت دیٔ چي فراسي رضی الله عنه وویل: ما د رسول الله ﷺ څخه

وَسَلَّمَ أَسْأَلُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا وَإِنْ كُنْتَ سَائِلًا لَا بُدَّ فَاسْأَلِ الصَّالِحِينَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

پوښتنه وکړه چي: اې د الله رسوله! ایا زه (د خلکو څخه) سوال وکړم، رسول الله ﷺ وفرمایل: یا، مګر که ضروري وي نو د نیکو خلکو څخه یې غواړه. ابوداؤد، نسائي

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۹۶، رقم: ۱۶۴۶، والنسائي ۵\۹۵، رقم: ۲۵۸۶.

**تشریح**: د ضرورت او اړتیا پر وخت د نیکانو څخه د غوښتني لپاره ځکه فرمایل سوي دي چي د هغوی سره حلال مال وي او هغوی مهربانه وي د غوښتونکي څخه منعه نه کوي دا وجه ده چي د بغداد فقراء او مسکینان به هغوی د خپل ضروریاتو او اړتیاوو پر وخت د امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه دروازې ته ورتلل او هغوی ته به یې خپل ضرورت او حاجت بیانوی.

د نوموړي د تقوی او احتیاط چي کوم حالت وو د دې اندازه په دغه پیښي سره لګول کیږي چي یو وار د هغه کوروالا ته د خمیر ضرورت سو چي د امام احمد رحمة الله علیه د زوی د کور څخه یې وغوښتی د امام احمد رحمة الله علیه زوی د قاضي پر دنده وو او د هغه د سعادت او نیکۍ دا حال وو چي د خپل کور د دروازې سره به بیده کیدی ددې لپاره چي یو اړ کس بیرته ولاړ نسي، په هر حال د امام احمد رحمة الله علیه کوروالا د هغه خمیر څخه ډوډۍ پخه کړه، کله چي نوموړي امام ته ډوډۍ وړاندي سول نو هغه ته د کشف په ذریعه د ډوډۍ په باره کي څه شک او شبه پیدا سول، د کور والا څخه یې پوښتنه وکړه، هغې ورته حال بیان کړل، نوموړي امام رحمة الله علیه د ډوډۍ خوړلو څخه انکار وکړ او د هغه په وجه کوروالا هم ډوډۍ ونه

خوړل او دا پوښتنه يې وکړه چي ايا دا ډوډۍ فقيرانو ته ورکړم نو يې ورته وويل چي ور يې کړه مګر د هغې حال او احوال ورته بيان کړه حال دا وو چي فقيرانو هم د هغې د اخيستلو څخه منعه وکړه ، په پای د کوروالا لپاره د ټول کور ډوډۍ د نوموړي په اجازه سره په درياب کي وغورځول.

## کوم شی چي پرته د سوال څخه وي

﴿۱۷۶۰﴾: وَعَنِ ابْنِ السَّاعِدِيِّ قَالَ اسْتَعْمَلَنِي عُمَرُ رضي الله عنه عَلَى الصَّدَقَةِ فَلَمَّا

د حضرت ابن ساعدي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر رضي الله عنه زه د زکات کارکونکی و ټاکلم

فَرَغْتُ مِنْهَا وَأَدَّيْتُهَا إِلَيْهِ أَمَرَ لِي بِعُمَالَةٍ فَقُلْتُ إِنَّمَا عَمِلْتُ لِلّٰهِ وَأَجْرِي عَلَى

د خپل کار څخه چي زه فارغ سوم او د زکات مال مي حضرت عمر رضي الله عنه ته حواله کړ نو حضرت عمر رضي الله عنه حکم راکړ چي زما د خدمت معاوضه دي ما ته راکړل سي ، ما عرض وکړ

اللّٰهِ قَالَ خُذْ مَا أُعْطِيتَ فَإِنِّي قَدْ عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ فَعَمَّلَنِي

دا کار خو ما يوازي د الله جل جلاله لپاره کړئ دئ او د دې ثواب د الله تعالی پر ذمه دئ ، حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل : څه چي درکړل سي هغه واخله ما هم د رسول الله ﷺ په زمانه کي دا کار کوئ او ما ته به چي اجرت راکړل سو

فَقُلْتُ مِثْلَ قَوْلِكَ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا أُعْطِيتَ شَيْئًا مِنْ غَيْرِ أَنْ تَسْأَلَهُ فَكُلْ وَتَصَدَّقْ. رواه ابوداؤد.

نو ما به داسي ويل څه چي ته وايې، نو رسول الله ﷺ به ما ته فرمايل : هر کله چي تا ته بې سواله کولو يو شی درکړل سي نو هغه خوره يا يې خيرات کوه . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۹٦، رقم: ۱٦۴۷.

**تشريح**: د دغه حديث څخه معلومه سوه چي پر يو کار او خدمت باندي د بيت المال څخه مزدوري اخستل جائز دي که څه هم هغه خدمت فرض وي، لکه د بيت دا لمال منشي توب ، درس او تدريس او داسي نور، مګر د وخت د امام لپاره ضروري ده چي هغه نه يوازي د داسي خلکو بلکه د هغه خلکو هم خيال وساتي کوم چي د بيت المال په اړه ځان خبروي او يو ډول کار

پکښې کوي .

دا حدیث او هغه حدیث کوم چې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په اړه مخکې تیر سوی دی په ظاهره پر دې خبرې دلالت کوي که یو څوک چا ته د هغه د سوال او طمعې څخه پرته یو شی ورکړي نو د هغه لپاره قبلول واجب دی، د امام احمد رحمة الله علیه او نورو امامانو دا مذهب دی، مګر جمهور علماء دا پر استحباب یا اباحت باندې محمول کړی دی .

## سوال کول کله رواه دی

﴿۱۷۶۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّهُ سَمِعَ يَوْمَ عَرَفَةَ رَجُلاً يَسْاَلُ النَّاسَ فَقَالَ اَفِيْ هٰذَا الْيَوْمِ وَفِيْ هٰذَا الْمَكَانِ تَسْاَلُ مِنْ غَيْرِ اللهِ فَخَفَقَهُ بِالدُّرَّةِ . رواه رزین .

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دئ چې د عرفات په ورځ هغه واوریدل چې یو سړی د خلکو څخه سوال کوي نو هغه ته یې وویل : ایا په دا ورځ او په دې ځای کې چې دلته هره دعاء قبلیږي ته د الله جل جلاله څخه پرته د بل چا څخه سوال کوې؟ نو هغه یې په دره ووهئ . رزین .

**تخريج**: رواه رزین.

**د لغاتو حل**: (الدُرة): السوط (چلاخه).

**تشريح**: د حضرت علي رضی الله عنه د ارشاد مطلب دا وو چې دا ستا څومره بدبختي ده چې په نن ورځ کوم چې د دعاء د قبلېدو ورځ ده او د عرفات په میدان کې کوم چې مقدس او بابرکت ځای دی ته الله تعالی پریږدي او د خلکو څخه سوال کوې ، ددې څخه معلومه سوه چې مقدس او بابرکت ځایونه مثلاً په مسجدو او داسې نورو کې د خلکو څخه سوال کول ښه خبره نه ده .

## فقر او غنا څه ته وایي ؟

﴿۱۷۶۲﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ تَعْلَمُنَّ اَيُّهَا النَّاسُ اَنَّ الطَّمْعَ فَقْرٌ وَاَنَّ الْاِيَاسَ غَنِيٌّ وَّاَنَّ الْمَرْءَ اِذَا يَئِسَ مِنْ شَيْءٍ اِسْتَغْنٰى عَنْهُ . رواه رزین .

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چې هغه (خلکو ته) وویل : اې خلکو ! پوه سئ چې طمع ارتیا ده او د خلکو څخه بې پرواهي غنا ده او هر کله چې انسان د یو شي څخه نا امیده سي نو د هغه څخه بې پروا سي . رزین .

**تخريج**: رواه رزین.

**تشریح**: طمع اړتیا ده، ددې مطلب یا خو دادی چي طمع د اړتیا یو صورت دی ، او یا مطلب دادی چي طمع د اړتیا ذریعه ده یعني د طمع په وجه انسان اړ کیږي په دې توګه چي د خپل طمعي پوره کولو لپاره د نورو خلکو په وړاندي لاس غزوي، نا امېده کېدل بې پرواهي ده ، ددې مطلب دادی چي د انسان څخه ناامیدي مستغني او بې پرواه جوړوي، د ابوالحسن شاذلي رحمة الله علیه په اړه نقل دي چي د هغه څخه یو چا علم کیمیا کوم چي یوازي په دوو الفاظو کي منحصره ده وغوښتل نو هغه ورته وفرمایل : د خدای پاک د مخلوق څخه نظر وکړه یعني د یو انسان څخه امیدونه مه لره او د الله تعالی څخه د هغه شي په اړه خپل طمع منقطع کړه کوم چي ستا په قسمت کي د لیکل سوو شیانو څخه پرته دي، یعني الله تعالی چي کوم شیان ستا په مقدر کي لیکلي دي د هغه څخه پرته د نورو شیانو امید مه کوه .

د طمع معنی ده د هغه شیانو تر لاسه کولو خواهش کول چي د هغه په تر لاسه کولو کي شک وي، یعني د یو شي په باره کي دا خیال وي چي د هغه خاوند به یې راکړي که یا، هو که چیري د یو داسي شي یو داسي سړي ته د تر لاسه کولو غوښتنه وي چي د هغه سړي سره د کمال تعلق، او د میني او مروت پر بناء یقین وي که هغه شی تر لاسه سي نو دې ته به طمع نه وایو .

## د سوال نه کونکي لپاره زیری

﴿۱۷۶۳﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَكْفُلُ لِي

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي زما سره ددې خبري قول وکړي چي

أَنْ لَا يَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا فَأَتَكَفَّلُ لَهُ بِالْجَنَّةِ فَقَالَ ثَوْبَانُ أَنَا فَكَانَ لَا يَسْأَلُ أَحَدًا شَيْئًا . رواه ابوداؤد والنسائي .

هغه به د خلکو څخه سوال نه کوي نو زه د هغه لپاره د جنت ضامن یم ، ثوبان وایي ما عرض وکړ : زه.ددې قول کوم، ددې وروسته به ثوبان د چا څخه سوال نه کوئ . ابوداؤد او نسائي

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۲۹۵، رقم: ۱۶۴۳، والنسائي ۵\۹۶، رقم: ۲۵۸۹.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د قول مطلب دا دی چي زه د هغه سړي لپاره ددې خبري ضمانت کوم چي هغه به بېله څه عذاب په جنت کي داخل کړل سي، ګویا په دې کي دې ته اشاره ده چي د چا څخه سوال نه کونکی انشاء الله تعالی د خیر د خاتمې په سعادت سره به ونازول سي .

مگر په دې خبره پوه سئ چي په دې اړه هغه صورت وتلی دی کله چي د مرګ ببره وي ځکه چي ډېر زيات ضرورت منعه شيان هم رواه کوي، که يو سړی په داسي حالت کي وي چي د چا څخه هيڅ شی نه غواړي او په هلاکت کي ولويږي نو دهغه لپاره غوښتل او خپل ځان ساتل ضروري دی، د مثال په توګه که يو سړی په سختي لوږي کي اخته سي او هغه د چا څخه په څه غوښتلو سره ونه خوري او په همدې حالت کي مړ سي نو ګناه کار به مړ سي.

## د سوال نه کولو حکم

﴿۱۷۶۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ دَعَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَشْتَرِطُ

د حضرت ابو ذر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زه را وغوښتلم او زما څخه يې ددې خبري عهد واخيستئ چي

عَلَيَّ أَنْ لَا تَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا قُلْتُ نَعَمْ قَالَ وَلَا سَوْطَكَ إِنْ يَسْقُطْ مِنْكَ حَتَّى تَنْزِلَ إِلَيْهِ فَتَأْخُذَهُ. رواه احمد.

ته به د خلکو څخه هيڅ شی نه غواړې (يعني سوال به نه کوې) ما ددې خبري اقرار وکړ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: تر دې چي ستا تازيانه (کروړه) ايله سي نو (د راپورته کولو لپاره مه وايه) د سپرلۍ څخه په خپله تا سه او پورته يې کړه. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۸۱،

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد آخري برخه د سوال پرېښودو په اړه د مبالغې په توګه دی، ځکه که چيري د چا غمچينه ولويږي او د هغه پورته کولو لپاره يو چا ته ووايي نو ددې مطلب دادی چي هغه يو چا ته لاس وغزوی، بلکه په حقيقت کي خو هغه دده ملک دی چي هغه ته يوازي د پورته کولو لپاره وايي، مګر په دې کي هم يو ډول سوال دی ځکه رسول الله ﷺ د مبالغې په توګه ددې څخه هم منعه وفرمايل.

==========

# بَابُ الْاِنْفَاقِ وَ كَرَاهِيَةِ الْاِمْسَاكِ

## د خرڅ کولو فضیلت او د بخل بدوالی

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د الله ﷻ په لار کې خرڅول

﴿۱۷۶۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ لِي

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که زما سره واى

مِثْلُ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا يَسُرُّنِي أَنْ لَا يَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ وَعِنْدِي مِنْهُ شَيْءٌ إِلَّا شَيْءٌ أُرْصِدُهُ لِدَيْنٍ. رواه البخاري

د احد د غره په اندازه سره زر نو زما به دا خوښه نه واى چي پر هغه درې ورځي تيري سي او د هغه وروسته د هغه څخه زما سره هيڅ پاته نه سي مګر يوازي دومره چي زه د هغه څخه پور ادا کړلاى سم. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۵۵، رقم: ۲۳۸۹.

**تشريح**: مطلب دادى چي که چيري زما سره د احد د غره په اندازه سره زر وي نو زما لپاره به تر ټولو غوره خبره دا وي چي هغه ټول سره زر په درو شپو کي دننه په خلکو باندي تقسيم کړم او د هغه څخه هيڅ هم ځان ته نه پرېږدم هو دومره سره زر خامخا پرېږدم چي په هغه سره خپل پور ادا کړم ځکه چي پور ادا کول تر صدقې هم مخکي دى د دې ارشاد څخه يوې خواته د رسول الله ﷺ ډير سخاوت معلومېږي او بلي خواته دا چي کوم خلک د خپل مال او زرو خيرات ورکوي او د الله تعالى په لار کي يې مصرفوي او خپل د راحت ذرائع مهيا کوي مثلا لوړ لوړ ښائسته ماڼۍ جوړوي، کوټې جوړوي يا داسي نور د ژوند د ارام لپاره بې حسابه مال خرڅوي خو پر هغوى د نورو خلکو حقوق وي د هغوى د حقوق ادا کول څه چي د هغوى خوا ته خيال هم نه کوي نو دا ښه خبره نه ده مګر په شرعي توګه سره ډيره زياته غلطه خبره ده.

شريعت او اخلاق نه مګر يوازي عقل او دانش او د انسان د همدردي سره سم ايا دا خبره

صحيح كيداى سي چي يو سړى خو د خپل حريص هوس او ژوند په جوړيدو سره خپلي تجورۍ ډكي ناست دي، د بې اندازې مال كوټې او د سره زرو او سپينو زرو خزانې جمع كوي خو يو بل سړى د هغه په مخكي د اوربشو ډوډۍ ته هم ضرورت لري او د هغه د تجورۍ خوله نه خلاصيږي يو مسكين د لوږي څخه مري خو د هغه سره دومره همدردي نسته چي په هغه مسكين باندي ډوډۍ وخوري چي د هغه د ژوند ډيوه مړه نسي .

هو په نن سبا زمانه كي چي سوشلزم د مساوات او انساني ورورګلوۍ او همدردۍ نعرې هر وخت وهي، نه ويني چي د مال او زر بندګان د خپل خواهش لپاره د تجورۍ خوله خلاصوي د خپل دنيوي راحت لپاره د مال او زر تختې هواروي ، خو كه څوك وږي او تندي وهلى وي د هغوى په ډول انسان هغوى ته ډوډۍ او اوبه وركوي نو د هغوى تندى ورته تريب سي او د هغوى د خولې څخه د نفرت او سپكاوي الفاظ راوځي، هغوى د سخت زړه خاوندان فكر نه كوي كه معامله د دې چپه واى د هغوى جزيات او احساسات به څه واى نو د جنګ په موجوده زمانه كي د مسلمانانو لپاره نه مګر د پوره انساني همدردۍ لپاره دا ارشاد يو دعوت عمل او د نور مينار دى .

## د ملائكو دعاء د سخي لپاره

﴿۱۷۶۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅ يو ورځ داسي نه تيريږي

الْعِبَادُ فِيهِ إِلَّا مَلَكَانِ يَنْزِلَانِ فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا اللّٰهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا

چي په هغه كي سهار وختي دوې ملائكي را نازليږي چي په هغو كي يوه دا وايي اې الله ! نفقه كونكو ته د دې بدله وركړې

وَيَقُولُ الْآخَرُ اللّٰهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا . متفق عليه

او دوهمه ملائكه وايي اې الله ! د بخيل مال برباد كړې . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۴۰۳، رقم: ۱۴۴۲، ومسلم ۲\۷۰۰، رقم: ۵۷- ۱۰۱۰.

## سخاوت كوئ

﴿۱۷۶۷﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ انفقي ولا تحصي فيحصي

الله عليك و لَا تُوعِي فَيُوعِيَ اللهُ عَلَيْكِ ارْضَخِي مَا اسْتَطَعْتِ . متفق عليه

د حضرت اسماء (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نفقه كوئ او شميرل مه كوئ (ځكه كه ته په شمير وركول كوې) نو الله به يې هم په شمير دركوي او ته د فقير څخه مال مه منع كوه ګوندي الله به هم تا منع نه كړي او وركړه څومره چي طاقت دي وي . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري):۵\۲۱۷،رقم: ۲۵۹۱، ومسلم ۲\۷۱۳، رقم: ۸۸- ۱۰۲۹.

**د لغاتو حل**: (لاتُوعي): اى لاتمنعي فضل المال على الفقير (ارضخي): اى اعطي ولو شيئا يسيرا (يعني وركړه كه څه هم لږ وي).

**تشريح**: لفظ د (لا تحصى) او دا مه شميرئ د دې خو يوه معنى هغه ده كوم چي پورته ترجمه سوې ده او يوه معنى يې داده چي د مال جمع كولو لپاره يې مه شميرى او هغه د الله تعالى په لار كي په خرڅولو كي يې مه پريږده .

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادى چي ته د خپل حيثيت او قدرت سره سم څه چي خرڅ كولاى سې هغه د الله تعالى په لار كي ضرور خرڅوه كه څه هم هغه د اندازې او شمير په اعتبار هر څومره كم وي مګر هغه سپک هم مه ګڼه ځكه چي د اخلاص په نيت سره د الله تعالى په لار كي خرڅ كونكې يوه ذره د الله تعالى په نزد ډير او د عمل په ترازو كي ډېره درنه ده .

﴿۱۷۶۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ أَنْفِقْ يَا ابْنَ آدَمَ أُنْفِقْ عَلَيْكَ . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ويلي دي چي الله جل جلاله فرمايلي دي : اې انسانه ! ته نفقه كوه (په خلګو) زه به پر تا نفقه كوم . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۴۹۷، رقم: ۵۳۳۵۲، ومسلم ۲\۶۹۰- ۶۹۱، رقم: ۲۶- ۹۹۳.

**تشريح**: د الله تعالى د ارشاد مطلب دادى چي اې د آدم اولاده! ته ددې فاني دنيا مال زما په لار كي خرڅ كړه چي په اخرت كي تاته ډېر قيمتي مالونه حاصل سي .

ځيني حضراتو د دې دا معنى بيانه كړې ده چي څه چي ما تاته دركړي دي د هغه څخه يو څه ته خلكو ته وركړه چي زه تاته په دنيا او عقبى كي تر هغه څخه زيات دركړم ګويا دا دې آيت كريمه ته اشاره ده :

( وما انفقتم من شيء فهو يخالفه ) څه چي تاسو د الله تعالی د رضا لپاره خرڅوی الله تعالی تاسو ته د هغه بدله خامخا درکوي .

## د ضرورت څخه زيات مصرف

﴿۱۷۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا ابْنَ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اي

آدَمَ إِنَّكَ أَنْ تَبْذُلَ الْفَضْلَ خَيْرٌ لَكَ وَأَنْ تُمْسِكَهُ شَرٌّ لَكَ وَلَا تُلَامُ عَلَى كَفَافٍ وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ . رواه مسلم

انسانه ! څه چي ستا د خرڅ څخه زيات وي ستا لپاره د هغه خرڅ کول غوره دي او مال منع کول (ساتل) ستا لپاره بد دي په اندازه د ضرورت ساتلو باندي پر تا ملامتيا نسته تر ټولو وړاندي پر خپل کورنۍ خرڅ کوه . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۲\۷۱۸، رقم: ۹۷- ۱۰۳۶.

**تشريح**: ( ولا تلام على كفاف ) په اندازه د کفايت پر مال باندي ملامتيا نسته د دې مطلب دادی که ته دومره مال د ځان سره ساتې چي ستا د ژوند د بقاء لپاره ضروري وي په دې توگه چي د هغه په وجه ستا غذائي ضرورت پوره وي او ته د چا مخکي د سوال کولو څخه وساتل سې نو په دې کي هيڅ تاوان نسته او ظاهره ده چي د بقاء ژوند په اندازه د مال تعين د اشخاص د احوال او زمانې سره سم دی يعني د ځيني خلکو لپاره د بقاء ژوند په اندازه د مال اندازه کمه وي او د ځينو لپاره زياته څه خلک داسي وي چي هغوی واقعي د ضروريات ژوند لپاره د هغوی لږ مال پکار وي او څه خلک داسي وي چي د هغوی لپاره د زياتي اندازې ضرورت وي همداسي په ځينو ورځو کي د ژوند د بقاء لپاره کم مال پکار وي او په ځينو ورځو کي په زياته اندازه کي ضروري وي په ځينو حالاتو کي لږ مال کفايت کوي او په ځيني حالاتو کي د زيات مال ضرورت وي رسول الله ﷺ فرمايلي دي دا که يو سړی د خپل حيثيت سره سم د څه واقعي ضرورت او حاجت په اندازه مال او زر وساتي نو په دې کي هيڅ تاوان نسته .

د حديث د اخري الفاظو (وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ) مفهوم دادی چي د سخاوت او خرڅ په معامله کي خپله کورنۍ مخته کول پکار دي چي د هغوی نفقه پر خپل ځان واجب وي يعني چي د

هغوی ځخه کوم مال پاته سي بیا دي هغه نورو خلکو ته ورکړه سي په دې اندازې سره خرڅول هم ښه خبره نه ده چي خپله کورنۍ خو د دې ضرورتمند او محتاجه وي او نورو خلکو ته دي ورکړه سي.

د حدیث د اخري الفاظو ځخه خو دا معلومیږي چي دا ارشاد هم د الله تعالی ارشاد دی که څه هم په حدیث کي صراحتا ذکر نه دی سوی مگر دا احتمال هم لري چي شاید رسول الله ﷺ د خپل ارشاد لپاره دا طرز اختیار کړی وي . (والله اعلم)

## د بخیل لپاره ورکړه مشکل وي

﴿۱۷۷۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه ځخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ مَثَلُ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُنَّتَانِ مِنْ حَدِيدٍ قَدِ اضْطُرَّتْ

د بخیل او خیرات کوونکي حال د هغه دوو کسانو په ډول دئ چي د هغوی پر بدن دوې زغري وي او د هغې زغرې د تنگۍ له کبله

أَيْدِيهِمَا إِلَى ثُدِيِّهِمَا وَتَرَاقِيهِمَا فَجَعَلَ الْمُتَصَدِّقُ كُلَّمَا تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ

د هغوی دواړه لاسونه د سینې او غاړې سره موښتي وي هر کله چي صدقه ورکوونکی د صدقې ورکولو اراده وکړي

انْبَسَطَتْ عَنْهُ وَجَعَلَ الْبَخِيلُ كُلَّمَا هَمَّ بِصَدَقَةٍ قَلَصَتْ وَأَخَذَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ بِمَكَانِهَا . متفق عليه .

نو د هغه زغره خلاصه سي او هر کله چي بخیل د صدقې ورکولو اراده وکړي نو د زغري کړه نوري تنگي سي . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳۰۵\۳، رقم: ۱۴۴۳ ومسلم ۷۰۸\۲، رقم: ۷۵-۱۰۲۱.

**د لغاتو حل**: (جنتان من حدید): ای وقایتان (پوښونه).

**تشریح**: د دې ارشاد مطلب دادی چي سخي انسان چي کله د الله تعالی د رضا لپاره د خپل مال د خرڅولو قصد کوي نو د هغه صادقي جذبې په وجه د هغه سینه پراخه کیږي او د هغه لاس د

هغه د زړه او احساساتو تابع سي په دې توګه چي هغه مال د خرڅولو لپاره لاس اوږده وي د دې پر خلاف په داسي وختونو کي د انسان سینه تنګه سي او د هغه لاس را ټول سي.

د دې مثال رسول الله ﷺ دا ورکړی دی چي کله سخي انسان د خیر او ښېګڼې اراده کوي نو د الله تعالی توفیق د هغه شاهد رسول الله ﷺ وي په دې توګه چي د هغه لپاره د خیر او ښېګڼې نیکه لار اسانه کیږي او د بخیل لپاره د نیکۍ او خیر لاره نوره هم سخته سي.

## د بخل تاوان

﴿۱۷۷۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّقُوا الظُّلْمَ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د ظلم څخه ځان وژغورئ

فَإِنَّ الظُّلْمَ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَاتَّقُوا الشُّحَّ فَإِنَّ الشُّحَّ أَهْلَكَ مَنْ كَانَ

ځکه چي ظلم به د قیامت په ورځ تاریکي وي او د بخل څخه ځان ژغورئ ځکه چي بخل هلاک کړي دي هغه خلک

قَبْلَكُمْ حَمَلَهُمْ عَلَى أَنْ سَفَكُوا دِمَاءَهُمْ وَاسْتَحَلُّوا مَحَارِمَهُمْ . رواه مسلم

کوم چي ستاسو څخه وړاندي وه، بخل هغوی په دې اماده کړي وه چي هغوی وژني وکړي او حرام حلال وګڼي.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\۱۹۹۶، رقم: ۵۶- ۲۵۷۸.

**تشریح**: د ظلم اصلي مفهوم دادی چي یو شی په خپل ځای کي نه استعمالول مثلاً د انسان د تخلیق مقصد دادی د الله تعالی عبادت او اطاعت کول او پر نیکه لار باندي تلل اوس که د انسان نفس اماره د هغه تخلیق د هغوی د مقصد څخه په لیري کولو سره د الله تعالی څخه د بغاوت سرکشي او پر بدي لاري بوځي نو دې ته به ظلم ویل کیږي نو د ظلم مفهوم په ټولو ګناهونو کي ګډ دی یعني څوک چي ګنهکار وي هغه ته به ظالم ویل کیږي.

ظلم به د تاریکۍ په شکل کي وي په دې باره کي علامه طیبي رحمة الله علیه فرمائي دا جمله پر خپلي ظاهري معنی باندي محموله ده یعني د قیامت په ورځ به ظلم د ګناه کار مخکي د تیارو په صورت کي وي چي په هغه کي به ظالم سرګردان ګرځي او د هغه په وجه به د نجات لار نه تر لاسه کوي څرنګه چي د مومن صالح په باره کي نقل دي چي هغه به د قیامت په ورځ د خلاصون لار

داسي ترلاسه کوي چي د هغوی تولو د سعادت او نیک بختي نور به د هغوی مخ ته مخ ته زغلي چي د هغه په رڼا کي به د جنت د همیشه نیک بختیو لار د هغوی مخکي وي او هغوی به پر هغه په اطمینان او آساني سره په تلو سره د خپل رب رضا او رحمت تر لاسه کوي.

یا دا هم احتمال دی چي د تیارو څخه د قیامت د ورځي سختي مراد ده یعني دا ظالمان به د قیامت په ورځ په ډیرو سختو عذابو کي اخته وي. د بخل څخه د ځان ساتلو ځکه فرمایل سوي دي چي بخل نه یوازي دا چي د ظلم یو قسم دی بلکه د ظلم یو ډېر لوی قسم دی نو دا وجه ده چي د ظلم څخه د ځان ساتلو د یو عمومي فرمان وروسته په یو خاص ډول (د بخله څخه د ځان ساتلو) تائید فرمایل سوی دی.

بخل د ویني تویولو او حرام او حلال باعث ښودل سوی دی ځکه چي خپل مال او زر د نورو د راحت لپاره خرڅول او همداسي د خپلو مسلمانانو ورونو خیر خواهي په حقیقت کي د محبت ذریعه ده چي د هغه په اخري نتیجه کي په خپلو کي دښمني ده او دا بالکل ظاهره خبره ده چي کله د یو بل سره دښمني سي نو بیا وینه تویول هم کیږي د دې دښمنۍ یو دوهم اړخ حرامي خبري مباح او حلال ګڼل هم دي ځکه چي کوم سړی هم وي هغه د دښمني د جذباتو څخه په متاثره کیدو سره خپل دښمن ښځي د هغه مال او زر او د هغه ابرو بې عزتي او داسي نور حلال ګڼي ځکه چي چیري یو خوا ته بخل د خونریزي سبب ښودل سوی دی همداسي دویمي خوا ته هغه حرام د حلال ګڼلو باعث هم فرمایل سوی دی.

## تولنیزه اړتیا

﴿۱۷۷۲﴾: وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ تَصَدَّقُوا فَإِنَّهُ

د حضرت حارثة بن وهب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خیرات کوئ ځکه

يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ يَمْشِي الرَّجُلُ بِصَدَقَتِهِ فَلَا يَجِدُ مَنْ يَقْبَلُهَا يَقُولُ الرَّجُلُ

یوه داسي زمانه به راسي چي خلک به خیرات په لاس کي ګرځوي او څوک قبلوونکی به نه وي او هر سړی به دا ورته وایي

لَوْ جِئْتَ بِهَا بِالْأَمْسِ لَقَبِلْتُهَا فَأَمَّا الْيَوْمَ فَلَا حَاجَةَ لِي بِهَا. متفق عليه

که تا پرون راوړی وای نو ما به اخیستی وای نن ما ته ضرورت نسته. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۲۸۱، رقم: ۱۴۱۱، ومسلم ۲\ ۷۰۰، رقم: ۵۸- ۱۰۱۱.

**تشريح:** د الله تعالى د رضا لپاره خپل مال خرڅوئ: د دې مطلب دادى چې دا وخت د الله تعالى په لار كې خپل مال خرڅول غنيمت او په خپل حق كې باعث سعادت وګڼې ځكه چې بيا به د صدقې مال قبلونكى څوک سړى نه تر لاسه كوې ځكه چې يا خو به هغه وخت ټول خلک مالداره وي يا دا چې د دنيا څخه په بې رغبتۍ او د آخرت خوا ته د ميلان او رغبت په وجه د هغوى زړونه به غني او بې پرواه وي علماء ليكي دا هم د هغې زمانې خوا ته اشاره ده كله چې دا فاني دنيا به د خپل علم اخري حدونو ته رسيدلې وي او حضرت امام مهدي عليه السلام به په دې عالم كې تشريف فرمايي.

## د صدقې غوره وخت

﴿۱۷۷۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وكړ چې

الصَّدَقَةِ أَعْظَمُ أَجْرًا قَالَ أَنْ تَصَدَّقَ وَأَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ تَخْشَى الْفَقْرَ

د كومې صدقې ثواب زيات دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: په داسې حال كې خيرات كول چې روغ يې، د مال يو ځاى كولو غوښتنه او حرص لرې د مفلسۍ څخه ويريږې

وَتَأْمُلُ الْغِنَى وَلَا تُمْهِلُ حَتَّى إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ قُلْتَ لِفُلَانٍ كَذَا وَلِفُلَانٍ كَذَا وَقَدْ كَانَ لِفُلَانٍ. متفق عليه

او د شتمنۍ اميد لرې نو په صدقه وركولو او خيرات كولو كې سستي مه كوه تر څو چې ستا ساه حلق ته راورسيږي نو بيا ته دا ووايې چې دومره مال د فلاني لپاره دئ او دومره مال د فلاني لپاره حال دا چې ته په دې پوهيږې چې مال د فلاني دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۸۴، ۲۸۵، رقم: ۱۴۱۹، ومسلم ۲\۷۱۶، رقم: ۹۲- ۱۰۳۲.

**تشريح:** مطلب دادى چې افضله او د ډير زيات د ثواب باعث هغه صدقه ده چې په ژوند كې په هغه زمانه كې ادا سي كله چې صحت او روغتيا ملګري وي ځكه چې د ژوند په هغه حصه كې د عمر د اوږدوالي اميد د مال د جمع كولو د حوص باعث وي صحت مند او تندرست انسان نه يوازې دا چې د جنګ په ميدان كې د مخكې كيدو كوشش كوي مګر د هغه جبلت طبعي د بخل خوا ته مائله وي د دننه پټ شيطان هغه د فقراو محتاجې څخه بيروي او د هغه په زړه كې دا

وسوسه او خيال ور پيدا کوي چي د الله تعالی په لار کي د خپل مال خرڅولو په وجه چيري مفلس نسم او د زيات دولت حاصلولو خواهش ډير واره د حرص او هوس تکل اختياروی نو د ژوند په دې حصه کي د الله تعالی د رضا لپاره مال خرڅول په حقيقت کي د نيک بختي او سعادت معراج دی.

د حديث د اخرۍ جملې ( ولا تمهل .......الخ ) مطلب دادی چي په صدقه ورکولو او خيرات کولو کي زنډ، سستي او غفلت مه کوه چي کله ژوند پر ختميدو سي ساه حلق ته راسي نو بيا وائي دومره مال د فلاني سړي لپاره دی او دومره مال د فلاني لپاره دی حال دا چي هغه وخت هغه مال د وارثانو دی په دې توګه چي د وارثانو حق متعلق سي.

په هر حال د دې ارشاد رسول الله ﷺ وضاحت داسي کړی دی چي د صحت او روغتيا په حالت کي خپل مال د الله تعالی په لار کي خرڅول د لوی فضيلت او ثواب خبره ده خو کله چي د مرګ وخت راسي نو هغه وخت د خپل مال په نيکو کارونو کي د خرڅولو وصيت کوي هغه وخت د الله تعالی په لار کي خرڅول د زيات ثواب باعث نه دي.

## بخل د تاوان سبب دئ

﴿۱۷۷۴﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍ قَالَ انْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ فَلَمَّا رَآنِي قَالَ هُمُ الْأَخْسَرُونَ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ فَقُلْتُ فِدَاكَ أَبِي

رسول الله ﷺ د کعبې شريفې په سايه کي ناست وو چي زه يې وليدم نو وه يې فرمايل: د کعبې په پروردګار دي مي قسم وي! هغه خلک په لوی تاوان کي دي، ما عرض وکړ اې د الله رسوله!

وَأُمِّي مَنْ هُمْ قَالَ هُمُ الْأَكْثَرُونَ أَمْوَالًا إِلَّا مَنْ قَالَ هٰكَذَا وَهٰكَذَا

زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي هغه کوم خلک دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ډير مال يو ځای کوونکی، خو (هغه خلک مستثنی دي) چي هغوی آخوا د ښخوا او دې طرف ته يعني

مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ وَعَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ وَقَلِيلٌ مَا هُمْ . متفق عليه

خپل وړاندي او وروسته او راسته چپه لور ته خرڅ وکړ او داسي خلک کم دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۵۲۴، رقم: ۶۶۳۸، ومسلم ۲\ ۶۸۶، رقم: ۳۰- ۹۹۰.

**تشریح**: ابوذرغفاري رضي الله عنه فقر او مفلسي د خپل ژوند امتیاز جوړ کړی وو ، او همداسي هغه دنیا او د دنیا د آسائشونو څخه مخ په کرځولو سره غناء ، مفلسی او فقر ته ترجیح ورکړې وه ځکه رسول الله ﷺ د هغوی د تسلي او اطمینان قلب د خاطره دا حدیث ارشاد وفرمایه، ګویا په دې ارشاد کي د دنیا څخه بې شوقي او د فقر فضیلت ته اشاره ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۷۷۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّخِيُّ

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : سخي

قَرِيبٌ مِنْ اللهِ قَرِيبٌ مِنْ الْجَنَّةِ قَرِيبٌ مِنْ النَّاسِ بَعِيدٌ مِنْ النَّارِ وَالْبَخِيلُ

نژدې دئ د الله جل جلاله رحمت ته، نژدې دئ جنت ته او نژدې دئ خلکو ته (یعني ټول يې خوښوي) او لیري دئ د دوږخ څخه، او بخیل سړی

بَعِيدٌ مِنْ اللهِ بَعِيدٌ مِنْ الْجَنَّةِ بَعِيدٌ مِنْ النَّاسِ قَرِيبٌ مِنْ النَّارِ وَلَجَاهِلٌ

لیري دئ د الله د رحمت څخه، لیري دئ د جنت څخه، لیري دئ د خلکو څخه او نژدې دئ دوږخ ته او جاهل

سَخِيٌّ أَحَبُّ إِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ عَابِدٍ بَخِيلٍ . رواه الترمذي .

سخي د الله جل جلاله په نزد تر بخیل عابد غوره دئ . ترمذي .

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۰۲، رقم: ۱۹۶۱.

**تشریح**: د جاهل سخي څخه د عابد ضد یعني هغه سخي مراد دی چي فرائض خو کوي خو د نوافلو پابندي نه کوي همداسي د عابد بخیل څخه مراد هغه بخیل دی چي نوافل ډیر زیات ادا کوي که څه هم هغه عالم وي یا عالم نه وي .

### په ژوند کي خیرات کوئ

﴿۱۷۷۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنْ

د حضرت ابوسعید رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَتَصَدَّقَ الْمَرْءُ فِي حَيَاتِهِ بِدِرْهَمٍ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ عِنْدَ مَوْتِهِ . رواه ابوداؤد .

د انسان د خپل روغتيا په ورځو کي يوه روپي خيرات کول د مرګ په وخت کي تر سلو روپو خيرات کولو غوره دئ . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۲۸۸، رقم: ۲۸٦٦.

**تشريح**: مطلب دادی چي د صحت او روغتيا په حالت کي خپل مال په کم شمير او کم مقدار کي د الله تعالی په لار کي خرڅول د مرګ پر وخت د ډير زيات مال خرڅولو څخه بهتر دي او د دې په مقابله کي د ډير زيات ثواب باعث وي .

## د مرګ په وخت کي د خيرات کونکي مثال

﴿۱۷۷۷﴾: وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ

د حضرت ابو درداء ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مثال

الَّذِيْ يَتَصَدَّقُ عِنْدَ مَوْتِهِ اَوْ يَعْتِقُ كَالَّذِيْ يُهْدِيْ اِذَا شَبِعَ . رواه احمد والنسائي والدارمي والترمذي و صححه .

د هغه چا چي د مرګ په وخت کي خيرات وکړي يا غلام آزاد کړي داسي دئ لکه څوک چي چا ته د تحفې په توګه هغه وخت ډوډۍ ولېږي چي په خپله موړ سي ، احمد ، نسائي ، دارمي ، ترمذي ، او هغه ددې تصحيح وکړ .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\ ٤٤٨، والنسائي ٦\ ۲۳۸، رقم: ۳٦۱٦، والدارمي ۲\ ۵۰۵، رقم: ۳۲۲٦، والترمذي ۴\ ۳۷۸، رقم: ۲۱۲۳.

**تشريح**: د دې ارشاد مفهوم دادی چي د مرګ پر وخت د الله تعالی په لار کي خپل مال خرڅول يا غلام ازادول د کم ثواب باعث دي ځکه چي يو ضرورتمند ته داسي وخت ډوډۍ ورکول د کم ثواب باعث دی کله چي د هغه نس ډک سوی وي ځکه چي يو سړي ته د هغه د لوږي په حالت کي ډوډۍ خوړل يا د هغه سره سخاوت کول افضل او د زيات ثواب باعث دي همداسي د صحت او روغتيا په حالت کي مال د الله تعالی په رضا کي خرڅول يا غلام ازادول زيات افضل

او د زيات ثواب باعث دي.

## ايمان او بخل يو د بل ضد دي

﴿۱۷۷۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ الْبُخْلُ وَسُوْءُ الْخُلُقِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په مؤمن کي دوه عادته نه سي يو ځای کيدلای يو بخل او بل بد اخلاقي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۰۲، رقم: ۱۹۶۲.

**تشريح**: د دې ارشاد مطلب دادی چي دا مناسب او لائق نه دی چي په کامل مؤمن کي دا دواړه خراب خصلتونه جمع سي يا مراد دادی چي په يو مومن کامل کي دا دواړه خراب خصلتونه د دې درجې نه ذي چي هغه کله د دې څخه جلا نسي او د هغه په موجودتيا کي مطمئن او راضي وي هو که د بشريت په تقاضا يو کامل مؤمن بد خلقي وکړي يا په هغه کي بخل پيدا سي بيا وروسته هغه ته پښيماني او شرمندګي وي او د هغه په وجه هغه پښيمانه سي او خپل نفس ملامت کړي نو دا د کمال ايمان خلاف نه دی.

خلق پر هغو کارو باندي د عمل کولو نوم دی د کوم چي شريعت تعليم ورکړی دی، خلق يا اخلاق نورو ته په کښنته کيدو سره او په ورين تندي سره د مخامخ کېدو يا په ټولو معاملو کي د نرمي کولو نوم نه دی څرنګه چي په عامو خلکو کي مشهوره وه ځکه چي په ځيني کارونو کي سختي اختيارول د ايمان تقاضا ده دلته په حديث کي د ذکر سوي بد اخلاقۍ څخه مراد د هغه کارونو خلاف ورزي کول دي چي د هغه اسلام تعليم ورکړی دی.

## درې کسان به جنت ته ولاړ نه سي

﴿۱۷۷۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ خِبٌّ وَلَا مَنَّانٌ وَلَا بَخِيْلٌ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چمباز او بخيل به جنت ته ولاړ نه سي او نه هغه څوک چي په احسان اچولو سره خيرات کوي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۰۲-۳۰۳، رقم: ۱۹۶۳.

**د لغاتو حل:** (خب): (ای خداع یفسد بین الناس) (چمباز).

**تشریح:** مطلب دادی چي دا درې سره به په جنت کي اولني ببله عذاب څخه نه داخليږي مگر دوی به د خپل خپل جرم سزا ترلاسه کوي نو د عذاب وروسته به په جنت کي داخليږي.
د بخيل څخه مراد هغه سړی دی چي د خپل مال څخه واجب حق نه ادا کوي د منان یوه معنی خو هغه ده کومه چي په ترجمه کي ذکر کړه سوې ده د دې دوهمه معنی د پريکونکي ده يعني هغه سړی چي د خپلو خپلوانو او قريبانو سره تعلقات پرېږدي او د مسلمانانو سره د محبت معامله نه کوي.

## دوه خراب عادتونه

﴿۱۷۸۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرُّ مَا

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

فِيْ رَجُلٍ شُحٌّ هَالِعٌ وَجُبْنٌ خَالِعٌ. ابوداؤد، و سنذكر حديث ابي هريرة لا يجتمع الشح والايمان في كتاب الجهاد ان شاء الله تعالى.

د انسان په عادتونو کي دوه ډير خراب عادتونه دي يو خو ډير زيات بخل او بل ډيره بيره، ابوداؤد، او ډير ژر به انشاء الله د ابوهريرة حديث چي د (بخيل او ايمان نه سي يو ځای کيدلای) په کتاب الجهاد کي بيان کړل سي

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۳\۲۶– ۲۷، رقم: ۲۵۱۱.

**د لغاتو حل:** (الهلع): اشد الجزع والضجر، و خالع اي شديد كانه يخلع فؤاده من شدة خوفه. (ډېره بېره)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د الله ﷻ په لاره کي د مصرفولو فضيلت

﴿۱۷۸۱﴾: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ بَعْضَ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَ لِلنَّبِيِّ

د حضرت عائشي رضی الله عنها څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ ځينو بيبيانو رسول الله ﷺ ته وويل:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّنَا أَسْرَعُ بِكَ لُحُوقًا قَالَ أَطْوَلُكُنَّ يَدًا فَأَخَذُوا قَصَبَةً

په موږ کي به څوک ستاسو سره ژر يو ځای کيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي د چا لاس تر ټولو لوی وي، د دې په اوريدو سره بيبيانو لرګي راواخيستل

يَذْرَعُونَهَا فَكَانَتْ سَوْدَةُ أَطْوَلَهُنَّ يَدًا فَعَلِمْنَا بَعْدُ أَنَّمَا كَانَتْ طُولَ يَدِهَا

او په هغه سره يې خپل لاسونه اندازه کول پيل کړل، د بي بي سودې (رض) لاسونه اوږده وختل، مګر وروسته موږ ته څرګنده سوه چي د اوږدو لاسو څخه د رسول الله ﷺ مراد

الصَّدَقَةُ وَكَانَتْ أَسْرَعَنَا لُحُوقًا بِهِ زَيْنَبُ وَكَانَتْ تُحِبُّ الصَّدَقَةَ، رواه البخاري

صدقه او خيرات کول وه نو په موږ ټولو کي وړاندي بي بي زينب وفات سوه چي ډير خيراتونه به يې کول، بخاري شريف

و في رواية مسلم قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْرَعُكُنَّ لَحَاقًا بِي

او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي بي بي عائشې ﷺ وويل: رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي زما سره ژر يو ځای کېدونکې

أَطْوَلُكُنَّ يَدًا قَالَتْ فَكُنَّ يَتَطَاوَلْنَ أَيَّتُهُنَّ أَطْوَلُ يَدًا قَالَتْ فَكَانَتْ أَطْوَلَنَا يَدًا

اوږدو لاسو والا ده، بي بي عائشة ﷺ وايي چي بيبيانو خپل لاسونه اندازه کول پيل کړل چي د چا لاسونه اوږده دي نو په موږ کي

زَيْنَبُ لِأَنَّهَا كَانَتْ تَعْمَلُ بِيَدِهَا وَتَصَدَّقُ.

د بي بي زينب لاسونه اوږده وه ځکه چي هغې به په خپل لاسو سره ټول کارونه او خيرات کوئ.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۸۵، رقم: ۱۴۲۰، ومسلم ۴\۱۹۰۷، رقم: ۱۰۱- ۲۴۵۲.

**تشريح**: (فعلمنا) خو وروسته موږ ته معلومه سوه: د دې مطلب دادی کوم وخت چي رسول الله ﷺ دا ارشاد وفرمايه نو موږ د لاس اوږدوالی د دې پر ظاهري معنی باندي محمول کی چي واقعتا د چا لاس تر ټولو اوږد وي هغه به ژر د رسول الله ﷺ سره ملاقات کوي نو معلومه سوه چي د لاس د اوږدوالي څخه مراد د صدقه او خيرات کثرت وو ګويا د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي د تر ټولو اوږدو لاسو والا هغه دی چي تر ټولو زيات خيرات او صدقه کوي.

د بي بي زينب رضي الله عنها په باره کي نقل دي چي هغې به په خپل لاس سره د پوست د

پخولو کار کوی بیا به یې هغه خرڅوی او کوم قیمت چې به ورته رسول الله ﷺ ایښودی هغه به یې د الله تعالی د رضا لپاره د الله تعالی په لاره کې خرڅوی.

## د بني اسرائیلو واقعه

﴿۱۷۸۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په بني اسرائیلو کې یو سړي وویل:

لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ سَارِقٍ فَأَصْبَحُوا

زه نن (شپه) یو خیرات کوم، هغه مال واخیستئ روان سو او (په تیاره کې) یو غله ته یې ورکړئ کله چې سهار سو نو

يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ عَلَى سَارِقٍ فَقَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ

په خلکو کې اوازه سوه چې نن (شپه) غله ته خیرات ورکړل سوئ دئ هغه سړي چې دا واوریدل نو وه یې فرمایل: اې الله! غله ته په صدقه ورکولو تا لره تعریف دئ، ددې وروسته هغه وویل: نن به زه بیا خیرات کوم،

فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدَيْ زَانِيَةٍ فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ

نو هغه مال واخیستئ او ووتی او یوې زنا کارې ښځې ته یې خیرات ورکړئ کله چې سهار سو نو په خلکو کې اوازه سوه چې د شپې

عَلَى زَانِيَةٍ فَقَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى زَانِيَةٍ لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ فَخَرَجَ

زنا کارې ښځې ته صدقه ورکړل سوې ده، هغه سړي چې دا واوریدل نو وه یې ویل: اې الله! زنا کارې ته په صدقه ورکولو تا لره تعریف دئ، ددې وروسته هغه وویل: نن به زه بیا خیرات کوم نو هغه د مال سره ووتئ

بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدَيْ غَنِيٍّ فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ عَلَى غَنِيٍّ فَقَالَ

او یو شتمن سړي ته یې خیرات ورکړ کله چې سهار سو نو په خلکو کې اوازه سوه چې د شپې

شتمن سړي ته صدقه ورکړل سوې ده ، هغه سړي چې دا واوريدل نو وه يې ويل :

اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ وَعَلَى زَانِيَةٍ وَعَلَى غَنِيٍّ فَأُتِيَ فَقِيلَ لَهُ أَمَّا صَدَقَتُكَ

اې الله ! غله ته ، زناکارې ته او شتمن ته په صدقه ورکولو باندې تالره تعريف دئ ، نو هغه ته په خوب کي وښودل سول او ورته وويل سول چې : کومه صدقه چي تا

عَلَى سَارِقٍ فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعِفَّ عَنْ سَرِقَتِهِ وَأَمَّا الزَّانِيَةُ فَلَعَلَّهَا أَنْ تَسْتَعِفَّ

غله ته ورکړې ده کيدای سي چې دا يې د غلا څخه منعه کړي او کومه صدقه چي تا زناکارې ته ورکړې ده کيدای سي چې هغه د زنا څخه منعه کړي

عَنْ زِنَاهَا وَأَمَّا الْغَنِيُّ فَلَعَلَّهُ يَعْتَبِرُ فَيُنْفِقُ مِمَّا أَعْطَاهُ اللّٰهُ . متفق عليه و لفظه للبخاري .

او کومه صدقه چي تا شتمن ته ورکړې ده کيدای سي چي د هغه لپاره نصيحت او عبرت سي او څه چي الله تعالى هغه ته ورکړي دي د هغه څخه نفقه وکړي . بخاري او مسلم مگر دا الفاظ د بخاري دي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۹۰، رقم: ۱۴۲۱، ومسلم ۲\۷۰۹، رقم: ۷۸ – ۱۰۲۲.

**تشريح**: صدقه ورکوونکي د الله تعالى تعريف د شکر په توګه وکړ چي د الله تعالى شکر دی چي ما صدقه خو ورکړه که څه هم غير مستحقين ته په لاس ورغلل او يا د تعجب په توګه د زړه د اطمينان لپاره هغه د الله تعالى تعريف وکړی .

په هر حال رسول الله ﷺ د بني اسرائيلو د هغه سړي واقعه ځکه بيان کړه چي معلومه سي چې د الله تعالى د رضا لپاره صدقه او خيرات په هر صورت غوره او د ثواب باعث دی، څوک چي صدقه ورکړي ضرور به ثواب تر لاسه کوي .

### د الله جل جلاله په لاره کي د مصرف کولو برکت

﴿۱۷۸۳﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا رَجُلٌ بِفَلَاةٍ مِنَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو سړی په ځنګل کي ولاړ وو .

الْأَرْضِ فَسَمِعَ صَوْتًا فِي سَحَابَةٍ اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ فَتَنَحَّى ذَلِكَ السَّحَابُ

هغه د وريځي څخه آواز واوريدئ چي د فلاني سړي باغ اوبه کړه بيا هغه وريځ يوې خوا ته ولاړه

فَأَفْرَغَ مَاءَهُ فِي حَرَّةٍ فَإِذَا شَرْجَةٌ مِنْ تِلْكَ الشِّرَاجِ قَدْ اسْتَوْعَبَتْ ذَلِكَ الْمَاءَ

او پريو د برني مځکي باندي يې باران واوروئ او هغه اوبه په کوچني نالیو کي یو ځای سوې

كُلَّهُ فَتَتَبَّعَ الْمَاءَ فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ فِي حَدِيقَتِهِ يُحَوِّلُ الْمَاءَ بِمِسْحَاتِهِ فَقَالَ لَهُ

او لويه ويا له ځيني جوړه سوه او پر مخ ولاړې هغه سړي ددې څرګندولو لپاره چي دا اوبه چيري ځي د اوبو سره روان سو ناڅاپه هغه يو سړی وليدی چي په خپل بېلچې سره آخوا دېخوا اوبه خپروي، پوښتنه ځيني وسول چي

يَا عَبْدَ اللَّهِ مَا اسْمُكَ قَالَ فُلَانٌ لِلِاسْمِ الَّذِي سَمِعَ فِي السَّحَابَةِ فَقَالَ لَهُ يَا

اې د الله بنده ! ستا نوم څه شي دئ ؟ هغه ورته وويل زما نوم فلانی دئ (يعني هغه نوم يې ور وښودئ کوم چي وريځي ته ويل سوئ وو)، بيا د هغه څخه پوښتنه وسول اې د الله بنده !

عَبْدَ اللَّهِ لِمَ تَسْأَلُنِي عَنْ اسْمِي فَقَالَ إِنِّي سَمِعْتُ صَوْتًا فِي السَّحَابِ الَّذِي

تا زما د نوم څنګه پوښتنه وکړه ؟ هغه سړي ورته وويل : ما ددې وريځي څخه چي دا د هغې اوبه دي دا آواز واوريدئ

هَذَا مَاؤُهُ وَيَقُولُ اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ لِاسْمِكَ فَمَا تَصْنَعُ فِيهَا قَالَ أَمَّا إِذْ قُلْتَ

چي د فلاني سړي باغ اوبه کړه، نو ته دا راته ووايه چي ته په خپل باغ کي د نيکی کوم کار کوې؟ هغه ورته وويل : هر کله چي تا دا پوښتنه وکړه نو زه يې در ښيم

هَذَا فَإِنِّي أَنْظُرُ إِلَى مَا يَخْرُجُ مِنْهَا فَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثِهِ وَآكُلُ أَنَا وَعِيَالِي ثُلُثًا وَأَرُدُّ فِيهَا ثُلُثَهُ . رواه مسلم .

څه چي زما په باغ کي په لاس راځي د هغې دريمه برخه خيراتوم او دريمه برخه خپل کورنۍ باندي خرڅوم او دريمه برخه په باغ کي لګوم . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۲۸۸ ، رقم: ۴۵- ۲۹۸۴.

**تشريح**: که څه هم د وريځي اواز د باغ والا نوم صراحة اخستى وو څرنګه چي وروسته ذکر هم سوه خو رسول الله ﷺ دا واقعه په اوريدو سره په شروع کي صراحة د هغه نوم وانه خستى مګر د لفظ فلان سره يې د هغه نوم کناية ذکر کی.

همداسي د وريځي اواز اوريدونکي سړي هم د وريځي څخه د باغ والا نوم صراحة اوريدلى وو بيا هغه د باغ والا څخه د هغه نوم ځکه وپوښتى چي هغه ته يقين وسي چي بيشکه دا هغه سړى دى چي د هغه نوم د وريځي اواز اخستى وو کوم وخت چي باغ والا د هغه نوم د پوښتلو سبب وپوښتى نو هغه د وريځي اواز په نقلولو سره هم د هغه نوم يې وانه خستى بلکه لفظ فلان يې ووايه ګويا هغه ظاهره کړه که څه هم د وريځي اواز ستا نوم صراحة اخستى وو خو زه دا وخت ستا د خاص نامه په ځاى فلان لفظ ذکر کوم، حاصل دادى چي غيبي اواز د باغ د مالک نوم ښکار ذکر کړى وو مګر اوريدونکي هغه نوم د فلان په لفظ سره کفاية تعبير کړ او هغه ته يې وويل چي ستا نوم ما واوريدى مګر هغه مي اوس په فلان سره تعبير کړ.

## د بني اسرائيلو د دروکسانو قصه

﴿۱۷۸۴﴾: وَعَنْهُ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ ثَلَاثَةً فِي

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي په بني اسرائيلو کي درې کسان وه چي

بَنِي إِسْرَائِيلَ أَبْرَصَ وَأَقْرَعَ وَأَعْمَى فَأَرَادَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَبْتَلِيَهُمْ فَبَعَثَ

يو پيس (د جزام په ناروغى اخته) دوهم پک او دريم روند وو، الله تعالى د هغوى ازموينه اخيستل وغوښتل، هغوى ته يې راوليږل

إِلَيْهِمْ مَلَكًا فَأَتَى الْأَبْرَصَ فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ لَوْنٌ حَسَنٌ وَجِلْدٌ

يوه ملائکه، تر ټولو وړاندي جزامي ته راغلل پوښتنه يې ځيني وکړه ستا تر ټولو زيات کوم شى خوښ دئ؟ هغه وويل ښکلى رنګ او

حَسَنٌ قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ قَالَ فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ عَنْهُ فَأُعْطِيَ لَوْنًا حَسَنًا

ښکلى پوست او د بدن څخه د دې ناروغى ليري کيدل چي د دې له کبله خلک زما څخه نفرت کوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: ملائکي چي دا واوريدل نو د هغه پر بدن يې لاس تير کړ او د هغه ناروغي

ختمه سوه، او پوستې ښکلي او پاک سو،

وَجِلْدًا حَسَنًا فَقَالَ أَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الإِبِلُ أَوْ قَالَ الْبَقَرُ هُوَ شَكَّ فِي

ددې وروسته ملائکي ورته وويل ستا کوم ډول مال خوښ دئ؟ هغه وويل اوښان يا غواوي، (ددې حديث راوي ته شک دئ چي هغه اوښان وويل که غواوي)

ذَلِكَ إِنَّ الأَبْرَصَ وَالأَقْرَعَ قَالَ أَحَدُهُمَا الإِبِلُ وَقَالَ الآخَرُ الْبَقَرُ فَأُعْطِيَ

په جزامي او پک دواړو کي يوه اوښان وښودل او بل غواوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه د غوښتني سره سم هغه ته بلاربي اوښي ورکړل سوې

نَاقَةً عُشَرَاءَ فَقَالَ يُبَارَكُ لَكَ فِيهَا وَأَتَى الأَقْرَعَ فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ

او ملائکي دعاء ورته وکړه چي الله دي ستا لپاره په دې کي برکت واچوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: ددې وروسته ملائکه هغه پک سړي ته راغلل او پوښتنه يې ځيني وکړه چي ستا کوم شی خوښ دئ؟

قَالَ شَعَرٌ حَسَنٌ وَيَذْهَبُ عَنِّي هَذَا قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ قَالَ فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ

هغه ورته وويل: ښکلي وروېښتان او ددې ناروغی ليري کېدل، چي ددې له کبله خلک زما څخه نفرت کوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: ملائکي د هغه پر سر لاس تير کړ

وَأُعْطِيَ شَعَرًا حَسَنًا قَالَ فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الْبَقَرُ قَالَ فَأَعْطَاهُ بَقَرَةً

او د هغه پکتوب ختم سو او ښکلي وروېښتان ورکړل سول، بيا ملائکي پوښتنه وکړه ستا کوم مال خوښ دئ؟ هغه ورته وويل غواوي، نو هغه ته بلاربي غواوي ورکړل سوې

حَامِلًا وَقَالَ يُبَارَكُ لَكَ فِيهَا وَأَتَى الأَعْمَى فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ

او ملائکي دعاء ورته وکړه چي الله تعالی دي ستا په دې مال کي برکت واچوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: ددې وروسته ملائکه هغه ړوند سړي ته راغلل او پوښتنه يې ځيني وکړه چي ستا کوم شی خوښ دئ؟ هغه وويل:

يَرُدُّ اللَّهُ إِلَيَّ بَصَرِي فَأُبْصِرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ فَمَسَحَهُ فَرَدَّ اللَّهُ إِلَيْهِ بَصَرَهُ قَالَ

یوازي دا چي الله تعالی مي ړوند والی ختم کړي چي په سترګو سره خلک ووینم ، رسول الله ﷺ وفرمایل : ملائکي د هغه پر سترګو لاس تیر کړ نو الله تعالی هغه بنا (لیدونکی) کړ ، بیا ملائکي پوښتنه وکړه چي

فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الْغَنَمُ فَأَعْطَاهُ شَاةً وَالِدًا فَأُنْتِجَ هٰذَانِ وَوَلَّدَ هٰذَا

ستا کوم ډول مال خوښ دئ ؟ هغه ووېل : پسونه، نو هغه ته ډيري ميږي ورکړل سوې ، د درو سره په مال کي الله تعالی برکت واچوئ د جزامي او پک د اوښانو او غواوو څخه ځنګل ډک سو

فَكَانَ لِهٰذَا وَادٍ مِنْ إِبِلٍ وَلِهٰذَا وَادٍ مِنْ بَقَرٍ وَلِهٰذَا وَادٍ مِنْ غَنَمٍ ثُمَّ إِنَّهُ أَتَى

او د ړانده لپاره یوه شیله د پسو ، نبي کریم ﷺ وفرمایل : ددې وروسته ملائکه

الْأَبْرَصَ فِي صُورَتِهِ وَهَيْئَتِهِ فَقَالَ رَجُلٌ مِسْكِينٌ قَدِ انْقَطَعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي

په خپل اصلي شکل کي چي وړاندي راغلې وه جزامي ته راغلل او ورته وه يې ويل زه يو مسکين سړی یم د سفر سامان نه لرم

سَفَرِي فَلَا بَلَاغَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ أَسْأَلُكَ بِالَّذِي أَعْطَاكَ اللَّوْنَ الْحَسَنَ

نن ورځ زه نسم کولای چي ورسیږم اول د الله تعالی مهرباني او بیا ستا سبب کیدای سي زه تا ته د هغه ذات واسطه درکوم چي ښه رنګ او مال يې درکړئ دئ

وَالْجِلْدَ الْحَسَنَ وَالْمَالَ بَعِيرًا أَتَبَلَّغُ بِهِ فِي سَفَرِي فَقَالَ لَهُ إِنَّ الْحُقُوقَ

يو اوښ غواړم چي ددې په ذريعه خپل منزل ته ورسيږم ، جزامي په جواب کي ورته ووېل پر ما ډير حقوق دي (یعني زما ډیر حقدار موجود دي او دهغوی په شتون کي تا ته څه حق نه رسيږي)

كَثِيرَةٌ فَقَالَ لَهُ كَأَنِّي أَعْرِفُكَ أَلَمْ تَكُنْ أَبْرَصَ يَقْذَرُكَ النَّاسُ فَقِيرًا فَأَعْطَاكَ

ملائکي ورته ووېل کیدای سي زه تا پيژنم ته هغه جزامي نه يې چي خلکو به در څخه نفرت کوئ ته فقير وې الله تعالی مال درکړئ ،

اللّٰهُ مَالًا فَقَالَ لَقَدْ وَرِثْتُ لِكَابِرٍ عَنْ كَابِرٍ فَقَالَ إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللّٰهُ

جزامي ورته وويل : دا مال ما ته د پلرونو او نيکو څخه په لاس راغلئ دئ ، ملائکي ورته وويل : ښه دئ که ته دروغجن يې نو الله ﷻ دي بيا هغسي کړه څنگه چي پخوا وې،

إِلَى مَا كُنْتَ وَأَتَى الْأَقْرَعَ فِي صُورَتِهِ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِهَذَا فَرَدَّ عَلَيْهِ مِثْلَ

نو الله تعالى بيا هغسي کړ څنگه چي مخکي وو ، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : ملائکه په خپل اصلي شکل کي پک ته راغلل او هغه ته يې هغه وويل څه چي يې جزامي ته ويلي وه ، هغه هم هغسي جواب ورکړ څنگه چي جزامي ورکړئ وو

مَا رَدَّ عَلَيْهِ هَذَا فَقَالَ إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللَّهُ إِلَى مَا كُنْتَ وَأَتَى الْأَعْمَى فِي

نو ملائکي ورته وويل ښه دئ که ته دروغجن يې نو الله تعالى دي هغسي کړه لکه څنگه چي وړاندي وې ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : ددې وروسته ملائکه په خپل اصلي شکل کي هغه ړوند ته راغلل

صُورَتِهِ فَقَالَ رَجُلٌ مِسْكِينٌ وَابْنُ سَبِيلٍ وَانْقَطَعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي فَلَا

او ورته وه يې ويل : زه يو مسکين سړی يم ، مسافر يم د سفر سامان راسره نسته اوس زه نسم کولای چي و کور ته ورسيږم

بَلَاغَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللَّهِ ثُمَّ بِكَ أَسْأَلُكَ بِالَّذِي رَدَّ عَلَيْكَ بَصَرَكَ شَاةً أَتَبَلَّغُ بِهَا فِي

د الله په مهرباني او ستا په ذريعه سره کيدای سي نو زه تا ته د هغه ذات واسطه درکوم چي تا ته يې بينايي دوهم وار درکړې ده ، دا يو پسه در څخه غواړم چي ددې په ذريعه

سَفَرِي فَقَالَ قَدْ كُنْتُ أَعْمَى فَرَدَّ اللَّهُ بَصَرِي وَفَقِيرًا فَقَدْ أَغْنَانِي فَخُذْ مَا

د خپل سفر سامان پوره کړم ، ړوند وويل : زه ړوند وم الله تعالى زه ليدونکی جوړ کړم نو څومره چي دي پکار وي هغه يوسه

شِئْتَ فَوَاللَّهِ لَا أَجْهَدُكَ الْيَوْمَ بِشَيْءٍ أَخَذْتَهُ لِلَّهِ فَقَالَ أَمْسِكْ مَالَكَ فَإِنَّمَا

په الله دي مي قسم وي زه به تا ته د هغه شي د بيرته راکولو تکليف در نه کړم کوم چي ته واخلې ، ددې په اوريدو سره ملائکي ورته وويل : ته دي خپل مال د ځان سره وساته

ابْتُلِيتُمْ فَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنْكَ وَسَخِطَ عَلَى صَاحِبَيْكَ . متفق عليه

پر تاسو ازموينه وسول، الله ﷻ ستا څخه راضي سو او ستا دملګرو څخه ناراضه سو . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٦\٥٠٠-٥٠٥، رقم: ٣٤٦٤، ومسلم ١٤\٢٢٧٥، رقم: ٦-٢٩٦١

**تشريح**: د الله تعالی مهرباني وسي او د هغه وروسته ته ذريعه جوړه سي علماء وائي د چا مخکي د سوال کولو پر وخت دا طرز اختيارول جائز دی ځکه چي همداسي د هغوی سوال خو الله تعالی ته وي خو بنده د هغه ذريعه او سبب جوړ سي خو داسي طرز اختيارول چي په هغه کي د الله تعالی سره بنده ته هم د حاجت پوره کولو درجه ورکړه سي مثلا داسي وويل سي چي زه د الله تعالی څخه او ستا څخه سوال کوم قطعا صحيح نه دی .

## سوالګر ته يو څه ورکوئ

﴿١٧٨٥﴾: وَعَنْ أُمِّ بُجَيْدٍ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الْمِسْكِينَ لَيَقُومُ عَلَى

د حضرت ام بجيد (رض) څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ ته وويل: اي د الله رسوله ! مسکين دريږي

بَابِي حَتى استحيي فَلا أَجِدُ في بيتي ما ادفع في يده فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

زما په دروازه کي او ما ته شرم راځي چي هغه ته د ورکولو لپاره زما په کور کي هيڅ هم نه وي ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل :

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْفَعِي فِي يَدِهِ وَلَوْ ظِلْفًا مُحْرَقًا . رواه ابوداؤد والترمذي و

قال هذا حديث حسن صحيح .

که ستا سره سوزېدلې تو ته هم وي نو هغه د هغه په لاس کي ورکړه (يعني که څه هم ډير لږ شی وي ) ابوداؤد ، ترمذي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٣٨٢، وابوداؤد: ٢\٣٠٧، رقم: ١٦٦٧، والترمذي ٣\٥٢.

## د عبرت يوه قصه

﴿۱۷۸۶﴾: وعن مولى لعثمان رضي الله عنه قال: أهدي لأم سلمة بضعة من لحم

د حضرت عثمان رضي الله عنه د آزاد سوي غلام څخه روايت دئ چي بي بي ام سلمة رضي الله عنها ته د (پخ كړي) غوښو يوه ټوټه د تحفې په ډول راوړل سوه ،

وكان النبي صلى الله عليه وسلم يعجبه اللحم فقالت للخادم: ضعيه في البيت لعل النبي

د نبي كريم صلى الله عليه وسلم به غوښه ډيره خوښه وه ، ام سلمة رضي الله عنها خادمې ته وويل چي دا غوښه په كور كي كښيږده كيداى سي رسول الله صلى الله عليه وسلم يې

صلى الله عليه وسلم يأكله فوضعته في كوة البيت . وجاء سائل فقام على الباب فقال:

وخوري ، نو مينځي غوښه په تاخچه كي كښېښودل ، په دا وخت كي يو سوالگر راغلئ په دروازه كي ودريدئ او وه يې ويل :

تصدقوا بارك الله فيكم . فقالوا: بارك الله فيك . فذهب السائل فدخل

اې كور والاوو صدقه راكړئ الله تعالى دي بركت دركړي هغه ته وويل سول الله تعالى دي بركت دركړي ، سوالگر چي دا واورېدل نو ولاړئ او نبي كريم صلى الله عليه وسلم كور ته تشريف راوړئ

النبي صلى الله عليه وسلم فقال: "يا أم سلمة هل عندكم شيء أطعمه؟" . فقالت: نعم .

او وه يې فرمايل : ام سلمه ! د خوراک يو شى سته ؟ هغې وويل : هو،

قالت للخادم : اذهبي فأتي رسول الله صلى الله عليه وسلم بذلك اللحم . فذهبت فلم تجد

بيا ام سلمة مينځي ته وويل ورسه هغه غوښه راواخله ، مينځه چي ورغلل نو په تاخچه كي يې غوښه پيدا نه كړل

في الكوة إلا قطعة مروة فقال النبي صلى الله عليه وسلم: "فإن ذلك اللحم عاد مروة لما لم تعطوه السائل" . رواه البيهقي في دلائل النبوة

مگر د هغه پر ځاى يې د سپيني ډبري يوه ټوټه وليدل، نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته چي دا پېښه څرگنده سوه

نو وه يې فرمايل : هغه غوښنه د ډبرې ټوټه جوړه سوه ځکه چي تاسو هغه سوال کونکي ته ورنه کړل . بيهقي په دلائل النبوة کي .

**تخريج:** رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**د لغاتو حل :** (المروة): الحجارة (ډبره).

## د الله ﷻ پر نامه نه ورکول

﴿۱۷۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلاَ أُخْبِرُكم بِشَرِّ النَّاسِ مَنْزِلاً ؟ قيل : نعم قال : الذي يسأل بالله ولا يعطي به . رواه أحمد

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا زه تاسو دا ونه ښيم چي د الله په نزد تر ټولو خراب ځوک دئ ؟ صحابه کرامو عرض وکړ هو ، اې د الله رسوله ! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د الله په نزد په خلکو کي تر ټولو بد هغه کس دئ چي د هغه څخه د الله په نامه وغوښتل سي او هغه يې نه ورکړي . احمد .

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ۳۱۹/۱ .

**تشريح:** مطلب دادی که يو پوښتنه کونکی د يو سړي څخه د الله تعالی پر نامه او د الله تعالی په واسطې سره په دې توګه سوال وکړي چي د الله تعالی پر نامه ماته څه راکړه او د دې باوجود هغه سړی سائل ته هيڅ نه ورکړي نو هغه د الله تعالی په نزد د ټولو خلکو څخه د مرتبې په اعتبار بد دی هو که سائل مستحق نه وي يا سائل د کوم سړی څخه پوښتنه کړې وي د هغه سره د خپل ضرورت او د هغه د کورنۍ د ضرورت زيات مال نه وي نو بيا د هغه سائل سوال نه پوره کولو په صورت کي نه خو به هغه ګناه کار وي او نه هغه د دې حديث سره سم ګناه کار وي رسول الله ﷺ دا چي د الله تعالی په نامه سره د سوال کونکي سوال نه پوره کونکی به په هغه صورت کي قابل مذمت او ګناه کار وي کله چي سائل د هغه د مال مستحق وي او د هغه سره دومره مال وي چي د هغه د ضروریاتو څخه زيات وي .

## مال د يو ځای کولو لپاره نه دئ

﴿۱۷۸۸﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّهُ جَاءَ يَسْتَأْذِنُ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه حضرت عثمان رضي الله عنه ته د ورتلو اجازه وغوښتل ،

فَأَذِنَ لَهُ وَبِيَدِهِ عَصَاهُ فَقَالَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَا كَعْبُ إِنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ

عثمان رضي الله عنه اجازه ورکړه ، په دغه وخت کي د ابوذر په لاس کي لکړه وه ، عثمان رضي الله عنه وويل : اې کعب ! عبدالرحمن

تُوُفِّيَ وَتَرَكَ مَالًا فَمَا تَرَى فِيهِ فَقَالَ إِنْ كَانَ يَصِلُ فِيهِ حَقَّ اللّٰهِ فَلَا بَأْسَ

وفات سو او مال ئيني پاته سو ، اوس د هغه مال په اړه ستا څه رايه ده ؟ کعب وويل : که هغه د مال څخه د الله جل جلاله حق (زكات) ورکړئ وي نو هيڅ پروا نسته

عَلَيْهِ فَرَفَعَ أَبُو ذَرٍّ عَصَاهُ فَضَرَبَ كَعْبًا وَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ مَا

د دې په اوريدو سره ابو ذر خپله لکړه پورته کړه او کعب يې ووهئ ، بيا يې وويل : ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي

أُحِبُّ لَوْ أَنَّ لِي هٰذَا الْجَبَلَ ذَهَبًا أُنْفِقُهُ وَيُتَقَبَّلُ مِنِّي أَذَرُ خَلْفِي مِنْهُ سِتَّ أَوَاقٍ

زه دا خبره نه خوښوم چي زما سره د احد د غره په اندازه سره زر وي او زه هغه خرڅ نه کړم او زما څخه دي اميد وساتل سي چي زه د هغه څخه شپږ اوقيه پريږدم ،

أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ يَا عُثْمَانُ أَسَمِعْتَهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَ نَعَمْ . رواه احمد

تر دې وروسته ابو ذر حضرت عثمان ته مخاطب سو او وه يې ويل : اې عثمانه ! زه تا ته په الله قسم درکوم چي تا هم اوريدلي دي ، درې واره ابو ذر دا الفاظ وويل ، حضرت عثمان وويل هو ، (يعني ما هم داسي اوريدلي دي) احمد .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۱\۶۳.

**تشريح** : حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه په يو جماعت کي ناست وو د هغه فقر او زهد امتيازي شان درلودی که دا وويل سي نو بې ځايه به نه وي چي د ابوذر غفاري رضي الله عنه ذات د فقر او زهد او استغناء په باره کي په ټول امت کي يو مثالي حيثيت درلودی دا وجه ده چي د هغوی دا نظريه ده چي د ځان سره د مال او زر اولی ترينه حصه هم جمع نه کړي مگر څه چي هم په خپله قضه او قدرت کي راسي هغه ګرده د الله تعالی په لار کي خرڅ کړی په دې وخت کي هم د هغوی دا جذبه پر هغوی غالبه راغله او هغوی چي د کعب رضي الله عنه څخه د خپل مزاج خلاف خبره واوريده نو هغه

يې ووهى .

په دې باره كې تر ټولو پورې چې د مسئلې تعلق دى هغه مخكې ښودل سوې ده، د جمهور علماء دا فيصله ده كه د مال زكوة ادا كيږي نو بيا د هغه په جمع كولو كې څه تاوان نسته كه څه هم هر څومره زيات مال وي .

د رسول الله ﷺ په ارشاد كې جمله ( ويتقبل منى ) په توګه د مبالغې استعمال سوى دى د دې مطلب دادى چې دومره زيات مال او زر د الله تعالى په لار كې خرڅ كړم د دې باوجودهم كاش چې قبول سي .

لفظ د (اذر) حذف او د هغه سره د احب مفعول دى، ګويا د دې پوره جملې معنى به دا وي كه الله تعالى دومره زيات مال راته راكړي او هغه زه د الله تعالى په لار كې خرڅ كړم او بيا په دربار الوهيت كې قبول هم سي نو بيا به هم زه دا نه خوښوم چې د هغه مال څخه كم تر كم شپږ اوقيه خپل وروسته پريږدم .

## د رسول الله ﷺ زمانه

﴿۱۷۸۹﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ صَلَّيْتُ وَرَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن حارث ﷜ څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ سره په مدينه كې د مازديګر لمونځ وكړ،

بِالْمَدِينَةِ الْعَصْرَ فَسَلَّمَ ثُمَّ قَامَ مُسْرِعًا فَتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ إِلَى بَعْضِ

رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو وروسته سمدستي ولاړ سو او د خلكو پر اوږو اوښتلو سره د خپلو ځينو

حُجَرِ نِسَائِهِ فَفَزِعَ النَّاسُ مِنْ سُرْعَتِهِ فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ فَرَأَى أَنَّهُمْ قَدْ عَجِبُوا

بيبيانو د كور په لور ولاړئ ، د دې په ليدلو سره خلك بيرې واخيستل ، كله چې رسول الله ﷺ راستون سو او وه يې ليدل چې خلك حيران دي

مِنْ سُرْعَتِهِ فَقَالَ ذَكَرْتُ شَيْئًا مِنْ تِبْرٍ عِنْدَنَا فَكَرِهْتُ أَنْ يَحْبِسَنِي

نو وه يې فرمايل : ما ته د سرو زرو يو شى را ياد سوى وو چې په كور كې پروت وو ما ته بده ځركنده سوه چې هغه ما منعه كړي د قرب الهي څخه

فَأَمَرْتُ بِقِسْمَتِهِ. رواه البخاري و في رواية له قا كنت خلف في البيت تبرا من الصدقة فكرهت ان ابيته.

نو د هغه د وېشلو حکم مي وركړ. بخاري. په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما د سرو زرو يو شی په كور كي پرې ايښی وو ما بده وګڼل چي د شپې يې د ځان سره وساتم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٣٣٧، رقم: ٨٥١، رقم: ١٤٣٠.

**تشريح:** د دې حديث څخه معلومه سوه چي د الله تعالى نورو شيانو ته توجه كول هغه د خدای تعالى بندګان چي دربار الوهيت ته نژدې وي د مقام قرب څخه منعه كوي يا خوبيا دا به وويل سي چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد د امت لپاره په توګه د تعليم او تنبيه دی چي دنيا او د دنيا د شيانو رغبت او خواهش كيدل نه دی پكار.

## نبي مال نه پريږدي

﴿١٧٩٠﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ كَانَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عندي

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ د ناروغۍ په زمانه كي زما سره

في مرضه سِتَّةُ دَنَانِيرَاو سبعة فَأَمَرَنِي نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ

شپږ يا اووه ديناره وه ، رسول الله ﷺ ما ته حكم راكړ چي زه يې ووېشم،

أُفَرِّقَهَا فَشَغَلَنِي وَجَعُ نَبِيِّ اللهِ ﷺ ثُمَّ سَأَلَنِي عَنْهَا مَا فَعَلَتُ السِّتَّةُ أَوْ

مګر د رسول الله ﷺ د درد يا ناروغۍ د بوختيا له كبله ما هغه ونه ويشئ، د دې وروسته رسول الله ﷺ زما څخه پوښتنه وكړه چي هغه شپږ يا اووه ديناره څه سول،

السَّبْعَةُ قَالَتْ لَا وَاللهِ لَقَدْ كَانَ شَغَلَنِي وَجَعُكَ فَدَعَا بِهَا ثُمَّ وضعها فِي كَفِّهِ

ما وويل: ستاسو په ناروغۍ كي د بوختيا له كبله ما هغه ونه وېشل ، بيا رسول الله ﷺ هغه دينارونه را وغوښتل په خپل لاس كي يې كښېښودل

فَقَالَ مَا ظَنُّ نَبِيِّ اللهِ لَوْ لَقِيَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ وَهٰذِهِ عِنْدَهُ. رواه احمد

او وه يې فرمايل: ايا د الله تعالى د نبي دا خيال دئ چي هغه د الله تعالى سره په داسي حال كي

ملاقات وکړي چي د هغه سره دا (دینارونه) وي .احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۱۶\۱۰۴.

**تشریح**: د حدیث د الفاظو مطلب دادی چي دا خبره د مقام نبوت خلاف ده چي د الله نبي د دنیا څخه په رخصتیدو سره د خپل حقیقي مالک سره یوځای سي نو د هغه په کور کي دي مال او زر موجود وي رسول الله ﷺ په دې اندازې سره بي بي عائشې رضي الله عنها ته تنبیه وفرمایله چي د دې اشرفیو په کورو کي پاته کیدل زما قطعي خوښه نه ده دا سمدستي وویښه.

**بلال رضی اللہ عنہ ته مشوره**

﴿۱۷۹۱﴾: وعن أبي هريرة أن النبي صلى الله عليه وسلم دخل على بلال

د حضرت ابوهریرة رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ بلال رضی اللہ عنہ ته راغلئ

وعنده صبرة من تمر فقال ما هذا يا بلال؟ قال شيء ادخرته لغد

او د هغه سره د خرماوو کوټه وه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې بلاله! دا څه دي؟ بلال وویل: یو شی دئ چي ما د سبا لپاره یو ځای کړي دي (یعني د راتلونکي لپاره)

فقال أما تخشى أن ترى له غدا بخارا في نار جهنم يوم القيامة أنفق بلال ولا تخش من ذي العرش إقلالا

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ایا ته د دې څخه نه بیریږې چي د قیامت په ورځ به د هغه بخار د جهنم په اور کي جوړ سي، اې بلاله! دا نفقه کړه او د عرش عظیم د خاوند څخه د مفلسۍ او فقر بیره مه کوه. بیهقي.

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۲\۱۱۸، رقم: ۱۳۴۵.

**تشریح**: په ارشاد (اما تخشی ان تری له غدا ............الخ) کي غد د صبا ورځ یعني د قیامت ورځ مراد ده نو ویل کیږي به چي په دې جملې کي د یوم القیامة د الفاظو د غد د تاکید په توګه ارشاد فرمایل سوی دی، د بخار څخه مراد اثر دی مطلب دادی ایا ته غواړې چي د قیامت په ورځ د دې په سبب د دوږخ د اور اثر تا ته ورسیږي ګویا دا د دې خبري کنایه ده چي ذخیره کول دوږخ ته نژدې ده او د دې رسول الله ﷺ وضاحت دا کړی دی که ته پر الله تعالی باندي توکل نه کوې او د فقر او افلاس د خوف څخه ذخیره ټولوي نو د دې په وجه به دوږخ ته نژدې سې.

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادی چي ذخيره كول مه كوه بلكه څه چي دي جمع كړي دي هغه د الله تعالى پر نامه خرڅوه د فقر او افلاس بيره مه كوه مگر پر الله تعالى باندي اعتماد او توكل ساته ځكه چي قادر مطلق عرش عظيم پيدا كړی دی او ستا تخليق يې كړی دی هغه به درته روزي هم رسوي.
گويا رسول الله ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته دا حكم د تعليم په توگه وركړ چي كمال مقام حاصل كړه چي توكل پر ذات حق باندي كامل اعتماد دی كنې تر څو پوري چي د مسئلې تعلق دی علماء ليكي د خپل ځان او خپل اهل او خپلي كورنۍ د ضرورياتو پر اندازه ذخيره كول جائز دي.

## د سخي او بخيل مقام

﴿۱۷۹۲﴾: وعن أبي هريرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم السخاء

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سخا

شجرة في الجنة فمن كان سخيا أخذ بغصن منها فلم يتركه الغصن حتى

په جنت كي يوه درخته ده، څوک چي سخي وي هغه به ددې درختي ښاخونه ونيسي او هغه ښاخونو به يې تر هغه وخته نه پريږدي تر څو چي

يدخله الجنة والشح شجرة في النار فمن كان شحيحا أخذ بغصن منها

په جنت كي يې داخل كړی نه وي، او همداسي د بخل په دوږخ كي يوه درخته ده څوک چي بخيل وي هغه به ددې درختي ښاخونه ونيسي

فلم يتركه الغصن حتى يدخله النار. رواهما البيهقي في شعب الإيمان

او تر هغه وخته پوري به يې نه پريږدي تر څو پوري چي په دوږخ كي يې داخل نه كړي . بيهقي په شعب الايمان كي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۷\۴۳۵، رقم: ۱۰۸۷۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي سخاوت د وني په ډول دی گويا دې وصف ته په وني سره مشابهت وركړه سوی دی څرنگه چي ونه غټه وي او د هغه شاخونه ډير زيات وي همداسي سخاوت هم يو وصف عظيم دی چي د هغه ډير زيات شاخونه او ډولونه دي .هغه به د هغه ښاخونه ونيسي د دې مطلب دادی چي د سخاوت كوم ډولونه دي د هغه څخه به يو ډول ونيسي.

### صدقه رد بلا ده

﴿۱۷۹۳﴾: وعن علي قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم بادروا بالصدقة فإن البلاء لا يتخطاها". رواه رزين

د حضرت علي ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په صدقه او خيرات ورکولو کي تلوار کوئ ځکه چي په صدقي سره بلا او ستونزي نه زياتيږي يعني صدقه بلاوي او ستونزي منعه کوي. رزين.

**تخريج:** رواه رزين.

==========

# بَابُ فَضْلِ الصَّدَقَة

## د صدقي فضيلت

صدقه د مال هغه برخي ته وائي چي يو سړی يې د خپل مال څخه د الله تعالى د رضا او د هغه د قرب حاصلولو لپاره وباسي که څه هم هغه واجب وي يا نفلي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### صدقه او حلال مال

﴿۱۷۹۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَصَدَّقَ

د حضرت ابوهريرة ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي خيراتوي

بِعَدْلِ تَمْرَةٍ مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ وَلَا يَقْبَلُ اللَّهُ إِلَّا الطَّيِّبَ فَإِنَّ اللَّهَ يَتَقَبَّلُهَا

که څه هم د خرما په اندازه وي نو د پاکي او حلالي ګټي څخه دي خيرات کوي او الله تعالى نه قبلوي مګر پاک، نو خدای ﷻ به هغه قبلوي

بِيَمِينِهِ ثُمَّ يُرَبِّيهَا لِصَاحِبِهِ كَمَا يُرَبِّي أَحَدُكُمْ فَلُوَّهُ حَتَّى تَكُونَ مِثْلَ الْجَبَلِ.

متفق عليه.

په خپل راسته لاس سره بيا هغه خيرات د خيرات كونكي لپاره پالي او زياتوي يې لكه څنګه چې مورږ خپل ( بهاڼ ) د آس بچي ساتو تر دې چې هغه د غره په ډول جوړ سي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۷۸، رقم: ۱۴۱۰، ومسلم ۲\۷۰۲، رقم: ۶۳- ۱۰۱۴.

**تشريح**: د كسب معنى ده جمع كول دلته د كسب طيب څخه مراد هغه مال دى چې په حلالو ذريعو سره جمع كړه سي يعني د شرعي اصولو لاندې كيدونكي تجارت ، صنعت ، زراعت ، ملازمت ، او وراثت په حصه كي رسيدونكى مال .

( ولا يقبل الله الا الطيب ) الله تعالى يوازې حلال مال قبلوي د دې مخكې دې خوا ته اشاره ده چې په دربار الوهيت كي يوازې هغه صدقه قبليږي چې د حلال مال وي غير حلال مال نه قبليږي او د دې څخه دا نكته هم پيدا سوه چې حلال مال خو په ښه او نيک ځاى كي خرسيږي . الله تعالى هغه په خپل راسته لاس كي اخلي د دې مطلب دادى چې د الله تعالى په لار كي خرڅ كيدونكى حلال مال په دربار الوهيت كي كمال قبوليت ته رسيږي او الله تعالى د مال خرڅ كونكي څخه ډير زيات خوشحاله كيږي دا مفهوم دلته په راسته لاس سره په اخستو سره ځكه محاورتا او عرفا بيان سوي دي چې غوره او محبوب شى په راسته لاس كي اخستل كيږي .

د (پالي) څخه مراد دادى چې الله تعالى د هغه صدقې ثواب زياتوي چې د قيامت په ورځ د عمل په ترازو كي درانه وي .

**د عبرت يوه كيسه** د حديث په پورته رڼا كي چې دا نكته بيانه سوې ده چې حلال مال پر ښه ځاى خرڅيږي په دې اړه يو سبق آموز حكايت واورى :

شيخ علي متقي عارف بالله رحمة الله عليه فرمائي يو متقي او صالح سړي كسب معاش كوى د هغه دا معمول وو چې څه به يې ګټل نو مخكي به يې دريمه برخه د هغه څخه د الله تعالى په لار كي خرڅول بيا دريمه برخه به يې په خپلو ضروورياتو كي خرڅول او دريمه برخه به يې د خپل كسب معاش په ذريعه كي لګول يو ورځ هغه ته يو دنيا داره سړى راغى ورته وې ويل زه غواړم چې څه مال د الله تعالى په لار كي خرڅ كړم نو ماته څوک مستحق سړى وښايه ، هغه وزته وفرمايل مخكي حلال مال وګټه بيا د هغه وزوسته يې د الله تعالى په لار كي خرڅ كړه هغه به خپله مستحق سړي ته ورسيږي دنيا داره سړي دا خبره پر مبالغه باندې محموله كړه شيخ ورته وفرمايل ښه دى ته ولاړ سه چې كوم سړى هم دا سي ووينې چې د هغه لپاره ستا په زړه كي د رحم جذبه پيدا سي او دا په ګټلو سره چې د صدقې مال د دې بې چاره څخه زيات مستحق څوک

کیدای سي یو څه ورکړه په دوهمه ورځ هغه د یو ضعیف او رانده سړي په خوا کي تیر سو نو هغه ځیني واوریدل چي د هغه په خوا کي ولاړ یو بل سړي ته د پرون واقعه بیانوي چي پرون ما ته یو شتمن سړی راغلی او هغه پر ما زړه وسوزی او ډېر مال یې راکړ ما هغه مال په بدکاری او شراب څښلو کي خرڅ کړ هغه دنیا دار په دې اوریدو سره و شیخ ته راغلی او دا ټوله واقعه یې ورته بیان کړه ، شیخ چي دا واقعه واورېده نو یې د خپلي ګټي څخه یو درهم هغه ته ورکړ او ورته وې فرمایل دا د ځان سره کړه او د دې ځای څخه په وتلو سره تر ټولو مخکي چي اول ستا نظر پر کوم سړي ولویږي دا هغه ته ورکړه نو هغه د شیخ په دینار سره د کور څخه دباندي راووتی د هغه نظر د ټولو مخکي پر یو سړي سم پرېوتی چي په ظاهره دولت مند معلومیدی مخکي خو هغه ته په ورکولو سره لړ اندېښمن سو خو د شیخ حکم وو نو مجبور وو او هغه درهم یې هغه سړي ته ورکړ هغه سړي درهم واخستی او د خپل شا خوا ته روان سو د هغه سره هغه مالدار هم روان سو هغه ولیدل چي هغه سړی په یوه خرابه کي داخل سو او د هغه ځای څخه بلي خوا ته ولاړی هلته هیڅ شی هغه نه ولیدی دلته هغه یوه مړه کوتره ولیده بیا په هغه سړي پسي روان سو هغه قسم په ورکولو سره یې پوښتنه ځیني وکړه او ورته وه یې ویل چي ته څوک یې او په کوم مال حال کي یې هغه وویل زه یو غریب انسان یم زما کوچني کوچني بچیان دي هغوی ډیر وږي دي ما د هغوی لوږه نه سوه برداشت کولای او د ډیري زیاتي پریشاني په حالت کي د هغوی لپاره د څه انتظام کولو لخاطره د کور څخه په وتلو سره سرګردان ګرځیدم چي دا مړه کوتره مي ولیده ما دا کوتره پورته کړه او د کور خوا ته روان سوم چي د دې په ذریعه د کوچنیانو لوږه په پورته کولو سره یې اطمینان ورکړم خو کله چي الله تعالی ستا په ذریعه ماته درهم راکړ نو دا کوتره چیري مي پورته کړې وه هلته مي وغورځوله .

اوس د دې مالداره سړي سترګي خلاصي سوې او ورته معلومه سوه چي د شیخ هغه قول پر مبالغه باندي محمول نه وو مګر حقیقت دادی چي حلال مال په ښه ځای کي او حرام مال په خراب ځایکي خرڅ کیږي .

## مال په خیرات سره نه کمیږي

﴿۱۷۹۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ شَيْئًا وَمَا زَادَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ . رواه مسلم

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په خیرات کولو سره مال نه کمیږي او د یو چا قصور معاف کولو سره الله تعالی د هغه بنده عزت زیاتوي او څوک چي د الله لپاره تواضع کوي نو الله تعالی د هغه مرتبه لوړوي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۲۰۰۱\۴، رقم: ۶۹ – ۲۵۸۸.

**تشریح**: دلته درې خبري ښودل سوي دي اوله خبره خو دا چي د خپل مال څخه څه حصه د الله تعالی په لار کي خرڅول که څه هم په ظاهري توګه سره په مال کي د کمي او تاوان سبب ښکاري خو په حقیقت کي صدقه او د خیرات په مال کي د زیاتي سبب ګرځي په دې توګه چي صدقه او خیرات کونکی په مال کي برکت کیږي د هغه مال د بلا او افت څخه ساتل کیږي او د هغه په عمل نامه کي ثواب زیاتیږي مګر په دنیا کي هم هغه ته د هغه نعم البدل ورکول کیږي او د هغه مال زیاتیږي.

دوهمه خبره دا بیان سوې ده چي کوم سړی د نورو د قصور د بدلې پر اخیستلو قادر وي ددې باوجود د هغوی ګناوي ورمعافوي نو الله تعالی په دنیا او آخرت کي د هغه عزت لوړوي چونکه د یو عارف د قول څخه نقل دي (هیڅ انتقام اخیستل د عفوي او درګزر سره مساوي نه دی).

دریمه خبره دا بیان سوې ده چي کوم سړی د څه غرض او منفعت د خاطره نه مګر یوازي د الله جل جلاله د رضاء او د هغه د قرب د جذبې سره تواضع او عاجزي اختیاروي نو الله تعالی په دنیا او آخرت کي د هغه مرتبه لوړوي.

## د جنت دروازې

﴿۱۷۹۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي جوړی یا دوه برابر

مِنْ شَيْءٍ مِنَ الْأَشْيَاءِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ دُعِيَ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ و للجنة ابواب

شی د الله جل جلاله په لار کي خرڅ کړ نو هغه به د جنت د دروازو څخه وبلل سي او د جنت څو دروازې دي

فَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّلَاةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّلَاةِ وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجِهَادِ

نو څوک چي لمونځ کوونکی وي هغه به د جنت د باب الصلوة څخه وبلل سي او څوک چي جهاد کوونکی وي

دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ

هغه به د باب الجهاد د دروازې څخه و بلل سي او څوک چي خیرات کوونکی وي هغه به د باب الصدقة څخه و بلل سي

وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الرَّيَّانِ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ مَا عَلَى هَذَا

او څوک چي روژه دار وي نو هغه به د باب الريان څخه و بلل سي، د دې په اوريدو سره حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه و فرمایل: په څرګنده چي د دې ضرورت نسته چي

الَّذِي يُدْعَى مِنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ مِنْ ضَرُورَةٍ فَهَلْ يُدْعَى احد من تلك الابواب كُلِّهَا قَالَ نَعَمْ وَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ . متفق عليه .

د دې ټولو دروازو څخه هغه څوک و بلل سي كوم چي د يوې دروازې څخه بلل سوی وي او په جنت کي داخل سوئ وي مګر بیا هم داسي څوک سته چي په دغه ټولو دروازو و بلل سي، رسول الله ﷺ و فرمایل: زه امید لرم چي ته به د هغو خلكو څخه وې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۱۱، رقم: ۱۸۹۷، ومسلم: ۲\۷۱۱– ۷۱۲، رقم: ۸۵– ۱۰۲۷.

**تشريح**: دوه برابر شی مثلا دوه درهمه دوې روپی دوه غلامان دوه اسان يا دوې جامې وغيره ته وايي.

(دعي من ابواب الجنة) نو هغه به د جنت دروازې ته وروبلل سي د دې مطلب دادی چي هغه سړی چي هغه په دنیا کي دوچنده شیان د الله تعالی په لار کي خرڅ کړي كله چي په جنت کي داخليږي نو د جنت د ټولو دروازو دارو څخه به هغه بلل کيږي او د هريوه به دا خواهش وي چي دا خوش نصيبه د هغه په دروازه کي جنت ته داخل سي د دې څخه معلومه سوه چي دا يو عمل د هغه اعمالو برابر دی چي د هغه په وجه د جنت په ټولو دروازو کي د داخليدو سعادت حاصليږي.

د ريان معنی ده سيراب، نقل دي چي باب الريان چي د هغه په ذريعه ډير زيات روژې نيونکي به په جنت کي داخليږي دا هغه دروازه ده چيري چي پر روژه دار باندي په جنت کي خپل مستقر ته د رسيدو څخه مخکي شراب طهور څښنل کيږي ګويا كوم سړی چي دلته په دنيا کي د الله تعالی د رضا لپاره د روژې په نيولو سره تږی سوی وي هغه به د دې لوی کار په بدله کي د

مذکوره دروازې څخه د سیراب کیدو وروسته په جنت کې داخلیږي.
په یو روایت کې نقل دي رسول الله ﷺ وفرمایل د جنت یوه دروازه ده چې هغې ته باب الضحی ویل کیږي د قیامت په ورځ به اعلان کونکې ملائکه اواز وکړي چیرې چې وي هغه خلک چې د څاښت یا د الله تعالی د اشراق پر لمانځه باندې به یې همېشه توب کوی دا دروازه ستاسو لپاره ده نو تاسو خلک د الله تعالی په رحمت سره دې ته داخل سی.
په یو حدیث کې نقل دي د جنت د یوې دروازې نوم باب التوبه ده چې توبه کونکی به د دې دروازې په ذریعه په جنت کې داخلیږي همداسې یوه دروازه به داسې وي چې د هغه په ذریعه به د الله تعالی پر رضا باندې راضي کیدونکي داخلوي.
د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په ارشاد کې د (فهل یدعی) څخه ما قبل جمله (ما علی من دعي .........الخ) د هغوی د سوال فهل یدعي د تمهید په توګه دی په اخر کې حضرت ابوبکر ﷺ د امتیازي شان خوا ته اشاره فرمایلې ده په هغوی کې دا ټول اوصاف او خوبې تر لاسه سوې ده ځکه هغوی به په جنت کې د ټولو دروازو څخه بلل کیږي.

## د ابوبکر صدیق ﷺ نیک اعمال

﴿۱۷۹۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کې د چا

الْيَوْمَ صَائِمًا قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَا قَالَ فَمَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جَنَازَةً

نن روژه ده؟ حضرت ابوبکر صدیق ﷺ عرض وکړ: زما، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په تاسو کې څوک نن د جنازې سره تللی دئ؟

قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَا قَالَ فَمَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا قَالَ

ابوبکر صدیق ﷺ عرض وکړ: زه، بیا رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په تاسو کې چا نن مسکین ته خوراک ورکړئ دئ؟ ابوبکر ﷺ عرض وکړ:

أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه أَنَا قَالَ فَمَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا قَالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه

ما، بیا رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په تاسو کې نن چا د ناروغ پوښتنه کړې ده؟ ابوبکر صدیق ﷺ عرض وکړ:

أَنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَا اجْتَمَعْنَ فِي امْرِئٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ . رواه مسلم

ما ، رسول الله ﷺ وفرمايل : په چا کي چي دا ټولي ښېګڼي يو ځاى سي نو هغه به جنت ته ځي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۷۱۳، رقم: ۸۷– ۱۰۲۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي که يو سړی د ورځي روژه هم ونيسي د جنازې په لمانځه کي ګډون هم وکړي او د جنازې سره هديرې ته ولاړ سي يو مسکين ته ډوډۍ ورکړي د يو ناروغه پوښتنه وکړي نو داسي سړی به په جنت کي داخليږي د دې مطلب دادی چي هغه به بغير حساب په جنت کي داخليږي ځکه چي همداسي خو مطلقا د دخول جنت لپاره يوازي ايمان کافي دی يا د دې مطلب دادی چي د کومي دروازې ځخه غواړي په جنت کي داخلېدلای سي .

د دې حديث ځخه معلومه سوه چي پر داسي وختو باندي اَنَا (زه) ويل او د حصول ثواب غرض او د خپل احوالو د خبر ورکولو په توګه خپل فضيلت بيانول منعه دی ځيني صوفيه او مشائخ چي سالکين منعه کړي دي چي پر خپله ژبه باندي انا جاري کول نه دي پکار نو د دې ځخه د هغوی مراد دادی چي د تکبر په اراده او د لوړي هستۍ او انانيت په ډول انا ويل ځرنګه چي ابليس يعني حضرت آدم ؑ ته د سجدې کولو د حکم پر وخت د تکبر او غرور له مخه او په توګه د انا نيت ويلي وه چي انا خير منه .

## خيرات کول سپک مه ګڼئ

﴿۱۷۹۸﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا نِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ . متفق عليه .

د حضرت ابو هريرة ؓ ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې مسلمانو ښځو ! هيڅ يو همسايه دي خپلي همسايه ته هديه يا صدقه ليږل سپک نه ګڼي که ځه هم هغه د پسه يو نوکی وي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۴۵، رقم: ۶۰۱۷، ومسلم ۲\۷۱۴، رقم: ۹۰– ۱۰۳۰.

**د لغاتو حل**: (فِرسَنَ): الفِرس: عظم قليل اللحم، وهو خف البعير کالحافر للدابة. (ښنګری).

**تشريح**: مطلب دا چي و همسايه ګانو ته هغه شی چي ستا سره موجود وي د تحفې او صدقې په توګه لېږل سپک مه ګڼه ګويا ستا سره چي ځه شی هم وي يا ځه شی هم کيدای سي په لږ يا

ډېره اندازه وي و همسايګانو ته يې لېږه.

ځيني حضرات فرمائي په دې ارشاد کي هغي ښځو ته خطاب سوی دی چي چاته تحفه وراستول کيږي په دې صورت کي به د دې معنی دا وي چي په تاسو کي هيڅ څوک د خپلي همسايې تحفه سپکه نه ګڼي مګر په ډېر شوق سره دي هغه قبوله کړی که څه هم هغه هر څومره کمتره وي.

د بزې ښکر، ظاهره ده چي نه خو په تحفه کي د ورکولو قابله ده او نه دا په توګه د صدقه چاته ورکيدای سي نودا به وويل سي چي دلته دا د مبالغې په توګه بيان سوی دی مراد ځيني دادی چي په تحفه کي استونکی يا راتلونکی هر شی چي څومره حقير او کمتر وي قبلوه يې.

دلته په توګه خاص ښځو ته دا خطاب سوی دی چي د هغوی په مزاج کي غصه اود کمو او بې قيمتو شيانو په توګه تحفه د بيرته کولو ميلان زيات وي.

## هر نيک عمل صدقه ده

﴿۱۷۹۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ وَّ حُذَيْفَةَ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ. متفق عليه.

د حضرت جابر ﷺ او حذيفه ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هره نيکي صدقه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۴۷، رقم: ۶۰۲۱، ومسلم ۱۲\۶۹۷، رقم: ۵۲-۱۰۰۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي د نيکۍ کوم عمل وي که څه هم د هغه تعلق په ژبې سره وي يا په فعل سره او دا چي هغه د الله تعالی د رضا سره سم وي نو د هغه ثواب داسي وي څرنګه چي د الله تعالی په لار کي د مال خرڅولو ثواب دی.

## نيکي سپکه مه ګڼئ

﴿۱۸۰۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا وَلَوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ. رواه مسلم.

د حضرت ابو ذر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د نيکۍ هيڅ يو شی معمولي او حقير مه ګڼئ که څه هم ته د خپل ورور سره په ورين تندي ليدنه وکړې. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۰۲۶\۲، رقم: ۱۴۴- ۲۶۲۶.

**تشريح**: که يو سړی د چا سره په ښو اخلاقو او ورين تندي سره يو ځای کيږي نو هغه خوشحاله وي د يوه مسلمان زړه خوشحالول ښه او محبوب ترينه خبره ده ځکه دا هم نيک کار دی که څه هم په خوشحالي سره يو ځای کيدل څه عظيم الشان کار نه دی خودا هم د کمي درجې نيکی ګڼل نه دي پکار.

## د خيرات ډولونه

﴿۱۸۰۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو موسى اشعري ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ قَالُوا فَاِنْ لَمْ يَجِدْ قَالَ فَيَعْمَلُ بِيَدَيْهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهُ

پر مسلمان صدقه واجب ده، صحابه کرامو پوښتنه وکړه که د چا سره هيڅ هم نه وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: په دواړو لاسونو سره دي کار وکړي مال دي تر لاسه کړي خپل ځان ته دي هم ګټه ورسوي

وَيَتَصَدَّقُ قَالُوا فَاِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ أَوْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيُعِيْنُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوْفَ

او خيرات دي هم وکړي، صحابه کرامو بيا پوښتنه وکړه که د چا توان نه وي او داسي نه سي کولای؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د غمجن او اړ کس مرسته دي وکړي،

قَالُوا فَاِنْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيَأْمُرُ بِالْخَيْرِ قالوا فَاِنْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيُمْسِكُ

صحابه کرامو عرض وکړ که داسي هم نه وکړای سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د نيک کار لارښوونه دي وکړي، صحابه کرامو عرض وکړ که داسي هم ونه کړلای سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل خپل ځان دي وژغوري

عَنِ الشَّرِّ فَاِنَّهُ لَهُ صَدَقَةٌ. متفق عليه

د بدی څخه دا هم د هغه لپاره صدقه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۴۷، رقم: ۶۰۲۲، ومسلم ۲\۶۹۹، رقم: ۵۶- ۱۰۰۹.

**تشریح**: د تکلیف رسولو څخه مراد دادی چي نه خو په خپلي ژبي او لاس سره چاته تکلیف او ضرر رسوی او که د هغه په وس کي وي نو نور خلک دي هم نورو ته د تکلیف او ضرر رسولو څخه منعه کړي دا مضمون یو شاعر داسي کړی دی. مرا بخير تو امید نیست بد مرسان

## د بدن صدقه ورکول

﴿۱۸۰۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ سُلَامَى

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د انسان په بدن کي چي څومره بندونه دي

مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ تَطْلُعُ فِيهِ الشَّمْسُ يَعْدِلُ بَيْنَ الِاثْنَيْنِ

په هغو کي هره ورځ پر هر یوه صدقه واجب ده د دوو کسانو په منځ کي انصاف کول هم صدقه ده

صَدَقَةٌ وَيُعِينُ الرَّجُلَ عَلَى دَابَّتِهِ فَيَحْمِلُ عَلَيْهَا أَوْ يَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ

او چي کومک وکړي د سړي سره پر حیوان د هغه سړي چي پر سپور یې کړي یا پورته یې کړي پر حیوان اسباب دده دا صدقه ده

وَالْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ وَكُلُّ خُطْوَةٍ يَخْطُوهَا إِلَى الصَّلَاةِ صَدَقَةٌ وَيُمِيطُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ. متفق عليه

او ښه خبره صدقه ده، او مسجد ته په تلو سره چي کوم قدم پورته کوي هغه هم صدقه ده او د لاري څخه تکلیف ورکونکی شی لیري کول هم صدقه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۱۳۲، رقم: ۲۹۸۹، ومسلم ۲\۶۹۹، رقم: ۵۶-۱۰۰۹.

**تشریح**: مطلب دا چي الله تعالى د انسان په بدن کي کوم مفاصل (بندونه) چي پیدا کړي دي په هغه کي د هغه حکمتونه او بې شمیره نعمتونه پټ دي نو د هغه په شکرانه کي هره ورځ پر انسان باندي صدقه لازمه ده.

(يعدل بين الاثنين ............الخ) څخه دا خبره بیان فرمایل سوې ده چي صدقه یوازي د دې نوم نه دی چي یو سړي ته د الله تعالى په لار کي مال او زر ورکړه سي مګر دا شیان یعني د دوو خلکو په مینځ کي عدل کول هم صدقه ده څرنګه چي د الله تعالى په لار کي په مال خرڅولو

سره کوم ثواب تر لاسه کيږي همداسي د دې شيانو هم ډير زيات ثواب تر لاسه کيږي ، انسان چي هره ورځ څه هم نيک کار کوي ګويا هغه صدقه وکړه چي الله تعالی پر هغه د جوړونو د خوا څخه يې د شکر په توګه لازم کړې ده .

د ښې خبري څخه مراد هغه خبره ده او کلام دی چي په هغه سره زيات ثواب تر لاسه کيږي يا د سائل وغيره سره په نرمه لهجه کي خبري هم کيدای سي .

( وكل خطوة ) څخه يوازي هغه قدم مراد نه دی چي لمانځه ته د تلو لپاره ايښودل سي مګر هر هغه قدم ځيني مراد دی چي په نيکه لار کي او د نيک مقصد لپاره پورته کول سي مثلاً د طواف لپاره د ناروغه د پوښتني لپاره په جنازې کي د ګډون لپاره او د علم لپاره .

تکليف ده شيان د دې څخه هر هغه شيان مراد دي چي د هغه څخه پر لار تلونکي ته د تکليف رسيدو انديښنه وي لکه ازغی، هډوکی، ډبره، خښته ،نجاست او داسي نور .

## د انسان د بدن بندونه

﴿۱۸۰۳﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلق كُلُّ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پيدا کړل سوي دي هر

إِنْسَانٍ مِنْ بَنِي آدَمَ عَلَى سِتِّينَ وَثَلَاثِ مِائَةِ مَفْصِلٍ فَمَنْ كَبَّرَ اللّٰهَ وَحَمِدَ اللّٰهَ

انسان درې سوه شپيته (۳۶۰) بندونه، څوک چي الله اکبر ووايي د الله حمد وکړي .

وَهَلَّلَ اللّٰهَ وَسَبَّحَ اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ اللّٰهَ وَعَزَلَ حَجَرًا عَنْ طَرِيقِ النَّاسِ أَوْ

لااله الاالله ووايي ، سبحان الله ووايي . د الله ﷻ څخه استغفار وغواړي او د خلکو د لاري څخه ډبري، هډوکي يا

شَوْكَةً أَوْ عَظْمًا عَنْ طَرِيقِ النَّاسِ وَأَمَرَ بِمَعْرُوفٍ أَوْ نَهَى عَنْ مُنْكَرٍ عَدَدَ تِلْكَ

ازغي ليري کړي يا يو چا ته نيکه خبره وښيي او د بدی څخه يې منع کړي او دا ټوله

السِّتِّينَ وَالثَّلَاثِ مِائَةِ فَإِنَّهُ يَمْشِي يَوْمَئِذٍ وَقَدْ زَحْزَحَ نَفْسَهُ عَنِ النَّارِ .

رواه مسلم .

درې سوه شپېته ته ورسيږي نو داسي سړی په دغه ورځ داسي ګرځي لکه هغه چي ځان د اور څخه ليري ساتلی يي. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۱۲\۶۹۸، رقم: ۵۴-۱۰۰۷.

**تشريح:** مطلب دادی چي مذکوره افعال کول او د خپل جسم د دردونو په شمير د مذکوره کلمات ورد ويل او په حقيقت کي خپل بدن او د بدن د جوړونو د دوږخ د اور څخه ساتل دي.
لفظ يومئذ په هغه ورځ څخه دې خوا ته اشاره ده چي پر دې خبرو باندي عمل او د دې کلماتو ورد روزانه کول پکار دی چي د هغه د ګناهونو کفاره ادا کيږي.

## معنوي صدقې

﴿۱۸۰۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ بِكُلِّ

د حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر

تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةً وَكُلِّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةً وَكُلِّ تَحْمِيدَةٍ صَدَقَةً وَكُلِّ تَهْلِيلَةٍ

تسبيح (سبحان الله ويل) صدقه ده او هر تکبير (الله اکبر ويل) صدقه ده او هر تحميد (الحمدلله ويل) صدقه او هر تهليل (لااله الاالله) ويل

صَدَقَةً وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ صَدَقَةٌ وَفِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ

صدقه ده، او د نيکي خبري لارښوونه کول صدقه ده او د بدي څخه منع کول صدقه ده او د خپلي ښځي يا مينځي سره کوروالي کول

صَدَقَةٌ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَيَأْتِي أَحَدُنَا شَهْوَتَهُ وَيَكُونُ لَهُ فِيهَا أَجْرٌ قَالَ أَرَأَيْتُمْ

صدقه ده، د دې په اوريدو سره صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! په موږ کي هر څوک خپل شهوت پوره کوي او په دې کي هم هغه ته ثواب رسيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دا راته وواياست

لَوْ وَضَعَهَا فِي حَرَامٍ أَكَانَ عَلَيْهِ فِيهَا وِزْرٌ فَكَذَلِكَ إِذَا وَضَعَهَا فِي الْحَلَالِ كَانَ لَهُ أَجْرًا. رواه مسلم

که چیري هغه په حرامو خپل شهوت پوره کولای نو پر هغه به ګناه وای که نه ؟ همداسي د هغه په حلاله طریقه شهوت پوره کول د ثواب باعث دئ .. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۲\۶۹۷، رقم: ۵۳-۱۰۰۶.

**تشریح**: څرنګه چي په ظاهري توګه سره صدقه د الله تعالی په لارکي خرڅولو ته وايي چي د هغه په وجه الله تعالی ورته ثواب ورکوي همداسي د مذکوره کلمات ورد کول او مذکوره اعمال په معنوي توګه سره په صدقې سره تعبیر کیږي په دې توګه چي د هغه په وجه هم ورته الله تعالی هغه ته ثواب ورکوي کوم چي د صدقې په توګه مال ورکونکو ته ترلاسه کیږي.

د خپلي بي بي او مینزي سره صحبت که څه هم بذات خود عبادت او صدقه نه ده همداسي صحابه ته هم اشکل سو مګر د خپلي بي بي حق ادا کیږي او نفس حرام کاري خوا ته ډیر زیات مائل کیدو او د شیطان د ترغیب او تحریص باوجود د الله تعالی د حکم لاندي خپل ځان د حرامو ذریعو څخه په ساتلو سره حلالي او جائزې ذریعې خوا ته مائل کوي همداسي د خپلي بي بي یا مینزي سره صحبت کونکی د صدقې ثواب ترلاسه کوي.

## غوره صدقه

﴿۱۸۰۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ نِعْمَ الصَّدَقَةُ اللِّقْحَةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً وَالشَّاةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً تَغْدُوْ بِإِنَاءٍ وَتَرُوْحُ بِآخَرَ . متفق علیه

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: غوره صدقه هغه زیات شیدې ورکونکې اوښه، (میوه، غوا وغیره) ده چي د شېدو لپاره یو چا ته ورکړل سي او بیا هغه زیاتې شیدې ورکونکې میوه چي د شیدو لپاره چا ته ورکړل سي چي هغه په سهار کي ډک لوښی شېدې کوي او په ماښام کي هم لوښی ډکوي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۷۰، رقم: ۵۶۰۸، ومسلم ۲\۷۰۷، رقم: ۷۴-۱۰۲۰.

**د لغاتو حل**: (اللقحة): الناقة ذات اللبن (شېدې کوونکې اوښه). (الصفي): الغزیزة اللبن. (ښه شېدې کوونکې).

**تشریح**: په عربو کي دا معمول وو چي چا ته به الله تعالی توفیق ورکی نو هغه به خپله شېدې ورکونکې اوښه یا بزه چا ضرورت مند یا محتاج ته عاریة ورکوله چي د هغه په ذریعه به هغه حاجتمند خپل ضرورت د پوره کولو وروسته هغه مالک ته واپس کړه رسول الله ﷺ د دې طرز

عمل تعریف کړی دی چي دا عمل بهترینه صدقه ده .

## د کښتونو صدقه

﴿۱۸۰۶﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم مسلمان چي

یَغْرِسُ غَرْسًا اَوْ یَزْرَعُ زَرْعًا فَیَاْکُلُ مِنْہُ طَیْرٌ اَوْ اِنْسَانٌ اَوْ بَھِیْمَۃٌ اِلَّا کَانَ لَہُ بِہٖ

یو نیالګی ولګوي یا فصل وکري او د هغه څخه انسان، مرغان او حیوانان خوراک کوي نو دا

صَدَقَۃٌ. متفق علیه و لي روایة لمسلم عن جابر و ما سرق منه له صدقة .

هم د هغه لپاره صدقه ده . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۳۸، رقم: ۶۰۱۲، ومسلم: ۳\۱۱۸۹، رقم: ۱۲- ۱۵۵۳.

**تشریح**: مطلب دادی که د یوه مسلمان د درختي میوه او داسي نور یا د هغه د فصله څخه انسان یا مرغان په څه طریقه څه وخوري نو د هغه مالک ته ثواب رسیږي کوم چي د الله تعالی په لار کي د خپل مال خیرات کولو ثواب دی ګویا د دې ارشاد په ذریعه مالک ته تاوان پر مال باندي تسلي ورکول کیږي چي هغه دي پر داسي وخت صبر وکړي ځکه چي د دې د تاوان په بدله کي هغه ته ډیر زیات ثواب تر لاسه کیږي .

یو اشکال او د هغه جواب : دلته یو اشکال پیدا کیږي چي د اعمال ثواب خو پر نیت باندي موقوف دی او ظاهره ده چي په صورت مذکوره کي د مالک د خوا څخه د نیت څه سوال نه پیدا کیږي نو بیا ثواب څرنګه تر لاسه کیږي، شاه عبدالعزیز محدث دهلوي رحمة الله علیه د دې په جواب کي فرمایي فصل مقصود مطلقا د نوع انساني حیات اوبقاء ده یعني بزګر چي کله په مځکه کي تخم اچوي یا د درختي بوټی لګوي نو د هغه لاندي د یو فرد د تخصیص بغیر مطلقا د نوع انساني او حیواني د ژوند د ضروریاتو د تکمیل نیت وي اوس د هغه فصله یا درختي څخه چي د انسان او حیوان کوم فرد هم فائده اخلي که څه هم هغه په ناجائزي طریقې سره فائده اخلي یا په جائزې طریقې سره، د اجمالي نیت تعلق به هغه سره وي دا جلا خبره ده چي کوم سړی په ناجائزي طریقې سره فائده اخلي خو د مالک په حق کي د هغه اجمالي نیت کافي کیږي ځکه چي د حصول ثواب لپاره اجمالي نیت کافي دی د هغه مالک ته به د هغه تاوان په بدله کي

د صدقې ثواب رسيږي.

## د هر ساه لرونكي شي مرسته كول ثواب لري

﴿۱۸۰۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُفِرَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بخښنه وسوه

لِاِمْرَأَةٍ مُومِسَةٍ مَرَّتْ بِكَلْبٍ عَلَى رَأْسِ رَكِيٍّ يَلْهَثُ كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ فَنَزَعَتْ

يوې بد كاره ښځي ته (له دې كبله) چي هغه پر لاري تيريده چي د څاه سره يې يو سپی وليدی چي د تندي له كبله يې ژبه راوتلې وه او نژدې وو چي د تندي څخه مړ سي

خُفَّهَا فَأَوْثَقَتْهُ بِخِمَارِهَا فَنَزَعَتْ لَهُ مِنَ الْمَاءِ فَغُفِرَ لَهَا بِذٰلِكَ قِيلَ إِنَّ لَنَا فِي

هغه ښځي خپله موزه وكښل او په خپل پوړني سره يې وتړل او د څاه څخه يې د هغه سپي لپاره اوبه راوكښې ددې له كبله هغه و بخښل سول، پوښتنه وسول ايا

الْبَهَائِمِ أَجْرًا قَالَ فِي كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ. متفق عليه

د حيوانانو سره په احسان كولو كي هم موږ ته ثواب تر لاسه كيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هر ساه لرونكي سره احسان كولو كي ثواب دئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۳۵۹، رقم: ۳۳۲۱، ومسلم ۴\۱۷۶۱، رقم: ۱۵۴-۲۲۴۵.

**د لغاتو حل**: (رَكِي): اى بئر (څاه).

**تشريح**: حضرت مظهر رحمه الله فرمائي د هر حيوان سره حسن سلوك كولو يعني په هغه باندي د خوړلو او څښلو ثواب تر لاسه كيږي، هو موذي حيوان چي د وژلو حكم لري د دې څخه مستثنى دي لكه مار، لړم او داسي نور.

دا حديث په دې خبري دلالت كوي چي الله تعالى چي كله غواړي د يوه سړي كبيره ګناهونه بغير د توبي هم معافوي د اهل سنت والجماعت دا مذهب دی.

## د پيشي له كبله عذاب

﴿۱۸۰۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَاَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عمر او ابوهريرة (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عُذِّبَتْ امْرَأَةٌ فِي هِرَّةٍ امسكتها حَتَّى مَاتَتْ من الجوع فلم تكن تطعمها ولا تر سلها فتَأكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ . متفق عليه

يوې ښځي ته د پيشي له کبله عذاب ورکړل سو چي هغه يې تړلې وه تر څو چي د لوږي څخه مړه سوه چي نه يې خوراک ورکوئ او نه يې خلاصول چي د مځکي د حيوانانو څخه يو شی وخوري . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۳۵۶، رقم: ۳۳۱۸، ومسلم ۴\۱۷۶۰، رقم: ۲۲۴۲.

**د لغاتو حل**: (خشاش الارض): اى دوابها (د مځکي خزندې).

**تشريح**: د دې حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي د حيوان سره بد سلوک او بې رحمي کول د الله تعالى په عذاب کي خپل ځان را چاپيره کول دي ، همدارنګه دا خبره هم ثابته سوه چي پر صغيره ګناه باندي هم عذاب کيدای سي د هغي ښځي دا فعل ظاهر دی چي صغيره ګناه ده د عقائد دا يوه مسئله ده چي پر صغيره ګناه باندي عذاب کيدل خلاف امکان نه دي .

## په معمولي نيکۍ باندي جنت

﴿۱۸۰۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ رَجُلٌ بِغُصْنِ شَجَرَةٍ عَلَى ظَهْرِ طَرِيقٍ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَأُنَحِّيَنَّ هَذَا عَنْ طريق الْمُسْلِمِينَ لَا يُؤْذِيهِمْ فَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ. متفق عليه .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو سړی تېر سو د يوې درختي پر ښاخ چي په لاره کي پروت وو هغه وويل : زه به دا د مسلمانانو د لاري څخه ليري کړم چي هغوی ته تکليف ونه رسيږي په دې خبره هغه سړی جنت ته داخل کړل سو . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۱۳۹، رقم: ۶۵۲، ومسلم ۴\۲۰۲۱، رقم: ۱۲۷- ۱۹۱۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي هغه سړی د هغه ښاخ د لاري څخه د پورته کولو اراده وکړه او بيا هغه يې پورته کړ نو هغه په جنت کي داخل کړه سو يا دا چي هغه سړی د خپل نيک او با خلوص نيت پر بناء د جنت مستحق وګرځول سو .

﴿۱۸۱۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ لَقَدْ رَأَيْتُ رَجُلًا يَتَقَلَّبُ فِي الْجَنَّةِ فِي شَجَرَةٍ قَطَعَهَا مِنْ ظَهْرِ الطَّرِيقِ كَانَتْ تُؤْذِي النَّاسَ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ما يو سړى په جنت کي وليدئ چي له دې کبله جنت ته تللى وو چي هغه د لاري څخه يوه درخته پريکړه او وه يې غورزول چي خلکو ته يې تکليف رسوئ . مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۴\۲۰۲۱، رقم: ۱۲۹– ۱۹۱۴.

---

﴿۱۸۱۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَرْزَةَ قَالَ قُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ عَلِّمْنِي شَيْئًا أَنْتَفِعُ بِهِ قَالَ اعْزِلِ الْأَذٰى عَنْ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ. رواه مسلم و سنذكر حديث عدي بن حاتم اتقوا النار في علامات النبوة . ان شاء الله تعالى .

د حضرت ابو برزة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما نبي کريم ﷺ ته عرض وکړ چي اې دالله رسوله ! ما ته يو داسي خبره وښيه چي زه ګټه ځيني واخلم، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : د مسلمانانو د لاري څخه تکليف رسونکى شى ليري کوه . مسلم او ډير ژر به د عدي بن حاتم حديث (اتقوا النار) په علامات نبوت کي بيان کړل سي .

**تخريج:** صحيح مسلم: ۴\۲۰۲۱، رقم: ۱۳۱– ۲۶۱۸.

---

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### تولنيزه نيکي

﴿۱۸۱۲﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله رسول الله ﷺ مديني ته تشريف راوړ

وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ جِئْتُ. فَلَمَّا تَبَيَّنْتُ وَجْهَهُ عَرَفْتُ أَنَّ وَجْهَهُ لَيْسَ بِوَجْهِ

نو زه يې په خدمت کي حاضر سوم ، د رسول الله ﷺ په مخ مبارک ليدو سره ما ته څرګنده سوه چي دا مخ درواغجن نه دئ

كَذَّابٍ فَكَانَ اَوَّلُ مَا قَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ أَفْشُوا السَّلَامَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَصَلُّوا

ترټولو وړاندي رسول الله ﷺ دا وفرمايل : خلکو سلام خپور کړئ يعني هر مسلمان ته سلام ادا کوئ ، (لوږو) ته ډوډۍ ورکوئ (د قريبانو) سره ښه چلن کوئ

وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ . رواه الترمذي وابن ماجة .

او د شپې هغه وخت لمونځ کوئ چي نور خلک بيده وي نو تاسو به په سلامتيا سره جنت ته داخل سئ . ترمذي، ابن ماجه ،

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۵۳، رقم: ۱۸۵۵، وابن ماجه ۲\۱۲۱۸، رقم: ۳۶۹۴.

## غريبانو ته خوراک ورکول

﴿۱۸۱۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اعْبُدُوا الرَّحْمَنَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَأَفْشُوا السَّلَامَ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ . رواه الترمذي و ابن ماجة .

د الله تعالی عبادت کوئ وږو ته ډوډۍ ورکوئ او په لوړ آواز سره سلام عام کړئ نو جنت ته به په سلامتيا سره داخل سئ . ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۵۳، رقم: ۱۸۵۵، وابن ماجه ۲\۱۲۱۸، رقم: ۳۶۹۴.

## د خيرات ګټه

﴿۱۸۱۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ وَتَدْفَعُ عَنْ مِيتَةِ السُّوءِ . رواه الترمذي .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : صدقه د الله تعالی غصه يخوي او خراب مرګ ليري کوي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۵۲، رقم: ۶۶۴.

**تشريح**: د الله تعالى غضب يخوي د دې مطلب دادی چي کوم سړی د الله تعالى په لار کي مال خرڅوي هغه ته الله تعالى په دنيا کي عافيت او سکون ورپه برخه کوي او پر هغه باندي بلاوي او آفتونه نه نازلوي.
د خراب مرګ څخه ساتي: د دې مطلب دادی چي صدقه او خيرات کونکی د مرګ پر وخت د خراب حالت څخه محفوظ وي يعني نه خو شيطان په هغه وسوسو کي اخته کوي او نه هغه سړی په څه داسي ناروغي او تکليف کي اخته کيږي ترڅو چي د هغه ميلان د کفر او ناشکرۍ خوا ته مائله سي ،حاصل دادی چي د الله تعالى د رضا لپاره خپل مال او زر خرڅولو والا خاتمه بالخير په ابدي سعادت سره نازول کيږي.

### هره نيکي صدقه ده

﴿۱۸۱۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مَعْرُوفٍ

د حضرت جابر ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هره نيکي

صَدَقَةٌ وَإِنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ وَأَنْ تُفْرِغَ مِنْ دَلْوِكَ فِي إِنَاءِ أَخِيكَ. رواه احمد والترمذي.

صدقه ده او دا هم نيکي ده چي ته په ورين تندي د خپل (مسلمان) ورور سره مخامخ سې او په خپله سلواغه د خپل ورور لوښی ډک کړې. احمد او ترمذي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۳۴۴، والترمذي ۴\۳۰۶، رقم: ۱۹۷۰.

﴿۱۸۱۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ تَبَسُّمُكَ فِي وَجْهِ أَخِيكَ لَكَ

د حضرت ابو ذر ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خپل ورور په وړاندي ستا خندل يا مسکی کيدل

صَدَقَةٌ وَأَمْرُكَ بِالْمَعْرُوفِ وَنَهْيُكَ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ وَإِرْشَادُكَ الرَّجُلَ فِي

صدقه ده ، نيکه خبره کول صدقه ده ستا د بدي خبري څخه منع کيدل صدقه ده چا ته لار ښودل

أَرْضِ الضَّلَالِ لَكَ صَدَقَةٌ وَبَصَرُكَ لِلرَّجُلِ الرَّدِيءِ الْبَصَرِ لَكَ صَدَقَةٌ

صدقه ده ، ړوند سړی تر لاس نیولی بیول صدقه ده ،

وَإِمَاطَتُكَ الْحَجَرَ وَالشَّوْكَةَ وَالْعَظْمَ عَنِ الطَّرِيقِ لَكَ صَدَقَةٌ وَإِفْرَاغُكَ مِنْ

دلاري څخه دبري ازغی او هډوکی لیري کول ستا لپاره صدقه ده او د خپل مسلمان ورور

دَلْوِكَ فِي دَلْوِ أَخِيكَ لَكَ صَدَقَةٌ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

لوښی د اوبو څخه ډکول هم ستا لپاره صدقه ده ، ترمذي روایت کړی او وایي دا حدیث غریب دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۹۹، رقم: ۱۹۵۶.

**تشريح**: ددې حدیث د آخري الفاظو څخه دا څرګندیږي چي د خپلي سلواغي څخه اوبه ډکول د صدقې له موخي دا د ثواب باعث دی نو په داسي حالت کي د سړي سره سلواغه نه وي نو هغه ته اوبه ورکول به تر دې زیات ثواب لري .

## تر ټولو غوره صدقه

﴿۱۸۱۷﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أُمَّ سَعْدٍ مَاتَتْ فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ قَالَ الْمَاءُ فَحَفَرَ بِئْرًا وَقَالَ هَذِهِ لِأُمِّ سَعْدٍ . رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت سعد بن عبادة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما نبي کریم ﷺ ته عرض وکړ اې د الله رسوله ! ام سعد (یعني زما مور) مړه سوه نو کومه صدقه غوره ده ؟ رسول الله ﷺ. وفرمایل : اوبه، نو سعد رضي الله عنه څاه و کنبنئ او وه یې ویل دا کوهي د ام سعد لپاره صدقه ده . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۳۱۳، رقم: ۱۶۷۹، والنسائي ۶\۲۵۴، رقم: ۳۶۶۶.

**تشريح**: هسي خو الله تعالی چي کوم شیان پیدا کړي دي هغه د بنده په حق کي د الله تعالی نعمت دی مګر د هغي لویو نعمتونو څخه یو لوی نعمت اوبه دي چي د دې څخه پرته د انساني ژوند بقاء ناممکنه ده بیا د مخلوق خدا لپاره د دې ضرورت دومره پراخه دی چي قدم په قدم د انسان ژوند دهغه وجود ته محتاجه دی، څه دنیا او څه آخرت د ټولو امورو لپاره د دې ډیر زیات ضرورت دی په خاصه توګه سره په هغه ښارونو او علاقو کي د اوبو ضرورت ډیر زیات محسوسیږي کومي چي ګرمي وي چل هلته د اوبولاس ته راوړل په اساني سره نه کیږي ځکه رسول الله ﷺ اوبه بهترینه صدقه ارشاد په فرمایلو سره د اوبو د حصول هره ذریعه که څه هم څاه

وي یا تالاب بهترینه صدقه جاریه ده چي تر څو پوري د هغه ذریعه موجوده وي د هغه قائمونکی به د الله تعالی په رحمتونو سره نازول کیږي.

## د نیکۍ دولونه

﴿۱۸۱۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم

مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا عَلَى عُرْيٍ كَسَاهُ اللّٰهُ مِنْ خُضْرِ الْجَنَّةِ وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ

مسلمان چي یو لوڅ مسلمان ته جامې ورکړي الله تعالی به هغه ته د جنت جامې واغوندې او کوم مسلمان چي

أَطْعَمَ مُسْلِمًا عَلَى جُوْعٍ أَطْعَمَهُ اللّٰهُ مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ سَقَى مُسْلِمًا

یو اوږي ته ډوډۍ ورکړي الله تعالی به هغه ته د جنت د میوو څخه خوراک ورکړي او کوم مسلمان چي یو تږي باندي اوبه وڅښي

عَلَى ظَمَإٍ سَقَاهُ اللّٰهُ مِنَ الرَّحِيْقِ الْمَخْتُوْمِ. رواه ابوداؤد والترمذي.

الله تعالی به هغه د مهر لګېدلو شرابو څخه اوبه کړي. ابوداؤد او ترمذي.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۳۱۴، رقم: ۱۶۸۲، والترمذي ۴\ ۵۴۶، رقم: ۲۴۴۹.

**تشریح**: مهر بند او د شراب څخه مراد دادی چي الله تعالی به په جنت کي پر هغه شراب څښني چي د سیل او مهر په ذریعه به د تغیر و تبدل څخه محفوظ او د هغه سرې لپاره به مخصوص وي چي د هغه څخه بل څوک به یې نسي څښلای، ګویا د هغه شرابو نفاست طرز ته اشاره فرمایل سوې ده چي څرنګه یو شی ډیر اعلی او نفیس وي هغه مهر بند کولای سي چي هغه د زمانې د یخي ګرمي هوا او د نورو څخه وساتي، همداسي هغه شراب به هم ډیر اعلی او نفیس وي چي په دې کي د هغه د خوند صحیح ادارک هم نسي کیدای بیا دا چي پر هغه به مهر هم د مشک وي څرنګه چي ارشاد مبارک دی:

یسقون من رحیق مختوم ختامه مسک: په هغوی به مهر خالص شراب څیښل کیږي چي د هغه مهر به مشک وي. یعني هغه شراب به د موم او لاکه وغیره په ذریعه نه بلکه د مشک په

ذريعه مهر او لاک کړل سوي يي .

## په شتمنۍ کي يوازي زکات نه دئ

﴿۱۸۱۹﴾: وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت فاطمې بنت قيس (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكَاةِ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ الَّتِي فِي الْبَقَرَةِ { لَيْسَ الْبِرَّ

په مال کي د زکوة څخه پرته هم حق سته ، بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ (ليس البر ...) نيکي يوازي دا نه ده چي

أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ } الْآيَةَ . رواه الترمذي و ابن ماجة والدارمي .

خپل مخ ختيځ يا لويديځ لور ته وګرځوې . ترمذي ، ابن ماجه او دارمي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۴۸، رقم: ۶۵۹و ۶۶۰، وابن ماجه ۱\ ۵۷۰، رقم: ۱۷۸۹، والدارمي ۱\ ۴۷۱، رقم: ۱۶۳۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي د مال زکوة خو فرض دی چي ضرور ورکول يې پکار دي خو د زکوة څه نور نفل صدقات هم مستحب دي چي د هغه ورکول د ډير زيات ثواب باعث دي او هغه صدقات دادي چي سائل او قرض غوښتونکی محروم او مايوس نه کړه سي د کور سامان مثلا کټوي، پيالې او داسي نور ، يا داسي هغه سامان چي په خپله قبضه او ملکيت کي وي که څوک رعاية غواړي نو هغوی ته په ورکولو کي منعه کول نه دي پکار څوک دي د اوبو مالګي او اور اخستلو څخه نه منعه کوي او داسي نور .

د حق څخه مراد هغه شيان دي چي په ذکر سوي آيت کي بيان سوه يعني خپلو قريبانو ، يتيمانو مسکينانو د مسافرو او سوالګرو لپاره د احسان او حسن سلوک معامله کول او د غلام ازادولو لپاره مال خرڅول او داسي نور ، پورتنی پوره آيت داسي دی :

لَيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَالْمَلآئِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَى حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّآئِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ وَأَقَامَ الصَّلاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ ۞

ژباړه : نيکي دا نه ده چي تاسو ختيځ او لويديځ (په قبله ګڼلو سره) هغه خوا ته مخ ګرځئ بلکه

نیکي داده چي خلک پر الله تعالی باندي، پر ملائکو باندي او پر کتابو باندي او پر پیغمبرانو باندي ایمان راوړي او مال سره د ارزښتناکه کېدو قریبانو، یتیمانو، اړو او مسافرو او غوښتونکو ته ورکړي او په غاړه خلاصولو کي یې خرڅ کړي او لمونځ کوي او زکوة ورکوي.

رسول الله ﷺ دا آیت ځکه د استناد په توګه تلاوت کړی چي په دې کي الله تعالی مخکي خو د هغه مومنانو تعریف کړی دی چي پر خپلو قریبانو، یتیمانو او مسکینانو باندي خپل مال خرڅوي د دې وروسته د لمونځ کونکو او زکوة ورکونکو تعریف یې کړی دی د دې څخه معلومه سوه چي مال خرڅول د زکوة ورکولو علیحده دي چي صدقه نفل ورته وائي ګویا رسول الله ﷺ چي دا فرمایلي وه د مال وزر په باره کي د دې ایت څخه ثابته سوه ځکه چي الله تعالی مخکي صدقات نافله ذکر کړه د هغه وروسته یې صدقه واجب یعني د زکوة ذکر یې وکړ.

## د کومو شیانو نه ورکول منع دي

﴿۱۸۲۰﴾: وَعَنْ بُهَيْسَةَ عَنْ اَبِيْهَا قَالَتْ قَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِيْ لَا

حضرت بهیسة (رض) د خپل پلار څخه روایت کوي چي د هغې پلار د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله! هغه کوم شی دئ چي

يَحِلُّ مَنْعُهُ قَالَ الْمَاءُ قَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِيْ لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ قَالَ

بندول (نه ورکول) یې جائز نه دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: اوبه، بیا یې پوښتنه وکړل بل کوم شی بندول؟ رسول الله ﷺ وفرمایل:

الْمِلْحُ قَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِيْ لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ قَالَ اَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ

خَيْرٌ لَكَ . رواه ابوداؤد.

مالګه، بیا یې پوښتنه وکړه بل کوم شی دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: نیکي کول ستا لپاره غوره ده. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۳\۷۵۰، رقم: ۳۴۷۶.

**تشریح**: د اوبو مطلب دادی چي ستا په ځمکه کي څاه او تالاب وي یا ستا په کور کي نل او داسي نور وي او د هغه څخه یو سړی اوبه اخلي نو هغه د اوبو څخه منع کول مناسب نه دی همداسي که په تاسو کي یو سړی اوبه غواړي او ستاسو سره د ضرورت زیاتي اوبه وي نو هغه

ته د ورکولو څخه انکار مه کوه همداسي د مالګي د ورکولو څخه انکار مه کوئ ځکه چي خلکو ته د مالګي ډیر زیات ضرورت وي او خلک دا اخلي ورکوي بیا دا چي د مالګي په ډول د شیانو څخه انکار کول هسي څه معنی نه لري دا ډیر زیات عام او ارزانه شی دی چي د هغه څه قیمت او هیڅ قدر یې نسته.

د حدیث اخري جمله پر ټولو نیکیو باندي مشتمله ده، د هغه مطلب دادی چي ستاسو څخه چي څومره کیدای سي او کومه نیکۍ چي کولای سی نو کوی یې د نیکۍ او خیر د کارونو څخه خپل ځان منعه کول صحیح نه دي او نه نور خلک د نیکۍ څخه منع کول جائز دي ګویا په حدیث کي مخکي د څو نیکیو بطور خاص ذکر کولو وروسته دا جمله ارشاد فرمایل تعمیم بعد تخصیص دی او دې خوا ته اشاره ده چي لا یحل د مفهوم د اعتبار څخه د لاینبغي په معنی کي استعمال سوی دی همداسي د حدیث مفهوم به دا وي چي د شیانو څخه منع کول او د هغه د ورکولو څخه انکار کول مناسب نه دي.

## وچه مځکه ابادول هم صدقه ده

﴿۱۸۲۱﴾: وعن جابر قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ من أحيى أرضا ميتة فله فيها أجر وما أكلت العافيةَ منه فهو له صدقة". رواه النسائي والدارمي

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي وچه مځکه اباده کړه نو په دې کي هم د هغه لپاره ثواب دئ او کوم شی چي د کښنت څخه وخوړل سي نو دا هم د هغه لپاره صدقه ده. دارمي

**تخریج**: النسائي في السنن الکبری ۳\۴۰۴، رقم: ۵۷۵۷، والدارمي ۲\۳۴۶، رقم: ۲۶۰۷.

**د لغاتو حل**: (العافية): الجماعة (ډله).

## د پور ورکولو فضیلت

﴿۱۸۲۲﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَنَحَ مَنِيحَةَ لَبَنٍ أَوْ وَرِقٍ أَوْ هَدَى زُقَاقًا كَانَ لَهُ مِثْلَ عِتْقِ رَقَبَةٍ. رواه الترمذي

د حضرت براء رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي یو چا ته د شیدو چښلو لپاره د شیدو حیوانان ورکړي یا نغدي روپۍ په پور ورکړي یا په لاره او کوڅه کي یو چا ته لار وښیي نو هغه

ته به د يوه غلام آزادلو ثواب ورسيږي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۳۰۰، رقم: ۱۹۵۷.

**د لغاتو حل**: الزّقاق: الطريق، يريد من دل الضال او الاعمى على طريقة. (لاره).

## يو څو نبوي نصيحتونه

﴿۱۸۲۲﴾: عَنْ أَبِي جُرَيٍّ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ اَتَيْتُ الْمَدِيْنَةَ فَرَأَيْتُ رَجُلًا

د ابو جرى جابر بن سيلم رضی الله عنه څخه روايت دئ چي كله زه مديني ته راغلم نو يو سړى مي وليدئ

يَصْدُرُ النَّاسُ عَنْ رَأْيِهِ لَا يَقُولُ شَيْئًا إِلَّا صَدَرُوا عَنْهُ قُلْتُ مَنْ هَذَا قَالُوا

چي خلک د هغه پر رايه ځي يعني څه چي هغه وايي خلک په هغه عمل كوي، هغه داسي هيڅ خبره نه كوي چي خلک عمل په ونه كړي، ما پوښتنه وكړه دا څوک دئ؟ خلكو وويل:

هَذَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال قُلْتُ عَلَيْكَ السَّلَامُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

دا د الله جل جلاله رسول دئ، پر هغه دي د الله جل جلاله رحمت او سلام وي، زه (رسول الله ﷺ) ته ورغلم او وه مي ويل: عليک السلام يا رسول الله،

مَرَّتَيْنِ قَالَ لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ عَلَيْكَ السَّلَامُ تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ قُلْ السَّلَامُ

ما دوه واره دا الفاظ وويل، رسول الله ﷺ وفرمايل: عليک السلام مه وايه، دا دمړي دعاء ده بلكه السلام

عَلَيْكَ قُلْتُ أَنْتَ رَسُولُ اللّٰهِ فَقَالَ أَنَا رَسُولُ اللّٰهِ الَّذِي إِذَا أَصَابَكَ ضُرٌّ

عليكم وو ايه، ما ورته وويل تاسو د الله رسول ياست؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، زه د الله رسول يم، هر كله چي تا ته يو تكليف ورسيږي

فَدَعَوْتَهُ كَشَفَهُ عَنْكَ وَإِنْ أَصَابَكَ عَامُ سَنَةٍ فَدَعَوْتَهُ أَنْبَتَهَا لَكَ وَإِذَا كُنْتَ

او ته هغه (الله) ياد كړې نو هغه ستا تكليف ليري كوي او كه ته په وچ كالي كي اخته يې نو هغه ياد كړې نو په ځمكه كي سبزيجات درته پيدا كړي او هر كله چي ته

بِأَرْضٍ قَفْرَاءَ أَوْ فَلَاةٍ فَضَلَّتْ رَاحِلَتُكَ فَدَعَوْتَهُ رَدَّهَا عَلَيْكَ قُلْتُ اعْهَدْ إِلَيَّ

په داسي مځکه کي يې چي د درختو او اوبو څخه خالي وي يا يو داسي ځنګل کي يې چي ابادي نه لري او ستا سپرلی ورک سي او ته هغه الله ياد کړې نو هغه ستا سپرلي بيرته درکوي، د جابر رضی اللہ عنہ بيان دئ چي ددې په اورېدو سره ما عرض وکړ: ما ته يو څه نصحيت وکړئ،

قَالَ لَا تَسُبَّنَّ أَحَدًا قَالَ فَمَا سَبَبْتُ بَعْدَهُ حُرًّا وَلَا عَبْدًا وَلَا بَعِيرًا وَلَا شَاةً

رسول الله ﷺ راته وفرمايل: ته چا ته بد مه وايه، جابر رضی اللہ عنہ وايي ددې وروسته ما هيچا ته بد ونه ويل، يعني نه آزاد او نه غلام ته، نه اوښ ته او نه پسه ته،

قَالَ وَلَا تَحْقِرَنَّ شَيْئًا مِنَ الْمَعْرُوفِ وَأَنْ تُكَلِّمَ أَخَاكَ وَأَنْتَ مُنْبَسِطٌ إِلَيْهِ

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: د نيکی هيڅ يو خبره سپکه مه ګڼه هر کله چي ته د خپل ورور سره خبري کوې نو په ورين تندي ورسره خبره وکړه

وَجْهُكَ إِنَّ ذَلِكَ مِنَ الْمَعْرُوفِ وَارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ فَإِنْ أَبَيْتَ فَإِلَى

چي دا هم نيکي ده، او خپل پرتوګ تر نيمي پوندۍ پوري پورته کړه او که دومره پورته دي خوښ نه وي نو تر

الْكَعْبَيْنِ وَإِيَّاكَ وَإِسْبَالَ الْإِزَارِ فَإِنَّهَا مِنَ الْمَخِيلَةِ وَإِنَّ اللهَ لَا يُحِبُّ الْمَخِيلَةَ

خپلو بجلکو لاندي پرتوګ تړلو څخه ځان وساته، ځکه چي دا د لويي نښه ده او الله تعالی تکبر (لويي) نه خوښوي،

وَإِنِ امْرُؤٌ شَتَمَكَ وَعَيَّرَكَ بِمَا يَعْلَمُ فِيكَ فَلَا تُعَيِّرْهُ بِمَا تَعْلَمُ فِيهِ فَإِنَّمَا وَبَالُ

او څوک چي درته ښکنځل وکړي او تا ته پر هغه غيرت درسي چي هغه ته معلوم دئ نو د هغه پر هغه عيب کوم چي تا ته معلوم دئ هغه ته پيغور مه ورکوه ځکه چي د هغه ګناه

ذَلِكَ عَلَيْهِ. رواه ابوداؤد و روي الترمذي منه حديث السلام و في رواية فيكون لك اجر ذالك و باله عليه.

پر هغه ده، (پر تا نه ده) ابوداؤد، او ترمذي سلام والا حديث روايت كړئ دئ او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي ستا لپاره به د هغه ثواب وي او د هغه لپاره وبال.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۴\ ۳۴۴ – ۳۴۵، رقم: ۴۰۸۴، والترمذي ۵\ ۶۸، رقم: ۲۷۲۱ و ۲۷۲۲.

**تشريح**: حضرت جابر رضي الله عنه دوه واره سلام ځکه ادا کړ چي يا خو رسول الله ﷺ به اول سلام نه وو اوريدلی يا دا چي رسول الله ﷺ به هغه ته د سلام طريقې ښودلو په غرض د اول سلام جواب نه وي ورکړی ارشاد علكي السلام مه وايه د نهي تنزيهي په توګه دی او د حديث الفاظ عليک السلام ويل د مړي لپاره دعا ده د دې ځخه په ظاهره دا خبره ثابتيږي چي کله يو سړی مړي ته راسي نو عليک السلام دي وائي السلام عليک دي نه وائي ځرنګه چي يو ژوندي سړي ته ويل کيږي حال دا چي تحقيقي خبره داده چي د مړي لپاره هم السلام عليک ويل مسنون دي ځکه چي د رسول الله ﷺ په باره کي دا ثابته ده چي کله به يې د مړي د زيارت لپاره تلی نو السلام علکم به يې ويل نو رسول الله ﷺ وويل : عليک السلام د مړي دعا ده د دې معنی به دا وي چي د جاهليت په ورځو کي عليک السلام د مړي لپاره دعا ده ځيني حضرات فرمائي په عربو کي مخکي دا معمول وو چي کله به ثوک قبر ته تلی نو هلته به يې د سلام لپاره دا ويل عليک السلام، نو رسول الله ﷺ د خپل ارشاد په ذريعه دې ته اشاره وفرمايله چي عليک السلام ويل د اهل عرب د معمول او عادت سره سم د مړي لپاره دعا نه ده نه دا چي د دې ارشاد ځخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي مړی دي سلام داسي کوي.

د حضرت جابر رضي الله عنه دا وينا چي د دې وروسته ما چاته بد ونه ويل د احتياط په توګه دی کنې تر ځوپوري چي د مسئلې تعلق دی علماء ليکي چي داسي سړي ته بد ويل چي د هغه د کفر په حالت کي مړکيدل په يقيني توګه سره معلوم وي جائز دی خو افضل او بهتر دادی چي خپله ژبه د الله تعالی په ذکر کي مصروفه وساتل سي چاته بد ويل نه دي پکار ځکه چي ماسيوا د الله تعالی په بل شي کي مصروفه کيدل د تاوان باعث دی کله چي چاته د بدو په ويلو کي هيڅ تاوان نسته مګر علماء خو تر دې پوري ليکي چي پر شيطان باندي هم په لعنت نه ويلو کي ځه تاوان نسته. تر ځو پوري چي د پرتاګه لنګ او داسي نورو د بجلکو زړول منعه دي همداسي په قميص کي هم د بجلکو لاندي کول منعه دي.

د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي کوم کس تاسو ته ښکنځل وکړي يا تاسو په خپلو عيبو وبولي او تاسو شرمنده کړي نو ستاسو به په دې کي ځه تاوان وي، هغه خو خپله ګناه کاره دی نو تاسو هم خپله ژبه مه خرابوئ او د هغه بې عزتي پر خپله ذمه مه اخلئ.

بدي را بدي سهل باشد جزاء اگر مردي احسن الی من اسا

د روایت په اخري کي (وفي روایة .........الخ) د الفاظو څخه معلومیږي چي ترمذي هم دا پوره روایت نقل کړی دی په ځینو حاشیو کي لیکل سوي دي چي ترمذي هم پوره روایت نقل کړی دی که څه هم د هغه الفاظ مختلف دي دلته چي کوم روایت نقل سوی دی هغه ابوداود نقل کړده روایت الفاظ دي.

## خیرات ورکول

﴿۱۸۲۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهُمْ ذَبَحُوا شَاةً فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ مَا بَقِيَ مِنْهَا قَالَتْ مَا بَقِيَ مِنْهَا إِلَّا كَتِفُهَا قَالَ بَقِيَ كُلُّهَا غَيْرَ كَتِفِهَا. رواه الترمذي و صححه.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي صحابه کرامو یو پسه حلال کړ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ایا په هغه پسه کي یو شی پاته دئ؟ بي بي عائشي وویل یوازي یو ورون پاته دئ، رسول الله ﷺ وفرمایل: بیا خو ټول پسه پاته دئ (یعني پرته د ورون څخه د ټول پسه خیرات ثواب اوس هم سته). ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۵۵، رقم: ۲۴۷۰.

**تشريح**: بېله ورونه ټوله پاته ده: د دې مطلب دادی چي په هغوی کي خو غوښه هغه پاته ده کومه چي په خلکو کي تقسیمه سوې ده په دې توګه چي د هغه ثواب محفوظ او ثابت سو د هغه پر خلاف چي کومه حصه په کور کي پاته ده هغه فاني ده ګویا په دې آیت کریمه کي دې خوا ته اشاره ده. ما عندكم ينفدوا ما عند الله باق: څه چي ستاسو سره وي فاني دي او څه چي د الله تعالی سره دي هغه پاته کیدونکي دي.

## لوږ ته جامه ورکول

﴿۱۸۲۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي

يَقُولُ مَا مِنْ مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا إِلَّا كَانَ فِي حِفْظٍ مِنَ اللَّهِ مَا دَامَ مِنْهُ عَلَيْهِ خِرْقَةٌ. رواه احمد والترمذي.

چي فرمايل يې: كوم مسلمان يو بل مسلمان ته جامه وركړي نو تر څو پوري چي د هغه جامې يو تا هم پاته وي نو هغه سړى به د الله په امن كي وي . احمد او ترمذي .

**تخريج:** سنن الترمذي ۴\۵۶۲، رقم: ۲۴۸۴، لم نجده عند الامام احمد.

**تشريح:** دا د دنيا فائده ده چي د هغه د وركړه سوو جامو څخه يوه ټوټه هم تر څو پوري چي د هغه مسلمان پر بدن وي هغه د الله تعالى په حفاظت او امان كي وي خو په آخرت كي چي د دې كوم ثواب دى هغه بې حسابه دى .

## په پټه صدقه وركول

﴿۱۸۲۶﴾: وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ يَرْفَعُهُ قَالَ ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ رَجُلٌ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : درې كسان داسي دي چي الله تعالى ورسره مينه كوي : يو هغه كس

قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتْلُو كِتَابَ اللّٰهِ وَرَجُلٌ يتصدق بصدقة بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا أُرَهُ

چي د شپې ولاړيږي او د قرآن تلاوت كوي ، دوهم هغه كس چي په راسته سره صدقه وركړي مګر چپه لاس يې هم خبر نه سي ،

قَالَ مِنْ شِمَالِهِ وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَانْهَزَمَ أَصْحَابُهُ فَاسْتَقْبَلَ الْعَدُوَّ .

رواه الترمذي و قال هذا حديث غير محفوظ احد رواته ابوبكر بن عياش كثير الغلط .

دريم هغه كس چي په يو لښكر كي .ګډون وكړي د هغه ملګري ماته وخوري او هغه د دښمن په وړاندي پاته سي . ترمذي ويلي دي دا حديث غير محفوظ دئ ددې يو راوي ابوبكر بن عياش ډيري غلطۍ كوي .

**تخريج:** سنن الترمذي ۴\۶۰۱، رقم: ۲۵۶۷.

**تشريح:** د ( بيمينه ) څخه د صدقه وركونكي آداب ته اشاره فرمايل سوې ده چي د صدقې مال په خپل لاس سره وركړه سي يا دا چي مخكي هغه سړي ته د صدقې او خيرات مال وركړي چي خپل راسته خوا ته وي .

د چپه لاس څخه يې پټه کړي د دې مطلب دادی چي په راسته لاس سره د صدقې مال ورکړي نو چپه لاس هم د هغه څخه خبر نه وي په هغوی کي کمال د پټ والي لپاره د مبالغې په توګه فرمايل سوی دی، يعني د صدقې مال دي په ډيري زياتي پټې طريقې سره ورکړه سي چي د صدقې مال اخستونکی په عام نظرونو کي خپله کمتري محسوسه نه کړي بيا د دې الفاظو معنی به دا وي چي د صدقې مال راسته خوا ته ورکړي نو د هغه چپه خوا والا هم خبريدل نه دي پکار. دا چي د الله تعالی د رضا لپاره او د هغه رياء او ځان ښوونې څخه د ساتلو لپاره همداسي په پټه صدقه ورکول د زيات ثواب باعث دي.

## درې کسان

﴿۱۸۲۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ

د حضرت ابوذر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د درو کسانو سره الله ﷻ مينه کوي

اللهُ وَثَلَاثَةٌ يُبْغِضُهُمُ اللهُ فَأَمَّا الَّذِينَ يُحِبُّهُمُ اللهُ فَرَجُلٌ أَتَى قَوْمًا فَسَأَلَهُمْ

او د درو کسانو سره الله تعالی بغض ساتي، کوم خلک چي الله ﷻ دوستي ورسره کوي د هغو څخه يو دادئ چي هغه داسي سړي ته صدقه ورکړي چي د يو قوم څخه د غوښتلو لپاره راغلئ وو

بِاللهِ وَلَمْ يَسْأَلْهُمْ لِقَرابَةٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ فَمَنَعُوهُ فَتَخَلَّفَ رَجُلٌ بِأَعْقَابِهِمْ

او هغه دغه قوم څخه د خپلولۍ د حق په نامه نه بلکه د الله تعالی په نامه سوال کړی وو مګر قوم د ورکولو څخه انکار وکړ نو د قوم څخه يو سړی را وړاندي سو او په داسي پټه يې د هغه سوال پوره کړ چي

فَأَعْطَاهُ سِرًّا لَا يَعْلَمُ بِعَطِيَّتِهِ إِلَّا اللهُ وَالَّذِي أَعْطَاهُ وَقَوْمٌ سَارُوا لَيْلَتَهُمْ

د الله ﷻ څخه پرته او د هغه سړي څخه پرته بل چا ته څرګند نه سوه، او دوهم هغه سړی چي د قوم سره ټوله شپه ولاړ ئ

حَتَّى إِذَا كَانَ النَّوْمُ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِمَّا يُعْدَلُ بِهِ فَوَضَعُوا رُءُوسَهُمْ فَقَامَ أَحَدُهُمْ

تر دي چي خوب ورته ډير خوږ سو او ټول خلک بيده وي او دی را ولاړ سي د الله تعالی په

وړاندي زارى كوي

يَتَمَلَّقُنِي وَيَتْلُو آيَاتِي وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَلَقِيَ الْعَدُوَّ فَهُزِمُوا وَأَقْبَلَ

او قرآن مجيد وايي او دريم هغه سړى چي په يو لښكر كي وو ، د لښكر د دښمن سره مقابله سوه او ماته يې وخوړل او دا سړى د دښمن په وړاندي د سپر په ډول ولاړ وو ،

بِصَدْرِهِ حَتَّى يُقْتَلَ أَوْ يُفْتَحَ لَهُ وَالثَّلَاثَةُ الَّذِينَ يُبْغِضُهُمُ اللهُ الشَّيْخُ الزَّانِي

تر څو چي قتل سي يا فتح تر لاسه كړي ، او هغه درې كسان چي الله تعالى بغض ورسره كوي په هغوى كي يو هغه سپين ږيرى دئ چي زنا كوي

وَالْفَقِيرُ الْمُخْتَالُ وَالْغَنِيُّ الظَّلُومُ . رواه الترمذي و النسائي مثله و لم يذكر و ثلثة يبغضهم .

او دوهم تكبر كونكى فقير دئ او دريم ظلم كونكى شتمن دئ ، نسائي هم داسي روايت كړئ دئ او (ثلثة يبغضهم) يې نه دئ ذكر كړئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۰۱، رقم: ۲۵۶۸، والنسائي ۵\۸۴، رقم: ۲۵۶۹.

**تشريح**: د حديث شروع چي په كوم طرز سره سوې ده د هغه څخه خو معلوميږي چي دا د رسول الله ﷺ ارشاد دى خو وروسته طرز يعني د حديث الفاظ يتملقني او زما مخكي په زارى شروع سي د دې څخه دا خبره ثابتيږي چي دا ارشاد نبوي نه دى بلكه كلام الهي دى، طرز خلاف د دې اختلاف توجيه دا كيږي چي دا حديث په حقيقت كي خو ارشاد نبوي دى مگر الله تعالى خپل نبي ته هغه كيفيت بيان كى چي د هغه او هغه بنده په مينځ كي واقع كيږي څكه رسول الله ﷺ په دې وخت كي د هغوى كيفيت د بيانولو لپاره د الله تعالى بعينه قول نقل وفرمايه.

الشيخ الزاني: چي د سپين ږرتوب باوجود زنا كوي د لفظ شيخ څخه يا خو سپين ږيرتوب مراد دى يا به وويل سي چي دلته د شيخ څخه واده سوى مراد دى كه څه هم هغه سپين ږيرى وي يا ځوان وي لكه څرنگه چي په دغه منسوخ آيت كي دى :

الشيخ والشيخة اذا زانيا فارجموهما البتة نكالا من الله والله عزيز حكيم

ژباړه : واده سوى سړى او واده سوې ښځه كله چي دواړه زنا وكړي نو دواړه سنگسار كړى د الله تعالى د خوا څخه دا سزا ضروري ده بيشكه الله تعالى غالب ذات او د حكمت خاوند دى .

په دې کي د شيخ څخه مراد واده سوی دی که څه هم هغه ځوان وي يا سپين ږيری تکبر کونکی فقير هم د الله تعالی په نزد مبغوض ګرځول کيږي مګر د فقير هغه تکبر مستثنی دی چي د يوه متکبر سره وي مګر داسي تکبر خو صدقه ګرځول کيږي يعني که يو فقير چا د متکبر سره تکبر وکړی نو هغه به د الله تعالی په نزد مبغوض نه وي بلکه هغه ته به د صدقې ثواب ورکول کيږي، د بشير ابن حارث رحمة الله عليه. په باره کي نقل دي چي يو وار هغه اميرالمومنين حضرت علي کرم الله وجهه په خوب کي وليدی نو هغه ته يې وويل چي اې اميرالمومنين! ماته څه نصيحت وکړه حضرت علي رضي الله عنه ورته وفرمايل: شتمنو ته د الله تعالی د رضا د حاصلولو لپاره او د مسکينانو سره د مهربانۍ معامله کول ډېر غوره دي، او فقيرانو ته پر الله تعالی باندي توکل او اعتماد او د مالدارانو سره د تکبر معامله کول ډير بهتر دي.

پورته چي کوم خصلتونه ذکر سوي دي که څه هم هغه د ټولو خلکو په حق کي خراب دي مګر د دې درو سرو په حق کي ډېر زيات خراب دي ځکه چي دوی د الله تعالی دښمنان ګرځول سوي دي.

﴿۱۸۲۸﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا خَلَقَ اللهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي الله تعالی پيدا کړه

الْأَرْضَ جَعَلَتْ تَمِيدُ فَخَلَقَ الْجِبَالَ فَعَادَ بِهَا عَلَيْهَا فَاسْتَقَرَّتْ فَعَجِبَتْ

مځکه نو هغه په لړزيدو سوه، بيا يې غرونه پيدا کړل او هغو ته يې پر مځکه د دريدو حکم ورکړ نو مځکه ودريدل نو حيراني سوې

الْمَلَائِكَةُ مِنْ شِدَّةِ الْجِبَالِ فَقَالُوا يَا رَبِّ هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ

ملائکي د غرو په سختوالي ،هغوی پوښتنه وکړه اې پروردګاره! ستا په مخلوق کي تر غره هم سخت شی سته؟

الْجِبَالِ قَالَ نَعَمْ الْحَدِيدُ فَقَالُوا يَا رَبِّ فَهَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ

الله تعالی ورته وفرمايل: هو، اوسپنه ده، بيا ملائکو پوښتنه وکړه اې پروردګاره! ستا په مخلوق کي تر اوسپني هم زيات سخت شی سته؟

الْحَدِيدِ قَالَ نَعَمْ النَّارُ فَقَالُوا يَا رَبِّ فَهَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ النَّارِ

الله تعالی ورته وفرمایل: هو، اور دئ، ملائکو بیا پوښتنه وکړه اې پروردګاره! ستا په مخلوق کي تر اور هم سخت شی سته؟

قَالَ نَعَمْ الْمَاءُ قَالُوا يَا رَبِّ فَهَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْمَاءِ قَالَ نَعَمْ

الله تعالی ورته وفرمایل: هو، اوبه دي، ملائکو بیا پوښتنه وکړه اې ربه! ستا په مخلوق کي تر اوبو هم زیات سخت شی سته؟ الله تعالی ورته وفرمایل: هو،

الرِّيحُ قَالُوا يَا رَبِّ فَهَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الرِّيحِ قَالَ نَعَمْ ابْنُ آدَمَ

هواء ده، ملائکو بیا پوښتنه وکړه اې ربه! ستا په مخلوق کي تر هواء هم زیات سخت شی سته؟ الله تعالی ورته وفرمایل: هو، د آدم اولاده انسان دئ

تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا مِنْ شِمَالِهِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب و ذكر حديث معاذ الصدقة تطفئ الخطيئة في كتاب الايمان

چي په راسته لاس سره داسي خیرات کوي چي د چپه لاس څخه یې هم پټوي. ترمذي، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ، د معاذ حدیث چي صدقه ګناهونه رژوي په کتاب الایمان کي بیان سوی دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۲۳، رقم: ۳۳۶۹.

**تشريح**: د بني آدم صدقه ورکول دې فعل ته ځکه تر ټولو زیات سخت فرمایل سوی دی چي په ډیري پټي توګي سره چاته صدقه په ورکولو کي د نفس اماره مخالفت طبیعت او پر مزاج باندي د شیطان ملعون مدافعت لازمیږي.

کله چي د دې څخه په ذکر سوو شیانو یعني غرونه، اوسپنه، اور او داسي نورو کي دا خبره نسي تر لاسه کیدای.

په پټه صدقه ورکولو کي د نفس مخالفت او د شیطان مدافعت په دې توګه لازمیږي چي په فطري توګه سره نفس دا غواړي چي زه کله چاته مال ورکړم نو خلک دي وګوري او زما تعریف دي وکړي چي ماته په نورو خلکو فخر او امتیاز حاصل دی، هغه چي د عام نظرونو څخه په پټولو سره چاته خپل مال ورکي نو هغه ګویا د نفس اماره مخالفت وکی او شیطان یې د ځان څخه لیري کی.

ځيني علماء فرمائي: دا ځکه زياته سخته ده چي د صدقې په وجه د الله تعالى رضا حاصليږي او ظاهره ده چي د الله تعالى رضا تر ټولو لوی شی دی .

و ذکر حديث معاذ الصدقة تطفئي الخطيئة في کتاب الايمان : او د حضرت معاذ رضي الله عنه روايت تطفئي الخطيئة په کتاب الايمان کي نقل سوي دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د هر شي څخه دوه دوه شيان خيراتول

﴿۱۸۲۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ عَبْدٍ

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم مسلمان چي

مُسْلِمٍ يُنْفِقُ مِنْ كُلِّ مَالٍ لَهُ زَوْجَيْنِ فِي سَبِيلِ اللهِ إِلَّا اسْتَقْبَلَتْهُ حَجَبَةُ

د خپل هر مال څخه دوه دوه شيان د الله جل جلاله په لار کي نفقه کوي نو د جنت ټول دربانان د هغه ښه

الْجَنَّةِ كُلُّهُمْ يَدْعُوهُ إِلَى مَا عِنْدَهُ قُلْتُ وَكَيْفَ ذٰلِكَ قَالَ إِنْ كَانَتْ إِبِلًا

راغلاست کوي او په هغوی کي به هر يو هغه لره هغه د هغه شي په لور بولي چي ورسره دي ، ابوذر وايي ما پوښتنه وکړه ددې څه شکل دئ ؟ يعني دوه دوه شيان څنګه خرڅ کيږي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : که اوښان وي

فَبَعِيرَيْنِ وَإِنْ كَانَتْ بَقَرًا فَبَقَرَتَيْنِ. رواه النسائي .

نو دوه اوښان او که غواوي وي نو دوې غواوي . نسائي .

**تخريج**: سنن النسائي ۶\۴۸-۴۹، رقم: ۳۱۸۵.

**تشريح**: د الله تعالى په لار کي د خرڅولو مطلب دادی چي خپل مال دي هلته خرڅ کړي کوم ځای چي په خرڅولو سره الله تعالى خوشحاله کيږي او راضي کيږي لکه حج ، جهاد ، طلب علم ، د غريبانو او محتاجانو مرسته او داسي نور ، د ځان سره د شيانو مراد د جنت ښه ښه شيان او د هغه ځای نعمتونه دي يا د دې مطلب دا چي د هغه دربان به هغه د جنت هري دروازې خواته بولي .

## صدقه سايه ده

﴿۱۸۳۰﴾: وَعَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ

د حضرت مرثد بن عبد الله رحمه الله څخه روايت دئ چي ما ته د رسول الله ﷺ ځينو صحابه كرامو بيان كړئ دي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ ظِلَّ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَدَقَتُهُ. رواه احمد.

چي هغوی د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د قيامت په ورځ به د مؤمن سايه د هغه صدقه وي. احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۳۳.

**تشريح**: څرنګه چي سايوان د لمر د ګرمۍ څخه ساتي همداسي د قيامت په ورځ به صدقه د نجات او ارام او راحت سبب وي يا دا چي د قيامت په ورځ به صدقه يا د هغه د سايوان په شكل كي د صدقې وركونكو پر سر و درول سي تر څو چي د هغه ورځي د ګرمۍ څخه وساتل سي.

## د عاشورې ورځ

﴿۱۸۳۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

وَسَّعَ عَلَى عِيَالِهِ فِي النَّفَقَةِ يَوْمَ عَاشُوْرَاءَ وَسَّعَ اللّٰهُ عَلَيْهِ سَائِرَ سَنَتِهِ " . قال سفيان : إنا قد جربناه فوجدناه كذلك . رواه رزين

د عاشورې په ورځ په خپل كورني زيات خرڅ وكړي نو الله تعالی به پر هغه ټوله كال پراخي وكړي ، د سفيان ثوري بيان دي چي. موږ ددې تجربه وكړه او همداسي وسول . رزين ، بيهقي په شعب الايمان كي د ابن مسعود ، ابوهريرة ، ابوسعيد او جابر څخه روايت كړئ دئ او هغه دې حديث ته ضعيف ويلي دي.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: بيهقي رحمة الله عليه دې روايت ته ضعيف ويلی دی مګر هغه دا هم ويلي دي که څه هم د دې طرق ضعيف دی خو د يو بل څخه تقويت ورته حاصل دی .
ځيني خلکو د عاشورې په ورځ د رانجو وهلو په باره کي چي کوم حديث نقل کړی دی د هغه څه حقيقت نسته همداسي د عاشورې په ورځ د نورو لس افعالو په اړه چي کوم حديث نقل کيږي دغه هم نسته البته د عاشورې په ورځ د صحيح احاديث په ذريعه يوازي روژه نيول او په خوراک کي وسعت اختيارول ثابت دي .

## د خيرات کولو ثواب

《۱۸۳۲》: وَعَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ قَالَ قَالَ اَبُوْذَرٍ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ الصَّدَقَةَ مَاذَا هِيَ قَالَ أَضْعَافٌ مُضَاعَفَةٌ وَعِنْدَ اللّٰهِ الْمَزِيْدُ . رواه احمد .

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ابو ذر د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې دالله رسوله ! ما ته وښياست چي د صدقې ثواب څه شي دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دوه برابر او ددوو برابرو څخه هم زيات او دالله تعالی په نزد د دې څخه هم زيات دئ . احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۷۸،

**تشريح**: د حديثو څخه د چند درچند مقدرا لس چنده تر اوه سوه پوري معلوميږي او که الله تعالی غواړي او د هغه خالص رحمت شامل وي نو د ثواب مقدار تر اوو سوو هم زيات کيدای سي څرنګه چي خپله الله تعالی فرمائي : والله يضاعف لمن يشاء : د چا لپاره چي الله تعالی وغواړي د هغه ثواب زياتوي .

===========

# بَابُ اَفْضَلِ الصَّدَقَةِ

## د غوره صدقې بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### غوره صدقه

﴿۱۸۳۳﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه او حكيم بن حزام رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُوْلُ . رواه البخاري و رواه مسلم عن حكيم وحده.

غوره صدقه هغه ده چي په بې پرواهي سره ورکړل سي او صدقه د هغه چا څخه پيل کړه چي پر تا دهغه نفقه واجب ده. بخاري او مسلم يوازي د حكيم بن حزام څخه روايت کړئ دئ.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۹۴، رقم: ۱۴۲۶. ومسلم ۲\۷۱۷، رقم: ۹۵- ۱۰۳۴.

**تشريح**: د بې پرواهي مطلب دادی چي د صدقې مال دي په اندازه سره ورکړي چي ته خپله فقير او مفلس جوړ نسې بلکه غنا پاته وي يعني د خپلي کورنۍ د ژوند د ضرورياتو په اندازه مال او اسباب وساته د دې وروسته چي څه پاته سي هغه د الله تعالى پر نامه خيرات کړه، داسي نه چي ټول مال و زر د الله تعالى په لار کي خرڅ کې او خپله کورنۍ محتاجي او لوږي ته پرېږدې رسول الله ﷺ وروسته د دې خبري وضاحت وکی چي د صدقې مال مخکي هغه خلکو ته ورکړه د چا د ژوند ضروريات چي ستا د ذات سره تړلي دي د هغوی څخه چي پاته سي نو بيا يې نورو ته ورکړه.

**د صدقې ورکولو وروسته د نفس غنا يا د مال غنا کيدل ضروري دي**: په دې باره کي تحقيقي مسئله داده چي کوم سړی د الله تعالى په لار کي خپل مال وزر خرڅ کول غواړي د هغه لپاره ضروري ده چي هغه ته يا خو غنائې نفس اماره حاصل وي په دې توګه چي د نفس د سخاوت له مخي هغه خپل مال وزر د الله تعالى په لار کي خرڅوي نو د هغه څخه دا د الله تعالى

پر ذات باندي د دې درجې كامل اعتماد او توكل وي چي د هغه زړه باالكل مستغنى وي او هغه ته د دې خبري پروانه وي چي زما كوچنيان به سبا څه خوري څرنګه چي د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په باره كي نقل دي چي هغه يو وار خپل ټول مال او اسباب د الله تعالى په لار كي د خرڅولو لپاره د رسول الله ﷺ په قدمونو كي كښيښوده نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اې ابوبكره د كور والا لپاره دي څه پريښودل؟ هغه وويل: الله يعني د كورنۍ لپاره د الله تعالى پر ذات كامل اعتماد او توكل مي پرې ايښى دى چي هغه تر اوسه پوري ماته دومره مال و زر راكړي دي هغه به د سبا ورځي لپاره هم د هغوى د ژوند ضروريات پوره كړي رسول الله ﷺ د هغوى د دې سخاوت او د عظيمي جذبې تعريف وكى دا خو اوله درجه سوه دوهمه درجه داده كه غناء د نفس حاصل نه وي بيا غناء مال كيدل ضروري دى يعني د الله تعالى په لار كي دومره مال خرڅوي چي خپله مفلس او فقير نسي بلكه دومره مال پاته پريښودل ضروري دي چي د اهل وعيال د ژوند ضروريات پوره كړه سي څرنګه چي پورته ذكر سوي دي.

حاصل دا چي كه د توكل دولت نصيب سي نو بيا څه چي غواړي د الله تعالى په لار كي دي يې خرڅ كړي كه دا مرتبه حاصله نه وي نو خپله كورنۍ ته دي په صدقه او خيرات كي دومره مال وركي چي خپل اهل وعيال يې د ژوند په ضرورياتو كي محتاج نسي.

## په كورنۍ د خرڅ كولو ثواب

﴿۱۸۳۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَنْفَقَ الْمُسْلِمُ نَفَقَةً عَلَى أَهْلِهِ وَهُوَ يَحْتَسِبُهَا كَانَتْ لَهُ صَدَقَةً. متفق عليه

د حضرت ابو مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مسلمان چي په خپل كورنۍ باندي خرڅ كوي او پر هغه د ثواب اميد ساتي نو دا هم د هغه لپاره په صدقه كي شميرل كيږي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۹۷\۹، رقم: ۵۳۵۱، ومسلم ۶۹۵\۲، رقم: ۴۸- ۱۰۰۲.

﴿۱۸۳۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيْنَارٌ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو دينار دئ

أَنْفَقْتَهُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَدِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ فِي رَقَبَةٍ وَدِينَارٌ تَصَدَّقْتَ بِهِ عَلَى مِسْكِينٍ

چي تاسو يې د الله تعالى په لار كي خرڅ كړئ او يو دينار دئ چي په غلام آزادولو يې خرڅ كړئ او يو دينار دئ چي مسكين ته يې صدقه كړئ

وَدِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ أَعْظَمُهَا أَجْرًا الَّذِي أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ . رواه مسلم

او يو دينار دئ چي په خپل كورنۍ باندي يې خرڅ كړئ په دې ټولو كي د اجر له كبله هغه دينار تر ټولو زيات دئ چي تاسو يې په خپل كورنۍ باندي خرڅ كړئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۹۲، رقم: ۳۹- ۹۹۵.

## غوره صدقه

﴿۱۸۳۶﴾ : وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ دِينَارٍ

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره دينار

يُنْفِقُهُ الرَّجُلُ دِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى عِيَالِهِ وَدِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى دَابَّتِهِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

چي سړى يې نفقه كوي هغه دينار دئ چي هغه يې په خپلي كورنۍ نفقه كوي او هغه دينار دئ چي هغه يې په خپلو حيوانانو نفقه كوي چي د غزا لپاره يې ساتلي

وَدِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى أَصْحَابِهِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ . رواه مسلم .

وي او هغه دينار دئ چي په خپلو ملګرو يې نفقه كوي كوم چي په جهاد كي بوخت وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۹۱، رقم: ۳۸- ۹۹۴.

**تشريح**: دلته د مال و زر درې بهترينه مصرف بيان سوي دي چي پر دې درو باندي خپل مال و زر خرڅول د دوى پر نورو باندي د خرڅولو بهتر دي .

## په كورنۍ د خرڅ كولو ثواب

﴿۱۸۳۷﴾ : وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلِيَ أَجْرٌ أَنْ أُنْفِقَ عَلَى بَنِي أَبِي سَلَمَةَ إِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ فَقَالَ أَنْفِقِي عَلَيْهِمْ فَلَكِ أَجْرُ مَا أَنْفَقْتِ عَلَيْهِمْ .

## متفق علیه

د حضرت ام سلمه (رض) څخه روایت دئ چي ما نبي کریم ﷺ ته عرض وکړ چي اې د الله رسوله ! که زه د ابو سلمه په زامنو کي چي زما زامن هم دي نفقه کوم ؟ نو ایا ما ته به ددې ثواب راکول کیږي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : ته پر هغو نفقه کوه څه چي ته پر هغوی نفقه کړي د هغه به ثواب تر لاسه کړې ، بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۲۸، رقم: ۱۴۶۷، ومسلم ۲\۶۹۵، رقم: ۴۷-۱۰۰۱.

**تشريح** : ابو سلمه رضی الله عنه یو صحابي وو ، بي بي ام سلمه رضي الله عنها د هغه په نکاح کي وه ، د ابو سلمه رضی الله عنه څو بچي وسوه عمر زینب او دره کوم وخت چي ابو سلمه رضی الله عنه وفات سو نو ام سلمه رضی الله عنها رسول الله ﷺ په نکاح کړه د هغې څخه چي کوم کوچنیان وه د هغوی اخراجات به یې هغوی ته ورکول په دې باره کي هغې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي زه دوی ته څه ورکړم ایا د دې ثواب به ماته حاصلیږي که نه؟ نو په دې صورت کي به د زامنو څخه د بي بي ام سلمه حقیقي زامن مراد دي چي د ابو سلمه رضی الله عنه څخه وه ، ام سلمه رضی الله عنها پر هغوی د مال خرڅولو په باره کي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه په دې صورت کي به د زامنو څخه مراد د ام سلمه رضی الله عنها میرني زامن مراد وي .

### په کورنۍ د خرڅ کولو ثواب

﴿۱۸۳۸﴾ : وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ

د عبدالله ابن مسعود د ښځي بي بي زینب څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

تَصَدَّقْنَ يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ قَالَتْ فَرَجَعْتُ إِلَى عَبْدِ اللهِ

اې ښځو ! خیرات کوئ که څه هم هغه ستاسو د ګېڼو وي ، بي بي زینب وایي (د دې په اورېدو سره) کله چي زه خپل خاوند عبدالله ته ورسیدم

فَقُلْتُ إِنَّكَ رَجُلٌ خَفِيفُ ذَاتِ الْيَدِ وَإِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَدْ أَمَرَنَا بِالصَّدَقَةِ

نو ما ورته وویل : ته یو مفلس سړی یې او رسول الله ﷺ موږ ته د خیرات کولو حکم راکړی دئ

فَأْتِهِ فَاسْأَلْهُ فَإِنْ كَانَ ذٰلِكَ يَجْزِي عَنِّي وَإِلَّا صَرَفْتُهَا إِلَى غَيْرِكُمْ قَالَتْ فَقَالَ

اوس ته د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سه او پوښتنه وکړه که زه پر تا او ستا پر اولاد خرڅ کړم نو دا بس ده که یا؟ که دا صدقه کول بس وي نو زه به يې پر تا خرڅ کړم، يعني بل چا ته به يې نه ورکوم، بي بي زينب وايي: د دې په اورېدو سره زما خاوند عبد الله ما ته وويل:

لِي عَبْدُ اللّٰهِ بَلْ ائْتِيهِ أَنْتِ قَالَتْ فَانْطَلَقْتُ فَإِذَا امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ بِبَابِ

ته په خپله ولاړه سه او د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه، زينب وايي زه ولاړم نو يو انصاري ښځه هم د رسول الله ﷺ په دروازه کي ناسته وه

رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ حَاجَتِي حَاجَتُهَا قَالَتْ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ قَدْ أُلْقِيَتْ عَلَيْهِ

د هغې پوښتنه هم زما د پوښتني په ډول وه، زينب وايي د رسول الله ﷺ ډير هيبت وو (يعني خلک به څيني بيرېدل)

الْمَهَابَةُ قَالَتْ فَخَرَجَ عَلَيْنَا بِلَالٌ فَقُلْنَا لَهُ ائْتِ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ فَأَخْبِرْهُ أَنَّ

ناځاپه بلال ﷺ موږ ته راغلئ موږ هغه ته وويل چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض وکړه

امْرَأَتَيْنِ بِالْبَابِ تَسْأَلَانِكَ أَتُجْزِئُ الصَّدَقَةُ عَنْهُمَا عَلَى أَزْوَاجِهِمَا وَعَلَى أَيْتَامٍ

چي دوې ښځي په دروازه کي ناستي دي او دا پوښتنه کوي که هغوی خپلو خاوندانو ته او هغه يتيمانو ماشومانو ته

فِي حُجُورِهِمَا وَلَا تُخْبِرْهُ مَنْ نَحْنُ قَالَتْ فَدَخَلَ بِلَالٌ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ

چي د هغوی په روزنه کي دي صدقه ورکړي نو ايا دا بس ده؟ او رسول الله ﷺ ته دا مه ښيه چي سوال کونکي ښځي څوک دي،

فَسَأَلَهُ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ هُمَا قَالَ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ وَزَيْنَبُ

بي بي زينب وايي بلال د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو د مسئلې پوښتنه يې وکړه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا دواړي ښځي څوک دي؟ بلال ﷺ ورته وويل يوه انصاري ښځه ده او بله زينب ده،

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ أَيُّ الزَّيَانِبِ قَالَ امْرَأَةُ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ

رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په زينبو کي کومه زينب ده ؟ بلال ورته وويل د عبدالله کوروالا ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

ﷺ لَهُمَا أَجْرَانِ أَجْرُ الْقَرَابَةِ وَأَجْرُ الصَّدَقَةِ . متفق عليه عليه و اللفظ للمسلم .

هغې ته به دوه برابر ثواب ورکول کيږي يو ثواب د قرابت او دوهم د صدقې بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۲۸، رقم: ۱۴۶۶، ومسلم ۲\۶۹۴، رقم: ۴۴-۹۹۹.

**تشريح**: (قَدْ أُلْقِيَتْ عَلَيْهِ الْمَهَابَةُ): د دې مطلب دادی چي الله تعالی د رسول الله ﷺ ذات اقدس هيبت او عظمت داسي پکښي جوړ کړی وو چي خلک به رسول الله ﷺ څخه مرعوب کيده او بيريده د رسول الله ﷺ بې انتها تعظيم به يې کوی په دې وجه چاته جرات نه کيدی چي هغوی نا څاپي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سي او ظاهره ده چي د رسول الله ﷺ دا عظمت او هيبت نعوذ بالله د رسول الله ﷺ د څه بد اخلاقۍ او خشونت په وجه نه وو بلکه هغه خدايي وو چي الله تعالی د رسول الله ﷺ دا عظمت او هيبت د رسول الله ﷺ د عزت او تعظيم سبب جوړ کړی وو .

کله چي بي بي زينب رضي الله عنها حضرت بلال ﷺ منع کړی وو چي د هغوی نومونه دي رسول الله ﷺ ته نه ښائي نو هغه ته د هغوی د خواهش احترام کول پکاره وو خو رسول الله ﷺ د هغه څخه د هغو ښځو نومونه وپوښتل ځکه د رسول الله ﷺ د حکم په وجه د هغه لپاره دا ضروري سوې وه چي د هغوی نومونه وښائي نو هغه د رسول الله ﷺ د حکم تعميل وکی .

دا خو د حديث وضاحت وو اوس دې مسئلې ته راسئ چي ايا يوه ښځه خپل خاوند ته يا سړي خپلي ښځي ته د خپل زکوة مال ورکولای سي که نه، په دې باره کي د ټولو علماؤ مذهب دادی چي هيڅ سړی دي خپلي ښځي ته د خپل زکوة مال نه ورکوي خو د دې برعکس په صورت کي امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه خو دا فرمائي چي هيڅ ښځه دي خپل خاوند ته د زکوة مال نه ورکوي نو د هغه مال څخه به خپله هم فائده حاصلوي چي جائز به نه وي صاحبين يعني امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليه فرمائي چي څرنګه يو سړي ته خپلي ښځي ته زکوة ورکول جائز نه دی همداسي ښځه هم خپل زکوة خاوند ته نسي ورکولای د امامانو د دې اختلاف په وجه به وويل سي چي د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد د دغه مذکوره

صدقې څخه به صدقه نفل مراد وي او د صاحبينو په نزد د هغه څخه صدقه نفل هم مراد كيداى سي او صدقه فرض يعني زكوة هم مراد كيداى سي.

## قريبانو ته خيرات وركول

﴿۱۸۳۹﴾: وَعَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّهَا أَعْتَقَتْ وَلِيدَةً فِي زَمَانِ رَسُولِ اللهِ

د حضرت ميموني بنت الحارث (رض) څخه روايت دئ چي د رسول اللهﷺ په زمانه كي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ أَعْطَيْتِهَا أَخْوَالَكِ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِكِ. متفق عليه

هغې يوه مينځه آزاده كړه، بيا رسول اللهﷺ ته د هغې يادونه وكړل، رسول اللهﷺ ورته وفرمايل كه تا دا مينځه خپل ماما ته وركړې واى نو لوى ثواب به دي سوى واى. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۱۷، رقم: ۲۵۹۲، ومسلم ۲\۶۹۴، رقم: ۴۴-۹۹۹.

**تشريح**: مطلب دادى چي ستا ماما ته د يو خدمتگار ضرورت وو ځكه تا هغه مينځه هغه ته وركړې وه نو تاته به د صدقې ثواب هم ترلاسه كيدى او د صله رحمي ثواب هم.

## د همسايه خيال ساتل

﴿۱۸۴۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي جَارَيْنِ فَإِلَى أَيِّهِمَا

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي ما د نبي كريمﷺ څخه پوښتنه وكړه چي اې د الله رسوله! زما دوه همسايگان دي زه په هغوى كي كومي يوې

أُهْدِي قَالَ إِلَى أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا. رواه البخاري

ته تحفه وليږم، رسول اللهﷺ راته وفرمايل: د چا دروازه چي ستا دروازې ته نژدې وي هغې ته. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۱۹، رقم: ۲۵۹۵.

**تشريح**: كه د چا دوه همسايه گان وي داسي چي په هغوى كي د يوه هماسه ديوال ډير نژدې وي او د دوهم همسايه بيا دروازه ډيره نژدې وي نو هغه قريبي دروازې والا دي مخته ونيول سي. مگر په دومره خبره پوه سئ چي دلته په حديث كي حصه مراد نه ده يعني د رسول اللهﷺ د ارشاد

مطلب دا نه دی چي یوازي هغه ته دي ورکړه سي دوهم ته دي نه ورکړه سي مګر مراد دادی چي مخکي یا زیات دي هغه همسایه ته ورواستول سي چي د هغه دروازه زیاته نژدې وي او د دې وجه په ظاهره دا معلومیږي چي د کوم همسایه دروازه زیاته نژدې وي د هغه سره تګ راتګ او ملاقات زیات وي چي د هغه په وجه د هغه د حالاتو هم زیات علم وي نو د هغه سره د محبت او ښه سلوک معامله کول اعلی ده.

﴿۱۸۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا ذَرٍّ إِذَا طَبَخْتَ مَرَقَةً فَأَكْثِرْ مَاءَهَا وَتَعَاهَدْ جِيرَانَكَ. رواه مسلم

د حضرت ابو ذر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي ته غوښي پخې کړې نو په هغه کي زیاتي اوبه اچوه او د خپلو همسایو خبر اخله. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۰۲۵، رقم: ۴۲- ۲۶۲۵.

**تشریح**: د دې ارشاد منشاء داده چي کله سالن پخوی نو خپل لذت او خواهش مقدم مه ساتی بلکه د همسایه د ضرورت هم خیال ساتی او د دې شکل دادی چي په کتغ کي اوبه زیاتي اچوی چي ښوروا زیاته وي تر څو تاسو او همسایګان یې په ماړه نس وخورئ.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### غوره صدقه

﴿۱۸۴۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ قَالَ جُهْدُ الْمُقِلِّ وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ. رواه ابو داؤد.

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله! کومه صدقه غوره ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: د لږ مال خاوند زیات کوښښ کول (یعني په محنت او مزدورۍ چي څه تر لاسه سي د هغه څخه ورکول) او د صدقې پیل د هغه چا څخه کوه چي د هغوی پر تا نفقه واجب وي. ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\۳۱۲، رقم: ۱۶۷۷.

**تشریح**: د کم مال لرونکي زیات سعي او کوښښ: د دې مطلب دادی د هغه سړي صدقه زیاته

افضله ده که څه هم د کم مال مالک وي مګر د صدقه ورکولو په معامله کي خپله پوره سعي او کوښښ او مشقت وي او څه چي د هغه په وس کي وي هغه د الله تعالی په لار کي د خرڅولو څخه دي منعه نه کوي.

د دې باب چي اول حديث تير سوی دی د هغه څخه خو دا معلومه سوه چي بهترينه صدقه هغه ده چي په غناء حالات کي ورکړه سي کله چي دا حديث هغه صدقه افضل ګرځوي چي د مال د کمي په حالت کي ورکړه سي نو د دې دواړو روايتونو تطبيق به داسي وي چي د صدقې د فضيلت تعلق د اشخاص او حالت او قوت توکل او ضعف يقين تفاوت سره دی اول حديث د هغه خلکو په باره کي دی چي د توکل پر معيار پوره نه پريوځي او دا حديث د هغه خلکو په باره کي دی چي هغوی ته د کامل توقع او يقين مرتبه حاصليږي.

ځيني حضرات فرمائي دلته په حديث کي مقل يعني کم مال والا څخه غني القلب يعني هغه شخص مراد دی چي د زړه غني او بې پرواه وي په دې صورت کي به دا حديث د اول حديث د الفاظو خير الصدقة ما کان عن ظهر غنی سره سم سي همداسي حاصل به کيږي چي د هغه سړي لږ صدقه هم چي کوم مالدار خو غني زړه وي د مالدار د صدقې څخه افضله ده که څه هم د هغه صدقه هر څو مره زياته وي.

## د صدقې دوه برابر ثواب

﴿۱۸۴۳﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سليمان بن عامر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

الصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِينِ صَدَقَةٌ وَهِيَ عَلَى ذِي الرَّحِمِ ثِنْتَانِ صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ.

رواه احمد والترمذي و النسائي وابن ماجة والدارمي.

مسکين ته خيرات ورکول يوه صدقه ده يعني ددې ثواب يو دئ او شناخته ته صدقه ورکول صدقه هم ده او ښه چلن هم، يعني ددې صدقې دوه برابر ثواب تر لاسه کيږي. احمد، ترمذي او دارمي

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\ ۲۱۴ والترمذي ۳\ ۴۶، ۴۷، رقم: ۶۵۸، والنسائي ۵\ ۹۲، رقم: ۲۵۸۱، وابن ماجه ۱\ ۵۹۱، رقم: ۱۸۴۴، والدارمي ۱\ ۴۸۸، رقم: ۱۶۸۰.

## د خيرات درجې

﴿۱۸۴۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو

فَقَالَ عِنْدِي دِينَارٌ قَالَ اَنْفِقْهُ عَلَى نَفْسِكَ قَالَ عِنْدِي آخَرُ قَالَ اَنْفِقْهُ عَلَى

او و يې ويل: زما سره يو دينار دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دا په خپل ځان خرڅ كړه، بيا هغه وويل زما سره يو بل دينار هم دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

وَلَدِكَ قَالَ عِنْدِي آخَرُ اَنْفِقْهُ عَلَى اَهْلِكَ قَالَ عِنْدِي آخَرُ قَالَ اَنْفِقْهُ عَلَى

په خپل اولاد يې خرڅ كړه، بيا هغه وويل زما سره يو بل دينار هم دئ.، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل په خپله كورنۍ يې خرڅ كړه، بيا هغه وويل زما سره يو بل دينار هم دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

خَادِمِكَ قَالَ عِنْدِي آخَرُ قَالَ اَنْتَ اَعْلَمُ. رواه ابوداؤد والنسائي.

پر خپل خادم يې خرڅ كړه، بيا هغه وويل زما سره يو بل هم دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اوس نو ته ښه پوهيږې، ابوداؤد، نسائي.،

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۱۲\۳۲۰ – ۳۲۱، رقم: ۱۶۹۱، والنسائي: ۵\۶۲، رقم: ۲۵۳۳.

## ښه او بد انسان

﴿۱۸۴۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ النَّاسِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا زه تاسو ته وښيم چي تر ټولو غوره كس څوک دئ؟

رَجُلٌ مُمْسِكٌ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِالَّذِي يَتْلُوهُ رَجُلٌ

دا هغه سړی دئ چي د الله تعالی په لاره كي د غزا لپاره د خپل آس واګي ونيسي (يعني د جهاد په انتظار وي) بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا دا هم درته وښيم چي هغه كوم يو سړی دئ چي په درجه كي هغه ته نژدې دئ،

مُعْتَزِلٌ فِي غُنَيْمَةٍ لَهُ يُؤَدِّي حَقَّ اللّٰهِ فِيهَا أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِشَرِّ النَّاسِ رَجُلٌ

دا سړی هغه څوک دئ چي د خپلو پسو سره يې کونج ناستي غوره کړې ده او د هغو پسو څخه د الله تعالی حق يعني زکوة ادا کوي، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل ايا زه تاسو ته تر ټولو خراب کس وښيم، دا هغه کس دئ چي

يُسْأَلُ بِاللّٰهِ وَلَا يُعْطِي بِهِ. رواه الترمذي و النسائي والدارمي.

د هغه څخه د الله په نامه و غوښتل سي او د هغه په نامه څه ورنه کړي. ترمذي، نسائي او دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۱۵٦، رقم: ۱٦۵۲، والنسائي ۵\ ۸۳- ۸۴، رقم: ۲۵٦۸، والدارمي ۲\ ۲٦۵، رقم: ۲۳۹۵.

**تشريح**: د دې حديث مطلب دادی چي په بهترينو او ښه خلکو کي هغه سړی هم دی چي د الله تعالی په لار کي د کافرانو سره د جنګ منتظر وي دا مفهوم ځکه اختيارول کيږي چي مجاهد يا غازي تر ټولو خلکو افضل نه دی.

همداسي د بدترين څخه هم دا مراد دی چي په بدو او خرابو خلکو کي يو هغه سړی هم دی چي د هغه څخه يو سوالګر د الله تعالی د قسم په ورکولو سره سوال وکړي خو هغه يې سوال پوره نه کړي.

## سوالګر مه جوابوئ

﴿۱۸۴٦﴾: وَعَنْ أُمِّ بُجَيْدٍ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُدُّوا السَّائِلَ وَلَوْ بِظِلْفٍ مُحْرَقٍ. رواه مالك والنسائي والترمذي و ابوداؤد معناه

د حضرت ام بجيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سوال کونکی داسي جواب کړئ چي يو څه ورکړی که څه هم هغه سوځېدلې ټوټه وي. مالک، نسائي، ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\ ۹۲۳، رقم: ۸، وابوداؤد ۲\ ۳۰۷، رقم: ۱٦٦۷، والترمذي ۳\ ۵۲- ۵۳، رقم: ٦٦۵، والنسائي ۵\ ۸۱، رقم: ۲۵٦۴.

**د لغاتو حل**: المُحرق: هو المغلي بالحرق، وهو النار. (په اور ايشول سوی).

**تشريح**: بظلف محرق په خپل اصلي معنی کي نه دي استعمال سوی يعني د دې مطلب دا نه دی چي سائل ته دي د سوځيدو سُم ورکړل سي ځکه چي دا د فائدې شی نه دی بلکه دا لفظ دلته په توګه د مبالغې استعمال سوی دی د دې مفهوم دادی چي کله يو سائل تاسو ته راسي نو هغه

خالي لاس مه استوی بلکه که هغه وخت ستاسو سره ادنی او کم شی هم وي نو ورېږ کړی.

**یو څو ضروري خبري**

﴿۱۸۴۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي

اسْتَعَاذَ بِاللّٰهِ فَأَعِيذُوهُ وَمَنْ سَأَلَ بِاللّٰهِ فَأَعْطُوهُ وَمَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ وَمَنْ

د الله تعالی په ذریعه در څخه پناه وغواړي نو هغه ته پناه ورکړئ او څوک چي د الله تعالی په نامه در څخه څه وغواړي نو هغه ته یې ورکړئ او څوک چي تاسو ته بلنه درکړي نو هغه قبوله کړئ

صَنَعَ إِلَيْكُمْ مَعْرُوفًا فَكَافِئُوهُ فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَا تُكَافِئُونَهُ فَادْعُوا لَهُ حَتّٰى

او څوک چي احسان در سره وکړي نو د هغه د احسان بدله ورکړئ (او که بدله ممکن نه وي نو) دعاء ورته وکړئ تر څو چي

تَرَوْا أَنَّ قَدْ كَافَأْتُمُوهُ. رواه احمد و ابوداؤد والنسائي.

تا ته یقین وسي چي تا د هغه بدله ادا کړه. احمد، ابوداؤد او نسائي

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۶۸، وابوداؤد ۲\۳۱۰، رقم: ۱۶۷۲، والنسائي ۵\۸۲، رقم: ۲۵۶۶.

**تشریح**: کوم سړی چي ستاسو څخه د الله تعالی په واسطې سره پناه وغواړي د دې مطلب دادی که یو سړی ستاسو د ذات په وجه یا څه بل دوهم څخه څه پیښنه او په شر کي اخته وي او هغه وخت د الله د واسطه په ورکولو سره ستاسو څخه پناه وغواړي یعني هغه وخت دا ووائي چي زه د الله تعالی واسطه په درکولو سره تاسو ته خواست کوم چي ماته د دې مصیبت څخه خلاصون راکړه نو تاسو ته پکار ده چي د هغه خواست قبول کی او د الله تعالی د نامه د تعظیم سره سم هغه د هغه آفت او مصیبت څخه وساتی (من استعاذ منکم بالله) د حرف با په باره کي دا هم احتمال دی چي د لفظ استعاذ په صله کي واقع کیږي په دې صورت کي د دې جملې معنی به دا وي چي کوم سړی د څه آفت او مصیبت پر وخت د الله تعالی څخه پناه غواړي نو تاسو د هغه سره تعرض مه کوی بلکه هغه ته پناه ورکوی او هغه ته د آفت او مصیبت څخه د خلاصي ورکولو کوشش کوی.

د حدیث اخري الفاظ (حتی ترو ...........الخ) ترڅو پوري چي تاسو په دې پوه نسی د دې مطلب دادی چي تاسو د هغه لپاره تاکل سوې دعا غواړی ترڅو پوري چي تاسو ته دا یقین وسي چي تاسو د هغه حق ادا کړی.

په یو دوهم روایت کي ارشاد نقل دی د کوم سړي سره چي احسان وکړه سي او د هغه احسان کونکي ته ووائي چي جزاک الله خیرا، نو هغه د خپل محسن تعریف او د هغه د احسان په بدله کي مبالغه وکړی.

دا حدیث په دې خبره دلالت کوي چي کوم سړی د خپل محسن لپاره یو وار جزاک الله خیرا وویل نو هغه د احسان بدله ورکړه بلکه د حق څخه یې هم زیاته بدله ورکړه ځکه چي دا جمله په ویلو سره هغه د خپل نفس په بدله ورکولو کي عاجز وګڼی او هغه یې الله تعالی ته وروسپاری چي تر ټولو بهتر اجر او بدله هغه ورکړي نو دا جمله یو وار د مکرر او سه کرر دعا کولو برابر دی.

د بي بي عائشې ﷺ معمول: د بي بي عائشې رضي الله عنها معمول وو چي کله به یو سائل د هغه لپاره دعا وکړه نو هغې به مخکي هم د هغه لپاره دعا کوله بیا به هغه صدقه ورکوله خلکو د دې سبب وپوښتی نو هغې وفرمایله که زه د هغه لپاره دعا ونه کړم نو د هغه حق او زما حق برابر سي ځکه چي هغه زما لپاره دعا وکړه او ما هغه ته یوازي صدقه ورکړه همداسي د دواړو حسنات برابر سوه نو زه هم د هغه لپاره دعا کوم چي زما دعا د هغه د دعا بدله سي او کومه صدقه چي ما ورکړې ده هغه خالصه سي همداسي د دواړو حق برابر نه پاته کیږي بلکه زما نیکی زیاتیږي.

## د الله ﷻ په نامه سوال مه کوئ

﴿۱۸۴۸﴾: وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُسْأَلُ بِوَجْهِ اللّٰهِ إِلَّا الْجَنَّةُ . رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر ؓ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د الله تعالی په روی د جنت پرته بل هیڅ شی غوښتل نه دي پکار. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲/۳۰۹، رقم: ۱۶۷۱.

**تشریح**: مطلب دادی چي د الله تعالی د ذات او واسطې سره د خلکو څخه څه شی مه غواړی یعني د چا مخکي په دې الفاظو سره سوال مه کوی چي د ذات خداوندي په واسطې سره یا

بو اسطه الله ماته فلانی شی راکړه ځکه چي د الله تعالی نوم ډیر لوی دی او د هغه د ذات او د هغه د اسم دا شان دی چي هغه واسطه په جوړولو سره د دنیا حقیر شیان وغواړي هو د هغه واسطې سره جنت که غواړي یعني داسي ووائي چي اې الله موږ ستا د ذات کریم په واسطې سره ستاسو څخه سوال کوو چي موږ په جنت کي داخل کړې .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### د ابو طلحه رضی الله عنه سخاوت

﴿۱۸۴۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَبُو طَلْحَةَ أَكْثَرَ الْأَنْصَارِ بِالْمَدِينَةِ مَالًا مِنْ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي د مدینې په انصارو کي د خرماوو په اعتبار ابو طلحه ډیر شتمن وو

نَخْلٍ وَكَانَ أَحَبُّ أَمْوَالِهِ إِلَيْهِ بَيْرُحَاءَ وَكَانَتْ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ وَكَانَ رَسُولُ

او د هغه تر ټولو زیات هغه باغ خوښ وو چي د هغه نوم بیرحاء وو، او دا باغ مسجد نبوي ته مخامخ وو ، رسول الله ﷺ به

اللَّهِ ﷺ يَدْخُلُهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيهَا طَيِّبٍ قَالَ أَنَسٌ فَلَمَّا أُنْزِلَتْ هَذِهِ

دغه باغ تلئ او هلته به یې خوږې اوبه چېښلې ، انس رضی الله عنه وایي کله چي دغه آیت نازل سو

الْآيَةُ { لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ } قَامَ أَبُو طَلْحَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ

(لن تنالوا البر ....) هیڅکله به نیکي تر لاسه نه کړئ تر څو پوري چي هغه مال د الله تعالی په لار کي خرڅ نه کړئ کوم چي ستاسو زیات خوښ وي ، نو ابو طلحه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سو

ﷺ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَقُولُ { لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى

او عرض یې وکړ چي اې دالله رسوله ! الله تعالی فرمایي (لن تنالوا البر حتی ...)

تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ } وَإِنَّ أَحَبَّ أَمْوَالِي إِلَيَّ بَيْرُحَاءَ وَإِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلَّهِ أَرْجُو

او ما ته په خپلو شتمنيو کې د بيرحاء باغ زيات خوښ دئ زه دغه د الله تعالى پر نامه صدقه کوم او د هغه څخه د نيکۍ اميد لرم،

بِرَّهَا وَذُخْرَهَا عِنْدَ اللَّهِ فَضَعْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ حَيْثُ أَرَاكَ اللَّهُ قَالَ فَقَالَ

چې دا به د الله تعالى په نزد زما لپاره ذخيره سي ، اې د الله رسوله ! تاسو چې کوم ځای مناسب ګڼئ دا خرڅ کړئ ، ددې په اورېدو سره

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَخٍ ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ وَقَدْ

رسول الله ﷺ وفرمايل : شاباس شاباس، دا (باغ) ګټور مال دئ ،

سَمِعْتُ مَا قُلْتَ وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْأَقْرَبِينَ فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ أَفْعَلُ يَا

تا چې څه وويل ما واورېدل، اوس زما په نزد مناسب دا دئ چې ته دا (باغ) په خپلو قريبانو کي وويشې ابو طلحه عرض وکړ اې د الله رسوله ! همداسي به وکړم،

رَسُولَ اللَّهِ فَقَسَمَهَا أَبُو طَلْحَةَ فِي أَقَارِبِهِ وَبَنِي عَمِّهِ. متفق عليه

نو ابو طلحه خپل بيرحاء باغ په خپلو قريبانو او د اکا په زامنو باندي وويشئ ، بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۲۵، رقم: ۱۴۶۱، ومسلم ۲\۶۹۳، رقم: ۴۲– ۹۹۸.

**تشريح:** چيري چي دا احتمال دی چي بني عمه (د اکا زامن) بيانوي هلته دا احتمال هم دی چي د اقارب څخه د اکا د زامنو څخه پرته نور قريبان هم مراد دي.

## وږي ته خوراک ورکول غوره صدقه ده

﴿۱۸۵۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ أَنْ تُشْبِعَ كَبِدًا جَائِعًا" . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره صدقه دا ده چي ته وږی موړ کړې . بيهقي

**تخريج:** البيهقي في شعب الايمان ۳\۲۱۷، رقم: ۳۳۶۷.

**تشريح:** مطلب دا دی چي هر ساه لرونکی حيوان او ژوندی که مسلمان وي او که کافر که

چيري وړې وي نو هغه ته خوراک ورکول يوه غوره صدقه ده ، هو په دې حکم کي هغه موذي (ضرر رسونکي) حيوانان استثناء دي کوم چي د وژلو حکم لري ، يعني مار، لړم او داسي نورو ته خوراک او څښاک ورکول مناسب نه دي .

==========

# بَابُ مَا تُنْفِقُهُ الْمَرْاَةُ مِنْ مَالِ زَوْجِهَا

## د خاوند د شتمنۍ څخه د ښځي خيرات کول

د مشکوة مولف رحمة الله عليه پر ځينو ځايو باندي عنوانونه نه متعين کوي او په باب ليکلو سره مختته باب شروع کوي او د هغه لاندي هغه حديثونه نقلوي چي د تيرو بابونو متمات او ملحقات وي دلته هم موصوف يوازي په باب ليکلو سره باب شروع کړی دی او يو تاکلی عنوان يې نه دی ليکی .

خو د مشکوة په ځينو نسخو کي دلته دا عنوان ليکل سوی دی : باب ما ينفقه المراة من مال بعلها ، يعني ښځه د خپل خاوند د مال څخه چي کوم شی خرڅول غواړي د هغه بيان .

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

**ښځه د کور د شتمنۍ څخه خيرات کولای سي**

﴿۱۸۵۱﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَنْفَقَتْ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي صدقه ورکړي

الْمَرْأَةُ مِنْ طَعَامِ بَيْتِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَا أَجْرُهَا بِمَا أَنْفَقَتْ وَلِزَوْجِهَا

ښځه د کور د خوراک څخه او اسراف ونه کړي نو هغې ته به د هغه ثواب رسيږي او خاوند ته به

أَجْرُهُ بِمَا كَسَبَ وَلِلْخَازِنِ مِثْلُ ذٰلِكَ لَا يَنْقُصُ بَعْضُهُمْ أَجْرَ بَعْضٍ شَيْئًا .

متفق عليه

يې د هغې د ثواب ګټلو ثواب رسيږي او اشپز ته به هم د هغه هغومره ثواب رسيږي . او د هغوی په ثواب کي به د هيچا په ثواب کي کمي نه راځي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۰۲، رقم: ۱۴۳۷، ومسلم: ۲\۷۱۰، رقم: ۷۹- ۱۰۲۳.

**تشريح**: د دې حديث تعلق په هغه صورت سره دی کله چې خاوند ښځي ته د خپل مال څخه د صدقه خيرات کولو اجازت ورکړې وي که څه هم هغه صراحة اجازت ورکړې وي يا د لالة.

ځيني حضرات فرمائي د اهل حجاز دا رواج وو چې هغوی د خپلي ميلمستيا او سخاوت لاندي خپلو ښځو او خدمتگارانو مثلا په اشپز خانه کي اشپز ته دا اجازه ورکړې وه چې هغوی دي د ميلمنو پوره ميلمستيا کوي او فقيران او مسکينان او د همسايه گانو په خلکو دي ډودی خوري رسول الله ﷺ د دې ارشاد په ذريعه خپل امت ته ترغيب ورکوی چې دا نيک او ښه خصلت اختيار کړي.

﴿۱۸۵۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَنْفَقَتْ الْمَرْأَةُ مِنْ كَسْبِ زَوْجِهَا عَنْ غَيْرِ أَمْرِهِ فَلَهَا نِصْفُ أَجْرِهِ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کومه ښځه چي د خاوند د اجازې پرته خيرات وکړي نو هغې ته به نيم ثواب ورسيږي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۰۴، رقم: ۵۳۶۰، ومسلم ۲\۷۱۱، رقم: ۸۴- ۱۰۲۶.

**تشريح**: د هغه د اجازې څخه پرته: ددې مطلب دادی چې کوم شی دا په صدقه کي ورکوي په خاصه توگه د هغه شي اجازه خاوند نه وي ورکړې ليکن دا دخاوند صراحة يا دلالة په اجمالي رضا پوهيږي او هغه شی په کمه اندازه وي نو د هغه شي د ورکولو څخه دي منعه نه کوي لکه څرنگه چي دلته په عامه توگه ښځي د دروازې و سوالگرو ته اوړه، ډوډۍ او دوې درې روپۍ ورکوي.

## خزانچي هم په ثواب کي گډون لري

﴿۱۸۵۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو موسى اشعري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

الْخَازِنُ الْمُسْلِمُ الْأَمِيْنُ يُعْطِيْ مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلًا مُوَفَّرًا طَيِّبًا بِهِ نَفْسُهُ

هغه امانتداره مسلمان خزانچي چي د خپل بادار د حکم سره سم صدقه او خيرات ورکړي او د حکم سره سم پوره پوره او په خوښي سره

فَيَدْفَعُهُ إِلَى الَّذِي أُمِرَ لَهُ بِهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقَيْنِ. متفق علیه

هغه چا ته ورکړي کوم ته چې د ورکولو حکم سوی دئ نو هغه هم د دوو صدقه کونکو څخه یو دئ یعني یو خاوند او دوهم هغه. بخاري او مسلم.

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۰۲، رقم: ۱۴۳۸، ومسلم ۲\۷۱۰، رقم: ۷۹- ۱۰۲۳.

**تشریح:** د خپل بادار څخه د صدقات او خیرات ورکونکي مزدور لپاره په دې حدیث کي څلور شرطونه ذکر سوي دي: اول د صدقې او خیرات لپاره د مالک حکم کیدل دوهم مالک چي د څومره مال په صدقه کي د ورکولو حکم کړی وي هغه بغیر د څه کمي پوره کوي دریم په ښه زړه سره ورکول د دې شرط څکه ذکر سوی دی چي مالک چي مال په صدقه کي د ورکولو حکم کوي ځیني مزدوران په ښه زړه سره هغه نه ورکوي څلورم مالک چي کوم سړي ته د مال ورکولو حکم کړی دی هغه ته ورکول د هغه څخه بل فقیر او مسکین ته نه ورکول.

لفظ متصدقین دوه صدقه ورکونکي خلک په صیغه سره استعمال سوی دی یعني یو خو مالک چي د هغه مال په صدقه کي ورکړه سو او دوهم مزدور چي د هغه په ذریعه صدقه ورکړه سوه همداسي مزدور د هغه دواړو څخه یو سو.

د مشکوة په یوه بله نسخه کي متصدقین د جمع په صیغې سره یعني متصدقون نقل دي همداسي د دې معنی دا سوه چي ملازم هم د صدقه ورکونکو څخه یو دی.

په هر حال د حدیث خلاصه داده چي کوم نوکر مسلمان او امانتدار وي چي د هغه مالک په صدقه کي د څه ورکولو حکم کوي هغه په پوره پوره خوشحالي سره ورکوي او د صدقې مال هغه سړي ته ورکوي چي هغه ته د ورکولو حکم ورکړه سوی وي نو هغه ملازم ته هم د هغه مالک د ثواب په څېر ثواب رسیږي.

## په مړي پسي خیرات کول

﴿۱۸۵۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي یو سړي نبي کریم ﷺ ته عرض وکړ:

أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا وَأَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ. متفق علیه

زما مور ناڅاپه مړه سوه که هغې د خبرو کولو موقع تر لاسه کړې وای نو خامخا به یې د صدقې او خیرات کولو وصیت کړی وای نو که زه صدقه ورکړم ایا هغې ته به ثواب رسیږي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هو.. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۵۴، رقم: ۱۳۸۸، ومسلم ۲\۶۹۶، رقم: ۵۱- ۱۰۰۴.

**تشريح**: دا حدیث پر دې خبرې دلالت کوي که یو سړی د خپل یو مړه قریب له خوا څخه د صدقې په توګه مال وغیره ورکړي نو هغه مړي ته ثواب رسیږي همداسي د مړي لپاره دعاء، استغفار وغیره هم ګټور دي، د اهل سنت والجماعت په اتفاق سره دا مذهب دی، مګر بدني عبادت لمونځ، روژه او د قرآن کریم د تلاوت وغیره په باره کي د علماؤ اختلافي قولونه دي مګر په دې اړه د باور وړ او صحیح قول دا دی چي مړي ته د بدني عبادتو ثواب هم رسیږي.
امام عبدالله یافعي رحمة الله علیه لیکلي دي چي یو بزګ شیخ عبدالسلام رحمة الله علیه د هغه د وفات وروسته چا په خوب کي ولیدی نو شیخ وفرمایل موږ خو به په دنیا کي ویل چي د تلاوت ثواب مړي ته نه رسیږي مګر دغه عالم ته په راتلو سره ثواب ضرور ورته رسیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ښځي خیرات کول

﴿۱۸۵۵﴾: عَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خُطْبَتِهِ
د حضرت ابو امامهٔ رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه په خطبه کي

عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَقُولُ لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِ
د حجة الوداع اوریدلي چي ښځه دي د خاوند د کور څخه د هغه د اجازې پرته هیڅ نه خیراتوي،

زَوْجِهَا قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَلَا الطَّعَامُ قَالَ ذَاكَ أَفْضَلُ أَمْوَالِنَا. رواه الترمذي
پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله! خوراک هم نه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: خوراک خو زموږ په مال کي غوره مال دئ. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۵۷، رقم: ۶۷۰.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دا دی چي د خاوند د اجازې څخه پرته دا شیان پلورل جائز نه دي چي د ډوډۍ څخه د کمي درجې وي نو ډوډۍ خرڅول به څرنګه صحیح وي حال دا

چي دا غوره شئ دی.

په ظاهره په دې حديث کي او په دې باره کي ذکر په تيرو حديثو کي تکر معلوميږي مگر د دې حديثو تشريح که مخ ته وي نو بيا هيڅ اختلاف نه معلوميږي ځکه د دې تشريح په ذريعه په حديثو کي تطبيق بيان سوی دی.

﴿۱۸۵۶﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ لَمَّا بَايَعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النِّسَاءُ

د حضرت سعد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي کله رسول الله ﷺ د ښځو سره بيعت کوئ

قَامَتْ امْرَأَةٌ جَلِيلَةٌ كَأَنَّهَا مِنْ نِسَاءِ مُضَرَ فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ إِنَّا كَلٌّ عَلَى آبَائِنَا

نو يوه لويه ښځه چي کيدای سي د مضر د قبيلې څخه وه ولاړه سوه او عرض يې وکړ چي اې د الله تعالی رسوله! زموږ خرڅ زموږ پلار

وَأَبْنَائِنَا وَ أَزْوَاجِنَا فَمَا يَحِلُّ لَنَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ قَالَ الرَّطْبُ تَأْكُلْنَهُ أَوْ تُهْدِينَهُ.

رواه ابوداؤد.

زموږ پر زامنو او زموږ پر خاوندانو دئ نو ايا زموږ لپاره دا جائز دئ چي موږ د هغوی د مال څخه پرته د اجازې خرڅ وکړو، رسول الله ﷺ وفرمايل: تازه مال خورئ او تحفه کوئ يې.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۳۱۶، رقم: ۱۶۸۶.

**تشريح**: د تازه مال څخه دوه شيان مراد دي چي د برېا څخه نه وي بلکه ژر خرابيږي لکه کتغ، ترکاري او شېدې وغيره نو د دې شيانو په استعمالولو کي د اجازت ضرورت نسته ځکه چي په عامه توګه سره خلک د دې شيانو د خرڅولو څخه منع کوي ګويا همداسي د دې شيانو د خرڅولو لپاره دلالة اجازه حاصليږي بخلاف د هغه شيانو چي وچ او نه خرابيدونکي وي چي د هغه د خرڅولو لپاره اجازه او رضا تر لاسه کول ضروري دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د بادار د مال څخه د غلام خيرات کول

﴿۱۸۵۷﴾: عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ قَالَ أَمَرَنِي مَوْلَايَ أَنْ أُقَدِّدَ لَحْمًا فَجَاءَنِي

د ابو اللحم آزاد کړئ غلام حضرت عمیر ﷛ روایت کوي چي زما بادار (ابو اللحم) ما ته حکم راکړ چي زه غوښه ټوټې ټوټې کړم، په دا وخت کې راغلئ

مِسْكِينٌ فَأَطْعَمْتُهُ مِنْهُ فَعَلِمَ بِذَلِكَ مَوْلَايَ فَضَرَبَنِي فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى

یو فقیر نو ما هغه ته غوښه ورکړه نو هغه زه وواهلم، زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سوم

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ فَدَعَاهُ فَقَالَ لِمَ ضَرَبْتَهُ فَقَالَ يُعْطِي

او پېښه مې ورته بیان کړه، رسول الله ﷺ زما بادار راوغوښتئ او پوښتنه یې وکړه تا خپل غلام ولې وواهئ؟ هغه عرض وکړ:

طَعَامِي بِغَيْرِ أَنْ آمُرَهُ فَقَالَ الْأَجْرُ بَيْنَكُمَا. و في رواية قال كُنْتُ مَمْلُوكًا

هغه زما طعام زما د اجازې پرته ورکوي، رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو دواړو ته به ددې ثواب تر لاسه سي، او په یوه روایت کې دا الفاظ چي عمیر وویل: زه غلام وم

فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَأَتَصَدَّقُ مِنْ مَالِ مَوَالِيَّ بِشَيْءٍ قَالَ

نَعَمْ وَالْأَجْرُ بَيْنَكُمَا نِصْفَانِ. رواه مسلم.

ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي ایا زه د بادار د مال څخه خرڅ کولای سم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هو، ددې ثواب به تاسو دواړو ته نیم په نیمه رسیږي. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۲\۷۱۱، رقم: ۸۲- ۱۰۲۵.

**تشریح:** علامه طیبي رحمة الله علیه فرمائي رسول الله ﷺ د عمیر ﷛ په شکایت د هغه آقا ابو اللحم ﷛ ته چي څه وویل یا د عمیر ﷛ سره چي کومه رویه اختیار کړه د هغه مطلب دا نه وو چي د مالک په مال کي غلام او ملازم ته مطلقا د تصرف حق حاصل دی بلکه رسول الله ﷺ خو یوازې په دې خبرې د ناخوښي اظهار وکی چي غلام او مزدور دې په دا خبرې ووهل سي چي مالک خو غلطي خپل تاوان ګڼي خو په حقیقت کې هغه د مالک په حق کې غلطي یا تاوان نه وي بلکه د هغه لپاره په هغه کې بهتري او خیر وي نو رسول الله ﷺ ابو اللحم ﷛ ته ترغیب ورکړی چي د هغه غلام د هغه په حق کې بهتر او نیک کار کړی دی ځکه هغه دې معاف کړي او هغه ثواب دې غنیمت وګڼي چي د هغه مال د خرڅولو په وجه هغه ته حاصل سوي دې ګویا د

ابو اللحم لپاره د رسول الله ﷺ رهنمائي او تعليم نه وو چي د عمير ؓ کار رسول الله ﷺ جائز ونه ګرځوی.

=========

# بَابُ مَنْ لاَّ يَعُوْدُ فِي الصَّدَقَةِ

## د خيرات بيرته اخيستلو بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### خيرات بيرته اخيستل جائز نه دي

﴿۱۸۵۸﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللهِ فَأَضَاعَهُ

د حضرت عمر بن الخطاب ؓ څخه روايت دئ چي ما د الله جل جلاله په لاره کي يو سړی پر آس سپور کړ (يعني مجاهد ته مي آس ورکړ) نو هغه آس خراب کړ،

الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ فَأَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِيَهُ وَظَنَنْتُ أَنَّهُ يَبِيعُهُ بِرُخْصٍ فَسَأَلْتُ

ما اراده وکړه چي هغه رانيسم او زما دا خيال وو چي هغه به يې ارزانه را باندي خرڅ کړي، نو ما پوښتنه وکړه

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَشْتَرِي وَلَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ وَإِنْ أَعْطَاكَهُ

د رسول الله ﷺ څخه چي ايا زه يې بيرته واخلم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅکله يې مه رانيسه، خپله صدقه بيرته مه اخله که څه هم هغه يې درکوي

بِدِرْهَمٍ فَإِنَّ الْعَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُوْدُ و في رواية لاَ تَعُدْ فِيْ صَدَقَتِكَ

په يوه درهم ځکه خپله صدقه بيرته اخيستل داسي دي لکه سپی چي قی وکړي او بيا يې دوهم وار وخوري، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خپله صدقه بيرته مه اخله

فَإِنَّ الْعَائِدَ فِيْ صَدَقَتِهِ كَالْعَائِدِ فِيْ قَيْئِهِ. متفق عليه

ځکه چي صدقه بيرته اخيستونکی د هغه کس په دول دئ چي يو شی قی کړي او بيا يې و

خوري. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۵۳، رقم: ۱۴۹۰، ومسلم ۳\۱۲۴۱، رقم: ۷-۱۶۲۲.

**تشريح:** د حضرت عمر رضی الله عنه په ذهن کي د آس پر ارزانه بيه خيال څکه پيدا سو چي آس کمزوره سوی وو په دې صورت کي ظاهره ده چي د هغه اصلي قيمت نه پاته کيدی يا هغه دا خيال څکه وکی چي ما د هغه سره د احسان معامله کړې وه څکه کيدای سي چي هغه به هم دا وخت زما سره د رعايت او انصاف معامله وکړي.

ابن ملک رحمة الله عليه فرمائي د حديث د ظاهري الفاظو او مفهوم لاندي د ځيني حضراتو مذهب دادی چي خپله ورکړه سوې صدقه رانيول حرامه ده مگر اکثر علماء ليکي چي دا مکروه تنزيهي ده څکه چي همداسي يوازي قبيح لغيره لازميږي او هغه دا چي کوم سړي ته د صدقې مال ورکول کيږي هغه چي هغه مال د صدقه ورکونکي پر لاس خرڅوي نو په دې وجه چي هغه صدقه په ورکولو سره د هغه سره احسان وکړي هغه به يې په ارزانه قيمت ورکړی نو صدقه ورکونکی دي په دې صورت کي بقدر رعايت مال چي د هغه صدقې حصه وه په دوهم وار اخستونکو کي شمير کړه سي.

په هر حال صحيح او قابل اعتماد قول دادی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد (ولا تشتريه) يعني هغه مال مه رانيسی د نهي تنزيهي په توگه دی.

## د صدقې بيرته اخيستو يو صورت

﴿۱۸۵۹﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت بريدة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست وم

إِذْ أَتَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ يا رسول الله إِنِّي تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِجَارِيَةٍ وَإِنَّهَا مَاتَتْ

چي يوه ښځه راغلل او عرض يې وکړ اې دالله رسوله! ما خپلي مور ته يوه مينځه صدقه کړل اوس زما مور مړه سوه (ايا زه هغه بيرته واخلم)

فَقَالَ وَجَبَ أَجْرُكِ وَرَدَّهَا عَلَيْكِ الْمِيرَاثُ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهُ كَانَ عَلَيْهَا

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: ستا ثواب تا ته تر لاسه سو او ميراث هغه مينځه تا ته بيرته درکړل، يعني هغه ستا په ميراث کي ده، هغې ښځي بيا پوښتنه وکړه اې دالله رسوله!

صَوْمُ شَهْرٍ أَفَأَصُومُ عَنْهَا قَالَ صُومِي عَنْهَا قَالَتْ إِنَّهَا لَمْ تَحُجَّ قَطُّ أَفَأَحُجُّ عَنْهَا قَالَ حُجِّي عَنْهَا . رواه مسلم .

ایا زه د هغې د لوري روژې ونیسم، رسول الله ﷺ وفرمایل: هو د هغې د لوري روژې ونیسه، هغې ښځي بیا پوښتنه وکړه ایا زما مور حج نه دئ کړئ ایا زه د هغې لپاره حج وکړم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو د هغې لپاره حج وکړه . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۸۰۵، رقم: ۱۵۷- ۱۱۴۹.

**تشريح**: (وردها عليک الميراث) يعني ميراث هغه مينځي تاته رد کړی په دې کي د ميراث خوا ته د بيرته ورکولو نسبت مجازي دی د دې جملې حقيقي معنی به دا وي چي الله تعالی هغه مينزه د ميراث په ذريعې تاته واپس کړه او هغه مينزه د ميراث په سبب ستا ملکيت سوه ګويا هغه تاته په حلالي ذريعې او طريقې سره راغله .

د دې مفهوم دادی چي په صدقه کي ورکړی مال د دوهم وار اخستو کوم ممانعت چي سوی دی په دې صورت کي د ذکرسوي تعلق ممانعت سره نه دی ځکه چي دا امر اختياري نه دی بلکه دا صورت دی چي په صدقه کي ورکړی مال په توګه د ميراث په ملکيت کي راغلی دی چي ظاهره ده چي دا بالکل جائز دی .

پوښتني کونکو ته د روژې نيولو په باره کي د رسول الله ﷺ د اجازت مطلب دا وو چي په حقيقت کي روژه مه نيسه بلکه حکما يې نيسه چي د فدئې ادائيګي ده د جمهور علماء مذهب دادی که يو سړی په داسي حالت کي مړ سي چي د هغه پر ذمه فرض روژې وي نو دا د هيڅ چا لپاره جائز نه دی چي هغه د مړي د خوا څخه روژه ونيسي مګر په دې صورت کي حکم دادی چي د هغه وارثان د هغه له خوا فديه ادا کړي .

دا مسئله به په تفصيل سره مع اختلاف مذاهب انشاء الله د روژې د قضاء بيان په ضمن کي بيان کړه سي خو په دې وخت کي په اصولي توګه سره په دې پوه سی چي د عبادت څو ډولونه دي اول عبادت مالي چي د هغه تعلق يوازي د مال د ادائيګي سره دی لکه زکوة دوهم عبادت بدني چي د هغه تعلق يوازي د نفس او بدن د مشقت او محنت سره دی لکه لمونځ دريم مرکب يعني هغه عبادت چي د هغه تعلق د مال نفس او بدن دواړو سره دی لکه حج .

نو په عبادت مالي کي خو نيابت جائز دی که څه هم حالت اختياري يا حالت اضطرار وي،

ځکه چي د دې مقصود د فقير او مفلس حاجت پوره کول دي نو هغه د نائب ادا کولو سره هم ادا کيږي په عبادت بدني کي نيابت په هيڅ حال کي هم جائز نه دی ځکه چي په عبادت بدني کي مقصد خپل نفس په محنت او مشقت کي اخته کول دي چي په نائب کولو کي سره نه حاصليږي، په مرکب کي نيابت د مجبوري او ضرورت پر وخت خو جائز دی مگر په حالت قدرت او اختيار کي جائز نه دی البته د نفلي حج په صورت کي حال قدر او په اختيار کي هم نيابت جائز دی ځکه چي د نفل دائره ډېره پراخه ده.

د حديث اخري الفاظ (نعم حجي عنها)، هو د هغې د خوا څخه حج وکړه د دې مفهوم د دواړو صورتونو سره متعلق دی که څه هم پر هغه حج واجب وو يا نه وو همداسي د حج وصيت يې کړی وو يا نه يې وو کړی د وراثت لپاره دا جائز او صحيح دی چي د مورث د خوا څخه وغواړي په بل چا حج ادا کړي او که وغواړي خپله دي حج وکړي خپله د حج کولو په صورت کي د مورث اجازت شرط نه دی کله چي په بل چا حج کوي نو د هغه لپاره به د مورث اجازت شرط وي. (والله اعلم).

==============

# كِتَابُ الصَّوْمِ

## د روژې بيان

**د صوم معنى** : په لغت كي د صوم او صيام معنى ده معنه كېدل يعني مطلقا منع كيدل او د شريعت په اصطلاح كي د دې الفاظو مفهوم دادى چي د فجر څخه تر لمر ډوبيدو پوري د روژې په نيت سره خوراک څښاک جماع كول او د بدن هغه حصه چي هغه د دننه په حكم كي وي د څه شى د دا خليدو څخه منع كول او روژه دار مسلمان د حيض و نفاس څخه پاكيدل د دې د صحيح كيدو د شرائطو څخه دي .

**روژه كله فرض سوه** ؟ د رمضان د مياشتي روژې د هجرت د اتلسمي مياشتي وروسته د شعبان په مياشت كي د تحويل قبله گرځيدل د لسو ورځو وروسته فرض سوه ځيني حضرات وائي د دې مخكي هيڅ روژه فرض نه وه كله چي د ځيني حضراتو قول دى چي د دې مخكي هم څو ورځي روژې فرض وې چي د روژې د مياشتي د روژو د فرضيت وروسته منسوخ سوه د ځيني حضراتو په نزد خو عاشوره محرم يعني د محرم لسم تاريخ روژه فرض وه او د ځيني حضراتو قول دى چي د ايام بيض د قمري مياشتي د ديارلسم څوارلسم او پنځلسم شپو د ورځو روژې فرض دي د روژې د مياشتي روژې د فرضيت ابتدائي ورځو ځيني احكام ډير سخت وه مثلا د لمر ډوبيدو وروسته د بيده كيدو مخكي د خوراک څښاک اجازت وو خو د بيده كيدو وروسته د خوراک څښاک اجازت نه وو كه څه هم څوک سړى بغير د خوراک څښاک بيده سوى وي همدا سي جماع هيڅ وخت او په هيڅ حالت كي هم جائز نه وه كله چي دا احكام پر مسلمانانو باندي سخت تير سوه او د دې احكامو په وجه څو پيښي وسوې نو دا احكام منسوخ كړه سوه او څه سختي پاته نه سوه .

**د روژې اهميت او فضيلت** : د اسلام چي كومي پنځه بناوي دي په هغو كي روژه دريمه درجه ده گويا روژه د اسلام دريم ركن دى د دې اهم ركن چي كوم تاكيدو او اهميت دى په هغه د شريعت ماهرين ښه پوهيداى سي، د روژې انكار كوونكى كافر او د هغې پرېښودونكى فاسق او ډېر سخت گناه كار دى، د درمختار څخه په باب ما يفسد الصلوة كي دا مسئله او حكم نقل سوى دى چي :

ولوا كل عمدا اشهرة بلا عذر يقتل: كوم سړى چي په روژه كي بې له عذره په ډاگه په خوراک او

څیښاک کولو ولیدل سي نو هغه دي مړ کړل سي.
د روژې د فضیلت په باره کي یوازي په دومره اندازه ویل بس دي چي ځیني علماء د دې اهم ترین او باعظمت رکن ډیر زیات فضائل په لیدو سره دې ته یې د لمانځه په ډول پر عظیم الشان عبادت باندي هم ترجیح او فضیلت ورکړی دی که څه هم دا د ځیني علماؤ قول دی کله چي د اکثرو علماؤ مذهب دادی چي لمونځ په ټولو اعمالو کي افضل دی او پر روژې هم ورته فضیلت حاصل دی، خو یوازي دادي کله چي په دې خبره د علماء اختلاف دی چي لمونځ افضل دی که روژه نو اوس ظاهره ده چي د لمانځه پرته بل دوهم عمل او دوهم رکن د روژې همسري نسي کولای.

**د روژې فائدې** : د یوه عبادت او عمل تر ټولو لویه فائده دا وي چي د الله تعالی رضا حاصله سي او د الله تعالی رحمت کامله د هغه عمل او عبادت کونکی دین و دنیا دواړه ځایه په خپل غیږه کي پټ کړي ظاهره ده چي د دې اعتبار څخه د روژې فائده به هم عظیم الشان وي خو د روژې څه نور هم روحاني او دیني فائدې دي چي د خپل اهمیت او عظمت د اعتبار څخه قابل ذکر دي د هغې څو فائدې دلته بیانیږي.
اول : د روژې په وجه خاطر جمعي او سکون قلب تر لاسه کیږي د نفس اماره تیزي او تندي ځي جسماني اندامونه خاص هغه اندامونه چي د هغه نیکۍ او بدۍ نیغ په نیغ تعلق دی لکه لاس سترګه ژبه غوږ او ستر وغیره سست سي چي د هغه په وجه د ګناه خواهش کم سي او د ګناه خوا ته رجحان کم سي ځکه ویل کیږي چي کله نفس وږی وي نو ټول اندامونه ماړه وي یعني هغوی ته د خپل کار رغبت هم نه وي او کله چي نفس موړ سي نو ټول اندامونه وږي وي د هغوی خپل کار خوا ته رغبت وي په دې قول په وضاحت سره داسي پوه سی د بدن چي څومره اندامونه دي قدرت هغه خپل د مخصوصو کارو لپاره پیدا کړي دي مثلاً د سترګي تخلیق د لیدو لپاره وي ګویا د سترګي کار لیدل دي د لوږي په حالت کي د هیڅ شي لیدو خوا ته نه راغب کیږي هو کله چي نس ډک وي نو سترګه خپل کار په ډیر رغبت سره کوي او هغه د هر جائز او نا جائز شي د لیدو خواهش کوي، پر دې دا نور اندامونه هم قیاس کیدای سي.
دوهم : د روژې په وجه زړه د خیرو څخه پاک وي ځکه چي د زړه کدورت د سترګي ژبي او د نورو اندامو د فضول کارونو په وجه وي یعني د ژبي د ضرورت او حاجت څخه زیاتي خبري کوي د سترګو بلا ضرورته لیدل همداسي د نورو اندامو د ضرورت زیات خپل په کار کي مصروفه کیدل د زړه د تنګۍ او د زړه د بیري باعث وي او ظاهره ده چي روژه دار د پالتو خبرو

او فضول کارو څخه ساتل سوی وي په دې وجه د هغه زړه صاف او مطمئن وي همداسي د زړه پاکیزګي او د زړه اطمینان د ښه او نیکو کارو ته میلان او رغبت او د لوړ درجو د حصول ذریعه جوړیږي.

دریم: روژه د غریبانو او مسکینانو سره د حسن سلوک او د ترحم سبب دی ځکه چي کوم سړی کوم وخت د لوږي غم زغملی وي هغه ته اکثر هغه حالت را یادیږي نو هغه چي کله یو سړی وږی ویني نو هغه ته د خپلي لوږي حالت را یادیږي چي د هغه په وجه د هغه ده رحم جذبه راپورته کیږي.

څلورم: روژه دار د خپلي روژې په حالت کي ګویا د فقیرانو او مسکینانو د لوږي د حالت مطابقت کوي په دې توګه چي په کوم تکلیف کي هغه اخته وي هغه تکلیف او مشقت روژه دار هم برداشتوي په دې وجه د الله تعالی په نزد د هغه مرتبه ډیره لوړه ده څرنګه چي د یوه بزرګ بشر حافي په باره کي نقل دي چي یو سړی د یخ په موسم کي د هغه په خدمت کي حاضر سو نو ویني چي هغه ناست دی او رپیږي حال دا چي د هغه سره دومره جامې ورسره وې چي هغه یې د یخ څخه ساتلای وای خو هغه جامې جلا ایښي وې هغه سړي دا صورت حال په لیدو سره په ډیر تعجب سره د هغه څخه پوښتنه وکړه چي تا د یخ په حالت کي خپلي جامې جلا ایښي دي هغه ورته وفرمایل اې زما وروره د فقراء او مساکین شمیر ډیر زیات دی په ما کي دومره وس نسته چي زه د هغوی د جامو انتظام وکړم نو کوم شی چي زما په اختیار کي دیهغه غنیمت ګڼم چي څرنګه هغه خلک د یخ تکلیف زغمي همداسي زه هم د یخ تکلیف برداشتوم نو داسي زه د هغوی مطابقت کوم.

دا جذبه موږ د هغه اولیاء او عارفینو په ژوند کي هم ترلاسه کوو چي دا د هغوی په باره کي نقل دي چي هغوی به د ډوډۍ خوړلو پر وخت اول دا د دعا کلمات ویل:

اللهم لا تواء خذني بحق الجائعین اې زما الله د وږو د حق په باره کي مواخذه مه وکړې.

د حضرت یوسف علیه السلام په باره کي نقل دي چي کوم وخت وچ کالی پوره ملک د خپل هیبت په سایه کي واخستی باوجود د دې چي خپله ورسره د غلې ډیره زیاته ذخیره موجوده وه خو هغوی یوازي په دې وجه په ماړه نس ډوډۍ ونه خوړله چیري د وږو خیال یې د زړه څخه نه ووځي او دا چي همداسي هغوی ته د وږي او قحط وهلو عوام تکلیف او د مصیبت سره مشابهت او مطابقت حاصل وي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د روژې برکتونه

﴿۱۸۶۰﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي پيل سي

شَهْرُ رَمَضَانَ فُتِّحَتْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَفِيْ رِوَايَةٍ فُتِحَتْ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ وَغُلِّقَتْ

د روژې مياشت نو د آسمان دروازې خلاصي سي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د جنت دروازې خلاصي سي او وتړل سي

أَبْوَابُ جَهَنَّمَ وَسُلْسِلَتْ الشَّيَاطِيْنُ ، و في رواية فتحت ابواب الرحمة . متفق عليه .

د دوږخ دروازې او شيطانان بندي سي او په يوه روايت کي دي چي د رحمت دروازې خلاصي سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۱۲، رقم: ۱۸۹۹، ومسلم: ۱\۷۵۸، رقم: ۲ - ۱۰۷۹.

**تشريح** : د اسمان دروازې خلاصي سي دا ددې خبري کنايه مقصوده ده چي د دې مقدسي مياشتي په شروع کيدو سره د الله تعالى د پرله پسې رحمت نزول کيږي او د بندګانو اعمال بغير څه مانع پورته کيږي او د قبوليت دروازې به خلاصي سي بنده چي کومه دعا غواړي د لوی خدای جل جلاله په دربار کي د قبوليت شرف تر لاسه کوي . .

د جنت دروازې خلاصي سي د دې څخه دې خوا ته کنايه ده چي بنده ته د هغه نيکيو او ښه کارو توفيق ورکول کيږي چي په جنت کي د داخليدو ذريعه جوړيږي .

د دوږخ دروازې بندي کيږي د دې څخه د دې خبري خوا ته کنايه ده چي روژه دار د داسي کارو څخه نيول سوی وي کوم چي په دوږخ کي د داخليدو باعث کيږي او دا ظاهره ده چي روژه دار د کبيره ګناهو څخه خوندي وي او د هغه چي کوم صغيره ګناهونه وي د هغه د روژې د برکته هغه بخښل کيږي .

شيطانان بنديان کيږي د دې مطلب دا دی چي هغه شيطانان کوم چي سرکشه او باغيان وي

په زنځيرونو تړل كيږي او د هغوی هغه قوت سلب كيږئ چي د هغه په وجه هغوی د بندګانو پر دوکه کولو باندي قادره كيږي.

ځيني حضرات وائي دا جمله په اصل كي د دې خبري خوا ته كنايه ده چي د روژې په مياشت كي شيطانان د خلكو غولولو څخه منع وي او بندګان نه يوازي دا چي د هغوی وسوسې او وهمونه نه قبلوي بلكه د هغوی د مكر او فريب په جال كي مبتلي هم نه او د دې وجه دا وي چي د روژې په وجه پر انسان قوت حيوانيه مغلوبه كيږي كوم چي د غيظ و غضب او شهوت بنياد دی او د ډول ډول ګناهو باعث كيږي د دې پر خلاف قوت عقليه غالب او قوي كيږي چي د اطاعاتو او نيكې باعث وي دا وجه ده چي په روژې كي د نورو مياشتو په نسبت ګناه كمه صادره كيږي او په عباداتو او اطاعاتو كي زياتوالی كيږي.

## باب الريان

﴿۱۸۶۱﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنَّةِ

د حضرت سهل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل د جنت

ثَمَانِيَةُ أَبْوَابٍ فِيهَا بَابٌ يُسَمَّى الرَّيَّانَ لَا يَدْخُلُهُ إِلَّا الصَّائِمُونَ. متفق عليه

اته دروازې دي په هغو كي د يوې نوم الريان دئ پر دې دروازه به يوازي روژه نيونكي جنت ته ځي. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٢٨، رقم: ٣٢٥٧، ومسلم ٢\٨٠٨، رقم: ١٦٦-١١٥٢.

**تشريح:** ( ريان ) مغنی ده اوپاشي كول د دې پوره وضاحت او تفصيل په باب الصدقة د حديث نمبر دريم په تشريح كي ذكر سوی دی.

## د روژې د مياشتي فضيلت

﴿۱۸۶۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَامَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي روژې ونيولې

رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ

د رمضان په عقيدت او ايمان سره او د ثواب تر لاسه كولو په نيت د هغه ټول مخكني ګناهونه بخښل كيږي او څوک چي ودريږي (يعني تراويح يې وكړې) او په شب قدر كي د تراويح وروسته نفل وكړي

إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . متفق عليه

د عقیدت ، ایمان او ثواب تر لاسه کولو په نیت نو د هغه ټول مخکني ګناهونه بخښل کیږي .
بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱ \ ۹۲، رقم: ۳۸، ومسلم ۱ \ ۵۲۴، رقم: ۱۷۵- ۷۶۰.

**تشریح**: په روژې کي د دریدو مطلب دادی چي د روژې په شپو کي تراویح وکړي د قرآن کریم تلاوت وکړي د الله تعالی په ذکر او داسي نورو کي مصروفه وي او که په حرم شریف کي وي نو طواف او عمره کوي بیا همداسي په نورو عباداتو کي ځان مصروفه ساتي .

په شب قدر کي د دریدو مطلب دادی چي په شب قدر کي د الله تعالی په عبادت او د الله تعالی په ذکر کي مصروفه وي که څه هم د هغه شپې په شب قدر کیدو هغه خبر وي که نه وي .

( غفر له ما تقدم من ذنبه ) نو د هغوی هغه ګناه بخښل کیږي کومه چي یې مخکي کړې وي په دې باره کي علامه نودي رحمة الله علیه فرمائي یعني هغه د خیر اعمال چي د ګناهونو ختمونکي دي صغیره ګناوي خو ختموي او کبیره ګناوي سپکوي او که د یو خوش نصیب په عمل نامه کي د ګناه وجود نه وي نو بیا د مکفراتو په وجه په جنت کي د هغه درجي لوړي کیږي .

## د روژې ثواب

﴿۱۸۶۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ عَمَلِ ابْنِ آدَمَ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل د انسان د هر نیک عمل

يُضَاعَفُ الْحَسَنَةُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا

ثواب داسي زیاتیږي چي د یوې نیکۍ ثواب لس برابر ورکول کیږي تر څو چي دا ثواب اووه سوه پوري ورسیږي ، الله تعالی فرمایلي دي : مګر

الصَّوْمَ فَإِنَّهُ لِي وَأَنَا أَجْزِي بِهِ يَدَعُ شَهْوَتَهُ وَطَعَامَهُ مِنْ أَجْلِي لِلصَّائِمِ

د روژې ثواب تر دې هم زیات دئ ځکه چي روژه یوازي زما لپاره ده او زه به د دې ثواب ورکوم ، (روژه نیونکی) خپل خواهشات او خپل خوراک یوازي زما د رضا لپاره پریږدي

فَرْحَتَانِ فَرْحَةٌ عِنْدَ فِطْرِهِ وَفَرْحَةٌ عِنْدَ لِقَاءِ رَبِّهِ وَلَخُلُوفُ فم الصائم

او هغه ته دوې خوښی ترلاسه کيږي يوه خوښي د روژه ماتي پر وخت او دوهمه خوښي د خپل پروردګار سره د ملاقات پر وخت، د روژه نيونکي د خولې بوی

أَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ والصيام جنة فاذا كان يوم صوم احدكم

د الله ﷻ په نزد تر مشکو هم زيات خوشبوداره دئ، او روژه سپر دئ هر کله چي په تاسو کي د يو چا روژه وي نو

فلا يرفث و لا يصخب فان سابه احد او قاتله فليقل اني امرء صائم.

متفق عليه

د فحش خبري دي نه کوي، نه دي پالتو چغي وهي که څوک هغه ته بد ووايي يا د جګړې کولو اراده ورسره وکړي نو هغه ته دي ووايي چي زما روژه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۸\۴، رقم: ۱۹۰۴، ومسلم ۸۰۷\۲، رقم: ۱۶۴- ۱۱۵۱.

**تشريح**: د نيکی د اجر په اړه اولی درجه لس ده چي نيکی خو يوه وي خو ثواب د هغه لس چنده حاصل سي بيا د دې وروسته د نيک عمل کونکي پر صدق خلوص انحصار کيږي د هغه هڅه او کوښښ او د هغه خلوص او د هغه په رښتوني نيت کي څومره پختي او کمال زياتيږي همداسي د هغه په ثواب کي هم اضافه کيږي تر دې چي په ځيني حالاتو کي په يوې نيکی باندي اوه سوه چنده ثواب حاصليږي ګويا دا اخري درجه ده مګر ځيني ځايونه او وختونه داسي هم دي چي په هغه کي يوه نيکی دي هم په زيات اجر او ثواب سره نازول کيږي.

د روژې دومره ډير زيات فضيلت ولي دی؟ روژه او د دې د ثواب او فضيلت دوه سببه دي اول خو دا چي روژه د نورو خلکو د نظر څخه پټه وي د نورو عبادتو پر خلاف چي په هغه کي دا صفت نسته څومره چي هم عبادات وي هغه په څه نا څه ډول د نورو خلکو د نظرونو مخ ته راځي کله چي روژه يو داسي عبادت دی چي د هغه علم هم د الله تعالی څخه پرته يوازي روژه دار ته وي نو روژه يوازي د الله تعالی لپاره وي چي په دې کي رياء او نمائش ته هيڅ دخل نسته نو الله تعالی د خپل ارشاد (فانه لي) څخه دې ته اشاره وفرمايل چي روژه خاص زما لپاره ده ځکه چي روژه خو صورت د ځان لپاره وجود نه لري کله چي نور عبادتونه صورة د ځان لپاره وجود لري.

دوهم دا چي په روژه کي د نفس او جسم د بدن سپکيدل او تاوان دی او پر هغه صبر کول وي کله چي په نورو عباداتو کي نه دومره سختي او تکليف وي او نه خپل پر خواهش او طبيعت

باندي دومره جبر وي، الله تعالی د خپل ارشاد (يدع شهوته) په ذريعه دې ته ارشاره وفرمايله چي روژه دار خپل خواهش پرېږدي يعني د روژې په حالت کي چي کوم شيان منعه دي د هغه ټولو څخه کناره ليري والی اختياروي.

د لفظ (شهوته) وروسته د (طعامه) ذکر يا خو د تخصيص بعده د تعميم په توګه دی يا د شهوت څخه مراد جماع ده او د طعام څخه د جماع پرته هغه نور شيان مراد دي چي روژه ماتونکي دي د روژه مات پر وخت روژه دار ته خوشحالي په دوو وجهو کيدای سي يا خو په دې وجه چي دا هغه وخت وي چي روژه دار خپل ځان د الله تعالی حکم او خپله ذمه داري پوره کونکی محسوسوي يا دا چي د عبادت د توفيق او نورانيت په وجه خپل ځان مطمئن او خوشحاله محسوسوي چي دا په ظاهره د خوشحالی وجه ده ، د دې څخه پرته په دنيوي او جسماني توګه سره هم داسي خوشحالي محسوسيږي چي د ټولي ورځي د لوږي او تندي وروسته هغه ته خوراک څښاک حاصليږي .

د حديث د اخري جملې معنی داده که يو سړی روژه دار ته بد و رد ووايي يا د هغه سره د جنګ اراده وکړي نو هغه دي ورته انتقاما بد و رد نه وائي او نه دي د هغه سره جنګ ته تياريږي بلکه هغه سړي ته دي دا وائي چي زه روژه داريم او دا خبره دي په ژبي سره ووائي چي دښمن د خپلو ناپاکو ارادو څخه ونيول سي ځکه چي روژه دار خپل مقابل ته دا ووائي چي زه روژه داريم نو د دې مطلب به دا وي چي زما روژه ده زما لپاره دا جائز نه دی چي ستا سره جنګ وکړم او کله چي زه خپله جنګ ته تيار نه يم نو ستا لپاره هم دا مناسب نه ده چي ته د روژې په حالت کي د چا سره جنګ وکړې يا چا ته په خپلي ژبي سره بد و رد ووايې .

د لفظ (الا الصوم) په اړه حضرت مولانا شاه عبدالعزيز دهلوي رحمة الله عليه ليکلي دي د حديث ځيني شارحين په دې وخت کي وائي موږ ته دا نه وه معلومه چي د روژې دا خاصيت په څه وجه دی خو پر موږ باندي دا خبره واجبه او لازمه ده چي بغير د څه شک او شبهې موږ د دې تصديق وکړو هو ځيني محققينو علماؤ د دې خصوصيت څه اسباب بيان کړي دي ځيني حضرات وائي چي روژه هغه عبادت دی چي د جاهليت په ورځو کي هم د اهل عرب په نزد يوازي د الله تعالی د ذات لپاره مخصوص ده څرنګه چي کفارو او مشرکانو به سجده د الله تعالی پرته د نورو شيانو لپاره هم کوله ولي هغوی به په روژه کي د الله تعالی پرته څوک نه ګڼول بلکه روژه به يې يوازي د الله تعالی لپاره نيوله .

همداسي د دې نکتې په ذريعه هم د دې خصوصيت ته اشاره کيدای سي چي په حقيقت

کي کوم سړی روژه ونیسي او همداسي هغه یوازي د الله تعالی د رضا لپاره خپل خوراک، څښاک او نور خواهشات پرېږدي نو هغه یو ډول لطافت او پاکیزګي حاصلوي ګویا هغه په دې باره کي د الله تعالی اوصاف او د خلګو سره مشابهت اختیاروي په دې توګه چي الله تعالی د خوراک څښاک څخه پاک دی همداسي هغه هم د ورځي خپل ځان د دنیوي خواهشاتو څخه پاک ساتي په دې وجه روژې ته دا خصوصیت حاصل دی.

تاسو پورته وویل چي د عربو مشرکینو په روژې کي څوک د الله تعالی سره نه شریکول خو اوس د هغوی روژه هم یوازي د الله تعالی لپاره مخصوص نه ده پاته سوې آیا تاسو نه وینی چي د ځیني بزرګانو په نامه او د هغوی لپاره هم اوس روژه نیول کیږي الله تعالی دي موږ ټول د دې ګمراهي او ضلالت د لاري څخه وژغوري او یوازي د خپل دین اسلام تابع او پابند مو دي جوړ کړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د روژې برکتونه

﴿۱۸۶۴﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي

أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ صُفِّدَتِ الشَّيَاطِينُ وَمَرَدَةُ الْجِنِّ وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ

د رمضان لومړۍ شپه راسي نو شیطان او سرکښ پیریانان وتړل سي، او بندي سي دروازې

النَّارِ فَلَمْ يُفْتَحْ مِنْهَا بَابٌ وَفُتِّحَتْ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ فَلَمْ يُغْلَقْ مِنْهَا بَابٌ

د دوږخ او هیڅ دروازه نه خلاصیږي، او د جنت دروازې خلاصي سي او د هغه هیڅ دروازه نه بندیږي

وَيُنَادِي مُنَادٍ يَا بَاغِيَ الْخَيْرِ أَقْبِلْ وَيَا بَاغِيَ الشَّرِّ أَقْصِرْ وَلِلّٰهِ عُتَقَاءُ مِنَ

او یو اعلان کونکی اعلان کوي اې د نیکۍ غوښتونکي، د نیکۍ په لور متوجه سه او اې د بدۍ اراده کونکي د بدۍ څخه منع سه او الله ﷻ (په دغه میاشت کي) ډیر خلک د دوږخ څخه آزادوي

النَّارِ وَذٰلِكَ كُلُّ لَيْلَةٍ . رواه الترمذي و ابن ماجة و رواه احمد عن رجل و قال الترمذي هذا حديث غريب .

او داسي هره شپه کيږي (يعني اعلان هره شپه کيږي) .، ترمذي ، ابن ماجه، احمد د يو سړي څخه روايت کړی دی ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۶۶-۶۷، رقم: ۶۸۲، وابن ماجه ۱\۵۲۶، رقم: ۱۶۴۲، و امام احمد في مسنده ۴\۳۱۱، والترمذي الموضع السابق.

**تشريح**: د روژې د مياشتي په شروع کيدو سره شيطانان بنديان کيږي تر څو هغوی روژه دار په مکر او فريب کي وانه چوي او د هغوی په زړونو کي وسوسې او د ناپاکو خيالاتو تخم ونه کري د دې تولو لوی ثبوت دادی چي د روژې په مياشت کي اکثر گناه کاران د گناهو څخه نيول سوي وي او د الله تعالی خوا ته متوجه وي البته داسي بد بخت هم وي چي په دې مبارکي مياشت کي هم د گناه څخه نه منعه کيږي د دې وجه هغه اثرات وي کوم چي د روژې مخکي په عامو ورځو کي د شيطان غولولو په وجه د هغوی په فتنو کي راشکيل وي، يعني د هغوی ذهن او فکر او د هغوی عملي قوت د مخکي څخه د شيطان تر اثر لاندي وي، او د هغوی نفس عادي سوی وي ځکه داسي خلک د عادت په وجه د روژې په مياشت کي هم د گناه او معصيت څخه ځان نه سي ساتلای .

د الله تعالی خوا ته د متوجه کيدو مطلب دادی چي د الله تعالی بندگي د هغه د عبادت او د هغه د رضا په کارونو کي زيات د مصروفه کيدو کوښښ وکړل ځکه چي دا داسي وخت دی که لږ نيک عمل هم په دې کي وکړه سي او د هغه ثواب به ورته حاصليږي او د معمولي درجې نيکۍ هم د سعادت او نيک بختي لوړي درجې ته رسوي .

همداسي د بدي څخه د منع کيدو مطلب دادی چي د گناه او معصيت لاره پريږدي د نيکۍ او سيده لار خپله کړي د خپلو زړو گناهونو توبه وکاږي او د الله تعالی خوا ته خپله توجه وکړي ځکه چي د قبوليت دعا او مغفرت دا غوره وخت دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۱۸۶۵﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَاكُمْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر تاسو راغلې ده

رَمَضَانُ شَهْرٌ مُبَارَكٌ فَرَضَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ صِيَامَهُ تُفْتَحُ فِيهِ أَبْوَابُ السماء

د رمضان مبارکه میاشت د هغې روژې الله ﷻ پر تاسو فرض کړي دي ، په دې میاشت کې د آسمان دروازې خلاصې سي

وَتُغْلَقُ فِيهِ أَبْوَابُ الْجَحِيمِ وَتُغَلُّ فِيهِ مردة الشَّيَاطِينُ لله فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ

او د دوږخ دروازې وتړل سي او سرکښ شیطانانو ته توقونه واچول سي ، په دې میاشت کې د الله تعالی یوه خاصه شپه ده چې غوره ده

مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ مَنْ حُرِمَ خَيْرَهَا قَدْ حُرِمَ . رواه احمد والنسائي .

تر زرو میاشتو ، څوک چې د دې د خیر څخه محروم سو نو هغه (د هر خیر څخه) محروم سو . احمد او نسائي .

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲۳۰/۱۲ ، والنسائي ۱۲۹/۴ ، رقم: ۲۱۰۵ .

**تشریح**: ملا علي قاري رحمة الله علیه د دې حدیث الفاظ ( و تغل فیه مردة الشیاطین )څخه دا مفهوم اخلي چې د روژې شریفې په میاشت کې یوازې هغه شیطانان بندیان کیږي کوم چې سرکشه او باغیان وي ګویا داسې هغه اشکال خپله رفع کیږي چې د اوس څخه مخکې د حدیث په تشریح کې تیر سوه په هغه صورت کې د هغه حدیث پنځه الفاظ صفدت الشیاطین و مردة...... عطف پر شیطان باندې (عطف د تفسیرو بیان) له امله دی .

ملا علي قاري رحمة الله علیه د دې قول وضاحت داسې کړی دی چې د دې مخکې د حدیث په تشریح کې دې اشکال ته اشاره سوې ده چې د شیطانانو د بندولو سربېره هم چې کوم خلک په دې مبارکه میاشت کې په ګناه کې اخته کیږي د دې څه وجه ده؟ د دې یو جواب خو داورکړل سوی وو چې د دې وجه هغه اثرات وي کوم چې د روژې مخکې په عامو ورځو کې د شیطان د غولولو په وجه د هغوی په بدو خصلتو کې اخته کیږي ، یو جواب یې دا کړی دی .

د دې اشکال دوهم جواب ملا علي قاري رحمة الله علیه د مفهوم په رڼا کې ورکړی دی چې په روژې کې په اصل کې هغه شیطانان بندیان کیږي کوم چې سرکش او باغیان وي نو کوچني او غټ شیطانان ازاد وي ځکه داسې خلک دوکه کوي چې د هغوی په وجه په روژې کې هم د ګناهونو څخه ځان نه سي ژغورلای .

خو د دې باب اول حدیث څخه دا ثابته سوه چې مطلقا شیطانان بندیان کیږي ځکه د هر سرکشه شیطان څه تخصیص نسته نو د ملا علي قاري رحمه الله دا جواب څه زیات موثر نه معلومیږي .

په دې اړه د مولانا شاه محمد اسحاق دهلوي رحمة الله عليه تقرير تر ټولو بهتر دی د هغه نه يوازې دا چې مسئله مذكوره كې څه اشكال نه پاته كيږي بلكه په دې باره كې نقل په ټولو حديثونو كې تطبيق هم پيدا كيږي حضرت موصوف رحمة الله عليه فرمائي د سركشو شيطانانو بندول څرنګه چې دا حديث ښائي د مخصوص افراد نسبت سره دی مطلب دادی چې سركش شيطانان خو د فاسقو خلكو د غولولو څخه منع كيږي داسې خلك په روژه كې ګناوې كمې كوي البته نور كوچني شيطانان هغوی دوكه كوي چې د هغه په وجه څه نا څه ګناه د هغوی څخه كيږي او مطلقا شيطانان د صلحاء او نيكو خلكو د غولولو څخه منع كيږي نو هغوی د كبيره ګناهونو څخه محفوظه كيږي كه په شرعي تقاضا باندې د هغوی څخه څه ګناه وسي نو هغوی توبه استغفار كوي.

د ذكر سوي پورته اشكال يو دوهم جواب دادی چې څه ګناوې خو داسې وي چې د شيطانانو په غولولو سره كيږي او څه ګناوې داسې وي چې خپله د خپل نفس په تقاضا سره كيږي كومې ګناوې چې د شيطان په غولولو سره كيږي هغه ګناوې هم خلك په روژه كې كوي او كومې ګناوې چې د خپل نفس په تقاضا سره كيږي هغه په روژه كې هم كيږي.

(من حرم خيرها) كوم سړی چې د خير څخه محرومه سي د دې مطلب دادی چې هغه ته په دې مقدسې مياشت كې د الله تعالى د عبادت لپاره د شپې بيدارې توفيق نه وركول كيږي كه هغه لږ تر لږه د شپې په ابتدائې او اخرې حصو كې بيداره وې او د الله تعالى بندګې كوي بيا هم هغه ته به د دې شپې د عبادت فضيلت حاصليدی ځكه نقل دې چې كوم سړی چې لږ تر لږه د ماختستن او سهار لمونځ په جماعت سره وكړې نو هغه ته به هم د ليلة القدر د سعادتونو خپله حصه تر لاسه سي.

فقد حرم: يعني د هر شي څخه محروم سو، دا د مبالغې په توګه فرمايل سوې دې او د دې څخه مراد د پوره ثواب څخه محروم كېدل دې.

## د روژې او قرآن كريم شفاعت

﴿۱۸۶۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

اَلصِّيَامُ وَالْقُرْآنَ يَشْفَعَانِ لِلْعَبْدِ يَقُوْلُ الصِّيَامُ : أَيْ رَبِّ إِنِّيْ مَنَعْتُهُ

روژه او قرآن کریم به د بنده شفاعت کوي، روژه به وايي اې پروردګاره! ما دی منع کړی وو

الطَّعَامَ وَالشَّهَوَاتِ بِالنَّهَارِ فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ وَيَقُوْلُ الْقُرْآنُ مَنَعْتُهُ النَّوْمَ

د ورځي د خوراک او خواهشاتو څخه نو دده لپاره زما شفاعت قبول کړې، او قرآن کریم به وايي ما د خوب څخه منع کړی وو

بِاللَّيْلِ فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ فَيُشَفَّعَانِ" . رواه البيهقي في شعب الإيمان

د شپې او دده په حق کي زما شفاعت قبول کړې نو د هغوی دواړو شفاعت به قبول کړل سي . بیهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳۴۶\۲، رقم: ۱۹۹۴.

**تشریح**: د قرآن کریم څخه مراد د قرآن کریم تلاوت دی، علامه طیبي رحمة الله علیه وايي چي د قرآن څخه تهجد، د قرآن کریم تلاوت، عبادت او داسي نور مراد دي، د روژې او قرآن کریم د دواړو د شفاعت ثمره به دا وي چي په روژې سره به ګناهونه ختم سي او د قرآن کریم په شفاعت سره به په درجو کي لوړوالی په برخه سي .

## د شب قدر فضيلت

﴿۱۸۶۷﴾: وَعَنْ أَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ دَخَلَ رَمَضَانُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د رمضان میاشت پیل سوه نو رسول الله ﷺ وفرمایل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰذَا الشَّهْرَ قَدْ حَضَرَكُمْ وَفِيْهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ مَنْ

دا میاشت پر تاسو راغلل او په دې کي یوه داسي شپه ده چي تر زرو میاشتو غوره ده څوک چي

حُرِمَهَا فَقَدْ حُرِمَ الْخَيْرَ كُلَّهُ وَلَا يُحْرَمُ خَيْرَهَا إِلَّا مَحْرُوْمٌ . رواه ابن ماجه

ددې شپې د خیر څخه محروم سو نو هغه د ټولو خیرو څخه م.حروم سو او ددې شپې د نیکیو څخه یوازي بې نصیبه محروم کیږي . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۵۲۶\۱، رقم: ۱۶۴۴.

**تشریح**: ستاسو لپاره دا میاشت راغلې ده: د دې مطلب دادی چي د روژې مقدسه او بابرکته میاشت د دین او دنیا د سعادتونو او نېکبختیو څخه ډکه میاشت ده نو د دې راتلل غنیمت وګڼی د ورځي روژه ونیسی او د شپې د الله تعالی عبادت یعني تراویح او د قرآن کریم تلاوت

او په تهجد او داسي نورو عباداتو کي مصروف کيدل د دې مياشتي برکتونه او سعادتونه حاصل کړي او د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي د ليلة القدر د سعادتونو څخه هغه سړی محروم کيدای سي چي د سعادت او خير په معامله کي بدنصيبه وي او د هغه د عبادت سره شوق نه وي.

## دروژې د مياشتي برکتونه

﴿۱۸۶۸﴾: وعن سلمان الفارسي قال خطبنا رسول الله ﷺ في آخر يوم من

د سلمان فارسي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي په آخري ورځ رسول الله ﷺ موږ ته خطبه را کړه

شعبان فقال: " يا أيها الناس قد أظلكم شهر عظيم مبارك شهر فيه

د شعان او وه يې فرمايل: اې خلکو! يوه لويه مياشت پر تاسو سايه غوړلې ده چي ډيره

ليلة خير من ألف شهر جعل الله تعالى صيامه فريضة وقيام ليله تطوعا

برکتناکه مياشت ده دا داسي مياشت ده چي په دې کي يوه شپه ده چي تر زرو مياشتو غوره ده، ددې مياشتي روژې الله تعالى فرض کړي دي او ددې مياشتي عبادت يې نفل ګرځولی دئ

من تقرب فيه بخصلة من الخير كان كمن أدى فريضة فيما سواه ومن

څوک چي په دې مياشت کي په نيکۍ سره د الله تعالى قرب و لټوي نو دهغه ثواب دومره دئ څومره چي د فرضو د رمضان د مياشتي پرته په نورو مياشتو کي دئ

أدى فريضة فيه كان كمن أدى سبعين فريضة فيما سواه وهو شهر الصبر

څوک چي په دې مياشت کي فرض لمونځ ادا کړي د هغې ثواب د رمضان د مياشتي پرته د نورو مياشتو د اويا فرضو برابر دئ، دا مياشت د صبر مياشت ده

والصبر ثوابه الجنة وشهر المواساة وشهر يزداد فيه رزق المؤمن من فطر

او د صبر ثواب جنت دئ دا مياشت د غمخوارۍ مياشت ده دا مياشت يوه داسي مياشت ده چي په دې کي د مؤمن رزق زياتيږي څوک چي

فيه صائما كان له مغفرة لذنوبه وعتق رقبته من النار وكان له مثل أجره

په دې مياشت کې د يوه روژه نيونکي د روژه ماتي بندوبست وکړي نو هغه د ګناهونو د بخښني او د دوږخ د اور څخه د خلاصون سبب کيږي او هغه ته د روژه نيونکي د روژې برابر ثواب ورکول کيږي

من غير أن ينتقص من أجره شيء " قلنا : يا رسول الله ليس كلنا نجد ما

او په دې سره د روژه نيونکي ثواب هم نه کميږي، موږ پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! زموږ سره دومره سامان نسته

نفطر به الصائم . فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " يعطي الله هذا

چې د روژه نيونکي روژه ماتی ورکړو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى ورکوي دغه

الثواب من فطر صائما على مذقة لبن أو تمرة أو شربة من ماء ومن أشبع

ثواب هغه چا ته چې د شيدو يو غړپ يا په خرما سره يا د اوبو يوه غړپ سره د چا روژه ماتی وکړي څوک چې روژه نيونکي ته په ماړه نس ډوډۍ ورکړي

صائما سقاه الله من حوضي شربة لا يظمأ حتى يدخل الجنة وهو شهر أوله

الله تعالى به هغه زما په حوض داسي اوبه کړي چې بيا به هيڅکله نه تږی کيږي تر څو چې جنت ته ولاړ سي دا مياشت داسي مياشت ده چې په لومړی کي

رحمة وأوسطه مغفرة وآخره عتق من النار ومن خفف عن مملوكه فيه

رحمت دئ په منځ کي بخښنه او په پای کي د دوږخ څخه خلاصون دئ ، چا چې په دې مياشت کي د خپل روژه نيونکی غلام څخه لږ کار واخيستئ

غفر الله له وأعتقه من النار " . رواه البيهقي

او د هغه په کار کي يې کمي وکړل نو الله يې بخښي او د دوږخ څخه خلاصون ورکوي . بيهقي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٣\٣٠٥ - ٣٠٦،

**تشريح**: او د دې شپو قيام يې نفل ګرځولی دی د دې مطلب دادی چې د روژې په مياشت کي تراويح لمونځ او د دې ډول نور سنت موکده عبادتونو لپاره د شپې بيداري نفل ګرځولې ده،

کوم سړي چي د شپې بيداري وکړي او تر اويح لمونځ وکړي هغه به په ډير غوره اجر او ثواب سره نازول کيږي او کوم سړي چي دا پريږدي هغه به نه يوازي د خير او شيګڼي د سعادتونو څخه محرومه سي بلکه د الله تعالى په عذاب کي به راچاپيره سي .

د دې جملې مطلب دادی چي تراويح لمونځ يې نفل ګرځولی دی ځکه چي تراويح لمونځ خوسبنت موکده دی او د دې لوی تاکيد دی د ابوداوډ باب ( في شهادة الواحد على رؤية هلال رمضان ) کي يو روايت نقل دی د هغه الفاظ دادي ( فامر بلالا فنادى في الناس ان يقوموا وان يصوموا ) يعني کله چي د روژې د مياشتي ګواهي تيره سوه نو رسول الله ﷺ بلال ﷛ ته د اعلان کولو حکم وکړ او هغه اعلان وکړ چي قيام دي وکړل سي يعني تراويح لمونځ دي وکړه سي او روژه دي ونيول سي .تر دې چي هغه به په جنت کي داخل سي ځکه يې وفرمايل چي دا خو معلومه ده چي په جنت کي د داخليدو وروسته د تندي څه وجود پاته نه پاته کيږي لکه چي د الله تعالى ارشاد دی :

| | |
|---|---|
| انک لا تظما فيها | بې شکه تاسو به په جنت کي نه تږي کيږئ. |

نو د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب به دا وي چي هغه سړی به د دې وروسته هيڅ کله تږی نه پاته کيږي.

د روژې لومړنی برخي يعني اولي لسيزي ته رحمت ويل سوی دی د دې مطلب دادی چي دا هغه زمانه وي کله چي د الله تعالى د رحمت عام نزول وي ظاهره ده که د هغه رحمت نه وي نو بيا دي نه څوک روژه نيسي نه دي څوک تراويح کوي .

د خپل غلام او مينځي بار سپکول د دې مطلب دادی چي د روژې په مياشت کي روژه دار خپل خدمتګار او خپل د خادم سره ډير زيات د محبت او رحمت معامله کوي او د هغه په ټاکلي خدمت کي دي آسانتيا او رعايت کوي همداسي د عاهو ورځو په نسبت د روژې په حالت کي پر هغوی دي د خپل خدمت او نورو کارو بار نه اچوي .

## په رمضان کي د بنديانو خلاصون

﴿۱۸۶۹﴾: وعن ابن عباس قال : كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا دخل شهر رمضان أطلق كل أسير وأعطى كل سائل . رواه البيهقي

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دئ چي کله به د روژې مياشت راغلل نو رسول الله ﷺ به بنديان ايله کړل او هر سوال کونکي ته به يې ورکړه ورکول . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٣١١\١٣، رقم: ٣٦٢٩.

**تشريح**: د بنديانو څخه مراد هغه خلک هم دي چي د حقوق الله لپاره بنديان سوي وي او هغه خلک هم مراد ځيني اخستل کيږي چي د بندګانو د حقوقو د مطالباتو په خاطر بنديان کيږي کوم خلک چي د الله تعالی د حقوقو د خاطره بندي سي د هغوی د خلاصون څخه مراد به دا وي چي رسول الله ﷺ به داسي بنديان صاحب حقوق ته په ويلو سره ازادول يو احتمال دا هم دی چي رسول الله ﷺ به يوازي هغه بنديان پريښول چي خپله به د رسول الله ﷺ د حقوقو د خاطره بنديان کيده هسي خو جود او سخا د رسول الله ﷺ امتيازي وصف وو او رسول الله ﷺ به د روژې پرته په نورو ورځو کي هم د هر سوالګر سوال پوره کوی خو په روژه کي به د رسول الله ﷺ د جود او سخا څه بل کيفيت وو د حديث اخري الفاظ او د هر سوالګر مراد به يې پوره کوی د دې څخه به مراد دا وي چي رسول الله ﷺ به په روژې کي د خپل عادت او معمول څخه زياته ورکړه او سخاوت کوی.

## د جنت ښکلا

﴿١٨٧٠﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْجَنَّةَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: جنت

تزخرف لرمضان من رأس الحول إلى حول قابل". قال: "فإذا كان أول

د کال د پيل څخه د کال تر پايه پوري د رمضان مياشتي لپاره ښکلی کيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي د روژې لومړی ورځ سي

يوم من رمضان هبت ريح تحت العرش من ورق الجنة على الحور العين

نو د عرش الهي لاندي د جنت د درختو د پاڼو څخه پر حور عين هوا چليږي،

فيقلن: يا رب اجعل لنا من عبادك أزواجا تقر بهم أعيننا وتقر أعينهم

بنا". روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان

نو حور عين وايي اې پروردګاره! خپل بندګان زموږ خاوندان جوړ کړې او د هغوی د صحبت او لذت څخه زموږ سترګي يخي کړې او د هغوی سترګي زموږ د صحبت او لذت څخه يخي کړې، بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳\۳۱۲، رقم: ۳۶۳۳.

**تشريح**: د كال د پيل څخه مراد د محرم اوله ورځ ده مګر دا هم ليري نه ده چي د جنت او روژې د اعتبار څخه د كال د شروع څخه د شوال لومړنی ورځ مراد وي حاصل دا چي د روژې او د روژې بركتونه يعني كثرت بخشش او مغفرت او د لوړو درجو د راتلو په خوشحالۍ كي جنت ټول كال سنګاريږي.

خپل بندګان زموږ خاوندان جوړ كړې، په دې كي د بندګانو څخه د الله تعالى هغه نيک او فرمانبرداره بندګان مراد دي چي د روژې په روځو كي روژه نيسي او په شپو كي په تراويح لمانځه كي مصروفه وي د رسول الله ﷺ ارشاد نقل دی چي كوم بنده د روژې په مياشت كي روژه نيسي نو د هغه د هري ورځي د روژې په بدله كي هغه ته يوه د غټو سترګو لرونكې حوره وركول كيږي كوم چي د غميانو په خيمه كي قرار لري څرنګه چي د الله تعالى ارشاد دی: حور مقصورات في الخيام.

## د روژه دار مغفرت

﴿۱۸۷۱﴾: وعن أبي هريرة قال عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه قال يغفر

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بخښنه كيږي

لأمته في آخر ليلة في رمضان قيل يا رسول الله أهي ليلة القدر؟ قال لا

د روژې په آخري شپه د محمد ﷺ د امت لپاره، پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله! ايا هغه شب قدر ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: نه،

ولكن العامل إنما يوفى أجره إذا قضى عمله. رواه أحمد

مګر كاركونكي (روژه نيونكي) ته چي هغه خپل كار پوره كړي نو د هغه كار پوره اجرت وركول كيږي احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۲۹۲.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادی چي د مغفرت دا سعادت د ليلة القدر په وجه نه وركول كيږي بلكه د هغه عظيمي فريضې د تكميل په وجه حاصليږي چي د هغه دا ادائيګي حكم الله خپلو بندګانو ته وركړی دی او هغه روژه نيول دي د روايت الفاظ (يغفر لامته) د

رسول الله ﷺ د ارشاد څخه دی بلکه دا د ابوهریره رضي الله عنه خپل الفاظ دي چي د هغه په ذریعه هغه د رسول الله ﷺ د الفاظو مبارکو مفهوم ادا کړی دی او بعینه د رسول الله ﷺ الفاظ يې نه دي نقل کړي چي هغه دادي (يغفر لامتي).

=======

# بَابُ رُؤْيَةِ الْهِلَالِ

## د میاشتي لیدلو بیان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رمضان او شعبان د میاشتي لیدل

﴿۱۸۷۲﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصُومُوا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : روژه مه نیسئ

حَتّٰى تَرَوُا الْهِلَالَ وَلَا تُفْطِرُوا حَتّٰى تَرَوْهُ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَاقْدُرُوا لَهُ. و في

تر څو چي د روژې میاشت ونه وینئ او روژه مه ماتوئ تر څو چي داختر میاشت ونه وینئ، که ستاسو په مخکي وريځ وي او میاشت څرګنده نه سي نو اندازه وکړئ، او په

روایة قَالَ الشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ لَيْلَةً فلا تصوموا حتى تروه فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فاكملوا العدة ثلثين . متفق عليه .

یوه روایت کي دا الفاظ دي چي میاشت کله د یو کم دیرش شپو وي تاسو تر هغه وخته پوري روژه مه نیسئ تر څو پوري چي میاشت ونه وینئ که ستاسو په مخکي وريځ وي نو پوره دیرش ورځي شمیرل کیږي. بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۱۹، رقم: ۱۹۰۶، ومسلم ۲\۷۵۹، رقم: ۲-۱۰۸۰.

**تشریح**: مطلب دادی چي تر څو پوري میاشت ونه ویني یا د باور وړ شهادت او د باور وړ ذرائع سره تر څو پوري چي میاشت لیدل ثابت نسي مه روژه نیسی او مه روژه په ختمولو سره اختر کوی .

مياشت كله د يو كم ديرشو شپو هم وي په اصل كي د دې خبري ترغيب وركول مقصود دى چي پر ديرشمه شپه يعني پر يو كم ديرش تاريخ دي مياشت وگوري علماء ليكي چي د شعبان پر يو كم ديرشم پر خلكو واجب كفايه دى چي د روژې د مياشتي د ليدو كوښښ وكړي .

﴿۱۸۷۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ صُوْمُوْا لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوْا لِرُؤْيَتِهِ فَإِنْ غُبِّيَ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوْا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِيْنَ . متفق عليه .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مياشت ليدو سره روژه نيسئ او د مياشت لېدو سره يې ماتوئ، او كه وريځ وي نود شعبان ديرش ورځي پوره كړئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۹\۴، رقم: ۱۹۰۹، ومسلم ۷۶۲\۲، رقم: ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰–۱۰۸۱.

## د مياشتي ليدنه

﴿۱۸۷۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا أُمَّةٌ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : موږ

أُمِّيَّةٌ لَا نَكْتُبُ وَلَا نَحْسُبُ الشَّهْرُ هٰكَذَا وَهٰكَذَا و عقد الابهام في الثالثة

يو امي (بې تعليمه) قوم يو، ليكل، لوستل، حساب او كتاب نه پيژنو، مياشت دومره او دومره وي يعني دوه واره يې گوتي خلاصي كړې او په دريم واريې

ثم قال الشَّهْرُ هٰكَذَا وَهٰكَذَا وَهٰكَذَا يَعْنِي تمام الثلاثين يعني مَرَّةً تِسْعَةً وَعِشْرِيْنَ وَمَرَّةً ثَلَاثِيْنَ . متفق عليه

بته گوته بنده كړه، ددې دا مطلب سو چي مياشت د نهه ويشتو ورځو هم وي، او بيا يې وفرمايل : مياشت داسي ، داسي او داسي وي . يعني درې واره يې گوتي خلاصي ولرلې ، ددې مطلب دا سو چي كله پوره ديرش ورځي مياشت وي او كله نهه ويشت ورځي، بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲۶\۴، رقم: ۱۹۱۳، ومسلم ۷۶۱\۲، رقم: ۱۵– ۱۰۸۰.

**تشريح**: اهل عرب ته امي ځكه ويل كيږي چي هغوى به څنگه د مور د نس څخه پيدا سوه

همداسي به اوسيده ليک او لوست يې نه کوي خو رسول الله ﷺ دا اکثر د اعتبار څخه فرمايلي دي که څه هم په عربو کي تعليم عام نه وو او اکثريت يې اميان وه، خو بيا هم څه نا څه خلک د علم څخه برخمن وه ، د دې جملې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي اهل عرب حساب کتاب ښه نه سو کولای .

په هر حال د حديث معنی داده چي د نجوم ګرو په قاعدو باندي عمل کول زموږ طريقه نه ده او نه د نجوم قواعد او حساب څخه څرنګه چي په جنتري کي ليکلي دي د مياشت ثبوت د باور وړ کيدای سي بلکه په دې باره کي زموږ علم يوازي د مياشتي په ليدو سره متعلق دي که مياشت وليده سي يا د مياشت ليدل د شرعي قواعد لاندي ثابت سي نو روژه مشروع کيږي يا د دې اختتام کيږي د دې خبري په اخر کي وضاحت وکړه سو چي په ځينو مياشتو کي مياشت پر نهه ويشت تاريخ پوره کيږي او په ځينو مياشتو کي پر ديرش تاريخ پوره کيږي .

د روايت د اخري عبارت دواړي جملې يعني ( تمام الثلثين يعني مرة تسعا .........الخ ) د راوي الفاظ دي په اولي جملې سره خو راوي د رسول الله ﷺ اخري ارشاد بيان کړی دی او د دوهمي جملې په ذريعه يې د دواړو شيانو وضاحت کړی دی .

## د روژې او ذي الحجې مياشتي

﴿۱۸۷۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرَانِ لَا يَنْقُصَانِ شَهْرَا عِيدٍ رَمَضَانُ وَذُو الْحَجَّةِ. متفق عليه .

د حضرت ابوبکرة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوې مياشتي نه کميږي يعني د رمضان او ذي الحجې مياشتي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۱۲۴، رقم: ۱۹۱۲، ومسلم ۲\۷٦٦، رقم: ۳۱- ۱۰۸۹.

**تشريح**: روژې ته اختر په دې اعتبار سره فرمايل سوی دی چي دا اختر ته نژدې وي په هر حال د حديث مطلب خو يا دادی چي په يوه کال کي د روژې مياشت او ذی الحجه دواړي مياشتي ناقص يعني د نهه ويشتو ورځو وي يا د دې معنی داده چي د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کي به دا دواړي مياشتي کمي نه وې .

يا د دې ارشاد مطلب به دا وي چي دا دواړي مياشتي به د حکم او ثواب د اعتبار څخه ناقصي نه وي که څه هم په دې کي يوه د نهه ويشتو ورځو او دوهمه د ديرشو يا دواړه د نهه

ویشتو ورځو وي خو ثواب پوره د دیرشو ورځو حاصلیږي .

## د شعبان اخري روژې نسته

﴿۱۸۷۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

لَا يَتَقَدَّمَنَّ أَحَدُكُمْ رَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ أَوْ يَوْمَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ كَانَ

په تاسو کي دي هیڅوک تر روژې مخکي یوه یا دوې ورځي روژه نه نیسي ، مګر نه هغه څوک

يَصُومُ صَوْمَهُ فَلْيَصُمْ ذَٰلِكَ الْيَوْمَ . متفق عليه

چي د روژې نیولو عادت یې وي نو هغه د دغه ورځو روژې نیولای سي . بخاري او مسلم .

**تخریج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۲۸، رقم: ۱۹۱۴، ومسلم۲\۷۶۲، رقم: ۲۱- ۱۰۸۲.

**تشریح:** د حدیث د اخري جز مطلب دادی چي دا منعه د هغه سړي په حق کي نه ده چي په دې ورځو کي د روژې نیولو عادي وي مثلا یو سړی د چارشنبې یا پنجشنبې په ورځ د نفلي روژې نیولو عادي وي او اتفاقا د شعبان نهه ویشت یا دیرش تاریخ هم په هغه ورځ سي نو د هغه لپاره په هغه ورځ روژه نیول ممنوع نه ده هغه دي یې ونیسي هو کوم سړی چي په دې ورځو کي د روژې نیولو عادي نه وي هغه دي ونیسي خو دومره خیال ساتل پکار دي چي دا منعه د نهي تنزیهي په توګه ده .

علماء فرمائي د روژې څخه یوه ورځ یا دوې روځي مخکي د روژې نیولو ممانعت ځکه دی چي د نفل او فرض دواړو روژو اختلاط ونسي او په اهل کتاب سره مشابهت نه وي ځکه چي هغوی به د فرض روژو سره نوري روژې هم یوځای کولې د مظهر رحمة الله علیه قول دی د شعبان په اخري ورځو کي روژه یوه ورځ یا دوې ورځي مخکي نیول مکروه دي .

مولانا اسحاق رحمة الله علیه فرمائي دلته چي د کومو روژو څخه منع کول کیږي هغه د یوم الشک روژه نه ده بلکه مطلقا د شعبان په اخري ورځو کي د روژې څخه یوه یا دوې ورځي مخکي د روژې نیولو ممانعت دی البته کوم سړی چي په دې ورځو کي د روژې نیولو عادي وي هغه د دې ممانعت څخه مستثنی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شعبان د نيمايي څخه روژه نسته

﴿۱۸۷۷﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْتَصَفَ شَعْبَانُ فَلَا تَصُومُوا . رواه ابوداؤد والترمذي وابن ماجة والدارمي

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي د شعبان نيمه مياشت تيره سي نو روژه مه نيسئ . ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه او دارمي .

**تخريج**: سنن ابي داوٗد ۲\ ۷۵۱، رقم: ۲۲۳۷، والترمذي ۳\ ۱۱۵، رقم: ۷۳۸، وابن ماجه ۱\ ۵۲۸، رقم: ۶۵۱، والدرامي ۲\۲۹، رقم: ۱۷۴۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د شعبان په اخري نصف حصه مياشت کي قضاء يا څه واجب روژې څخه پرته نوري روژې دي نه نيسي خو دا ممانعت د نهي تنزيهي په توګه دی او د دې تعلق د امت د اساني په وجه دی يعني رسول الله ﷺ د روژې بالکل په نژدې ورځو کي د روژې نيولو څخه ځکه منع فرمايلې ده چي د دې روژو په وجه خلکو ته ضعف او نا تواني ورپيښه نسي چي د هغه په وجه د روژې د مياشتي روژې پر سختي سي .

د قاضي رحمة الله عليه قول دی د دې ممانعت تعلق د هغه سړي سره دی چي هغه ته پرله پسې د روژو نيولو طاقت نه وي نو د هغه لپاره دي په دې ورځو کي روژې نه نيول مستحب دي څرنګه چي هغه خلکو ته چي قوت برداشت نه لري د عرفې په ورځ روژه نه نيول مستحب دي چي هغه د روژې ناقابل برداشت مشقت څخه د ساتلو په هغه ورځ ذکر او په دعا کي مصروفه سي هو په کومو خلکو کي چي قوت برداشت وي د هغوی لپاره د شعبان په اخري نيمه مياشت کي روژې نيول منعه نه دي ځکه چي د رسول الله ﷺ په اړه ثابت دي چي د شعبان پوره مياشت به يې روژې نيولې .

### د شعبان ورځي يادوئ

﴿۱۸۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْصُوا هِلَالَ شَعْبَانَ لِرَمَضَانَ . رواه الترمذي

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د روژې لپاره د شعبان مياشت شميرئ . (يعني د رمضان د مياشتي د څرګندېدو لپاره) ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۷۱، رقم: ۶۸۷.

**تشريح** مطلب دادی چي د شعبان د مياشتي ورځي شميرئ او ياد يې ساتئ چي د روژې د راتګ خبر درته وسي .

## د شعبان د مياشتي روژې

﴿۱۸۷۹﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَصُومُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ إِلَّا شَعْبَانَ وَرَمَضَانَ . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي و ابن ماجة

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه پرته د شعبان او رمضان پرله پسې دوې مياشتي روژې نيول د بل چا نه دي ليدلي ، ددې دواړو مياشتو پرله پسې روژې به رسول الله ﷺ نيولې . ابو داؤد ، ترمذي ، نسائي او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۷۵۰، رقم: ۲۳۳۶، والترمذي ۳\ ۱۱۳، رقم: ۷۳۶، والنسائي ۴\ ۱۵۰، رقم: ۲۱۷۴، وابن ماجه ۱\ ۵۲۸، رقم: ۱۶۴۸.

**تشريح** يعني رسول الله ﷺ چي به څرنګه د روژې په پوره مياشت کي روژې نيولې همداسي به يې د شعبان په پوره مياشت کي هم روژې نيولې د دې حديث مفصل وضاحت به انشاء الله په (باب صيام التطوع) کي ذکر سي .

## شکمنه روژه نسته

﴿۱۸۸۰﴾: وَعَنْ عمارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ مَنْ صَامَ الْيَوْمَ الَّذِيْ يشكُ فِيْه فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي وابن ماجة

د حضرت عمار بن ياسر ﷺ څخه روايت دئ چا چي په شک منه ورځ روژه ونيول نو هغه د ابو القاسم ﷺ نافرماني وکړه . ابو داؤد ، ترمذي ، نسائي او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۷۴۹، رقم: ۲۳۳۴، والترمذي ۳\ ۷۰، رقم: ۶۸۶، والنسائي ۴\ ۱۵۳، رقم: ۲۱۸۷، وابن ماجه ۱\ ۵۲۷، رقم: ۱۶۴۵، والدارمي ۲\ ۵، رقم: ۱۶۸۲.

**تشريح**: د شعبان په ديرشمه شپه يعني پر يو کم ديرش تاريخ که د وريځي او ګرد په وجه

میاشت ونه لیده سي خو یو سړي د میاشت لیدو شاهدي ورکړي او د هغه شاهدي قبول نه کړه سو همداسي دوو فاسقانو خلکو د میاشت لیدو ګواهي ورکړه او د هغوی ګواهي قبوله نه کړه سوه د هغه په سهار چي کومه ورځ سي یعني دیرشم تاریخ نو هغه ته به (یوم الشک) ویل کیږي ځکه چي د هغه ورځ په باره کي دا هم احتمال کیدای سي چي روژې شروع سوي وي او دا هم احتمال کیږي چي روژه شروع سوې نه یي نو د دې غیر یقیني صورت په وجه دې ته د شک ورځ ویل کیږي هو که پر نهه ویشت تاریخ وریځ یا ګرد نه وي او څوک میاشت نه ویني نو دیرشم تاریخ ته به (یوم الشک) نه وایو .

په دې حدیث کي د دې ورځي په باره کي فرمایل سوي دي چي په یوم الشک کي د روژې یا د څه واجب نیت سره روژه نیول مکروه ده البته په دې ورځ د نفل روژو نیولو په باره کي څه تفصیل دی که یو سړی د شعبان د اول تاریخ څخه روژه ونیسي یا پر دیرشم تاریخ اتفاقا هغه ورځ سي چي په هغه کي یو سړی د روژې نیولو عادي وي چي د هغه وضاحت مخکي سوی دی نو د هغه لپاره په هغه ورځ روژه نیول به افضل وي .

همداسي په یوم الشک کي روژه نیول د هغه سړي لپاره هم افضل دی چي د شعبان په اخري درو ورځو کي روژه ونیسي او که دا صورت نه وي نو بیا د یوم الشک مسئله داده چي خاص دي په هغه ورځ د نفل په نیت سره روژه ونیسي او عوام دي تر غرمې پوري د خوراک او څښاک بغیر انتظار وکړي او که میاشت څه قابل قبول شهادت رانسي نو د غرمې وروسته دي روژه مات وکړي .

د ابن عمر او نور صحابه کرامو ﷺ دا معمول نقل کیږي چي دې حضراتو به د شعبان پر نهه ویشت تاریخ میاشت پیدا کوله که میاشت به یې ولیده یا د د باور وړ شهادت په ذریعه به د میاشت لیدو ثبوت وسو نو په راتلونکي ورځ به یې روژه نیوله کنې په بل صورت کي وریځ او ږ ګرځ او داسي نورو څخه د مطلع (د سپوږمۍ د راختلو ځای) صاف کیدو په صورت کي به یې روژه نه نیوله هو که مطلع به صاف نه وه نو روژه به یې نیوله او علماء فرمائي چي په دې صورت کي به د هغوی دا روژه نفل وه .

د خواص څخه مراد هغه خلک دي چي د شک په ورځ د روژې نیت کول پیژني او کوم خلک چي د دې ورځي نیت کول نه پیژني هغوی ته عوام ویل کیږي په دې ورځ د روژې نیت دادی چي کوم سړی په هغه ورځ چي په هغه کي د روژې په باره کي شک واقع کیږي د روژې نیولو عادي نه وي هغه دي دا نیت وکړي چي زه نن ورځ د نفل روژې نیت کوم او د هغه په زړه کي دا خیال

پيدا نسي كه نن د روژې ورځ وي نو دا روژه د روژې هم ده همداسي نيت كول مكروه دى كه سبا ته د روژې ورځ وي نو دا روژه به د روژې په مياشت كي حساب وي او كه د روژې ورځ نه وي نو په نفل يا څه بل واجب كي به حساب وي خو كه چا داسي نيت وكى او په هغه ورځ روژه كيدل ثابته سوه نو هغه ورځ به د روژې مياشت كي حسابيږي د دې پر خلاف كه يو سړى په دې نيت سره روژه ونيسي كه نن د روژې ورځ وي نو زما به هم روژه وي او كه د روژې ورځ نه وي تو زما به هم روژه نه وي نو همداسي نه به نفل روژه وي نه به فرضي د روژې روژه وي كه څه هم په هغه ورځ د روژې د مياشتي روژه سي.

## په شاهدي سره د روژې پيل كول

﴿۱۸۸۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چي يو صحرائي رسول الله ﷺ ته راغلی

فَقَالَ إِنِّي رَأَيْتُ الْهِلَالَ يَعْنِي هِلَالَ رَمَضَانَ فَقَالَ أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ

او عرض يې وكړ چي ما مياشت ليدلې ده، (يعني د روژې مياشت)، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه ايا ته د دې خبري شاهدي وركوې چي د الله ﷻ څخه پرته بل د عبادت وړ نسته،

قَالَ أَتَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ قَالَ نَعَمْ قَالَ يَا بِلَالُ أَذِّنْ فِي النَّاسِ أَنْ

هغه وويل هو، بيا رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه ايا ته د دې خبري اقرار كوې چي محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دئ، هغه وويل: هو، د دې وروسته رسول الله ﷺ بلال ته وفرمايل: خلك خبر كړه چي

يَصُومُوا غَدًا. رواه ابو داؤد والترمذي والنسائي وابن ماجة والدارمي.

د سبا څخه روژه ونيسي. ابو داؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه او دارمي.

**تخريج:** سنن ابي داؤد ۲\ ۷۵۴، رقم: ۲۳۴۰. والترمذي ۳\ ۷۴، رقم: ۶۹۱، والنسائي ۴\ ۱۳۱، رقم: ۲۱۱۱، وابن ماجه ۱\ ۵۲۹، رقم: ۱۶۵۲، والدارمي ۲\ ۹، رقم: ۱۶۹۲.

**تشريح:** دا حديث په دې خبري دلالت كوي چي كوم (مستور الحال) وي يعني د هغه فاسق كيدل معلوم نه وي نو د روژې د مياشت په باره كي د هغه شهادت به د باور وړ او د قبليدو قابل وي او بل دا چي د روژې د مياشتي شاهدي په وركولو سره د لفظ شهادت استعمال شرط نه دى.

د دې حديث څخه دا خبره هم معلومه سوه چي د روژې د مياشتي په شهادت کي يوازي د يوه سړي ګواهي قبليداى سي په حنفي مذهب کي صحيح مسئله داده چي د روژې د مياشتي ليدل د يو عادل او مستور الحال سړي د شهادت څخه ثابتيږي او دا چي د روژې د مياشتي په شهادت کي د لفظ شهادت استعمال شرط نه دی خو د يوه سړي ګواهي به په هغه صورت کي د اعتبار وړ وي کله چي لمر خاته وريځ او ګرځ و دوړي وي که د اختر مياشت د شپې وريځ او ګرځ وي نو بيا د دوو خلکو يا يوه سړي او د دوو عادلانو آزادو ښځو شهادت به د اعتبار وړ وي او دا چي په دې وخت کي به د لفظ شهادت استعمال هم شرط وي بيا د موقع لاندي د شهادت صورت هم بدليږي که لمر خاته صاف وي نو د ډېرو کسانو شاهدي به ضروري وي.

﴿۱۸۸۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ تَرَاءَىٰ النَّاسُ الْهِلَالَ فَأَخْبَرْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ رَاَيْتُهُ فَصَامَ وَاَمَرَ النَّاسَ بِصِيَامِهِ. رواه ابوداؤد والدارمي

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي خلک د مياشتي ليدو لپاره يو ځاى سول، ما رسول الله ﷺ خبر کړ چي ما مياشت لېدلې ده نو رسول الله ﷺ روژه ونيول او خلکو ته يې د روژې نيولو حکم ورکړ. ابوداؤد، دارمي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۵۶، رقم: ۲۳۴۲. والدارمي ۲\۹، رقم: ۱۶۹۲.

**د لغاتو حل**: صحيح التراءي هو ان يري القوم بعضهم بعضا. -

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ عادت

﴿۱۸۸۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَحَفَّظُ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په پاملرني سره شميرلې

مِنْ شَعْبَانَ مَا لَا يَتَحَفَّظُ مِنْ غَيْرِهِ ثُمَّ يَصُوْمُ لِرُؤْيَةِ رَمَضَانَ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِ عَدَّ ثَلَاثِيْنَ يَوْمًا ثُمَّ صَامَ. رواه ابوداؤد.

د شعبان ورځي دومره چي د بلي مياشتي شمير به يې دومره پروا نه کول، بيا د رمضان د

میاشتي په لیدو سره به رسول الله ﷺ روژه نیول ، که وریځ به وه او د یوکم دیرشو میاشت به څرګنده نه سوه نو رسول الله ﷺ به پوره دیرش ورځي روژې نیولې . ابوداوٗد .

**تخریج**: سنن ابي داوٗد ۲\ ۷۴۴، رقم: ۲۳۲۵.

**د لغاتو حل**: یتحفظ: یتکلف في عد ایام شعبان لمحافظة صوم رمضان. د شعبان د ورځو په ټېنګه شمېرل.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ معمول وو چي د شعبان میاشت ته به یې خاصه توجه کوله او د هغې ورځي به یې په ډېر احتیاط سره شمېرلې چي د روژې د میاشت په باره کي څه تردد پیدا نسي د شعبان پرته بلي میاشتي ته به یې دومره توجه نه فرمایله ځکه چي په بلي میاشتي سره چي شرعي امر سره سم کوم امر نه وو البته د حج میاشت به داسي وه چي د هغه سره یوه شرعي فریضه سمه وه نو هغه نادر ده چي نه خو د هغه تعلق د هر سړي سره دی او نه هر کال فرض دی .

## د میاشتي په لیدو سره روژه

﴿۱۸۸۴﴾: وَ عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ قَالَ خَرَجْنَا لِلْعُمْرَةِ فَلَمَّا نَزَلْنَا بِبَطْنِ نَخْلَةَ

د ابو البختري رحمه الله څخه روایت دئ چي موږ د عمرې لپاره ولاړو کله چي په نخله کي تم سوو

تَرَاءَيْنَا الْهِلَالَ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ هُوَ ابْنُ

نو خلک د میاشتي لیدو لپاره یو ځای سوي وه ، ځیني خلکو (د میاشتي په لیدو سره) وویل دا د دریمي شپې میاشت ده ، او ځینو وویل

لَيْلَتَيْنِ قَالَ فَلَقِينَا ابْنَ عَبَّاسٍ فَقُلْنَا إِنَّا رَأَيْنَا الْهِلَالَ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ هُوَ

د دویمي شپې ده ، بیا چي موږ د ابن عباس رضي الله عنهما سره یو ځای سوو نو موږ هغه ته وویل چي موږ میاشت ولیدل ځینو ویل چي

ابْنُ ثَلَاثٍ وَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ هُوَ ابْنُ لَيْلَتَيْنِ فَقَالَ أَيَّ لَيْلَةٍ رَأَيْتُمُوهُ فَقُلْنَا

د درو شپو ده او ځینو ویل د دویمي شپې ده ، ابن عباس رضي الله عنهما پوښتنه وکړه: تاسو په کومه شپه میاشت لیدلې ده موږ ورته وویل

لَيْلَةَ كَذَا وَكَذَا فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَدَّهُ لِلرُّؤْيَةِ فَهُوَ

په فلانۍ شپه نو ابن عباس رضي الله عنهما وویل: رسول الله ﷺ د رمضان وخت پر یوه میاشت لیدو

موقوف کړئ دئ

لِلَيْلَةٍ رَأَيْتُمُوهُ ، و في رواية عَنْهُ قَالَ أَهْلَلْنَا رَمَضَانَ وَنَحْنُ بِذَاتِ عِرْقٍ

نو په کومه شپه چي تاسو میاشت لیدلې ده د هغه وخت څخه شمیرل کیږي، په یوه روایت کي د ابو البختري څخه نقل دئ چي موږ په عرق نامي ځای کي میاشت ولیدل

فَأَرْسَلْنَا رَجُلًا إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَسْأَلُهُ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

او یو سړی مو د ابن عباس رضي الله عنهما په خدمت کي د تصدیق لپاره ولیږئ ابن عباس رضي الله عنهما وویل:

رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَمَدَّهُ

رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي الله تعالی د روژې وخت پر میاشت لیدلو موقوف کړئ دئ

لِرُؤْيَتِهِ فَإِنْ أُغْمِيَ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوا الْعِدَّةَ . رواه مسلم .

که پر آسمان وریځ وي نو د ورځو شمیر پوره کړئ . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲\۷۶۵، رقم: ۲۹- ۱۰۸۸.

**تشريح**: مطلب دا چي د روژې دار و مدار د میاشتي پر لیدو باندي دی د میاشتي د لوی کیدو اعتبار نسته بلکه نقل دي چي د سپوږمی په شپه کي د میاشت لوی کیدل د قیامت د نژدې کېدو علامات دي دلته چي کوم روایتونه نقل کړه سوي دي هغه که څه هم په ظاهره مخالف معلومیږي خو په حقیقت کي د دې احتمال لاندي په هغه کي څه اختلاف نسته چي د دې خلکو په ذات عرق کي په جمع کیدو سره میاشت لیدلې وه بیا په هغوی کي د اختلاف پیدا کیدو په صورت کي یو سړی د ابن عباس رضي الله عنهما په خدمت کي واستول سو هغه هغه وخت د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کړ بیا چي دا ټول خلک بطن نخلة ته ورسیده نو په دې باره کي د ابن عباس رضي الله عنهما څخه بالمشافه پوښتنه وسوه نو هغه د رسول الله ﷺ د ارشاد په رڼا کي دا پورته جواب ورکړ د میاشت لیدو په باره کي څه مسئلې په ذهنو کي وساتئ:

که د شعبان په دیرشم تاریخ د ورځي د زوال مخکي یا د زوال وروسته میاشت ولیده سي نو هغه به د راتلونکي شپې میاشت وګڼل سي نو په هغه ورځ نه خو د روژې د شروع حکم ورکول کیږي او نه به د هغي ورځي د روژو نیولو لپاره ویل کیږي همدا سي که د روژې په دیرشم

تاريخ مياشت وليده سي نو نه به په هغه ورځ روژه ماتول کيږي او نه به هغه ورځ د اختر ورځ ګرځول کيږي د شعبان ديرشمه شپه يعني پر نهه ويشتم تاريخ مياشت پيداکول واجب على الکفايه دي که په يوځای کي د مياشتي ليدل ثابت سي نو د ټولو ځايونو پر خلکو به د راتلونکي ورځ روژه نيول واجب وي په دې اړه به دا اختلاف د مطالع اعتبار څخه وي مثلاً که په دهلي کي د جمعې په شپه مياشت وليدل سي او په نورو ښارونو کي د هفتې په شپه مياشت وليده سي نو د هفتې په شپه کي د مياشت ليدو اعتبار به نه وي بلکه په ټولو ښارونو کي ليدل به معتبر وي او په ټولو ځايونو کي د جمعې د ورځي روژه نيول به لازم وي د امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه ظاهري روايت دادی او د حنفيه جمهور علماء پر دې باور او اعتمادی دی چي د امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه په مذهب کي د اختلاف مطالع اعتبار دی د دې حضراتو په نزد د يوه ښار والا مياشت ليدل د نورو ښارو والا لپاره کافي نه دی.

کوم سړي چي د روژې مياشت ليدلې وي او د هغه شهادت او خبر په څه وجه قابل قبول نه وي نو خپله هغه ته د خپل روايت سره سم روژه نيول پکار ده که هغه خپله هم روژه ونيسي نو پر هغه باندي قضاء لازميږي.

==========

# بَابُ في مسائل متفرقة من كتاب الصوم

## د روژې د متفرقو مسئلو بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د پيشلمي برکت

﴿۱۸۸۵﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسَحَّرُوا فَإِنَّ فِي السَّحُورِ بَرَكَةً . متفق عليه

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پيشلمی کوئ ځکه چي په پيشلمي کي برکت وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۱۳۹، رقم: ۱۹۲۳، ومسلم ۱۲\۷۷۰، رقم: ۴۵- ۱۰۹۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي د روژې نيولو لپاره د پيشلمي پر وخت څه نا څه خوړل پکار دي او

په یوه روایت کي نقل دي چي پیښلمی خوری که څه هم هغه د یوه سک اوبو په شکل کي وي دا حکم د وجوب په توګه نه دی بلکه د استحباب په توګه دی.

(سحر) د شپې اخري حصې ته وائي سحور د سین په زور سره اسم دی یعني سحور د سهار ډودۍ ته وائي او د سین په پیښ سره مصدر دی چي د هغه معنی ده د سهار د وخت ډوډۍ دلته په دې روایت کي دا لفظ سحور اسم نقل کړه سوی دی د محدیثینو په نزد په محفوظ روایت کي دا لفظ داسي دی البته ځیني حضرات وائي چي بهتر او مناسب مصدر دی ځکه چي د حدیث د مفهوم لاندي د برکت تعلق د فعل یعني د سهار د وخت د ډوډۍ سره دی نه چي د دې تعلق د اسم سره یعني د طعام سره دی.

د برکت څخه مراد دادی چي پیښلمی خوړل په اصل کي په سنت نبوي باندي عمل کول دي ځکه د دې په وجه نه یوازي دا چي لوی ثواب حاصلیږي بلکه د روژې نیولو قوت هم راځي.

## د مسلمانانو د روژو فرق

﴿۱۸۸۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصْلُ مَا بَيْنَ صِيَامِنَا وَصِيَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ أَكْلَةُ السَّحَرِ. رواه مسلم

د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زموږ او د اهل کتاب په روژو کي د پیشلمي کولو فرق دئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۷۷۰، رقم: ۴۶-۱۰۹۶.

**تشریح**: د اهل کتاب په نزد په شپې کي د بیده کیدو وروسته خوراک حرام وو همداسي د مسلمانانو په نزد هم د اسلام په شروع کي دا حکم وو خو وروسته مباح سو نود پیشلمی په کولو سره د اهل کتاب مخالفت لازمیږي چي د دې عظیم نعمت د شکر ګزاري یوه ذریعه ده.

## په روژې ماتولو کي تلوار

﴿۱۸۸۷﴾: وَعَنْ سَهْلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا عَجَّلُوا الْفِطْرَ. متفق علیه

د حضرت سهل رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تر څو چي خلک په روژه ماتي کي تلوار کوي (یعني د لمر لویدو سره سمدستي روژه ماتوي) نو هغوی به په خیر کي وي.

بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۹۸، رقم: ۱۹۵۷، ومسلم ۲\۷۷۱، رقم: ۴۸- ۱۰۹۸.

**تشريح**: په روژه مات کي د تلوار مطلب دادی چي د لمر ډوبيدو وروسته دې په روژه مات کي زنډ نه کول کيږي په بناړونو کي د لمر ډوبيدو علامت دادی چي د مشرق خوا ته توروالی پورته سي يعني د کوم ځای څخه چي صبح صادق شروع کيږي تر هغه پوري ورسيږي د آسمان په مينځ کي د تورو الي رسيدل شرط نه دي.

د لمر ډوبيدو وروسته په روژه مات کي په چابکتيا کولو سره د اهل کتابو مخالفت هم کيږي ځکه چي هغوی په روژه مات کي تر هغه وخته پوري زنډ کوي تر څو پوري چي ستوري په اسمان کي په ښه ډول نه راووځي په مسلمانانو کي اهل بدعت يعني د روافض په نزد هم په دې عمل دی نو د هغوی مخالفت هم کيږي د صحيح حديثو پر موجب د ماښام د لمانځه کولو مخکي روژه مات کول سنت دی.

## د روژې ماتولو وخت

﴿۱۸۸۸﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَقْبَلَ

د حضرت عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي راسي

اللَّيْلُ مِنْ هَا هُنَا وَأَدْبَرَ النَّهَارُ مِنْ هَا هُنَا وَغَرَبَتِ الشَّمْسُ فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ. متفق عليه

شپه ددې لوري څخه (يعني په ختيځ کي تورو الی سي) او ورځ دې لوري ته (لوېديځ ته) ولاړه سي او لمر ولوېږي نو روژه نيونکی دي روژه ماته کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۹۶، رقم: ۱۹۵۴، ومسلم ۲\۷۷۲، رقم: ۵۱- ۱۱۰۰.

**تشريح**: (و غربت الشمس) او لمر ډوب سي په اصل کي د خپل ماقبل جملو د تاکيد په توګه استعمال سو د حديث د اخري جملې مطلب دادی چي کله د روژه مات وخت سو نو ګويا روژه دار ته روژه ماتول پکار ده څه هغه خوړلي او څښلي نه وي ځينو حضراتو ويلي دي چي د دې جملې معنی داده چي روژه دار که د روژه مات په وخت کي داخل سو دا هم ممکنه ده چي د دې جملې معنی مراد داوي چي کله مذکوره وخت راسي نو روژه مات کول پکار دی.

## صوم وصال

﴿۱۸۸۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ

د حضرت ابوهريرة ﷺ ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ منع فرمايلې ده د

الْوِصَالِ فِي الصَّوْمِ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ إِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَال وأيكم مثلي إِنِّيْ أَبِيْت يطعمني رَبِّيْ وَيسقيني . متفق عليه .

روژو پرله پسې نيولو ځخه (يعني داسي روژې چي روژه ماتی پکښې نه وي) يو سړي د منع كيدو د حكم په اوريدو سره وويل اې دالله رسوله ! تاسو خو پرله پسې روژې نيسيئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل په تاسو كي څوک زما په ډول نه سي كيدلای ، زه شپه داسي تيروم چي زما رب په ما خوري او چښي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۰۵، رقم: ۱۹۶۵، ومسلم ۲\ ۷۷۴، رقم: ۵۷- ۱۱۰۳.

**تشريح**: روژه پر روژه : د دې مطلب دادی چي دوې يا تر دوو زياتي روژې پرله پسې داسي ونيول سي چي په مينځ كي روژه مات نه وي روژه پر روژه د نيولو ځخه ځکه منع سوې ده چي دا د ضعف سبب كيږي چي د هغه په وجه په نورو عباداتو او اطاعاتو كي تاوان واقع كيږي په دې مسئله كي د علماء په نزد اختلاف دی چي ايا د رسول الله ﷺ پرته د نورو خلكو لپاره روژه پر روژه نيول جائز دي يا حرام دي كه مكروه دي ځيني حضرات خو د هغه سړي لپاره د جواز قائل دي چي پر دې قادره وي دا حضرات وائي چي په دې صورت كي په حديث كي ذكر سوی ممانعت يوازي د رحمت او شفقت په توګه دی د هغوی دليل د بي بي عائشې رضي الله عنها دا روايت دی رسول الله ﷺ خلک د وصال روژو يعني روژه پر روژې نيولو ځخه پر هغوی د رحمت او شفقت له كبله منع فرمايلې ده او ځيني صحابه مثلا عبدالله بن زبير ﷺ او ځيني تابعين مثلا عبدالله بن ابي معمر عامر بن عبدالله بن زبير ﷺ او د ابراهيم تيمي په باره كي نقل دي چي دې حضراتو به روژه پر روژه نيوله اكثر علماء وائي چي دا جائز نه دی امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه امام مالک رحمة الله عليه او امام شافعي رحمة الله عليه دې ته مكروه ويلي دي كه څه هم په دې خبري كي اختلاف دی چي ايا دا مكروه تحريمي دی كه مكروه تنزيهي زيات صحيح قول دادی چي مكروه تحريمي دی د جمهور علماء وينا داده چي روژه پر روژه نيول د رسول الله ﷺ د

خصائصو څخه وه او د حديث د ظاهري مفهوم څخه هم دا ثابتيږي په دې وجه اهل سلوک چي د رياضت مجاهدي او نفس كشي زيات شوق لري په يو غرپ اوبو سره يې هره ورځ روژه ماتوله چي روژه پر روژه د نيولو اطلاق ونسي.

(يطعمني ربي ويسقيني) د مراد په باره كي څو مختار قولونه دي او زيات صحيح قول دادی چي د دې څخه ظاهري خوراک څښاک مراد نه دی رسول الله ﷺ د غذائي جسماني څخه قطعا مستغني وو او كله چي په دنيوي توګه سره په مجازي محبت او خوښۍ كي ددې تجربه ده نو د حقيقي محبت او معنوي محبت به يې څه وايي، چي ددې په وجه د علائق دنيا څخه څومره استغناء (لاپرواهي) وي هغومره كمه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د روژې نيت

﴿۱۸۹۰﴾: عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ

د حضرت حفصې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

يُجْمِعْ الصِّيَامَ قَبْلَ الْفَجْرِ فَلَا صِيَامَ لَهُ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي والدارمي و قال ابوداؤد و وقفه على حفصة معمر والزبيدي وابن عيينة و يونس الايلي كلهم عن الزهري.

تر سهار مخكي نيت ونه كړي نو د هغه روژه نه كيږي .، ترمذي ، ابوداؤد، نسائي او دارمي . او ابوداؤد ويلي دي چي حديث معمر ، زبيدي ، ابن عيينه او يونس ايلي په بي بي حفصې پوري موقف بيان كړئ دي او ددې ټولو روايت د زهري څخه دئ.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۸۲۳، رقم: ۲۴۵۴، والترمذي ۳\ ۱۰۸، رقم: ۷۳۰، والنسائي ۴\۱۹۶- ۱۹۷، رقم: ۲۳۳۲، والدارمي ۲\ ۱۲، رقم: ۱۶۹۸.

**تشريح**: د دې حديث څخه په ظاهره خو دا معلوميږي كه د روژې نيت د شپې ونه كړه سي نو روژه نه صحيح كيږي كه څه هم روژه فرض وي كه واجب وي يا نفل په دې باره كي د علماء اختلافي قولونه دي د امام مالک رحمة الله عليه خو مذهب دادی چي په روژه كي نيت د شپې

كول شرط دى كه څه هم روژه د كوم نوعيت وي د امام شافعي رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه هم دا قول دى مگر په معامله كي د دې دواړو په نزد دومره فرق دى كه روژه نفل وي نو د امام احمد رحمة الله عليه په نزد د زوال مخكي هم نيت كيداى سي او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د لمر د وبيدو مخكي پوري هم نيت كول جائز دى د حنفيه مذهب دادى چي روژه نفل او د نذر معين په روژه كي د نيمي ورځي شرعي يعني د لمر د زوال مخكي نيت كول جائز دى مگر قضاء كفاره او په نذر مطلق كي د حنفيه په نزد هم د شپې نيت كول شرط دى د دې ټولو حضراتو دليلونه د فقهي په كتابونو كي ذكر دي .

## د پيشلمي وخت

﴿۱۸۹۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا سَمِعَ أَحَدُكُمُ النِّدَاءَ وَالْإِنَاءُ فِي يَدِهِ فَلَا يَضَعُهُ حَتَّى يَقْضِيَ حَاجَتَهُ مِنْهُ . رواه ابوداؤد

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي په تاسو كي يو څوک د سهار آذان واوري او دهغه په لاس كي د اوبو لوښى وي نو لوښى دي تر هغو نه ايږدي تر څو چي خپل ضرورت پوره نه كړي . (يعني كه اوبه چښي نو وه دي يې چښي) ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۶۱، رقم: ۲۳۵۰.

**تشريح**: مطلب دادى كه د سهار په وخت كي څوک خوړل څښل غواړي خو د سهار اذان شروع سوى وي نو هغه يوازي د اذان اواز په اوريدو سره خپل خوراک څښاک دي نه پريږدي مگر دا خبره دي په خيال كي ساتي چي دا حكم د هغه صورت لپاره دى كله چي دا يقين يا غالب گمان وي چي سهار سوى نه دى او د سهار وخت پاته دى او كه د دې خبري يقين يا غالب گمان وي چي سهار سوى دى او د سهار وخت پاته نه دى پاته سوى نو بيا خوراک څښاک پريښول پكار دى ابن مالک رحمة الله عليه فرمائي كه د سهار راختلو علم نه وي نو خوراک او څښاک موقوف كول نه دى پكار او كه دا معلومه سي چي سهار سوى دى يا د سهار ختو شک هم وي نو خوراک څښاک دي پريږدي .

ځيني حضرات فرمائي چي په حديث كي ذكر سوي اذان څخه مراد د ماښام اذان دى د هغه مطلب دادى كه څه هم اذان په اوريدو سره خوراک څښاک پريښودل مسنون دي خو د روژه مات پر وخت كه يو سړى د ماښام اذان واوري او هغه څه وڅيښي نو په هغه صورت كي ځيښل دي نه

پرېږدي بلکه اول دي وځيبني بيا دي د لمانځه لپاره ولاړ سي.

## د روژه ماتي تېنګار

﴿۱۸۹۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ أَحَبُّ عِبَادِي إِلَيَّ أَعْجَلُهُمْ فِطْرًا. رواه الترمذي

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى فرمايي: زما په بندګانو کي تر ټولو زيات خوښ بنده هغه دئ چي په روژې ماتولو کي تلوار وکړي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۸۳، رقم: ۷۰۰-۷۰۱.

**تشريح**: ژر روژه ماتونکی د الله تعالى په نظر کي تر ټولو زيات د محبوب کيدو فضيلت ځکه ورته حاصل کيږي چي هغه د خپل دغه عمل په ذريعه نه يوازي دا چي د سنت اتباع کوي بلکه د اهل کتاب او روافض مخالفت هم کوي.

## په خرما يا اوبو روژه ماتول

﴿۱۸۹۳﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت سلمان بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

فَطَرَ اَحَدُكُمْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى تَمْرٍ فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى مَاءٍ فَإِنَّهُ طَهُورٌ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد وابن ماجة والدارمي و لم يذكر فانه بركة غير الترمذي.

په تاسو کي چي څوک روژه ماتول غواړي نو هغه ته پکار دي چي په خرما سره روژه ماته کړي ځکه چي خرما د برکت سبب ده، که خرما نه وي نو په اوبو سره دي يې ماته کړي ځکه چي اوبه پاکونکي دي. احمد، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\ ۱۷-۱۸، ۲۱۴، وابوداؤد ۲\ ۷۶۴، رقم: ۲۳۵۵، والترمذي ۴\ ۴۶۰ ۴۷، رقم: ۶۵۸، وابن ماجه ۱\ ۵۴۲، رقم: ۱۶۹۹، والدارمي ۲\ ۱۳، رقم: ۱۷۰۱.

**تشريح**: په خرما او اوبو سره د روژې ماتولو حکم د استحباب په توګه دی او په خرما سره روژه په ماتولو کي په ظاهره حکمت دا معلوميږي چي کله معده خالي سي او د خوراک خواهش

په پوره توګه سره وي نو په دې صورت کي چي کوم شی خوړل کیږي معده هغه په ښه ډول قبلوي او هضموي يې په داسي حالت کي چي خوړوالی معدې ته ورسیږي نو بدن ته ډیره زیاته فائده رسوي د خوږوالي خصوصیت دا وي چي د دې په وجه په جسماني قوت کي ژر اثر کوي خصوصا قوت باصره ته په خوږوالي سره ډیره زیاته فائده رسیږي په عربو کي خوږوالی اکثر خرما ده او د اهل عرب مزاج په دې سره ډیر زیات بلد دی ځکه په خرما سره د روژه مات لپاره وفرمایل سو د خرما د نه موجودیت په صورت کي په اوبو سره روژه ماتول فرمایل سوي دي ځکه چي دا ظاهره او باطني طهارت او پاکیزګي لپاره نیک فال دی .

**د رسول الله ﷺ روژه ماتی**

﴿۱۸۹۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْطِرُ قَبْلَ أَنْ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به روژه ماتول مخکي

يُصَلِّيَ عَلَى رُطَبَاتٍ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ رُطَبَاتٌ فَتُمَيْرَاتٌ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تُمَيْرَاتٌ حَسَا

تر لمانځه په تازه خرما سره روژه ماتول، که تازه خرما به نه وه نو په وچو خرماوو سره به یې ماتول او که وچي خرماوي به هم نه وې

حَسَوَاتٍ مِنْ مَاءٍ . رواه الترمذي و ابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب

نو په څو غړپه اوبو . سره به یې روژه ماتول . ترمذي، او ابوداؤد، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ .

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\ ۷۶۴- ۷۶۵، رقم: ۲۳۵۶، والترمذي ۳\ ۷۹، رقم: ۶۹۶ .

**تشریح**: په يوه روايت کي د ابويعلی څخه نقل دي چي رسول الله ﷺ به په درو خرماوو سره يا په بل داسي شي سره چي د اور پخ سوی به نه وو روژه ماتول خوښول . ځينو خلکو چي دا ويلي دي چي په مکه مکرمه کي د مقيم خلکو لپاره دا مسنون دي چي هغوی د خرما مخکي آب زمزم په څښلو سره روژه ماته کړي يا دواړه په يوځای کولو سره روژه ماته کړي نو دا بالکل غلطه بلکه د اتباع سنت نبوي هم خلاف ده ځکه چي رسول الله ﷺ د مکې د فتحې په کال په مکه مکرمه کي تر ډيرو ورځو پوري مقيم وو خو داسي څه عمل ځيني نقل نه دی .

## خلكو ته روژه ماتی ورکول

﴿۱۸۹۵﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ فَطَرَ صَائِمًا أَوْ جَهَّزَ غَازِيًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ" . رواه البيهقي في شعب الإيمان ومحيي السنة في شرح السنة وقال صحيح

د حضرت زيد بن خالد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د روژه دار د روژه ماتي بندوبست وکړي يا د يو غازي سامان پوره کړي نو هغه ته به د هغه برابر ثواب ورکول کيږي . بيهقي ،. او صاحب شرح السنة ويلي دي دا حديث صحيح دئ .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳\۴۱۸، رقم: ۳۹۵۳ ، والبغوي في شرح السنة ۳\۷۹، رقم: ۶۹۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي روژه دار ته د هغه د روژې په وجه او غازي ته د هغه د جهاد په وجه چي کوم ثواب حاصليږي همداسې ثواب روژاتي د خوراک پر خوراک ورکولو او مجاهد ته د جهاد پر سامان ورکولو باندي هم حاصليږي هغه د خپل دې عمل په ذريعه په يوه نيک کار کي مرستيال کيږي .

## د رسول الله ﷺ قول

﴿۱۸۹۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ ذَهَبَ الظَّمَأُ وَابْتَلَّتِ الْعُرُوقُ وَثَبَتَ الْأَجْرُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به روژه ماتول نو فرمايل به يې : تنده ولاړه ، رګونه تازه سول او ثواب ثابت سو که الله وغواړي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۶۵، رقم: ۲۳۵۷.

**تشريح**: په دې ارشاد کي د امت لپاره د عبادت ترغيب دی چي په عبادت کي مشقت خو ډير لږ وي ځکه چي هغه ختم سي خو اجر او ثواب زيات وي ځکه چي هغه پاته او ثابت پاته کيدونکی دی .

## د روژه ماتي دعاء

﴿۱۸۹۷﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ زُهْرَةَ قَالَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَعَلَى رِزْقِكَ أَفْطَرْتُ. رواه ابوداؤد مرسلا.

د حضرت معاذ بن زهرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به کله روژه ماتول نو فرمایل به يې: (اللهم لک ....) اې الله! ما ستا لپاره روژه ونیول او ستا په رزق مي ماته کړه. ابوداؤد مرسلا

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\ ۷۶۵، رقم: ۲۳۵۸.

**تشریح**: ابن مالک رحمة الله علیه فرمائي رسول الله ﷺ به دا دعا د روژه مات وروسته کوله په دې دعا کي د (ولک صمت) وروسته دا الفاظ (وبک آمنت وعلیک توکلت) په عامه توګه سره ویل کیږي دا الفاظ که څه هم د حدیث څخه ثابت نه دي خو د معنی د لحاظ څخه صحیح دي ابن ماجه روایت کړی دی چي روژه دار د روژه مات پر وخت چي کومه دعا غواړي هغه نه رد کیږي بلکه هغه قبلیږي د روژه مات پر وخت د رسول الله ﷺ څخه دا ویل هم نقل دي:

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَعَانَنِيْ فَصُمْتُ وَرَزَقَنِيْ فَاَفْطَرْتُ

ژباړه: ټول تعریفونه الله تعالی لره دي چي هغه زما مرسته وکړه چي ما روژه ونیوله او ماته يې رزق راکړی چي ما روژه ماته کړه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### په روژه ماتي کي تلوار

﴿۱۸۹۸﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَا يَزَالُ الدِّيْنُ ظَاهِرًا مَا عَجَّلَ النَّاسُ الْفِطْرَ لِأَنَّ الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰی يُؤَخِّرُوْنَ. رواه ابوداؤد وابن ماجة

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دین به همیشه غالب وي تر څو پوري چي خلک په روژه ماتي کي تلوار کوي ځکه چي یهود او نصارا په روژه ماتولو کي زنډ کوي. ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\ ۷۶۳، رقم: ۲۳۵۳، وابن ماجه ۱\ ۵۴۲، رقم: ۱۶۹۸.

**تشریح**: څرنګه چي مخکي هم ښودل سوي دي چي یهودو او نصاراوو په روژه مات کي ځنډ

كوى چي ستوري په پوره توګه سره راووځي او په دې زمانه كي روافض جمع د رافض يا رافضي رافضيان هم د هغوى پيروي كوي نو وخت پر كيدو باندي د چابكتيا په كولو كي د اهل باطل مخالفت كيږي چي د هغه سره د دين غلبه او د دين شان ظاهريږي دا حديث پر دې خبري دلالت كوي چي د دين د دشمنانو مخالفت په حقيقت كي د دين په مضبوطي او د غلبې باعث دي او د هغوى موافقت د دين د ثاوان ذريعه ده لكه چي د الله تعالى قول دى :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ

ژباړه : اې مومنانو ! يهود او نصارى دوستان مه جوړوى په هغوى كي ځيني د ځيني خلكو دوستان دي دلته په تاسو كي چي كوم سړى د هغوى سره انډيوالي كوي هغه به د هغوى څخه وي يعني د قيامت په ورځ به د هغوى سره يوځاي كيږي .

﴿۱۸۹۹﴾ : وَعَنْ أَبِي عَطِيَّةَ قَالَ دَخَلْتُ أَنَا وَمَسْرُوقٌ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْنَا يَا أُمَّ

د حضرت بي بي عطية (رض) څخه روايت دئ چي زه او مسروق د بي بي عائشې په خدمت كي حاضر سو او هغې ته مو وويل : اې

الْمُؤْمِنِينَ رَجُلَانِ مِنْ أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَدُهُمَا يُعَجِّلُ

د مؤمنانو مور ! د رسول الله ﷺ په صحابه كرامو كي دوه كسان دي چي يو خو تلوار كوي

الْإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلَاةَ وَالْآخَرُ يُؤَخِّرُ الْإِفْطَارَ وَيُؤَخِّرُ الصَّلَاةَ قَالَتْ أَيُّهُمَا

په روژه ماتي كي او تلوار كوي په لمانځه كي او دوهم په روژه ماتي او لمونځ كي ځنډ كوي ، بي بي عائشې رضي الله عنها پوښتنه وكړه څوك

الَّذِي يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلَاةَ قَالَ قُلْنَا عَبْدُ اللّٰهِ يَعْنِي ابْنَ مَسْعُودٍ

په روژه ماتي او لمونځ كولو كي تلوار كوي ؟ موږ عرض وكړ : عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ،

قَالَتْ هٰكَذَا صَنَعَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَالْآخَرُ أَبُو مُوسَىٰ . رواه مسلم .

بي بي عائشې وفرمايل : رسول الله ﷺ همداسي كول ، د راوي بيان دئ چي دوهم سړي چي په

روژه ماتي او لمونځ کولو کي به يې ځنډ کوئ هغه ابو موسی دئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۷۷۱، ۷۷۲، رقم: ۴۹- ۱۰۹۹.

**تشريح**: عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه د ډير لوړي درجې عالم او فقيه وو ځکه هغه د سنت سره سم عمل وکړی ابو موسی رضي الله عنه هم جليل القدر صحابي وو د هغه عمل د بيان جواز د خاطره وو يا هغه ته به څه عذر پيښ وو دا هم احتمال دی چي هغه به کله کله داسي د څه مصلحت او مجبوري د خاطره کول.

## د پيشلمي برکت

﴿۱۹۰۰﴾: وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ قَالَ دَعَانِي رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِلَى السَّحُورِ فِي رَمَضَانَ فَقَالَ هَلُمَّ إِلَى الْغَدَاءِ الْمُبَارَكِ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت عرباض بن سارية رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو وار په روژه کي رسول الله ﷺ زه د پيشلمي خوړلو لپاره وغوښتلم او وه يې فرمايل د برکت خوړلو په لور راځه. ابو داؤد، نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۷۵۷ – ۷۵۸، رقم: ۲۳۴۴، والنسائي ۴\۱۴۵، رقم: ۲۱۶۲.

## غوره پيشلمی کول

﴿۱۹۰۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ سَحُورُ الْمُؤْمِنِ التَّمْرُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مؤمن غوره پيشلمی خرما خوړل دي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۷۵۸، رقم: ۲۳۴۵.

==========

# بَابُ تَنْزِيْهِ الصَّوْمِ

## د روژې پاکولو بیان

په دې باب کې دا بیانیږي چې په کومو شیانو سره روژه نه صحیح کیږي او په کومو شیانو سره د روژې ثواب باطل کیږي او هغه کوم شیان دي چې په هغه سره د روژې په ثواب کې کمي کیږي نو د هغه ټولو شیانو څخه پرهیز ضروري دی چې په هغه سره پر روژې باندې په څه نا څه حیثیت سره اثر اچوي.

که څه هم د روژې مفسدات او داسې نور په راتلونکو صفحو کې د ذکر سوو حدیثو په ضمن کې په متفرقه توګه سره راځي لیکن مناسبه معلومه سول چې په دې وخت کې داسې ټولې مسئلې پر یوه ځای د فقهي د معتبر کتابونو په رڼا کې په تفصیل سره بیان کړه سي چې ګرانو لوستونکو ته فائده او اساني وي ځکه د امداد الفتاح شرح نور الایضاح څخه اخیستل سوي مسائل دلته نقل کیږي دا کتاب په عربو کې هم معتبر او مروج دی په دې کتاب کې دا مسائل په ډېر ترتیب سره ذکر دي ځیني مسائل د در مختار څخه هم اخذ کړه سوي دي.

### هغه شیان چې روژه نه په ماتیږي:

کوم سړي ته چې د روژې خیال نه وي او د هغه په وجه څه وخوري یا څه وڅیښي یا جماع وکي نو روژه نه فاسدیږي که څه هم روژه فرض وي یا نفل.

یوه سړي په هیره جماع شروع کړه بیا سمدستي ورته یاد سو که هغه یاد په راتلو سره سمدستي خپل مخصوص اندامونه د شرمګاه څخه دباندي راوباسی نو روژه نه ماتیږي او که نه یې وباسی نو روژه به یې ماته سي په دې صورت کې به د هغه د روژې قضاء لازمیږي کفاره ضروري نه ده کله چې خپل بدن ته حرکت ورنه کړي یعني د یاد راتلو وروسته زور و نه کړه چې په هغه سره انزال وسي ځکه که زور وکړي نو کفاره لازمیږي لکه یو سړي یاد په راتلو باندې دباندې په راکښلو سره بیا داخل کی نو پر هغه کفاره لازمیږي او که یو سړی سهار د راختو مخکې قصدا په جماع کې مصروفه سو او په دې دوران کې سهار راوختی نو هغه ته سمدستي جلا کیدل ضروري دی که سمدستي جلا نه سو بلکه بدن ته یې حرکت هم ورکړ نو په دې صورت کې کفاره لازمیږي هو که بدن ته حرکت ورنه کړي او جلا هم نه وي نو یوازې روژه فاسده کیږي که یو سړی د سهار راختو د بیري څخه د جماع څخه جلا سي او بیا د سهار راختو وروسته د

جماع څخه د جلا کیدو په صورت کي انزال وسي نو د هغه پر روژه اثر نه پریوځي.

که یو سړی په هیره کي څه وخوري او وڅیښي نو نورو خلکو ته هغه ته وریادول پکار دي ځکه چي په داسي حالت کي هغه ته نه وریادول مکروه دي په شرط د دې چي په هغه سړي کي د روژې نیولو قوت وي او هغه بغیر د څه مشقت او تکلیف تر شپې پوري د روژې نیولو پوره طاقت لري که یو سړی یې هغه ته وریاد کړي او بیا هم هغه ته یاد نسي او هغه وخوري او وڅیښي نو په دې صورت کي پر هغه قضاء لازمیږي که په هغه سړي کي د روژې نیولو قوت هم نه وي نو هغه ته نه یادول اولی دي.

د ښځي شرمګاه ته په کتلو سره د انزال کیدو په صورت کي روژه نه ماتیږي په دې باره کي د علماء اختلافي اقوال دي چي د حیوان سره بدفعلي په کولو سره د انزال کیدو په صورت کي روژه ماتیږي که نه د ځیني حضراتو په نزد خو روژه ماتیږي او ځیني حضرات وائي چي روژه نه ماتیږي هو که انزال نه وي نو په متفقه توګه سره مسئله داده چي یوازي د بدفعلي په وجه روژه نه ماتیږي.

د موټ په ذریعه د انزال کیدو په صورت کي روژه ماتیږي او قضاء لازمیږي کفاره نه لازمیږي په دې باره کي په دې خبره پوهیدل ضروري دي چي دا قبیح فعل په غیر د روژې میاشت کي هم حلال نه دی کله چي په دې سره قضاء شهوت مقصود وي هو که تسکین شهوت مقصود وي نو بیا امید دی چي په دې صورت کي به پر هغه څه نه وي یعني که یو سړی یوازي د لذت حاصلولو لپاره په دې فعل کي اخته وي نو د هغه لپاره قطعا حلال نه دی او که د بې قراري دا حالت وي چي د دې فعل په ذریعه د مني نه راوتلو په صورت کي په زنا کي د اخته کیدو بیره وي او هغه کار وکړي نو بیا امید دی چي هغه ګناه کار نه وي مګر پر دې باندي همیشه توب په هر صورت کي د ګناه باعث کیږي.

د یوې ښځي په تصور کولو سره انزال وسي نو روژه نه ماتیږي همداسي د دوو ښځو په خپلو کي دا بدفعل کول یعني یوه ښځه په خپل شرمګاه سره اوږد او کلک غوندي لرګی یا ډبره وموږي او د بلي ښځي سره لکه د خلکو جماع کوي په دې سره روژه نه ماتیږي په شرط د دې چي انزال ونسي او که انزال وسي نو روژه ماتیږي او قضاء لازمیږي په تیل لګولو سره روژه نه ماتیږي ځکه چي د مسامات په ذریعه د څه شي په بدن کي داخلیدل د روژې خلاف نه وي داسي دی لکه چي یو سړی ولمبیږي د هغه ځیګر یخ سي همداسي رانجه په لګولو سره هم روژه نه ماتیږي که څه هم د هغه خوند په حلق کي محسوس سي یا د هغه ګړنګ یا ناړو کي ظاهر سي

ځکه چي د سترګو او دماغ په مينځ کي څه لار نسته ځکه د سترګو څخه اوښکي هم په څڅيدو سره وځي ځرنګه چي د يو شي اوبه ايستل کيږي، او دا ښودل سوي دي چي کوم شی د مسامات په ذريعه په بدن کي داخليږي هغه د روژې خلاف نه دی بيا دا چي د رانجو په باره کي د بي بي عائشې رضي الله عنها دا روايت نقل دی چي رسول الله ﷺ د روژې په حالت کي رانجه لګول همداسي که په سترګو کي دوائي يا شېدې واچول سي او د هغه خوند يا د هغه تريخوالی په حلق کي محسوس سي نو روژه نه ماتيږي.

که د يوه سړي څخه پنبه تېر سي په داسي حال کي چي په يوه تار يې تړلي وي او نس ته داخل سي او بېرته يې د تار په ذريعه راوکاږي نو په دې صورت کي روژه نه ماتيږي او که چيري تناو پرې سي او پنبه و نس ته داخله سي نو بيا روژه ماتيږي او که څوک په خپل حلق کي لرګی يا داسي بل شی داخل کړي او د دوهم سر د هغه په لاس کي وي نو روژه نه ماتيږي همداسي که يو سړی خپله ګوته په شرمګاه کي داخله کړي يا ښځه خپله ګوته په شرمګاه کي داخله کړي نو روژه نه فاسده کيږي هو که ګوته په اوبو يا تيلو سره لنده وي نو ماتيږي، په غيبت سره روژه نه فاسديږي البته د روژې ثواب ځي يوازي د روژه مات نيت په کولو سره کله چي څه ونه خوري او نه وڅيښي پر روژه څه اثر نه پريوځي.

د يوه سړي په حلق کي بې قصده او اختياره دود ولاړ سي نو روژه نه فاسده کيږي ځکه چي د دې څخه ځان ساتل قطعا ناممکن دی که يو سړی د احتياط لاندي پر داسي وخت باندي خپله خوله بنده هم کړي نو دود د پزي په ذريعه داخليږي نو دا د لوندوالي د ډول څخه دی چي د خولې پرېوللو وروسته په خوله کي پاته کيږي او په هغه سره پر روژه اثر نه لويږي هو که قصدا يو سړی په خپل حلق کي دود داخل کړي او داخلېدل په کوم صورت سره وي نو د هغه روژه ماتيږي که څه هم لوګی د عنبر وي يا د اګربتی يا د دې پرته د څه بل شي وي که يو سړی د عطرو څخه شی په سوځولو سره د هغه لوګی ځان ته اخلي او هغه بويوي باوجود دې چي هغه ته دا يادوي چي زه روژه داريم نو د هغه روژه به فاسده سي ځکه چي د هغه لپاره د هغه څخه ځان ساتل ممکن دي د دې مسئلې څخه اکثر خلک غافل دي په دې باره کي احتياط کول پکار دی په دې خبره هم پوهيدل پکار دي چي دا مسئله د مشک او ګلاب او د بلي خوشبوئي بويولو باندي قياس کيدای نسي ځکه چي يوازي د عطرو د خوشبو دار لوګی په هغه جوهر کي چي قصدا په حلق کي داخل کړه سي کوم فرق دی په هغه تول پوهيږي همداسي د چلم په دود سره روژه ماتيږي ځکه چي هغه په قصده راکښل کيږي او په دې سره نفس ته تسکين کيږي او په

اکثرو حالاتو کي دا د دوا په توګه استعمالیږي .

خوله او وښکي په حلق کي په تللو سره پر روژې باندي څه اثر نه اچوي کله چي هغه په لږ مقدار کي وي هو که هغه په زیات مقدار کي ولاړ سي چي په هغه سره په حلق کي ترېووالی محسوس سي نو روژه ماتیږي څه خوشبویه شی مثلا ګل ، عطر او داسي نور په بویولو سره هم روژه نه ماتیږي .

د یوه سړي په حلق کي دود یا د ژرندي وړه یا مچ ولاړ سي یا د دوایانو ټکولو پر وخت یا د هغه پوڼی ترلو پر وخت د هغه څخه څه د الوتلو په صورت کي په حلق کي دننه سي نو روژه نه فاسده کیږي ځکه چي د دې شیانو څخه ځان ساتل نا ممکنه دي .

روژه دار د جنابت په حالت کي سهار چي را پورته سي نو د هغه روژه نه فاسدیږي که څه هم هغه پوره ورځ یا تر ډیرو ورځو پوري همداسي وي او غسل او پاکي نه کوي البته د نجس کیدو او لمونځ وغیره نه کولو په وجه به د ثواب څخه محروم وي .

که یو سړی د روژې په حالت کي د خپلي خاص عضوي په سوري کي دوائي یا تیل واچوي یا همداسي سلائي وغیره داخله کړي که څه هم دا شیان مثانې ته ورسیږي د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله علیه د قول سره سم روژه نه فاسده کیږي ځکه چي مثانه نه یوازي دا چي د جوف څخه دباندي ده بلکه د مثانې څخه دننه ته لارنسته ځکه کوچنی بولي هم په څڅیدو سره وځي البته د امام ابویوسف رحمة الله علیه په نزد په پورته صورت کي روژه نه پاته کیږي هو که دا شیان مثانې ته ونه رسیږي بلکه مخصوص عضوي په سوریانو پوري محدود وي نو د درو سرو حضراتو په نزد روژه نه فاسده کیږي .

یو سړی که په اوبو کي کښیني او اوبه د هغه په غوږو کي ولاړې سي یا هغه خپل غوږ ګروي او د غوږ خیري ښکاره سي بیا هغه اوبه په غوږ کي ننه باسي او همداسي څو واره وکړي بیا هم روژه نه فاسده کیږي .

د یوه سړي په پزه کي د دماغ څخه په کښته کیدو سره بلغم راسي او هغه پورته وخیږوي یا تیر یې کړي څرنګه چي اکثر بې تمیزه او کثیف الطبع خلک کوي نو روژه نه ماتیږي د چا د خولې څخه ناوړي ووځي او هغه قطع کیږي نه بلکه د تار په توګه په بهیدو سره زني ته راسي او بیا هغه ناوړي پوره په کښلو سره تیري کړي نو روژه نه ماتیږي هو که ناوړي را بهیږي نه بلکه په قطع کیدو سره توی سي او بیا هغه په خوله کي واچوي نو روژه ماتیږي په ډکه خوله بلغم په تیرولو سره د امام ابویوسف رحمة الله علیه په نزد روژه ماتیږي خو د امام اعظم ابو حنیفه رحمة

الله عليه په نزد په دې سره روژه نه ماتيږي د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد كله چي د بلغم په تو كلو باندي قادر وي او د دې باوجود يې تيري كړي نو روژه فاسده كيږي .

په بې اختياره قي وهلو سره روژه نه فاسديږي كه څه هم قي په ډكه خوله وي يا تر دې زيات وي همداسي په هغه صورت كي هم روژه نه ماتيږي كله چي راغلي قي بې اختياره تر حلق لاندي را ولويږي كه څه هم هغه هر څومره وي مگر د امام يوسف رحمة الله عليه په نزد په دې صورت كي روژه ماتيږي هو كه هغه قصدا تير كړي او په ډكه خوله وي نو د ټولو په نزد روژه نه صحيح كيږي البته كفاره نه لازميږي او كه په ډكه خوله نه وي نو روژه نه فاسده كيږي او كه يو سړى قصدا قي وكړي او په ډكه خوله وي نو په متفقه توگه سره مسئله داده چي روژه نه پاته كيږي او كه په ډكه خوله نه وي نو د امام ابويوسف رحمة الله عليه په نزد روژه نه فاسده كيږي او صحيح داده د امام محمد رحمة الله عليه قول دى چي په ډكه خوله نه كيدو په صورت كي هم روژه ځي كوم قي چي په قصدًا وكړه سي او په ډكه خوله نه وي او هغه بې اختياره د حلق څخه را ولويږي نو روژه نه فاسده كيږي قصدا د تيرولو په باره كي دوه قوله دي صحيح قول دادى چي په دې صورت كي روژه نه فاسده كيږي .

څه چي د غذا د ډول څخه نه وي او د شپې د غاښونو په مينځ كي پاته سوى وي نو د ورځي هغه په تيرولو سره روژه نه فاسده كيږي په شرط د دې چي هغه د نخود د مقدار څخه كم وي او د خولې څخه دباندي په راباسلو سره ونه خوړه سي همداسي د چا د غاښونو څخه يا د خولې د څه دننه حصې څخه وينه ووځي او حلق ته ولاړه سي نو روژه نه فاسديږي په شرط د دې چي نس ته ونه رسيږي يا نس ته ورسيږي خو په ناړو سره په مخلوط كيدو سره او تر ناړو كم او د هغه خوند په حلق كي محسوس نسي كه څه هم وينه نس ته ورسيږي او كه هغه پر ناړو باندي غالبه وي يا د ناړو برابر وي نو روژه فاسده كيږي .

كه يو سړى په اندازه د نخود يو شى دباندي په خوله كي واچوي او هغه په خوله كي نشر هم سي نو روژه نه فاسده كيږي په شرط د دې چي په حلق كي محسوس نسي يا دا چي بغير د ږوولو هغه شى تير سي او په حلق كي دهغه خوند محسوس نسي بيا هم روژه ماتيږي او كه څه شى د هغه شيانو څخه وي چي د هغه كفاره لازميږي نو كفاره به ضروري وي كنې قضاء به لازميږي .

**هغه شیان چي په هغه سره روژه فاسدیږي او په هغه سره قضاء او کفاره لازمیږي:**

تر ټولو مخکي په دې خبري پوهیدل ضروري دي چي د روژې د فاسد کیدو په صورت کي کفاره پر کومو خلکو باندي او په کومو حالاتو کي لازم کیږي.

کفاره هغه وخت لازمیږي کله چي روژه لرونکی مکلف یعني عاقل اوبالغ وي روژه د روژې د میاشت څخه وي یعني د روژې قضاء په روژو کي هم کفاره نه لازمه کیږي نیت یې د شپې نه وي کړی که سهار د راختو وروسته یې نیت کړی وي نو پر روژه ماتیدو باندي کفاره نه لازمیږي د روژې ماتیدو وروسته څه داسي امر پیښ نسي چي کفاره ساقط کونکې وې لکه حیض او نفاس که روژه د ماتیدو وروسته په دې کي څه پی پیښ سي نو کفاره نه لازمیږي د دې تفصیلي بیان به مخ ته راسي همداسي روژه د ماتولو مخکي داسي شی پیښ نسي چي په هغه سره کفاره ساقطه کیږي لکه سفر که یو سړی د سفر په حالت کي روژه ماته کړي نو کفاره نه لازمیږي هو که یو سړی د سفر مخکي روژه ماته کړي نو کفاره نه ساقطه کیږي روژه په خپلي مرضي او خواهش سره ماته کړه سي که د زور په حالت کي روژه ماته کړه سي نو کفاره نه لازمیږي په روژې ماتولو کي قصدا او اختیار ته دخل دی د هیري په صورت کي کفاره نه واجب کیږي او دا چي روژه دار مضطرب نه وي ځکه چي پر مضطرب باندي کفاره نه لازمیږي کله چي دا ټول شرطونه تر لاسه سي او لاندي مضرات صوم (یعني د روژې د ماتولو شیانو) څخه یو صورت پیښ سي نو کفاره او قضاء دواړه لازمیږي.

د دې وروسته اوس وګوری چي هغه کوم شیان او صورتونه دي چي په هغه سره روژه فاسده کیږي او د هغه په وجه کفاره او قضاء دواړه لازمیږي جماع کول بچه بازي کول په دې دواړو صورتونو کي فاعل او مفعول پر دواړو باندي کفاره او قضاء لازمیږي خوراک څښناک که څه هم په توګه د غذا یا په توګه د دوا وي د غذائیت معنی او په محمول کي پر هغه شي وي چي د هغه خوراک لپاره طبیعت خواهش وکړي او د هغه په خوراک سره د نس د خواهش تقاضا پوره کیږي د ځیني حضراتو قول دادی چي د غذا شی به هغه ته ویل کیږي چي د هغه په خوړلو سره د بدن اصطلاح وي او د ځیني حضراتو وینا داده چي غذا هغه شیانو ته ویل کیږي کوم چي عادتا خوړل کیږي.

که یو سړی د باران اوبه یا واوره تیره کړي یا امه غوښه وخوري که څه هم هغه مرداره ولي نه وي نو کفاره لازمیږي همداسي پوست وچه سوې غوښه او غنم په خوړلو سره هم کفاره واجبه کیږي هو که دانه نیمه غنم په خوله کي په اچولو سره وزبیږل سي او هغه په خوله کي خپره سي نو

کفاره نه لازمیږي د خپلي ښځي او محبوب ناړي په تیرولو سره هم کفاره واجب کیږي ځکه چي
په دې کي هم د طبیعت خواهش دخل دی هو د دې پرته د نورو ناړو تیرولو په صورت کي کفاره
نه واجب کیږي البته روژه ماتیږي او قضاء لازمیږي مالگه په کم مقدار کي په خوړلو سره خو
کفاره لازمیږي په زیات مقدار کي په خوړلو سره په استغنی کي دې قول ته روایت مختار ویل
سوی دی مگر په خلاصه او هندیه کي لیکلي دي چي مختار یعني قابل قبول او لائق اعتماد
مسئله داده چي مطلقا مالگه په خوړلو سره کفاره واجبه کیږي که څه هم مالگه زیاته وي یا کمه
وي که د ناروتي وربشي وخوړل سي نو کفاره نه لازمیږي ځکه چي امې وربشي نه خوړل کیږي
مگر دا د وچو اوربشو مسئله ده که تازه اوربشي په راکښلو سره وخوړل سي نو کفاره لازمیږي
د ګل څخه پرته خاوره مثلا ملتاني وغیره د خوړلو په باره کي مسئله داده که هغه عادتا وخوره
سي نو پر هغه هم کفاره لازمیږي او که نه وخوره سي نو بیا کفاره نه لازمیږي.

یو حدیث دی چي د هغه الفاظ دادي (الغیبة تفطر الصیام) غیبت روژه ختموي په ظاهره
خو د دې څخه دا معلومیږي که یو روژه دار غیبت وکړي نو د هغه روژه ختمیږي مگر علمائې
امت پر اجتماعي طریقه باندي د دې حدیث تاویل دا کړی دی چي د حدیث مراد دا نه دی چي
غیبت په کولو سره روژه ختمیږي بلکه د دې مراد دادی چي کوم روژه دار په غیبت کي مصروفه
سي د هغه د روژې ثواب ختمیږي.

حدیث او د دې دا تاویل په ذهن کي وساتی او اوس دا مسئله واوری که یو سړی د چا
غیبت وکړي او د هغه وروسته قصدا ډوډۍ یې وخوره نو پر هغه کفاره لازمیږي که څه هم هغه
ته دا حدیث معلوم وي یا معلوم نه وي او که څه هم د حدیث په پورته ذکر سوي تاویل خبر وي یا
خبر نه وي او دا چي مفتي د کفارې لازمیدو فتوی ورکړې ده یا نه ځکه چي حدیث او د هغه د
تاویل څخه قطعي نظر د غیبت وروسته د روژې ختمیدل قطعا خلاف قیاس دی.

همداسي یو حدیث افطر الحاجم والمحجوم د ښکر وهونکو او لګونکي د دواړو روژه
ماتیږي د دې حدیث هم دا تاویل سوی دی چي وینه په کښلو روژه دار ته کمزوري پیدا کیږي او
د زیاتيویني وتلو په صورت کي د روژې ماتیدو بیره کیدای سي ځکه د وینو کښونکي په باره
کي دا امکان کیږي چي د ویني څه قطره د هغه نس ته ورسیږي ځکه رسول الله ﷺ د احتیاط
لاندي دا وفرمایل چي روژه ختمیږي کنې په حقیقت کي په وینو کښلو سره روژه نه ماتیږي.

د حدیث (الغیبة تفطر الصیام) پر خلاف د دې مسئله داده که یو سړی د وینه کښلو
وروسته د دې حدیث لاندي په دې گمان سره چي روژه ختمیږي قصدا خوراک څښاک وکړي نو

پر هغه کفاره یوازي په هغه حالت کي لازمیږي کله چي هغه د دې حدیث ذکر سوی پورته تاویل ځخه چي جمهور علماء نقل کړی دی خبر وي یا دا چي یو فقیه او مفتی دا فتوی کړې وي چي وینه په کښلو سره روژه ماتیږي که څه هم د هغه دا فتاوی به هم په حقیقت کي خلاف وي او د دې ذمه واري به پر هغه وي او که د دې حدیث تاویل معلوم نه وي نو کفاره نه لازمیږي (الغیبة تفطر الصیام ، افطر الحاجم والمحجوم ) د دواړو د حدیثونو په احکامو کي پورته ذکر سوی فرق ځکه دی چي په غیبت سره د روژې ماتیدل نه یوازي دا چي خلاف قیاس دی بلکه د دې حدیث پر ذکرسوي فرق د ټولو علماؤ امت اتفاق دی کله چي وینه په کښلو سره د روژې ماتیدل نه یوازي دا چي دا خلاف قیاس نه وي بلکه د دې حدیث پر مذکوره تاویل د ټولو علماؤ اتفاق نسته ځکه چي ځیني علماء مثلا امام او زاعي رحمة الله علیه وغیره د دې حدیث پر ظاهري مفهوم باندي په عمل کولو سره وائي چي وینه په کښلو سره روژه ماتیږي همداسي یو سړی په شهوت سره د یوې ښځي سره هم خواب سو یا د یوې ښځي سره یې بغیر انزال مباشرت فاحشه وکړ یا رانجه یې ولګول یا رګ یې وواهه یا د حیوان سره یې بدفعلي وکړه خو انزال ونه سو یا په خپلي کونه کي یې ګوته داخله کړه او دا ګمان په کولو سره چي روژه ولاړه هغه قصدا څه خوراک او څه څښاک وکی نو په دې صورت کي هم کفاره هغه وخت لازمیږي کله چي فقیه یا مفتي د پورته شیانو په باره کي دا فتوی ورکړې ده چي په دې سره روژه ماتیږي که څه هم د هغه دا فتوی غلطه او د حقیقت خلاف وي که مفتی فتوی ورنه کړي نو کفاره نه لازمیږي ځکه چي په پورته شیانو سره روژه نه ماتیږي .

پر هغه ښځه کفاره واجبیږي چي د روژې په حالت کي د یو داسي سړي سره په رضا او رغبت او په خوشحالي جماع وکړه چي پر جماع کولو باندي مجبوره کړه سوی نه وه نو کفاره به یوازي پر هغي ښځي واجبه وي پر هغه سړي به نه وي .

یوې ښځي په دې پوهیدو سره چي سهار راختلی دی هغې دا د خپل خاوند څخه پټ کړ نو د هغې خاوند د هغه سره صحبت وکی او هغه ته معلومه نه وه چي سهار راختلی دی نو په دې صورت کي هم یوازي پر ښځي باندي کفاره واجبیږي نه پر سړي باندي .

## په کومو شیانو سره کفاره لازمیږي ؟

یوې ښځي په قصد دوده وخوړل یا په رضا او رغبت یې جماع وکړه او په هغه ورځ د هغه ورځي حیض ورته شروع سو یا په نفاس کي اخته سوه نو هغې د ذمي څخه کفاره ساقط کیږي همداسي که یو سړی په هغه ورځ په یو داسي مرض او تکلیف کي اخته سو چي په هغه کي روژه

نه نیول جائز دي او دا چي مرض او تکليف قدرتي وي نو کفاره ساقطيږي د قدرتي قيد د دې لپاره دي چي فرضًا که يو سړي په قصده روژه ماته کړه او بيا خپل ځان يې داسي زخمي کړ چي په هغه حالت کي د روژې نه نيولو اجازت واى يا خپل ځان يې د بام يا غره څخه غورځولى واى نو ظاهره ده چي په داسي صورت کي هغه تکليف او مرض به د هغه خپل د لاسه وي په داسي صورت کي د علماء اختلافي قولونه دي ځيني حضرات خو وائي چي په دې صورت کي هم کفاره ساقطه کيږي کله چي د نورو حضراتو قول دی چي کفاره نه ساقطه کيږي او د کمال د قول سره سم مختار او زيات صحيح قول دا دی چي کفاره نه ساقطه کيږي.

په جمع العلوم کي ليکلي دي که يو سړی د زيات تلو يا څه کار په وجه خپل ځان په څه تکليف او مشقت کي اخته کی تر دې چي هغه ته ډيره زياته او سخته تنده ولويده او هغه روژه ماته کړه نو پر هغه کفاره لازميږي مګر ځيني حضرات وائي چي کفاره نه لازميږي او دا قول بقائي رحمة الله عليه هم اختيار کړی دی څرنګه چي په تاتار خانيه کي نقل دي.

## د کفارې مسئلې

د يوې روژې په کفاره کي يو غلام ازادول پکار دي که څه هم هغه غلام کافر وي که د غلام ازادول ممکن نه وي يا په يوه ځای کي غلام نسي ترلاسه کوای نو بيا تر دوو مياشتو پوري شپيته ورځي پرله پسې روژې نيول واجب دي د دې روژو پيوست او په داسي ورځو کي خيال ساتل ضروري دی چي په هغه کي د اخترو ورځ او ايم تشريق هر ډول روژې نيول منع دي که په مينځ کي د څه عذر په وجه د يوې ورځي روژه فوت سي نو بيا د نوي سره به شروع کول ضروري دي، مخکي چي څومره روژې نيول سوي وي د هغه هيڅ حساب به نه کيږي هو که يوې ښځي ته حيض راسي او په هغه وجه په مينځ کي روژې ناغه سي نو څه تاوان نه لري خو د نفاس په وجه د ناغه کيدو په صورت کي به هم د نوي سره.روژې شروع کول کيږي او که د مرض يا سپين ږيرتوب په وجه د شپيتو روژو نيولو قدرت نه وي نو بيا شپيته محتاجو ډوډۍ ورکول په ماړه نس واجب دي همداسي که غواړي نو پر هغوی دي په يوه ورځ کي دوه وخته يعني سهار او ماښام ډوډۍ وخوري که څه هم دوې ورځي د سهار وخت يا دوې ورځي د ماښام وخت يا ماخستن او د سهار تر وخته پوري ډوډۍ وخوري خو شرط دا دې چي په اول وخت پر کومو محتاجو باندي ډوډۍ وخوړه سي دوهم وخت هم هغه محتاجو ته ډوډۍ ورکړه سي که چا يو وخت په شپيتو محتاجو باندي ډوډۍ وخوړه او بيا دوهم وخت د هغه پرته په نورو شپيتو محتاجو باندي يې ډوډۍ وخوړه نو دا نه کافي کيږي بلکه کفاره هغه وخت ادا کيږي کله چي

هغه د دوا ړو جماعتونو څخه پر يوه جماعت باندي بيا دوهم وار يو وخت ډوډۍ وخوري هو که يو سړی پرله پسې تر شپيتو ورځو پوري په يوه محتاج باندي ډوډۍ خوري نو څه تاوان نه لري همداسي کفاره ادا کيږي يوه بله خبره دا چي يو سړی په يوه ورځ شپيته يا د هغه څخه کم په محتاجو د ډوډۍ په اندازه صدقه يو محتاج ته ورکړي نو هغه به د ټولو لپاره ادا نه وي بلکه د يوه محتاج لپاره به ادا وي.

په شپيتو محتاجو باندي د ډوډۍ خوړلو په اړه د غنمو ډوډۍ ببله کتغه کافي کيږي يعني که شپيته محتاجو ته يوازي د غنمو ډوډۍ ببله کتغه په ماړه نس يې ورکړي نو حکم پوره کيږي پر خلاف د وربشو ډوډۍ چي په هغه سره کتغ ضروري دی ځکه چي د وربشو ډوډۍ د سخت کيدو په وجه عادتا ببله کتغه نسي خوړل کيدای کله چي د غنمو ډوډۍ ببله کتغه هم په ماړه نس خوړل کيدای سي ځکه ويل سوي دي چي د غنمو ډوډۍ خپل کتغ په خپل ځان کي لري نو کوم سړی چي د غنمو د ډوډۍ سره سالن وغوښتی هغه وړی نه دی.

يو شرط دا هم دی چي په کومو شپيتو محتاجو ډوډۍ وخوړه سي هغه به ټول وږي وي په هغوی کي به هيڅ څوک په ماړه نس نه وي او که په ماړه نس وي او د وږي په ډول يې نه خوري نو د هغه پر ځای دي بل وږي کښينوي او په هغه باندي ډوډۍ خوړل ضروري ده.

په هر حال کي يا خو د پورته ذکر سوي طريقو او شرط سره سم پر محتاجو باندي ډوډۍ دي وخوري يا دا چي هر محتاج ته دي د نصف صاع يعني يو کلو شپږ سوه درو ديرش ګرامه غنم يا د هغه اوړه ورکړل سي که څه هم يو صاع درې کيلو دوه سوه شپږ شپېته ګرامه اوربشي يا انګور يا خرما يا د هغه قيمت ورکړه سي که څه هم ټولو محتاجو ته په يوه وخت کي ورکړه سي يا دا چي په جلا جلا وختونو کي ورکړه سي.

که يو سړی په قصده جماع کولو سره يا په قصده په خوړلو سره څو روژې ماتي کړي نو د هغه ټولو لپاره يوه کفاره کافي کيږي په شرط د دې چي هغه په مينځ کي څه کفاره ادا کړې نه وي مثلا يوه سړي لس روژې وخوړې او د هغه په مينځ کي کفاره ادا نه کړه نو هغه د لسو روژو لپاره به يوه کفاره کافي سي که په مينځ کي څه کفاره يې ادا کړه نو بيا وروسته د روژې لپاره دوهمه کفاره ضروري کيږي بيا دا چي هغه ماتي سوي څو روژې که څه هم د يوه روژې وي که څه هم د دوو روژو وي په دې باره کي صحيح مسئله دغه ده څرنګه چي په در مختار کي ذکر دي خو ځيني حضرات وائي چي پورته ذکر سوی حکم د هغه صورت لپاره دی کله چي هغه روژې د يوې روژې وي او که هغه روژې د څو روژو وي نو د هرې روژې لپاره جلا جلا کفاره ضروري کيږي

فتاوی عالمگیریه کي دا قول اختیار کړه سوي دي .

## هغه شیان چي په هغه سره قضاء لازمیږي خو کفاره نه لازمیږي :

په دې باره کي قاعده کلیه داده که په څه داسي شي سره روژه فاسده سي چي د غذا د ډول څخه نه وي یا که وي نو د څه شرعي عذر په وجه هغه نس یا دماغ ته رسول کیږي یا څه داسي شی وي چي په هغه سره د شرمګاه شهوت په پوره توګه سره ختم سوی نه وي لکه موټ او داسي نور نو په داسي شیانو سره کفاره نه لازمیږي بلکه یوازي قضاء ضروري ده که روژه دار په روژې کي اومې وریجي یا وچ اوړه وخوري نو روژه نه صحیح کیږي او قضاء واجب کیږي او که څوک د اوربشو یا غنمو اوړه په اوبو کي په اغږلو سره او په هغه کي خواړه په یو ځای کولو سره وخوري نو په دې صورت کي کفاره لازمیږي .

که یوسړی په یوه وار زیاته مالګه وخوري یا د ګل ارمتي څخه پرته څه داسي خاوره وخوري چي هغه عادتا نه خوړه کیږي یا هډوکی یا پنبه او داسي نور یا خپلي ناړي تیري کړي چي د ریښم او جامې او داسي نورو په رنګ مثلاً ژړ ، زرغون باندي متغیر سوی وي او هغه ته خپله روژه هم یاد وه یا کاغذ یا د هغه په ډول څه بل داسي شی یې وخوړی چي عادتا نه خوړه کیږي یا اومه میوه یې وخوړه چي د پخیدو مخکي عادتا نه خوړه کیږي او هغه په پخولو سره او مالګه په یوځای کولو سره ونه خوړه یا داسي تازه جوز یې وخوړی چي په هغه کي مغز نه وو یا شګه ، اوسپنه ، تانبه ، سره زر ، سپین زر یا ډبري که څه هم هغه د زمرود وغیره وي تیر یې کړه نو په دې صورتونو کي کفاره نه واجبه کیږي یوازي قضاء لازمیږي همداسي که کلمو د صفا کولو لپاره پیچکاري ولګوي یا په پزه کي دوا واچوي او د هغه څخه څه حلق ته ولاړ سي یا په دواړو غوږونو کي تیل واچوي نو په دې صورت کي هم یوازي قضاء لازمیږي کفاره نه واجب کیږي .

په غوږ کي په قصد د اوبو اچولو په باره کي مختلف اقوال دي، هدایه ملتقي ، در مختار او په شرح وقایه او داسي نورو کي ذکر دي چي په دې صورت کي روژه نه ماتیږي خو په قاضي خان او فتح القدیر کي لیکلي دي په دې باره کي صحیح مسئله داده چي روژه نه پاته کیږي او قضاء لازمیږي .

یوه سړي د نس په زخم کي دوا واچول او هغه نس ته ولاړه یا د سر په زخم کي یې دوائي واچوله او هغه دماغ ته ورسیده یا په حلق کي د باران اوبه یا واوره ولاړه او هغه یې قصدا تیره نه کړه بلکه په خپله د حلق څخه لاندي ولاړه یا خولې په پرېوللو کي حلق ته اوبه لاندي ولاړې یا

په پزه کي اوبه په اچولو سره دماغ ته وختي يا په زور په چا باندي روژه ماته کړه که څه هم د جماع په سبب يعني خاوند په زوره د ښځي سره جماع وکړه يا ښځي په زوره د خاوند سره جماع وکړه نو په دې ټولو صورتونو کي کفاره نه لازميږي بلکه قضاء لازميږي هو د جماع په اړه په زور کونکي باندي کفاره لازميږي او د چا سره چي زور سوی وي پر هغه يوازي قضاء لازميږي.

که يوه ښځه چي مينځهٔ وي که څه هم حرم وي يا منکوحه د خدمت او کار روزګار کولو په وجه د ناروغه کيدو په وجه روژه ماته کړي نو پر هغې قضاء لازميږي همداسي که مينزه په داسي صورت کي روژه ماته کړي کله چي کار روزګار مثلا يو شی پخوي يا جامې د مينزلو په وجه ضعف او ناتواني ورته ورسيږي نو په دې صورت کي به هم قضاء پر واجب کيږي په دې ضمن کي دا مسئله په ذهن کي کښينول پکار ده که يوې مينزي ته آقا د څه داسي کار لپاره ووائي چي د فرض د اداء څخه مانع وي نو د هغه خبره د منلو څخه انکار کول پکار دي.

يو سړي د روژه دار په خوله کي د خوب په حالت کي اوبه واچولې يا خپله روژه دار د خوب په حالت کي اوبه وڅيښلې نو د هغه روژه ماته سوه او پر هغه قضاء واجب ده دا مسئله په هيره د خوراک څښاک په صورت کي قياس کيدای نسي ځکه که خوب والا يا هغه سړی چي د هغه عقل نه وي پاته سوی څه حيوان حلال کړي نو د هغه مذبوحه حلاله نه ده د دې پر خلاف که څوک د حلالولو پر وخت بسم الله ويل ځيني هير سي نو د هغه حلال سوي حيوان غوښه خوړل جائز دي همداسي دلته مسئله داده چي د هيري په حالت کي د خوراک څښاک کونکي روژه نه ماتيږي هو که يو سړی د خوب په حالت کي خوراک څښاک وکړي نو د هغه روژه ماتيږي.

يوه سړي که په هيره سره په روژه کي څه وخوړل بيا يې د هغه وروسته په قصده وخوړل او د هغه وروسته يې په قصده جماع وکړه يا د ورځي يې د روژې نيت وکړ بيا قصدا خوراک څښاک يې وکړ يا جماع يې وکړه يا د شپې د روژې نيت يې وکړ بيا په سبا کيدو سره يې سفر وکړ بيا د هغه وروسته د اقامت نيت يې وکړاو څه خوراک څښاک يې وکړ که څه هم په دې صورت کي د هغه لپاره روژه ماتول جائز نه وو يا د شپې څخه د روژې نيت يې وکړ سهار ته مقيم وو بيا يې سفر وکی او مسافر سو او د سفر په حالت کي قصدا خوراک څښاک يا جماع يې وکړه که څه هم په دې صورت کي د هغه لپاره روژه ماتول جائز نه وو نو په دې ټولو صورتونو کي يوازي قضاء لازميږي کفاره نه واجب کيږي په ذکر سوي مسئلې کي د سفر په حالت کي د خوراک قيد ځکه لګول سوی دی که يو سړی د سفر شروع کولو وروسته خپل څه هير شی د اخستو لپاره خپل کور ته بيرته راغی او په خپل کور کي يا خپل ښار او د ابادي څخه د جلا کيدو مخکي په قصده

خوراک وکړي نو په دې صورت کي قضاء او کفاره دواړه لازميږي.

که يو سړی ټوله ورځ خوراک څښناک او نور ممنوعات د روژې څخه منعه وو خو نه هغه د روژې نيت وکړ او نه يې روژه ماته کړه يا چا سړي پيښلمی وخوړی يا جماع يې وکړه په داسي حالت کي د سهار د ختو په باره کي هغه ته شک وو حال دا چي هغه وخت طلوع فجر سوی وو يا يو سړي د لمر پريوتو غالب ګمان سره روژه ماته کړه حال دا چي هغه وخت لمر نه وو ډوب سوی نو په دې صورت کي د کفارې لازم کيدو په باره کي دوه قوله دي چي په هغه کي د جعفري فقهي مختار قول دادی چي د لمر ډوبيدو د شک په صورت کي کفاره لازميږي همداسي که د يوه سړي غالب ګمان دا وي چي لمر ډوب سوی نه دی خو د دې باوجود روژه ماته کړي او په حقيقت کي لمر ډوب سوی نه وي نو پر هغه کفاره لازميږي.

يو سړي ته د حيوان يا مړي سره د بدفعلي کولو په وجه انزال وسو يا د چا ورون يا نو په لاس موږلو سره مني توي سول يا د چا په بله وجه انزال وسو يا ببله اداء د روژې مياشت روژه يې ماته کړه نو په دې ټولو صورتونو کي کفاره نه واجبه کيږي بلکه قضاء لازمه کيږي همداسي که چا د روژه داري ښځي سره د خوب په حالت کي جماع وکړه نو د هغي ښځي روژه ولاړه او پر هغې يوازي قضاء لازميږي کفاره نه واجب کيږي يا دا چي د يوې ښځي د شپې څخه د روژې نيت وکی کله چي سهار سو نو هغه ليونی سوه او د هغې ليونتوب په حالت کي چا د هغې سره جماع وکړه نو په دې صورت کي پر هغې ښځي د هغي روژې قضاء لازميږي.

که يوې ښځي په خپل شرمګاه کي اوبه يا دوائي واچوله يا په تيلو يا اوبو سره يې ګوته لنده په خپلي کوني کي يې داخله کړه يا چا داسي استنجاء وکړه چي اوبه د حقنه ځای ته ورسيدې که څه هم داسي لږ پېښيږي يا د استنجاء په کولو کي د زياتي مبالغې په وجه اوبه شرمګاه ته ورسيدې نو قضاء واجب کيږي.

يوه سړي ته بواسير وي او د هغه مسی دباندي راووځي او هغه پريولي که هغه مسی پورته د پورته کيدو مخکي وچي کړه سي نو د هغه پورته په ختلو سره روژه نه ماتيږي ځکه چي داسي اوبه د بدن يوې ظاهري حصې ته رسيدلي وې او بيا د بدن دننه حصې ته د رسيدو مخکي زائل سوې هو که مسی پورته د ختو مخکي وچي نسي نو روژه فاسده کيږي.

که يوه ښځه په تيلو يا اوبو سره ګوته لنده کي او د شرمګاه په دننه حصه کي يې داخله کړي يا يوه ښځه دا شيان د خپل شرمګاه په دننه حصه کي داخله کړي او دا شيان دننه پټ سي نو روژه نه پاته کيږي او قضاء لازميږي هو که د لرګي يو سر په لاس کي وي يا دا شيان د ښځي د

شرمگاه دباندي حصې پوري ورسيږي نو روژه نه فاسده کيږي داسي چي يو سړي تار تير کی په دې توګه چي د هغه يو سر د هغه په لاس کي وي او بيا هغه تار دباندي راوکاږي نو روژه نه فاسده کيږي او که د هغه يو سر په لاس کي نه وي بلکه ټول تير کړي نو روژه ماتيږي او قضاء لازميږي .

کوم سړی چي په خپل قصد او اختيار سره د څه شي دود په خپل دماغ يا خپل نس کي واچوي نو د هغه روژه فاسده کيږي او قضاء لازميږي خو ، يعني که د دې دواړو دود قصدا داخل کړي نو ليري نه ده چي کفاره هم لازمه سي ځکه چي د دې دود نه يوازي دا چي قابل انتفاع دی بلکه اکثر دواء هم استعماليږي همداسي د سګريټ بيړی او چلم دود هم د داخلولو په صورت کي کفاره لازمه کيدای سي .

که يو سړی په قصده قی وکړي که څه هم هغه په ډکه خوله نه وي نو د هغه روژه ځي او قضاء لازميږي په دې باره کي ظاهري روايت دادی مګر امام ابويوسف رحمة الله عليه فرمائي چي قصدا د قی کولو په صورت کي روژه هغه وخت فاسده کيږي او قضاء لازميږي کله چي قی په ډکه خوله راغلی وي که په ډکه خوله نه وي راغلی نو روژه نه فاسده کيږي نه قضاء لازميږي زيات صحيح او مختار قول دادی .

که يوه سړي ته په خپله ډکه خوله قی راغلی او هغه يې تير کړی يا د يو سړي په غاښونو کي ښتی څه شی د نخود برابر يا تر هغه زيات وو يا يوه سړي د شپې څخه نيت نه وکی په ورځ کي هم هغه نيت نه وو کړی چي په هيره يې څه خوراک او څه څښاک وکی او د هغه وروسته يې د روژې نيت وکی نو په دې ټولو صورتونو کي روژه نه صحيح کيږي او قضاء لازميږي يا همداسي څوک روژه دار بې هوشه سو که څه هم هغه تر مياشتي پوري بې هوشه وي پر هغه قضاء لازميږي هو د هغي ورځي قضاء نه لازميږي د کومي ورځي يا کمي شپې څخه چي بې هوشه سوی دی ځکه چي د مسلمان په باره کي نيک ګمان کول پکار دی کيدای سي چي په هغه شپه کي نيت کړی وي او همداسي د هغي ورځي روژه پوره سي او سَ د هغه وروسته چي څومره ورځي بې هوشه وي د هغه به قضاء راوړي د بې هوشي شروع کيدو ورځ په باره کي هم که دا يقين وي چي نيت يې نه وو کړی نو د هغي ورځي د روژې قضاء به ضروري وي د بې هوشي د ورځو د روژو قضاء به ضروري وي که څه هم هغه هيڅ خوراک څښاک ونه کی خو د روژې نيت تر لاسه نه سو ځکه د بې هوشۍ په حالت کي د هغه بغير نيت څه خوراک څښاک نه کول او د ټولو شيانو څخه ځان نيول کافي او کار آمد کيږي نه که پر يوه سړي باندي د روژې په پوره

میاشت کي لیونتوب خپور وي نو پر هغه قضاء نه واجب کیږي هو که پوره میاشت لیونتوب نه وو نو بیا قضاء ضروري کیږي او که پر یوه سړي باندي پوره میاشت په دې توګه لیونتوب خپور وو چي په ورځ کي یا په شپه کي د نیت وخت د ختمیدو وروسته به ښه سو نو بیا هم قضاء نه ضروري کیږي بلکه دا پوره میاشت به د لیونتوب په حکم کي وي.

که یو سړي په روژه کي د روژې نیت ونه کی او بیا په هغه ورځ کي خوراک څښناک وکی نو د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه د قول سره سم په دې صورت کي به کفاره واجب نه وي یوازي قضاء لازمیږي خو د صاحبین رحمة الله علیهم قول دادی چي کفاره واجب کیږي.

د یوه سړي روژه ماته سوه که څه هم د هر عذر په وجه ماته سوې وي بیا هغه عذر ختم سو نو اوس د هغه لپاره ضروري ده چي هغه په پاته حصه کي د روژې د احترام په توګه خوراک څښناک او د نورو ممنوع شیانو څخه پرهیز وکړي همداسي هغي ښځي ته هم د ورځي په پاته حصه کي په روژه کي د ممنوعو شیانو پرهیز ضروري وي چي په حیض یا نفاس کي اخته وه او د لمر ختو وروسته پاکه سوه او مسافر چي په ورځ کي څه وخت مقیم سو ناروغه روغ سو د لیوني سړي لیونتوب ولاړی هلک بالغ سو کافر اسلام راوړی دې ټولو خلکو ته هم د ورځي په پاته حصه کي خوراک څښناک او د نورو ممنوعو شیانو څخه پرهیز کول پکار دی پر دې ټولو به هم د هغې ورځي د روژې قضاء لازمه وي البته موخر الذکر پر دواړو باندي قضای لازمیږي.

کومه ښځه چي په حیض او نفاس کي اخته وي یا هغه سړی چي د ناروغی حالت کي وي یا هغه سړی چي د سفر په حالت کي وي د دوی لپاره د خوراک څښناک څخه پرهیز ضروري نه دی بیا هم د دوی لپاره دا حکم دی چي د عامو خلګو د لیدو څخه د ځان ساتلو لپاره په پټه توګه سره یې خوراک او څېښناک وکړی.

## د روژاتي ر لپاره مکروه او غیر مکروه شیان

د روژه دار لپاره د یو شي څېښنل یعني په څکلو سره یې تو کول مکروه دي په ذخیره کي نقل دي چي د روژه دار لپاره بې ضرورته د څه شي خوند کتل مکروه دی هو د عذر په صورت کي مکروه نه دی مثلا یوه سړي د خوراک څښناک یو شی رانیوی او دا بیره ورته وه که د هغه خوند ونه ګورم نو دو که به سم بیا دا شی به زما د مرضي سره سم نه وي نو په دې صورت کي که هغه د هغه شي خوند وکتی نو مکروه به نه وي.

په فتاوی نسفی کي نقل دي که د یوې ښځي خاوند بداخلاق او ظالم وي او په ډوډۍ کي د مالګي مرچ او مصالحه باندي د کمي بیشي سره د سختي معامله کوي نو د هغې لپاره هم

جائز دی چي هغه د كتغ خوند وګوري چي د خپل خاوند د ظلم او تشدد څخه وساتل سي او كه خاوند نيک او نيک مزاج وي بيا ښځي ته د هغه شي خوند كتل جائز نه دی دا حکم د مينزي هم دی بلکه هغه نوکر او ملازم هم په دې حکم كي شامل دی چي دوډی پر پخولو باندي مقرر وي.
بې له عذره څه شی ږوول مکروه دی مثلا يوه ښځه وغواړي چي دوډی وغيره په ميده كولو سره خپل كوچني ته يې وركړي كه د هغې سره څوک هوشياره كوچنی انجلی وي يا څوک حائضه وي نو په هغې باندي دي يې په ميده كولو سره وركړي.
خپله دي يې نه ميده كوي په دې صورت كي خپله په ميده كولو سره وركول مکروه دی هو كه غير روژه دار يې پيدا نه كی نو بيا دي يې خپله ور ميده كړي په دې صورت كي به مکروه نه وي.
روژه دار ته مصطګی ژوول مکروه دی كه څه هم سړی وي يا ښځه ځکه د هغه په ژوولو سره د روژې د ختميدو يا روژې نه نيولو اشتباه كيږي هسي خو سړي ته د بېله روژې په حالت كي هم ژوول مکروه دی هو د څه عذر په وجه او هغه هم په خلوت كي ژوول جائز دی ځيني حضراتو ويلي دي د مصطګي ځوېښل د خلكو لپاره مباح دی كله چي د ښځو لپاره مستحب دی ځكه چي د هغوی په حق كي مسواک قائم مقام دی مصطګي د يو ږړ رنګ مشهور ګوند چی د دوا په توګه استعماليږي دی په پښتو كي ورته ژاوله ويل كيږي.
د روژې په حالت كي مچه اخستل او د ښځو سره مباشرت يعني هغوی تر غاړي باسل وغيره مکروه دي په شرط د دې چي د انزال ېيره وي كه دا ېيره او انديښنه نه وي نو بيا مکروه نه دی.
قصدا په خوله كي ناوړي جمع كول او هغه تيرول مکروه دي همداسي روژه دار ته د هغه شيانو اختيارول هم مکروه دی چي د هغه په وجه كمزوري لاحق كيدو ېيره وي لګه رګ په زوره وهل وينه كښل وغيره وغيره هو كه د دې په وجه د ضعف احتمال نه وي نو بيا مکروه نه دی.
د روژې په حالت كي رانجه لګول بريتونه غوړول او مسواک كول كه څه هم د زوال وروسته مسواک كړه سي او دا چي مسواک تازه وي يا په اوبو كي لوند سوی وي مکروه نه دی د اوداسه پرته هم خوله پرېولل او په پزه كي اوبه اچول مکروه نه دی همداسي غسل كول او يخ والی د حاصلولو لپاره لنده جامه پر بدن اچول مکروه نه دي مفتي به قول دا دی ځكه چي د رسول الله ﷺ څخه دا ثابت دي دا روايت به په راروانو صفحو كي راسي. د روژه دار لپاره چي كوم شيان مستحب دي پيښلمی خوړل پيښلمی په ځنډ سره خوړل او په وخت كيدو باندي په روژه مات كي تادي كول كله چي په فضاء كي وريځ نه وي په كومه ورځ چي په فضاء كي وريځ وي په هغه ورځ په روژه مات كي احتياط يعني دوې درې دقيقې ځنډ ضروري دی.

## هغه عذرونه چي د هغه په وجه د روژې نه نيولو اجازت دی :

داسي عذرونه چي د هغه په وجه روژه نه نيول مباح دي لس دي :

اول : مرض ، دوهم سفر، دريم اکراه، يعني زور، څلورم حمل، پنځم ارضاع ،يعني بچي ته شيدې ورکول، شپږم لوږه، اووم تنده، اتم ډير زيات بوډاتوب ، نهم حيض، لسم نفاس، دا عوارض او عذرونه په تفصيل سره لاندي بيانيږي :

**مرض** : که روژې په نيولو سره د څه نوي مرض پيدا کيدو يا موجوده مرض د زياتيدو بيره وي نو په دې صورت کي روژه نيول نه ده پکار همداسي که دا گمان وي چي د روژې په نيولو سره په صحت او جوړتيا کي ځنډ راځي نو هم روژه نيول نه ده پکار ځکه چي ډير واره د مرض زياتي او په هغه کي ځنډ د هلاکت باعث جوړيږي .

مرض د هغه شي نوم دی چي د طبيعت د تغير باعث کيږي او د هغه په وجه د طبيعت سکون په بې ارامي کي بدليږي او دا کيفيت مخکي په باطني توگه سره محسوس کيږي بيا د هغه اثر پر بدن باندي ظاهريږي مرض که د هر ډول وي که څه هم د سترگو خوږ وي د بدن د څه زخم په صورت کي وي يا دا چي د سر درد او تبي او داسي نورو په شکل کي وي کله چي په هغه کي زياتي يا د هغه د اوږديدو بيره وي نو د روژې نه نيولو اجازت دی بلکه د روژې د نيت کولو وروسته هم که څه مرض پيدا سي مثلا مار لړم يې وچيچي يا تبه وي نو د هغي ورځي روژه نيول هم ورته ضروري نه ده بلکه بهتره داده چي روژه ماته کړي .

علماء ليکي که يو غازي او مجاهد د روژې په مياشت کي د دين د دشمنانو سره جنگ کوي او هغه ته بيره وي چي د روژې په وجه به ورته ضعف پيدا سي چي د هغه په وجه به په جنگ کي تاوان پيدا سي نو د هغه لپاره دا جائز دی چي هغه روژه ونه نيسي که څه هم مسافر وي يا مقيم پر دې علماء دا مسئله هم قياس کړې ده چي کوم سړي ته سخته تبه راځي او هغه د وارپه ورځ د تبي راتلو مخکي خپله روژه ختمه کړي د دې بيري په وجه چي نن به تبه راځي چي د هغه په وجه به کمزوري راته ورسيږي نو په دې کي هيڅ تاوان نسته او که هغه ورځ تبه هم رانسي نو صحيح داده چي پر هغه کفاره نه واجبيږي ، او په فتاوی عالگيريه کي ليکلي دي چي په دواړو صورتونو کي کفاره لازميږي .

همداسي که بازار والا د روژې په ديرشم تاريخ ډول او نغاره يا د ټکانو اواز واوري او دا گمان وکړي چي دا نن د اختر د ورځي کيدو اعلان دی روژه ماته کړي او بيا وروسته ورته

معلومه سي چي دا د اختر د ورځي د كيدو اعلان نه وو بلكه په بل څه سبب دا ډول وه يا مرمى توغول سوي وي نو په دې صورت كي هم پر هغه كفاره نه واجبه كيږي .

**سفر** : سفر كه څه هم جائز وي يا نا جائزه بې مشقته وي لكه ريل ګاډى او هوائي جهاز او موټر او داسي نور په پښنو يا د آس وغيره پر سپاري باندي په هر حال كي روژه نه نيول جائز ده خو بې مشقته په سفر كي مستحب دادى چي روژه ونيول سي په شرط د دې چي د هغه د سفر ټول ملګري بغير د روژې نه وي او په ټولو كي خرڅ مشترک وي هو كه د هغه د سفر ټول ملګري روژه نه نيسي او د ټولو خرچ مشترک وي نو بيا روژه نه نيول افضل دى چي د ټول جماعت موافقت وي .

كه يو سړى د سهار ختو مخكي سفر په شروع كولو سره مسافر سي نو د هغي ورځي روژه نه نيول د هغه لپاره مباح دى كه يو سړى د روژې په حالت كي د سهار ختو وروسته سفر شروع كړي نو اوس د هغه لپاره روژه نيول به مباح نه وي البته د ناروغى كيدو په صورت كي د لمر ختو وروسته سفر شروع كونكي لپاره روژه نه نيول به مباح وي او به هر صورت كفاره نه لازميږي بلكه يوازي قضاء واجب كيږي كه څه هم د سفر په حالت كي د ناروغى په وجه روژه ماته كړي يا پرته د ناروغى .

**اكراه** : يعني زور، كوم سړى چي په روژه نه نيولو باندي مجبوره كړه سي هغه ته هم شريعت د روژې نه نيولو يا روژې ماتولو اجازت وركړى دى مثلا يوه سړي يو روژه دار په زور سره په غورځولو سره د هغه په خوله كي څه شى واچوى يا يو سړي روژه دار مجبوره كړى كه روژې ونيسي نو مړ به دي كړم يا ډير سخت به دي ووهم يا ستا د بدن څه حصه به پرې كم نو په دې صورت كي د هغه لپاره روژه ماتول يا روژه نه نيول جائز ده .

**حمل** : حاملې ښځي ته روژه نه نيول جائز دى په شرط د دې چي د خپل ځان او د بچي د تاوان بيره وي يا په عقل كي او جسماني كمزوري به يې ډيره زياته سي يا كيدونكى بچي پر صحت به خراب اثر پريوځي يا خپله په څه ناروغي او هلاكت كي به اخته سي نو د هغې لپاره جائز دى چي هغه روژه قضاء كړي .

**ارضاع** : يعني شېدې وركول څرنګه چي حاملې ښځي ته روژه نه نيول جائز دى همداسي شېدې وركونكي ښځي ته هم روژه نه نيول جائز ده كه څه هم هغه بچى د هغې وي يا د بلي ښځي بچي ته په اجرت يا مفت شيدې وركوي په شرط د دې چي د خپل صحت او روغتيا د خرابي يا بچي د ضرر بيره وي كومو خلكو چي دا ويلي دي چي په دې باره كي د شيدې وركونكو ښځو څخه نه يوازي دائي مراد ده نو دا خبره غلطه ده ځكه چي په حديث كي مطلقا

شیدې ورکونکي ښځي ته د روژې نه نیولو اجازت ورکړه سوی دی که څه هم هغه مور وي یا دائي د اللہ تعالی ارشاد دی :

ان اللہ وضع عن المسافر الصوم وشطر الصلوۃ وعن الحبلی والمرضع الصوم

ژباړه : اللہ تعالی د مسافرانو لپاره روژه او نیم لمونځ معاف کړی دی همداسي د حاملې او شېدې ورکونکي ښځي لپاره یې هم روژه معافه کړې ده .

یا دا که په دې باره کي څه تخصیص دی نو د قیاس تقاضا داده چي تخصیص د ائي پر ځای د مور وي ځکه چي د دائي لپاره د چا بچي ته شېدې ورکول واجب او ضروري نه دی هغه خو یوازي اجرت د اخستو لپاره شېدې ورکوي که هغه غواړي نو دا کار پرېښودای سي کله چي د مور معامله چپه ده خپل بچي ته شېدې ورکول پر هغې دیانة واجب دی په داسي حال کي چي پلار یې مفلس وي .

شېدې ورکونکي ښځي ته دواء څیښل جائز دی کله چي طبیب یا ډاکټر ووائي چي دا دوائي بچي ته فائده ورسوي ، په پورته مسئلې کي ښودل سوي دي چي حامله او شېدې ورکونکي ښځي لپاره روژه نه نیول جائز دی کله چي هغې ته د خپل ځان یا د بچي د تاوان بیره وي نو په دې باره کي پوه سی چي د بیري څخه مراد دادی چي یا خو د څه سابقه تجربې په وجه خپل ځان یا د بچي د تاوان غالب گمان وي یا دا چي یو مسلمان او مسلکي طبیب چي د هغه کردار د عقیدې او عمل د اعتبار څخه قابل اعتماد وي دا خبره وکړي چي د روژې په وجه به ورته تاوان ورسیږي .

**لوږه او تنده** : په کوم سړي باندي چي د لوږي او تندي دومره غلبه وي که خوراک او څیښاک ونه کړي نو مړ به سي یا په عقل کي به یې خلل وسي یا هوش او حواس به یې ختم سي نو د هغه لپاره هم روژه نه نیول جائز دی او د روژې نیت د کولو وروسته که داسي حالت پیدا سي بیا هم هغه ته اختیار دی چي روژه ماته کړي نو کفاره نه لازمیږي یوازي قضاء واجب ده خو شرط دادی چي روژه دار به په خپله خپل نفس په دومره مشقت کي په اخته کولو سره دا حالت پیدا نه کړي مثلاً چي په خپله یې نفس په دې توګه په مشقت کي اخته کړ چي بغیر څه سخت ضرورت او اوږده منډه یې ووهله چي د هغه په وجه د سختي تندي څخه په مجبوریدو سره روژه یې ماته کړه نو پر هغه کفاره لازمیږي که څه هم ځینو حضراتو ویلي دي چي کفاره نه لازمیږي .

د علي بن احمد رحمة اللہ علیه څخه د پیښې او مزدوري کونکو په باره کي پوښتنه وسوه که یو مزدور په دې پوه سي که زه په دې کار کي اخته یم نو په داسي ناروغي کي به اخته سم چي په هغه

کي روژه نه نیول مباح دی حال دا چي هغه خپل او د خپلي کورنۍ نس د مړلو لپاره پر هغه کار کولو باندي مجبور دی نو ایا په ناروغۍ کي د اخته کیدو مخکي د هغه لپاره روژه نه نیول مباح ده که څنګه؟ نو علي بن احمد رحمة الله علیه د دې خبري څخه په سختۍ سره منع وکړه.
مګر په دې باره کي تر ټو پوري چي د مسئلې تعلق دی په در مختار کي لیکلي دي چي په دې صورت کي که هغه ته ذکر سوې بیره وي نو هغه ته پکار ده چي نیمه ورځ نو محنت او مزدوري وکړي او نیمه ورځ ارام وکړي چي د ژوند اسباب هم موجود سي او روژه هم دلاسه ولاړه نسي.
**سپین ږیر توب** : شیخ فاني او سپین سري فاني لپاره هم جائز دی چي هغه روژه نه ونیسي شیخ فاني او سپین سرې فاني هغه سړي او ښځي ته وائي چي د ژوند اخري مرحلې ته رسیدلی وي د فرض ادائیګي څخه قطعا مجبوره او عاجزه وي او جسماني طاقت یې ورځ په ورځ کمزوره کیږي تر دې چي د کمزورۍ په وجه هغوی ته قطعا امید نه وي چي آئنده به روژه ونیسم.
**حیض او نفاس** : کومه ښځه چي په حیض او نفاس کي اخته وي نو د هغې لپاره هم جائز دي چي هغه روژه ونه نیسي.
**فدیه** : په پوره عذرونو کي یوازي سپین ږیری او سپین سري لپاره جائز دی چي د خپلو روژو فدیه ادا کړي هو د هغه سړي لپاره هم فدیه ورکول جائز ده چي د همیشه روژو نیولو نذر یې منلی وي خو د هغه څخه عاجزه وي یعني که یو سړی دا نذر ومني چي زه به همیشه روژې نیسم که څه هم وروسته هغه د معیشت د اسباب حاصلولو یا څه بل عذر په وجه خپل نذر پوره نه کړ سم نو د هغه لپاره جائز دی چي هغه روژې نه نیسي البته هره ورځ دي فدیه ادا کړي د دې پرته د نورو ټولو عذرونو مسئله داده چي عذر زائل کیدو وروسته د روژو قضاء ضروري ده فدیه ورکول صحیح نه ده یعني فدیه په ورکولو سره روژه نه معافه کیږي ځکه که یو معذور د خپل عذر په حالت کي مړ سي نو پر هغه د هغه روژو د فدیې وصیت کول واجب نه دی چي د هغه د عذر په وجه مړ سوی وي او نه د هغه پر وارثانو دا واجب دی چي هغوی فدیه ادا کړي که څه هم عذر د ناروغۍ وي یا د سفر یا ذکر سوي پورته عذرونو کي څه بل عذر وي هو که یو سړی په داسي حالت کي مړ سي چي د هغه عذر زائل سوی وي او هغه قضائي روژې نیولای سي خو هغه قضائي روژې ونه نیولې نو د هغه لپاره ضروري ده چي د هغه ورځو د روژو د فدیې وصیت وکړي چي په هغه کي د مرض څخه خلاصي په ترلاسه کولو سره صحت یاب سوی وو یا سفر په پوره کولو سره مقیم وو یا کوم عذر چي وو هغه زائل سوی وو.
که یو سپین ږیری د سفر په حالت کي مړ سي نو د هغه د خوا څخه د هغه د روژو فدیه

ورکول ضروري نه دي کوم چي په هغه کي مسافر وو ځکه چي یو بل شخص د سفر په حالت کي وفات سي نو دهغه لپاره د سفر روژې معاف کیږي همداسي د هغه لپاره هم د هغه ورځو روژې به معاف وي.

پر کوم سړي چي فدیه لازمه وي او هغه فدیه په ورکولو باندي قادره نه وي نو بیا اخري صورت دادی چي الله تعالی ته استغفار وکړي ناشوني نه ده چي ارحم الرحمین هغه معاف کړي.

**د فدیې اندازه** : د هري ورځي روژې په بدله کي د فدیې اندازه نیمی کاسه یعني یو کلو شپږ سوه درو دیرش گرامه غنم یا د دې قیمت دی فدیه او په کفاره کي چي څرنگه تملیک مالک یا خاوند کیدل جائز دی همداسي اباحت طعام د ډوډی مباح جائز کیدل هم جائز دي یعني که غواړي نو د هري ورځي په بدله کي دي پورته بالا مقدار یو محتاج ته ورکول او که غواړي نو هره ورځ دي دواړه وخته په وږي په ماړه نس ډوډی باندي وخوري دواړه صورتونه جائز دي د صدقه فطر پر خلاف چي په هغه کي د زکوة په توگه مالک کیدل ضروري دی په دې باره کي په دې وصول پوه سی چي صدقه لفظ اطعام یا ډوډی په خوړلو سره مشروع دی په دې کي تملیک او اباحت دواړه جائز دي او کومه صدقه چي په لفظ ایتا یا ادا سره مشروع دی په هغه کي تملیک شرط او ضروري دی اباحت قطعاً جائز نه دی.

**قضا روژې** : قضا روژې پرله پسې نیول شرط او ضروري نه دي بیا هم مستحب دي چي د کوم سړي عذر زائل سي هغه دي سمدستي روژې پیل کړي ځکه چي په دې کي ځنډ مناسب نه دی، هسي خو مسئله داده کله چي وغواړي وه دي یې نیسي د لمانځه په ډول په دې کي ترتیب فرض نه دی.

دلته په دې خبره هم پوهیدل پکار دي چي په شریعت کي دیارلس ډوله روژې دي په هغه کي اوه ډوله روژې خو هغه دي چي علی الاتصال پرله پسې نیول کیږي.

اول د روژې د میاشتي روژې، دوهم د کفارې ظهار روژې، دریم د قتل د کفارې روژې، څلورم د کفاره یمین روژې، پنځم په روژې کي قصدا د ماتي سوي روژو د کفارې روژې، شپږم د نذر معین روژې، اووم د واجب اعتکاف روژې.

او شپږ ډوله روژې داسي دي چي په هغه کي اختیار دی که څه هم پرله پسې یې ونیسي که یې جلا جلا ونیسي،

اول نفل روژې، دوهم د روژې د میاشتي قضائي روژې، دریم د متعه روژې، څلورم د فدیه حلق روژې، پنځم د اختر د جزاء روژې، شپږم د نذر معین روژې.

صحیح دادی چي نفل روژې هم بغیر د څه عذره ماتول جائز نه دي هو دومره خبره ده چې نفل روژه د شروع کولو وروسته واجب کیږي که هغه په هر حالت کي هم ماته کړه سي نو د هغه قضاء ضروري کیږي هو پنځه ورځي داسي دي که په هغه کي نفل روژې د شروع کولو وروسته ماتي کړه سي نو قضاء واجب کیږي دوې ورځي د کوچني او لوی اخترو او درې ورځي د تشریق د ذي قعده یوولس دوولس دیارلس تاریخ دی په دې ورځو کي روژه نیول منعه دیسس په دې ورځو کي چي روژه د شروع څخه نه واجب کیږي نو د هغه پر ماتولو قضاء نه واجب کیږي.

که یو سړی د دې پنځو ورځو د روژو نذر ومني یا د پوره کال د روژو نذر ومني نو په دې دواړو صورتونو کي په دې ورځ کي دي روژه نه نیسي بلکه په نورو ورځو کي دې د ورځو په بدله کي دي روژې ونیسي.

په اخر کي په یوه مسئله هم پوه سی چي کله په کوچني کي د روژې نیولو طاقت راسي نو هغه ته دي د روژو نیولو لپاره وویل سي او کله چي هغه د لسو کالو سي نو د روژې نه نیولو په صورت کي دي پر هغه سختي وکړه سي او هغه دي په روژو نیولو باندي مجبوره کړه سي څرنګه چي د لمانځه په باره کي حکم دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### روژه پاکه ساتئ

﴿۱۹۰۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالْعَمَلَ بِهِ فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ فِي أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي درواغ ویل او خراب کار پرېښودل نه پرېږدي (په روژه کي) نو الله ته ددې ضرورت نسته چي څوک خپل خوراک او څښاک پرېږدي. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱۶\۱۴، رقم: ۱۹۰۳.

**تشریح**: (دلغو او باطل کلام) څخه مراد هغه خبري دي چي د هغه د ژبي څخه د کښلو په صورت کي ګناه لازمیږي لکه کفریات ویل، درواغ ویل، غیبت کول، بهتان ویل، که څه هم د زنا بهتان وي یا څه بله بدي، او لعنت کول یا د دې دول هغه خبري چي د هغه څخه ځان ساتل

ضروري دي ، د حديث حاصل دا سو کوم روژاتي که د پالتو او لغو باطل څخه خپل ځان ونه ژغوري او نه يې د بدو افعالو څخه ځان وساتی نو دا روژه د الله تعالی په دربار کي هيڅ قدر نه لري صرف روژاتې ته لوږه او تنده پاته سوه .

په دې خبره په زيات وضاحت سره داسي پوه سی چي د روژې اصل مقصد څه دی ؟ دا چي انسان خپل نفساني خواهشات کم کړي او خپل نفس اماره د الله تعالی د رضا تابع جوړ کړي کله چي دا مقصد حاصل نه سو چي نه روژه دار لغو خبري پريښودلې او نه يې خراب کارونه پريښوده چي د روژو خلاف دي نو الله تعالی ته څه ضرورت دی چي هغه روژه دار يوازي د لوږي تندي څه پرواه وکړي يا هغه خوا ته د مهربانی نظر وکړي .

ګويا د پروانه کولو څخه مراد دادی هغه خوا ته توجه نه کول او د هغه روژه د قبوليت شرف سره نه نازول او ظاهره ده چي داسي روژه دار ته دي الله تعالی توجه ولي ورکړي دې نادان بيشکه هغه شيان خو پريښودل چي د روژې په مياشت کي د هغه د پريښولو حکم دي که څه هم هغه په نورو ورځو کي مباح دی مثلا خوراک څښاک ، جماع او داسي نور خو هغه شيان يې اختيار کړه چي هغه روژه څه چي په هيڅ حالت کي هم اختيارول يې نه دي پکار او هغه حرام دي .

مشائخ ليکلي دي چي د روژې درې ډوله دي يوه روژه خو د عوام ده چي په هغه کي د خوراک ، څښاک او جماع څخه خپل ځان منع کول دوهمه روژه د خواص ده چي په هغه کي ټول اندامونه او حسيات د حرام او مکروه خواهشاتو او لذاتو څخه ساتل کيږي بلکه د داسي مباحو شيانو څخه هم پرهيز وي چي د د نفس ماتولو خلاف دي او دريمه روژه د اخص الخواص ده چي په هغه کي پرته د حق څخه د هر شي څخه کليه پرهيز وي بلکه د ناحق خوا ته توجه هم نه وي .

## د ښځي څخه مچه اخيستل

﴿۱۹۰۳﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُ وَيُبَاشِرُ وَهُوَ صَائِمٌ وَكَانَ أَمْلَكَكُمْ لِإِرْبِهِ . متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د روژې په حالت کي مچه اخيستل او مباشرت به يې کوئ (يعني بدن به يې د بدن سره يو ځای کوئ) او رسول الله ﷺ پر خپل بدن به واک لرلو کي تر تاسو خلکو ډير توانا وو . بخاري او مسلم

**تخريج :** صحيح البخاري (فتح الباري) ۴\۱۴۹، رقم: ۱۹۲۷، ومسلم ۲\۷۷۷، رقم: ۶۵- ۱۱۰۶.

**تشریح**: د حاجت څخه مراد شهوت دی مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د نورو خلکو په نسبت خپل خواهشات او پر شهوت باندي ډير زيات واک درلودلو باوجود چي د خپلو بيبيانو څخه به يې مچه اخستل او ځان ته به يې رانژدې کولې خو د صحبت څخه به يې ځان ساتی ظاهره ده چي د نورو خلکو په داسي صورت کي پر خپل شهوت باندي واک پيدا کول ډېر سخت دي.

په پورته ذکر سوي مسئلې کي د اهل علم په نزد اختلاف دی د حنفيه مذهب دادی چي مچه اخستل، مساس کول او د ښځي د بدن سره ځان مښلول د روژه دار لپاره مکروه کار دی کله چي په داسي صورت کي په جماع کي مصروفه کيدل يا د انزال کيدو بيره وي او که دا بيره نه وي نو مکروه نه دی.

## په جنابت کي د روژې نيت جائز دی

﴿۱۹۰۴﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ فِي رَمَضَانَ وَهُوَ جُنُبٌ مِنْ غَيْرِ حُلُمٍ فَيَغْتَسِلُ وَيَصُومُ. متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي په روژې کي به کله داسي وسول چي پر رسول الله ﷺ به د جنابت په حالت کي سهار سو، او دا جنابت به د احتلام له کبله نه وو، (بلکه د کوروالی له کبله به وو) نو رسول الله ﷺ به غسل کوئ او روژه به يې نيول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴/ ۱۵۳، رقم: ۱۹۳۰، ومسلم ۲/ ۷۸۰، رقم: ۷۶ - ۱۱۰۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ ته به د احتلام په وجه نه بلکه د جماع (کوروالی) په وجه د غسل کولو ضرورت کيدی او د رسول الله ﷺ به په دغه حالت کي روژه وه او بيا به يې غسل وکړی، ددې څخه معلومه سوه چي د جنابت په حالت کي د سهار راختلو څخه مخکي غسل کول ضروري نه دی بلکه په داسي حالت کي د روژې نيت کيدای سي او بيا سهار په پورته کېدو سره په غسل کولو کي هيڅ پرواه نسته او د جماع په وجه ناپاکي اختياري وي نو کله چي په داسي صورت کي بېله غسل کولو روژه نيول جائز دي نو د احتلام په سبب د ناپاکۍ په حالت کي روژه نيول خو په اولی درجه صحيح دي، بلکه د روژې په حالت کي که احتلام وسي نو پر روژې باندي څه اثر نه لويږي. من غير حلم: او دا جنابت به د احتلام په وجه نه وو ددې په خاصه توګه ذکر ځکه سوی دی چي انبياء عليهم السلام ته به احتلام نه کيدی ځکه چي دا په خوب کي د شيطان د راتلو اثر وي او دا ظاهره ده چي هغوی ددې څخه خوندي دي.

## په روژه کي وينه کښل

﴿۱۹۰۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَاحْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ . متفق عليه

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د احرام او روژې په حالت کي ښکر وهئ . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\ ۱۷۴، رقم: ۱۹۳۸، ومسلم ۱۲\ ۸۶۲، رقم: ۸۷- ۱۲۰۲.

**تشريح**: شيخ جزري رحمة الله عليه فرمايي چي د ابن عباس ﷛ مراد دادی چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت کي روژه نيولې وه او هغه وخت يې وينه وکښل او د ابن عباس ﷛ دا مراد د ابوداؤد د يوه بل روايت په رڼا کي اخيستل سوی دی چي د هغه الفاظ دادي :
انه صلی الله عليه وسلم احتجم هو صائما محرما : يعني نبي کريم ﷺ هغه وخت وينه وکښل کله چي د احرام په حالت کي او روژه دار وو .
په هر حال مظهري رحمة الله عليه فرمايي چي د احرام په حالت کي وينه کښل جائز دي په شرط ددې چي ويښته مات نسي همداسي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه ، امام شافعي رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه په اتفاق سره دا مذهب دی چي روژه نيونکي ته بېله کراهته وينه کښل رواه دي مګر امام محمد رحمة الله عليه فرمايي چي د وينه کښونکي او د چا څخه چي وينه کښل کيږي د دواړو روژه باطله کيږي مګر کفاره نه واجبيږي .

## په هيره خوراک او چښاک کول

﴿۱۹۰۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَسِيَ وَهُوَ صَائِمٌ فَأَكَلَ وَشَرِبَ فَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ فَإِنَّمَا أَطْعَمَهُ اللّٰهُ وَسَقَاهُ . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د روژې په حالت کي په هيره سره خوراک او چښاک وکړي نو هغه دي خپله روژه پوره کړي ځکه چي څه هغه په هيره سره خوړلي او چښلي دي هغه الله تعالی په خوړلي او چښلي دي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\ ۱۵۵، رقم: ۱۹۳۳، رقم: ۶۶۶۹، ومسلم ۱۲\ ۸۰۹، رقم: ۱۷۱- ۱۱۵۵.

**تشريح** : دا حكم على الاطلاق د هري روژې لپاره دى كه فرضي روژه وي يا نفلي او داسي نور، كه يو روژه دار په هيره يو شى وخوري يا وڅښي نو د هغه روژه نه باطليږي ، د ټولو امامانو مذهب دادى ، البته امام مالک رحمة الله عليه فرمايي كه چيري دا صورت د رمضان په روژو كي پيښ سي نو د هغه قضا ضروري ده .
په هدايه كي ليكلي دي چي كله د خوراک او څښاک په باره كي دا حكم ثابت سو نو د جماع په باره كي به هم دا حكم وي يعني كه يو سړى د روژې په حالت كي په هيره سره جماع وكړي نو د هغه پر روژه به څه تاثير نه لويږي .

## د روژې كفاره

﴿۱۹۰۷﴾ : وَعَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَلَكْتُ قَالَ مَا لَكَ قَالَ وَقَعْتُ عَلَى امْرَأَتِي وَأَنَا

يو سړى حاضر سو او عرض يې وكړ اې دالله رسوله ! زه هلاک سوم ، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه څه وسول؟ هغه وويل : ما د روژې په حالت كي د خپلي ښځي سره كوروالي وكړه ،

صَائِمٌ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ هَلْ تَجِدُ رَقَبَةً تُعْتِقُهَا قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايا ستا سره يو غلام سته چي هغه آزاد كړې ؟ هغه وويل :نه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ايا

تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا فَقَالَ فَهَلْ تَجِدُ إِطْعَامَ

ته دومره توان لرې چي پرله پسې دوې مياشتي روژې ونيسئ ؟ هغه وويل : نه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايا ته شپيتو مسكينانو ته ډوډۍ وركولاى سې؟

سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ لَا قَالَ فَمَكَثَ النَّبِيُّ ﷺ فَبَيْنَا نَحْنُ عَلَى ذٰلِكَ أُتِيَ النَّبِيُّ

هغه وويل : نه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : كښينه، او رسول الله ﷺ پته خوله كښېنستئ ،لكه د يو چا انتظار چي كوئ ، غرض دا چي موږ همداسي ناست وو چي رسول الله ﷺ ته

ﷺ بِعَرَقٍ فِيهَا تَمْرٌ وَالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ الضحم قَالَ أَيْنَ السَّائِلُ فَقَالَ أَنَا

يو عرق (دخرماوو کځوړه) راوړل سوه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: پوښتنه کوونکی چیري دئ؟ هغه وویل حاضریم،

قَالَ خُذْهَا فَتَصَدَّقْ بِهِ فَقَالَ الرَّجُلُ أَعَلَى أَفْقَرَ مِنِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ فَوَاللَّهِ مَا

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: دا واخله او خیرات یې کړه، هغه وویل: اې دالله رسوله! ایا پر هغه چا یې خیرات کړم چي تر زما زیات اړ وي؟ قسم په خدای!

بَيْنَ لَابَتَيْهَا يُرِيدُ الْحَرَّتَيْنِ أَهْلُ بَيْتٍ أَفْقَرُ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي فَضَحِكَ النَّبِيُّ

د مدینې په دواړو لورو کي په هیڅ کور کي زما تر کورنۍ زیاته اړ نسته، د دې په اورېدو سره رسول الله ﷺ ته خندا ورغلل

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ ثُمَّ قَالَ أَطْعِمْهُ أَهْلَكَ. متفق عليه

تر دې چي د رسول الله ﷺ مخکي غاښونه مبارک ښکاره سول، بیا یې وفرمایل: ښه دئ په خپل کورنۍ یې وخوره. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۶۳، رقم: ۱۹۳۶، ومسلم ۲\۷۸۱، رقم: ۱۸۱– ۱۱۱۱.

**تشريح**: کوم سړی چي د رمضان روژه قصدا ماته کړي که په خوراک، څښاک او یا جماع وغیره سره وي نو پر هغه کفاره واجبېږي او د کفارې ترتیب هم هغه دی کوم چي په پورتني حدیث کي ذکر سوی دی یعني یو غلام آزاد کړي او یا دوې میاشتي پرله پسې روژې ونیسي او که دا یې هم په وس نه وي نو آخري درجه داده چي شپیتو مسکینانو ته ډوډۍ ورکړي او په دې کي اختیار دی چي هر مسکین ته اومه د خوراک شیان ورکړي یا پاخه شیان ورکړي، په دې صورت کي هر مسکین ته پاو کم دوه سیره غنم یا درې نیم سیره اوربشي ورکړل سي که پاخه وي یا اومه، په دې صورت کي هغه شپیتو مسکینانو ته په یوه ورځ دواړه وخته په ماړه نس ډوډۍ ورکول کېږي.

خپل کورنۍ ته په کفاره ورکولو سره کفاره نه ادا کېږي که هغه د اصولو څخه وي (یعني پلار، نیکه او داسي نور) او که د فروع څخه وي (یعني زوی، لمسی او داسي نور).

او کوم چي د حديث تعلق دی نو د هغه ښځه خپل کورنۍ ته د کفارې ورکولو جواز ثابتیږي ، په دې اړه د علماؤ اختلافي قولونه دي چي آيا د هغه سړي د ذمې ښځه کفاره ادا سوه که يا؟ د اکثرو علماؤ دا رايه ده چي کفاره ادا سوه او دا حکم يوازي د هغه سړي سره خاص دی چي رسول الله ﷺ هغه ته په خاصه توګه اجازه ورکړې وه چي خرماوي چي د کفارې په توګه د هغه د لوري ورکول کيږي هغه په خپل کورنۍ باندي وخوري دا يو خاص معامله ده ځکه د بل چا لپاره دا جائز نه دي.

ځيني حضرات دا وايي چي هغه وخت د هغه د ذمې ښځه کفاره ادا سوې نه وه بلکه د هغه پر ذمه پاته وه او ددې وجه دا بيانوي چي د کفارې ادا کول بالفعل هغه وخت ضروري وي کله چي کفاره ورکونکی سره د هغه او ﺑﻼ هغه د کورنۍ د خوراک ښځه پرته دومره مال موجود وي چي د کفارې په توګه ورکړل سي کنه نو په دريم صورت کي هغه کفاره د هغه پر ذمه پاته وي چي کله د هغه توان پيدا کړي نو کفاره دي ادا کړي.

سلمه بن صخر الانصاري البياضي ډير زيات اړ وو ځکه رسول الله ﷺ هغه ته اجازه ورکړه چي هغه وخت هغه خرماوي خپل کورنۍ باندي وخوري مګر وروسته چي توان پيدا کړي نو کفاره دي ادا کړي.

د ځينو حضراتو وينا داده چي مخکي دا حکم وو چي کفاره به خپل کورنۍ ته هم ورکول کيدل ، رسول الله ﷺ سلمه ﷺ ته وويل چي هغه خرماوي په خپل کورنۍ باندي وخوري مګر وروسته دا حکم منسوخ سو ځکه اوس مسئله داده چي هيڅکله دي کفاره په خپل کورنۍ باندي نه خوري.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د خپلي بي بي ښځه مچه اخيستل

﴿۱۹۰۸﴾: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُقَبِّلُهَا وَهُوَ صَائِمٌ وَيَمُصُّ لِسَانَهَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت عائشې (رض) ښځه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د روژې په حالت د هغې ښځه مچه اخيستل او د هغې ژبه به يې ژوول. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲/ ۷۸۰، رقم: ۲۳۸٦.

**تشریح** : که څه هم دا حدیث ضعیف دی مګر د ټولو امامانو په نزد د بل چا (یعني خپل بي بي) په ناوړه لګېدو سره روژه ماتیږي ځکه که چیري دا حدیث د احتمال په درجه هم ومنل سي نو دا به وویل سي چي رسول الله ﷺ د بي بي عائشې رضي الله عنها ژبه په خپل مبارکه خوله کي په اخیستو سره به یې ناوړي د خولې څخه دباندي نه غورځولې یا هغه به یې نه تېرولې.

## په روژه کي د ښځي سره یو ځای والی

﴿۱۹۰۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه

الْمُبَاشَرَةِ لِلصَّائِمِ فَرَخَّصَ لَهُ وَأَتَاهُ آخَرُ فَسَأَلَهُ فَنَهَاهُ فَإِذَا الَّذِي رَخَّصَ لَهُ شَيْخٌ وَالَّذِي نَهَاهُ شَابٌّ. رواه ابوداؤد.

چي هغه د روژي په حالت کي د خپل بي بي سره ګډون کوي، رسول الله ﷺ هغه ته اجازه ورکړه، یو بل سړی راغلئ هغه هم د اسي سوال وکړ، رسول الله ﷺ هغه منع کړ، چا ته چي یې اجازه ورکړه هغه سپین ږیری وو او څوک چي یې منع کړ هغه ځوان وو. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\۷۸۰، رقم: ۲۳۸۷.

**تشریح** : په ضعیف توب کي د سړي جذبات زیات نه پاریږي او د هغه په اره دا بېره نه وي چي هغه به صرف د مباشرت په نتیجه کي د جماع خواهش په واک کي نه کړل سي ځکه رسول الله ﷺ سپین ږیري ته خو اجازه ورکړل د دې پر خلاف د ځوان سړي جذبات ژر پاریږي او د هغه په باره کي دا بیره هم وي چي هغه د مباشرت په نتیجه کي خپل جذبات په واک کي نه درلودو سره او جماع به وکړي ځکه رسول الله ﷺ هغه د روژې په حالت کي د مباشرت څخه منع کړ او س په دې باره کي اختلاف دی ځیني حضرات وایي چي دا نهي تحریمي ده او حال دا چي ځیني حضرات وایي چي دا نهي تنزیهي ده.

## په روژه کي قی وهل

﴿۱۹۱۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ

د حضرت ابوهریرهٔ رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: پر چا چي قی غلبه وکړي (یعني په خپله قی ورسي) د روژې په حالت کي

فَلَيْسَ عَلَيْهِ قَضَاءٌ وَمَنْ اسْتَقَاءَ عَمْدًا فَلْيَقْضِ . رواه الترمذي وا بوداؤد

نو پر هغه قضا واجب نه ده او چي په قصد سره قی وکړي پر هغه قضا واجب ده . ترمذي، ابوداؤد

وابن ماجه والدارمي ، وقال الترمذي هذا حديث غريب لا نعرفه الا

او ابن ماجه او دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ موږ د

من حديث عيسي ابن يونس و قال محمد يعني البخاري الا اراه محفوظا

عيسي بن يونس د اسناد څخه دا روايت پيژنو ، امام بخاري فرمايلي دي زه دا حديث غير محفوظ ګڼم .

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۷۷٦، رقم: ۲۳۸۰، والترمذي ۳\ ۹۸، رقم: ۷۲۰، وابن ماجه ۱\ ۵۳٦، رقم: ۱٦۷٦ والدارمي ۲\ ۲۴، رقم: ۱۷۲۹.

**تشريح** : (ومن استقاء عمدا) او چا چي په قصد سره قی وکړ په دې کي د قصد قيد لګولو سره ګويا د هيري استثنی فرمايل سوې ده يعني که روژه دار په داسي حالت کي قصدا قی وکړي چي هغه ته خپل روژه ياد وي نو د هغه روژه نه پاتيږي او پر هغه قضا واجبيږي ددې پر خلاف که روژه دار قصدا قی وکړي مګر هغه ته ياد نه وي چي زما روژه ده نو پر هغه قضا نه واجبيږي ، د قي په اړه پوره وضاحت د باب په پيل کي تير سوی دی دا مسئله په تفصيل سره هلته کتلای سئ .

﴿۱۹۱۱﴾: وَعَنْ مَعْدَانَ بْنِ طَلْحَةَ اَنَّ اَبَا الدَّرْدَاءَ حَدَّثَهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د معدان بن طلحهؒ څخه روايت دئ چي ابو درداء دا حديث بيان کړئ دي چي رسول اللهﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاءَ فَأَفْطَرَ قَالَ فَلَقِيتُ ثَوْبَانَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَقُلْتُ اَنَّ

قی وکړ او ددې وروسته يې روژه ماته کړه ، ددې وروسته معدان د دمشق په مسجد کي د ثوبان سره يو ځای سو او هغه ته يې وويل :

اَبَاالدَّرْدَاءَ حَدَّثَنِيْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاءَ فَافْطَرَ قَالَ

ابو درداء ماته دا حديث بيان کړئ دي چي رسول اللهﷺ قی وکړ بيا يې روژه ماته کړه ، ثوبان وويل

صَدَقَ أَنَا صَبَبْتُ لَهُ وَضُوءَهُ. رواه ابوداؤد والترمذي و الدارمي

ابو درداء رښتیا ویلي دي او ما د رسول الله ﷺ د اودا سه لپاره لوښی د اوبو څخه ډک کړی وو. ترمذي، ابوداؤد، او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۷۷۷، رقم: ۲۳۸۱، والترمذي ۱\۱۴۲، رقم: ۸۷، والدارمي ۲\۲۴، رقم: ۱۷۲۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د يو عذر په وجه خپل نفلي روژه په قصد قی کولو سره ماته کړي وه که هغه عذر د ناروغۍ وو يا د ضعف، په هر حال د عذر قيد ځکه لګول سوی دی چي رسول الله ﷺ به بېله عذره نفلي روژه هم نه ماتول ځکه چي د الله تعالی ارشاد دی: (لاتبطلوا اعمالكم) يعني خپل اعمال مه باطلوئ.

د حديث آخري الفاظ (و انا صببت له وضوءه) څخه امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه او داسي نورو دا مسئله اخذ کړې ده چي په قي سره اودس ماتيږي او امام شافعي رحمة الله عليه او نورو علماء په قي سره د اودس ماتېدو قائل نه دي هغوی فرمايي چي دلته اودس کولو څخه خوله پرېولل او مخ پرېولل مراد دي.

## په روژه کي مسواک وهل

﴿۱۹۱۲﴾: وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَا أُحْصِي يَتَسَوَّكُ وَهُوَ صَائِمٌ. رواه الترمذي و ابوداؤد،

د حضرت عامر بن ربيعة ﷺ څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ د روژې په حالت کي په مسواک وهلو دومره واره ليدلی دئ چي زه يې شميرلای نه سم. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۲\۷۶۸، رقم: ۲۳۶۴، والترمذي ۳\۱۰۴، رقم: ۷۲۵.

**تشريح**: دا حديث دډ خبري دليل دی چي روژه دار ته هر ډول مسواک وهل جائز دی په دې باره کي دغه حديث څخه پرته نور هم ډير حديثونه منقول دي چي په مرقات کي په تفصيل سره ذکر سوي دي.

د روژې په حالت کي د مسواک وهلو په باره کي د علماؤ اختلافي اقوال هم سته امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه خو فرمايي چي د روژې په حالت کي هر ډول مسواک وهل جائز دی که هغه شين يا تازه وي يا په اوبو کي لوند سوی وی همداسي هر

وخت مسواک وهلای سي که د لمر د زوال څخه مخکي وخت وي یا د لمر د زوال څخه وروسته وخت وي، د امام ابویوسف رحمة الله علیه قول دادی چي روژه دار لپاره تازه او لوند مسواک وهل مکروه دی، امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي چي د لمر د زوال څخه وروسته مسواک وهل مکروه دی.

## په روژه کي په سترګو کي رانجه اچول

﴿۱۹۱۳﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړی نبي کریم ﷺ ته راغلی

قَالَ اشْتَكَتْ عَيْنِي أَفَأَكْتَحِلُ وَأَنَا صَائِمٌ قَالَ نَعَمْ. رواه الترمذي وقال ليس اسناده بالقوي و ابو عائلة الراوي يضعف.

او عرض یې وکړ چي زما سترګي خوږېږي ایا د روژې په حالت کي رانجه پکښي اچوم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هو، ترمذي وویل ددې اسناد قوي نه دي د ابوعاتکه راوي کمزورتیا بیان سوې ده.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۱۰۵، رقم:: ۷۲۶.

**تشريح**: دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د روژې په حالت کي رانجه لګول بېله کراهته جائز دي، د اکثرو علماؤ دا مذهب دی، امام ابوحنیفة، او امام شافعي رحمة الله علیهما فرمایي چي د روژې په حالت کي رانجه لګول مکروه نه دي که څه هم د هغه خوند په حلق کي محسوس سي، او د امام احمد، اسحاق او سفیان رحمة الله علیهم په نزد مکروه دي، امام مالک رحمة الله علیه څخه ځینو خلکو د کراهت قول نقل کړی دی او ځینو خلکو د عدم کراهت، دا حدیث که څه هم ضعیف دی مګر په دې باره کي نور حدیثونه هم نقل سوي دي ځکه نو هغه ټول په یو ځای کېدو سره قابل استناد او استدلال جوړېږي.

## پر سر اوبه تویول

﴿۱۹۱۴﴾: وَعَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ

د نبي کریم ﷺ د ځینو صحابه کرامو څخه روایت دئ چي هغوی ولیدئ

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَرْجِ يَصُبُّ الْمَاءَ عَلَى رَأْسِهِ وَهُوَصَائِمٌ مِنَ الْعَطَشِ أَوْ مِنَ الْحَرِّ . رواه مالك و ابوداؤد .

رسول الله ﷺ په عرج نامي ځای کي چي د روژې په حالت کي د سختي تندي يا زياتي ګرمی له کبله يې پر سر مبارک اوبه اچولې . مالک ،ابوداؤد

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۲۹۴، رقم: ۲۲، وابوداؤد ۲\ ۷۶۹، رقم: ۲۳۶۵.

**تشريح** : عرج د مکې او مدينې په مينځ کي د يو ځای نوم دی ، ابن مالک رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث ددې خبري دليل دی چي د روژې په حالت کي پر خپل سر اوبه اچول يا په اوبو کي دننه کښېنستل مکروه نه دي .

په نورالايضاح کي چي د فقه حنفي يو معتبر کتاب دی ليکلي دي چي د مفتي د قول سره سم صحيح مسئله داده چي د روژې په حالت کي يخ والی تر لاسه کول او د ګرمی ددفع کولو لپاره لمبېدل او پر خپل بدن باندي په اوبو لوند ټوکر تېرول مکروه نه دي او په درمختار کي هم دا منقول دي .

## په وينه کښلو سره روژه ماتيږي

﴿۱۹۱۵﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ اَوْسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتٰى رَجُلاً

د حضرت شداد بن اوس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ بقيع ته تشريف يوړئ

بِالْبَقِيعِ وَهُوَ يَحْتَجِمُ وَهُوَ آخِذٌ بِيَدَيَّ لِثَمَانِيَ عَشْرَةَ خَلَتْ مِنْ رَمَضَانَ

او هلته يې يو سړی وليدئ چي ښکر وهي او د روژې اتلسمه نيټه ده رسول الله ﷺ زما لاس نيولی وو ، رسول الله ﷺ چي هغه ښکر وهونکی وليدئ

فَقَالَ أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ . رواه ابوداؤد وابن ماجة والدارمي قال

نو وه يې فرمايل : ښکر وهونکی او د چا څخه چي د ښکر له ذريعه وينه کښل کيږي د دواړو روژه ماته ده . ابوداؤد ، ابن ماجه، دارمي،

الشيخ الامام محي السنة رحمه الله وتاوله بعض من رخص في الحجامة

امام محي السنة وفرمايل د ښكر په ذريعه وينه كښنونكي په اړه د روژې ماتولو اجازه وركونكو تاويل كړی دئ . يعني د چا ځخه چې وينه وكښل سي د هغه د كمزوري له كبله او

**اي تعرضاً للافطار المحجوم للضعف والحاجم لانه لا يامن من ان يصل شئ الى جوفه بمص الملازم .**

د ښكر كونكي له دې كبله چې د روژې ماتولو ته نژدې دئ كله چې هغه ښكر راكاږي نو د هغه نس ته خامخا څه ځي .

**تخريج** : سنن ابي داود ۲\ ۷۷۲، رقم: ۲۳۶۹، وابن ماجه ۱\ ۵۳۷، رقم: ۱۶۸۱، والدارمي ۲\ ۲۵، رقم: ۱۷۳۰.

**د لغاتو حل**: الملازِم: هي قوارير الحجامين: (د وينه كښنونكو بوتلان).

**تشريح** : په (بعض مَن رخص) كي د بعض څخه مُراد جمهور يعني اكثر علماء دي او د اكثر علماؤ دا مذهب دی چي د روژې په حالت كي په وينه كښلو كي څه پرواه نسته ځكه چي د ابن عباس رضي الله عنه صحيح روايت منقول دی چي رسول الله ﷺ د احرام او روژې په حالت كي وينه كښل ، د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه ، امام شافعي رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه دا مذهب دی ، ددغه حضراتو د لوري دغه حديث هغه مراد اخيستل كيږي چي امام محي السنة نقل كړی دی چي روژه ماتېدو ته نژدې كيږي يعني په ډک ښكر راكښلو سره وينه زياته وځي چي د هغه په وجه ضعف سستي او ناتواني دومره زياته كيږي چي په دې باره كي دا خوف پيدا كيږي چي هغه د خپل ځان ساتلو لپاره روژه ماته كړي او د ښكر راكښونكي په باره كي دا يېره وي چي د ښكر په خولې سره راكشولو كي كيدای سي چي ددغه عمل په وخت كي د ويني يو څاڅكی د هغه نس ته ورسيږي .

ځيني حضرات وايي چي په ډک ښكر وينه كښلو سره روژه نه ماتيږي البته د ضعف كېدو په وجه د ځان د هلاكت يېري سره مكروه كيږي ، د ځينو حضراتو قول دادی چي دغه ارشاد په خاصه توګه د هغه دوو كسانو لپاره دی چي هغوی په ښكر سره وينه كاږي او د راكښلو په وخت كي په غيبت كي اخته وه نو هغه دواړه په غيبت كي د بوخت كېدو په وجه رسول الله ﷺ د تنبيه په توګه وفرمايل چي د دوی دواړو روژه ماته سوې ده ، ځيني علماء دا هم وايي چي دا حكم مخكي وو او بيا منسوخ سو .

## په قصد سره روژه نه نیول

﴿۱۹۱۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَفْطَرَ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په روژه کي

يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَلَا مَرَضٍ لَمْ يَقْضِ عَنْهُ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ

پرته د اجازې ، عذر يا ناروغۍ څخه روژه ونه نيسي نو د هغه ټول عمر روژه نيولو سره د هغې

وَإِنْ صَامَهُ . رواه احمد والترمذي و ابوداؤد وابن ماجة والدارمي والبخاري في ترجمة باب و قال الترمذي سمعت محمدا يعني البخاري يقول ابو المطوس الراوي لا اعرف له غير هذا الحديث .

بدله نه سي پوره كيدلای . احمد ، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجة، دارمي، بخاري ترمذي ويلي دي ما د امام بخاري څخه واوريدل چي هغه ويل : د ابو المطوس څخه پرته ما ددې حديث هيڅ بل روايت نه دي تر لاسه کړئ .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۳۸٦، وابوداؤد ۲\۷۸۸، رقم: ۲۳۹٦، والترمذي ۳\۱۰۱، رقم: ۷۲۳، وابن ماجه ۱\۵۳۵، رقم: ۱٦۷۲، والبخاري ۴\۱٦۱، رقم: ۱۹۳۵ والدارمي ۲\۱۸، رقم: ۱۷۱۴.

**تشريح** : بيله رخصته په قصد سره روژه نه نيولو څخه مراد دادی چي شريعت د روژې نه نيولو لپاره د سفر په حالت کي چي کوم رخصت يعني اجازه ورکړې ده ددې څخه پرته هغه حالت هر کله چي روژه نيول ضروري دي په قصد سره روژه ونه نيسي په دې باره کي د باب په پيل کي تفصيلي بيان سوی دی، د حديث آخري الفاظو : (وان صامه) د مخکي جملې د تاکيد په توګه ارشاد فرمايل سوی دی .

دا حديث د رمضان د روژې اهميت او عظمت د اظهار لپاره د مبالغې په توګه فرمايل سوی دی ، د حديث مراد دادی چي د فرض روژې ثواب دومره زيات دی چي هغه په نفلي روژو سره نسي اداء کيدای که څه هم يو څوک ټول عمر روژې ونيسي ، په دې باره کي تر څو پوري چي د مسئلې تعلق دی علماء ليکي که يو سړی د رمضان يو روژه ونه نيسي بيا وروسته قضائي روژې ونيسي نو د هغه د ذمې څخه فرض ادا سول همدا اسي که يو سړی د رمضان يو روژه

قصدا ماته کړي او بیا د هغې د کفارې په توګه دوې میاشتې روژې ونیسي نو هغه بري الذمه کیږي.

علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمايي چې د حدیث ظاهري مفهوم دادی که یو سړی د رمضان روژه ونه نیسي او بیا د هغه په بدله کې ټول عمر روژه ونیسي نو هغه بري الذمه کیږي نه، د حضرت علي رضی الله عنه او ابن مسعود رضی الله عنه دا مذهب وو، مګر اکثر صحابه او د علماؤ مذهب دادی چې د یوې روژې په بدل کې د دویمې ورځې روژه کیږي یعنې که په رمضان کې یوه ورځ روژه ونه نیسي او د هغه د قضا په توګه په یو بله ورځ روژه ونیسي نو فرض ادا کیږي که څه هم دا صورت وي چې د رمضان هغه روژه چې ده نه وه نیولې د ګرمۍ د یو سختۍ او یا د ورځې د لوی والي په وجه او د هغه د قضا په توګه په یخ کې او په کوچنۍ ورځې کې روژه ونیول سي، همداسې صحیح مسئله داده چې لمونځ هم د روژې په حکم کې دی که یو وخت لمونځ ونه کړي نو په دوهمه ورځ د هغه قضا کولو سره فرض ادا کیږي ځکه چې په دغه دواړو کې هیڅ فرق نسته بلکه د ټولو علماؤ په نزد لمونځ د روژې څخه غوره دی.

## بې ګټې روژه او عبادت

﴿۱۹۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمْ مِنْ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ډیر

صَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ إِلَّا الْجُوعُ وَكَمْ مِنْ قَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ قِيَامِهِ إِلَّا السَّهَرُ. رواه الدارمي و ذكر حديث لقيط بن صبرة في باب سنن الوضوء.

روژه نیونکي دي چې هغو ته د هغوی د روژو د تږې پرته نور څه په لاس نه ورځي او ډیر د شپې عبادت کونکي داسې دي چې هغوی ته د وېښ پاته کېدو څخه پرته نور څه په لاس نه ورځي. دارمي، او د لقیط بن صبرة حدیث په سنن الوضوء کې ذکر سوی دئ.

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\۳۹۰، رقم: ۲۷۲۰.

**تشریح**: مطلب دادی چې کوم څوک روژه ونیسي مګر د هغه په نیت کې اخلاص نه وي او نه هغه د دروغو، غیبت، بهتان او داسې نورو شیانو څخه پرهیز کوي نو د هغه روژه بېله روحه ده چې هغه وږی او تږی خو وي مګر هغه د روژې کمال او ثواب نه تر لاسه کیږي که څه هم د هغه د ذمې څخه فرض ساقط کیږي همداسې کوم سړی چې د شپې په عبادت کې بوخت وي او هغه ته

د قلب د حضورۍ او د نيت د صدق دولت ميسر نه وي يا د هغه عبادت ددنيا د گټي ، ريا لپاره وي نو هغه ته هيڅ ثواب نه تر لاسه کيږي او دا بالکل داسي دي لکه چي يو سړی بېله عذر نه په جماعت سره لمونځ کوي که څه هم د هغه ذمه خلاصيږي چي د هغه لمونځ قضا ضروري نه وي مگر د ثواب او دولت څخه محروم وي همداسي نور عبادات مثلا د حج، زکوة او داسي نورو مسئله هم داده، که د نيت اخلاص حاصل نه وي نو د مال ضائع کېدو او جسماني مشقت او محنت څخه پرته نور هيڅ په لاس نه راځي .

حاصل دا چي کوم عبادت وي که دنيت ، اخلاص، قلب حضورۍ او صرف د الله تعالیٰ د رضا او خوښۍ جذبه نه وي نو هغه بېله روح وي چي په هغه سره نه د قرب الهي سعادت ميسر کيږي او نه د اجر او ثواب دولت تر لاسه کيږي .

و ذکر حديث لقيط بن صبرة في باب سنن الوضوء، او د لقيط بن صبره روايت (کوم چي د مصابيح صاحب دلته نقل کړ په باب سنن الوضوء کي يې ذکر سوی دی) .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### روژه کله نه ماتيږي .

《١٩١٨》: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

ثَلَاثٌ لَا يُفْطِرْنَ الصَّائِمَ الْحِجَامَةُ وَالْقَيْءُ وَالِاحْتِلَامُ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غير محفوظ وعبدالرحمن بن زيد الراوي يضعف في الحديث

دري شيان دي چي د روژه دار روژه نه ماتوي : يو خو وينه کښل، دوهم قی چي خپله راسي، او دريم احتلام. ترمذي ، ترمذي ويلي دي چي دا حديث غير محفوظ دئ ددې يو راوي عبد الرحمن بن زيد چي په حديث کي کمزور گڼل سوی دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۹۷، رقم: ۷۱۹.

**تشريح**: دا روايت دار قطني ، بيهقي او ابوداؤد هم نقل کړی دی او د ابوداؤد د روايت په باره کي محدثينو ليکلي دي چي هغه اشبه بالصواب يعني صحت ته زيات نژدې دی .

﴿۱۹۱۹﴾: وَعَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ قَالَ سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَكُنْتُمْ

د حضرت ثابت البنانی رحمه الله څخه روایت دئ چي د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول ایا تاسو به

تَكْرَهُونَ الْحِجَامَةَ لِلصَّائِمِ عَلٰى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا إِلَّا مِنْ أَجْلِ الضَّعْفِ. رواه البخاري

د روژه دار لپاره په ښکر وینه کښل بد ګڼل؟ هغه وویل: یا، البته له دې کبله مو مکروه ګڼل چي په ښکر وهلو سره روژه دار کمزوری کیږي کیدای سي چي دده د کمزورتیا څخه روژه ماته سي. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\ ۱۷۴، رقم: ۱۹۴۰.

**تشریح**: یعني ددې اعتبار څخه وینه کښل به یې مکروه ګڼل چي په هغه سره ضعف او ناتواني لاحق کیږي چي د هغه په وجه پر روژه باندي اثر لویږي، نه په دې اعتبار چي د هغه په وجه روژه نه پاتیږي.

﴿۱۹۲۰﴾: وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَحْتَجِمُ وَهُوَ صَائِمٌ ثُمَّ تَرَكَهُ فَكَانَ يَحْتَجِمُ بِاللَّيْلِ.

د امام بخاري (رح) څخه دا روایت تعلیقا روایت دئ چي ابن عمر رضي الله عنه به د روژې په حالت کي ښکر لګول پرېښودئ، په شپه کي به یې بیا ښکر لګوئ.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\ ۱۷۳- ۱۷۴.

**تشریح**: ابن عمر رضي الله عنه د ورځي د روژې په حالت کي وینه کښل مګر د احتیاط په وجه یې ترک کړی وو یا دا چي د ضعف د بیري څخه یې پرهیز کوی.

امام بخاري رحمة الله علیه د ځینو حدیثو د سند څخه پرته ذکر کړی دی ځرنګه چي پورتني حدیث ته بغیر سند روایت نقل کولو ته بطریق تعلیق نقل کول ویل کیږي د پورته ذکر سوي روایت د نقل په اره مناسب دا وه چي د مشکوة مصنف د قاعدې او معمول سره سم مخکي خو وایي عن ابن عمر الخ، بیا وروسته رواه البخاري تعلیقا الفاظ نقل کوي.

## د ناړو په تیرولو سره

﴿۱۹۲۱﴾: وَعَنْ عَطَاءٍ قَالَ إِنْ تَمَضْمَضَ ثُمَّ أَفْرَغَ مَا فِي فِيهِ مِنَ الْمَاءِ لَا يَضِيرُهُ

د حضرت عطاء رحمه الله څخه روایت دئ که روژه دار په خوله اوبه ولغړوي او بیا اوبه د خولې څخه وباسي نو روژې ته څه تاوان نه رسیږي

إِنْ يَزْدَرِدْ رِيقَهُ وَمَاذَا بَقِيَ فِي فِيهِ وَلَا يَمْضَغُ الْعِلْكَ فَإِنِ ازْدَرَدَ رِيقَ الْعِلْكِ لَا

او څه چي په خوله کي دننه پاته سي د هغه په تیرېدو کي څه پروا نسته او روژه دار دي ژاولي نه ژویي او که د ژاولو ناړي تیري کړي نو د هغه روژه ماته سوه که یا،

أَقُولُ إِنَّهُ يُفْطِرُ وَلَكِنْ يُنْهَى عَنْهُ. رواه البخاري في ترجمة باب.

زه په دې اړه څه نه وایم مگر ددې څخه ځان منع کولای سي. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۵۹\۴،

**تشریح**: په لفظ د مابقي کي حرف د ما موصوله دی او ددې عطف لفظ ریقه باندي دی ددې پوره جملې مطلب دادی که یو روژه دار د خولې پریوللو څخه وروسته خپل ناوړي یا د اوبو هغه لوندوالی چي په خوله پریوللو کي پاته سوی وو تیر کړي نو د هغه پر روژه اثر نه لویږي ځکه چي ددې څخه پرهیز قطعا ممکن نه دی.

ژاولي د علک ترجمه ده، دا د ژاولو په ډول یو شی دی چي د غاښو د ناروغیو او د غاښو د تقویت لپاره استعمالیږي، په مخکي زمانه کي به خلکو دا د غاښونو د تقویت لپاره په خوله کي اېښودل او ژوول به یې، د روژې په حالت کي ددې د ژوولو څخه منع فرمایل سوې ده البته په پورتني حدیث کي ددې خبري وضاحت سوی دی چي په ژاولو ژوولو سره کومي ناوړي په خوله کي جمع سي د هغه په تېرولو سره روژه نه ماتیږي ځکه چي هغه خو په خوله کي په مښلو سره پاته سي د هغه یو جز بیل نه وي چي هغه حلق ته ولاړ سي او په هغه سره روژه ماته سي مگر د احتیاط په توګه ددغه ناوړو تېرولو څخه هم منع فرمایل سوې ده، د حدیث الفاظ (ولکن ینهی عنه) کي پورتنی نهي تنزیهي ده، علماء فرمایي چي یو شی ژوول که هغه ژاولي وي یا بل مکروه شی وی، هو د ضرورت په وخت کي د ماشوم په خوله کي ورکولو لپاره د هغه یو توته ژوول جائز دي مگر دا خبره باید په فهم کي وي چي د ژاولو ژوولو کراهت په هغه صورت کي

دی کله چي دا یقین وي چي د هغه یو شی د حلق څخه نه دی تیر سوی که حلق ته د تللو یقین وي نو بیا روژه ماتیږي.
که یو خیاط یا یو سړی رنګ سوی تار په خوله کي واچوي او د هغه ناړي د تار د رنګ په ډول سي او هغه تیر کړي نو روژه فاسد کیږي او که پر ناړو رنګ غالب نسي نو روژه نه فاسدیږي.

===========

## بَابُ صَوْمِ الْمُسَافِرِ　　د مسافر د روژې بیان

په دغه باب کي هغه حدیثونه نقل کیږي چي د هغه څخه د مسافر د روژې په اړه احکام او مسائل استنباط کیږي چي آیا د سفر په حالت کي روژه نیول جائز دي یا نه، او دا چي د مسافر لپاره روژه نیول افضل دي یا روژه نه نیول افضل دي ؟

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ　　(لومړی فصل)

### په سفر کي روژه نیول

﴿۱۹۲۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيَّ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عائشې (رض) روایت دئ چي حمزه بن عمرو اسلمي رضی الله عنه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَأَصُومُ فِي السَّفَرِ وَكَانَ كَثِيرَ الصِّيَامِ فَقَالَ إِنْ شِئْتَ فَصُمْ وَإِنْ شِئْتَ فَأَفْطِرْ . متفق علیه

ایا زه په سفر کي روژه ونیسم او حمزه به ډیري روژې نیولې ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :که غواړې نو نیسه یې او که یې نه غواړې نو مه یې نیسه. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۴\ ۱۷۹، رقم: ۱۹۴۳، ومسلم ۲\ ۷۸۹، رقم: ۱۰۳- ۱۱۲۱.

**تشریح** : د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي د سفر په حالت کي روژه نیول او نه نیول دواړه جائز دي که څه هم سفر تکلیفي وي یا په آرام سره وي مګر دا خبره ضروري ده که په سفر کي تکلیف نه وي نو روژه نیول غوره دي او که تکلیف وي نو بیا روژه نه نیول غوره دي، د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد دا مسئله د هر سفر لپاره ده که مباح او د رواه کارو لپاره سفر وي

يا د معصيت او خرابو كارو لپاره وي، او د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي د روژې نه نيولو د اجازې تعلق يوازې د مباح او جائز سفر لپاره دی که چيرې د معصيت او خرابو كارو لپاره سفر وي نو په دې صورت کې د روژې نه نيول جائز نه دي.

﴿۱۹۲۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره غزا ته روان سوو

وَسَلَّمَ لِسِتَّ عَشْرَةَ مَضَتْ مِنْ رَمَضَانَ فَمِنَّا مَنْ صَامَ وَمِنَّا مَنْ أَفْطَرَ فَلَمْ

د روژې پر شپاړسمه، په موږ کي، چي قوي وه روژه ونيول او ځينو (چي کمزوري وه) نه ونيول

يَعِبْ الصَّائِمُ عَلَى الْمُفْطِرِ وَلَا الْمُفْطِرُ عَلَى الصَّائِمِ. رواه مسلم

روژه نيونكو روژه خوړونكو ته او روژه خوړونكو روژه نيونكو ته بد نه وويل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۷۸۹، رقم ۹۳- ۱۱۱۶.

## روژه نه نيول غوره دي

﴿۱۹۲۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَرَأَى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په سفر كي وو

زِحَامًا وَرَجُلًا قَدْ ظُلِّلَ عَلَيْهِ فَقَالَ مَا هٰذَا فَقَالُوْا صَائِمٌ فَقَالَ لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ

الصَّوْمُ فِي السَّفَرِ. متفق عليه

چي په يو ځای کي يې ګڼه ګوڼه وليدل او بيا يې يو سړی وليدئ چي (د لمر څخه) د ژغورني لپاره سايه پر جوړه سوې وه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا څه دي؟ خلکو ورته وويل: روژه دار دئ، رسول الله ﷺ وفرمايل: په سفر کي روژه نيول نيکي نه ده. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۸۳، رقم: ۱۹۴۶، ومسلم ۲\۷۸۶، رقم: ۹۲- ۱۹۴۶.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی که د روژې نيولو په صورت کي د ضعف او ناتوانۍ په وجه د روژه دار دومره حالت خراب سي نو د هغه لپاره په سفر کي روژه نيول غوره خبره نه ده بلکه غوره او افضل دادی چي هغه روژه ونه نيسي.

﴿۱۹۲۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ فَمِنَّا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کي وو په موږ کي ،

الصَّائِمِ وَمِنَّا الْمُفْطِرِ فَنَزَلْنَا مَنْزِلاً فِيْ يَوْمٍ حَارٍ فَسَقَطَ الصَّوامُوْنَ وَقَامَ

د ځینو روژه وه او د ځینو روژه نه وه، یوه ورځ په ګرمي کي موږ په یو ځای کي تم سوو د کومو خلکو چي روژه وه هغوی د کمزورۍ څخه ولویدل

الْمُفْطِرُوْنَ فَضَرَبُوا الأبنية وَسَقوا الرّكَابَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ ذَهَبَ الْمُفْطِرُونَ الْيَومَ بِالْأَجْرِ . متفق عليه

او د چا چي روژه نه وه هغوی په خپلو کارو کي بوخت وه ، هغوی خیمې .هم ودرولې او ښان یې هم اوبه کړل ،.(د دې په لیدلو سره) رسول الله ﷺ وفرمایل : نن هغه خلکو ثواب تر لاسه کړ چي روژه یې نه وه نیولې . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٨٤، رقم: ٢٨٩٠، ومسلم ٢\ ٧٨٨، رقم: ١٠٠– ١١١٩.

**تشريح** : یعني د کومو خلکو چي نن روژه نه وه زیات کامل ثواب د هغوی په برخه کي راغلی ځکه چي په داسي وخت کي د هغوی لپاره روژه نه نیول غوره وه، لفظ د الیوم څخه دې ته اشاره ده چي د روژې نه نیولو دا فضیلت د روژه دار د خدمت له کبله تر لاسه سو نه چي مطلقا او دا حدیث ددې خبري دلیل دی چي د الله تعالی د نیک او صالح بندګانو خدمت د نفل څخه غوره دي .

### په سفر کي روژه ماتول

﴿۱۹۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ روان سو د

الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ عُسْفَانَ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَرَفَعَهُ إِلَى يَدَيْهِ

مدینې څخه مکې ته ، رسول الله ﷺ تر عسفان نامي ځای پوري روژه ونیول ، عسفان ته چي ورسیدو نو رسول الله ﷺ اوبه وغوښتلې خلکو ته د ښودلو لپاره یې په لاس کي اوبه پورته کړې

لِيُرِيَهُ النَّاسَ فَأَفْطَرَ حَتَّى قَدِمَ مَكَّةَ وَذٰلِكَ فِي رَمَضَانَ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ

بيا يې وچښلې ، يعني روژه يې ماته کړه ، همدا سي رسول الله ﷺ تر مکې پوري سفر وکړ يعني په سفر کي يې روژه ونه نيول، او دا د روژې مياشت وه ، ددې وروسته ابن عباس ﷺ

يَقُولُ قَدْ صَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَفْطَرَ فَمَنْ شَاءَ صَامَ وَمَنْ

خلکو ته وويل چي رسول الله ﷺ په سفر کي روژه نيولې هم ده او خوړلې يې هم ده نود چا چي خوښه سي روژه دي ونيسي او د چا چي

شَاءَ أَفْطَرَ . متفق عليه و في رواية لمسلم عن جابر انه شرب بعد العصر .

خوښه سي نو ماته دي يې کړي . بخاري او مسلم . او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ په عسفان کي د مازديګر وروسته روژه ماته کړه .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۸۶، رقم: ۱۹۴۸، ومسلم ۲\ ۷۸۵، رقم: ۸۸- ۱۱۱۳.

**تشريح** : رسول الله ﷺ اوبه په لاس کي اخيستو سره ځکه وڅښلې چي خلک ووينې چي د سفر په حالت کي روژه ماتول جائز دي يا دا مقصد وو چي نور خلک هم د رسول الله ﷺ په پيروي کي خپل روژه ماته کړي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په سفر کي د روژې عفوه

﴿۱۹۲۷﴾ : عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكِ الْكَعْبِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس بن مالک الكعبي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى وَضَعَ شَطْرَ الصَّلَاةِ أَوْ نِصْفَ الصَّلَاةِ وَالصَّوْمَ عَنِ الْمُسَافِرِ وَعَنِ

الله تعالى د مسافر لپاره نيم لمونځ معاف کړئ دئ او د مسافر لپاره او د

الْمُرْضِعِ أَوِ الْحُبْلَى . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي وابن ماجة .

شيدو ورکونکي (ښځي) او حاملې (ښځي) لپاره يې روژه معاف کړې ده . ابوداؤد، ترمذي،

نسائي، ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۷۹٦، رقم: ۲۴۰۸، والترمذي ۳\ ۹۴، رقم: ۷۱۵، والنسائي: ۴\ ۱۸۰، ۱۸۱، رقم: ۲۲۷۴ وابن ماجه ۱\ ۵۳۳، رقم: ۱٦٦۷.

**تشريح**: نيم لمونځ يې معاف کړی دی : ددې مطلب دا نه دی چي د مسافر لپاره هم مخکي څلور رکعته لمونځ فرض وو بيا وروسته هم دوه رکعته کولای سي بلکه مطلب دادی چي الله تعالی د مسافر لپاره د پيل څخه نيم لمونځ فرض کړی دی چي هغه دي څلور رکعتيز لمونځ دوه رکعته کوي او دوه رکعته قضا واجب نه ده همداسي د روژې د معافۍ مطلب دادی چي د سفر په حالت کي روژه نيول واجب نه ده مگر د سفر پوره کولو څخه وروسته چي کله مقيم سي نو د هغه روژو قضا راوړل ضروري دي.

د تي ورکونکې او حاملې ښځي په باره کي مخکي هم ښودل سوي دي چي د هغوی لپاره هم جائز دي که چيري د روژې په وجه ماشوم يا خپله هغوی ته د تکليف او تاوان رسيدو غالب گمان وي نو هغوی دي روژې نه نيسي مگر د عذر ختمېدو څخه وروسته به هغوی قضا راوړي، او فديه نه لازميږي، دا امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه دا مذهب دی مگر د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب سره سم پر هغوی فديه هم واجب ده.

## په ارام سفر کي روژه نيسئ

﴿۱۹۲۸﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ لَهُ حَمُولَةٌ تَأْوِيْ إِلٰى شِبْعٍ فَلْيَصُمْ رَمَضَانَ مِنْ حَيْثُ أَدْرَكَهُ" . رواه أبو داود

د حضرت سلمة بن الحبق (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا سره چي ښه سپرلۍ وي چي هغه په آرامه سره خپل منزل ته ورسوي نو هغه ته پکار دي چي چيري روژه راسي نو روژه دي ونيسي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۷۹۸ – ۷۹۹، رقم: ۲۴۱۰.

**تشريح**: دا حکم د استحباب او فضيلت په توگه دی کنه د ټولو علماؤ په نزد په اتفاق سره مسئله داده چي د سفر په حالت کي روژه نه نيول جائز دي که څه هم سفر د آرام او سکون وي هسي خو دا حديث ضعيف دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د رسول الله ﷺ ناراضگي

﴿۱۹۲۹﴾: عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَامَ الْفَتْحِ إِلَى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ولاړئ د مكې د فتح په ورځ

مَكَّةَ فِي رَمَضَانَ فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ كُرَاعَ الْغَمِيمِ فَصَامَ النَّاسُ ثُمَّ دَعَا بِقَدَحٍ

مكې ته د روژې په مياشت كي ، په دې سفر كي رسول الله ﷺ تر كراع الغميم نامي ځاى پوري روژه نيولې وه او د دده ملگرو هم روژه نيولې وه ، بيا يوه ورځ رسول الله ﷺ اوبه راوغوښتلې

مِنْ مَاءٍ فَرَفَعَهُ حَتَّى نَظَرَ النَّاسُ إِلَيْهِ ثُمَّ شَرِبَ فَقِيلَ لَهُ بَعْدَ ذٰلِكَ إِنَّ بَعْضَ

هغه يې په لاس كي پورته كړې چي خلك يې ووينې او بيا يې وڅښلې ، ددې وروسته رسول الله ﷺ ته وويل سول چي ځينو

النَّاسِ قَدْ صَامَ فَقَالَ أُولٰئِكَ الْعُصَاةُ أُولٰئِكَ الْعُصَاةُ . رواه مسلم

خلكو روژه نيولې ده ، رسول الله ﷺ وفرمايل : هغوى نافرمانه دي او سخت گناه كار دي . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۲\۱ ۷۸۵، رقم: ۹۰- ۱۱۱۴.

**تشريح** : هغه خلك پاخه گناه كار دي ، رسول الله ﷺ د خپل زياتي ناراضگی د اظهار په توگه دا الفاظ دوه واره ارشاد وفرمايه ، رسول الله ﷺ اوبه په خپلو لاسونو كي پورته كولو سره ځكه څښلي وې چي خلك هم خبر سي چي الله تعالى د سفر په حالت كي د روژې نه نيولو كومه اجازه وركړې ده د هغه په باره كي د رسول الله ﷺ پيروي وكړي ، مگر هغوى د روژې په نيولو سره گويا د رسول الله ﷺ د فعل مخالفت وكړ او د الله تعالى د لوري وركړل سوى اجازه او آساني يې قبوله نه كړه ځكه رسول الله ﷺ د هغوى په دغه عمل د ناراضگی اظهار وفرمايه او داسي يې وفرمايل چي گويا د سفر په حالت كي د روژې نيول حرام دي.

## په سفر كي روژه نيول گناه ده

﴿۱۹۳۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ صَائِمُ رَمَضَانَ فِي السَّفَرِ كَالْمُفْطِرِ فِي الْحَضَرِ . رواه ابن ماجة .

د حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په سفر کي د روژې نيول داسي دي لکه په کور کي د روژې نه نيول . (يعني سخته ګناه ده) ابن ماجه، دا حديث د علماؤ په نزد منسوخ دئ .

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۱\ ۵۳۲، رقم: ۱۶۶۶.

**تشريح** : ددغه حديث څخه معلومه سوه چي څرنګه د حضر په حالت کي روژه نه نيول د لوی ګناه خبره ده همداسي د سفر په حالت کي روژه نيول يوه لويه ګناه ده مګر اکثر علماء وايي چي يا خو دا حديث منسوخ دی يا په هغه حالت باندي محمول دی کله چي په سفر کي روژه د تکليف سبب وي يا د روژه دار د هلاکت بيره وي .

## په سفر کي روژه نه نيول غوره ده

﴿۱۹۳۱﴾ : وَعَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيِّ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أَجِدُ بِي قُوَّةً

د حضرت حمزة بن عمرو اسلمي ﷛ څخه روايت دئ چي هغه رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې دالله رسوله ! زه توان لرم

عَلَى الصِّيَامِ فِي السَّفَرِ فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د روژې نيولو په خپل سفر کي، ايا ګناه به وي که زه روژه ونيسم ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

هِيَ رُخْصَةٌ مِنَ اللَّهِ فَمَنْ أَخَذَ بِهَا فَحَسَنٌ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَصُومَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ . رواه مسلم

د روژې نه نيولو د الله د لوري اجازه ده څکه چي څوک ددې اجازې څخهګټه تر لاسه کړي غوره ده او څوک چي روژه نيول خوښوي پر هغه هيڅ ګناه نسته . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم ۲\ ۷۹۰، رقم: ۱۰۷– ۱۱۲۱.

**تشريح** : په دې حديث کي دې ته اشاره ده چي که څه هم د سفر په حالت کي روژه نيول د ګناه خبره نه ده مګر غوره خبره دا ده چي روژه ونه نيول سي .

==========

# بَابُ الْقَضَاءِ (د قضائي روژو بيان)

د روژې نه نيولو يا ماتولو په باره کي درې حکمه دي :

۱. په هيره کي د روژې ماتولو په صورت کي نه کفاره واجبيږي او نه قضا .

۲. بېله عذره په قصد سره روژه ماتولو په صورت کي کفاره واجبيږي .

۳. بېله يو عذره مثلا ناروغي يا سفر په حالت کي روژه نه نيول يا د ماتولو په صورت کي قضاء واجبيږي .

په دغه باب کي د قضائي روژو احکام او آداب بيانيږي او صحيح دادي چي دلته د قضائي روژو څخه مراد د رمضان المبارک روژې دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### قضايي روژې

﴿۱۹۳۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ يَكُونُ عَلَيَّ الصَّوْمُ مِنْ رَمَضَانَ فَمَا أَسْتَطِيعُ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي پر ما باندي قضائي روژې وې مګر ما به

أَنْ أَقْضِيَ إِلَّا فِي شَعْبَانَ قَالَ بن سعيد تعني يَحْيَى الشُّغْلُ مِنَ النَّبِيِّ أَوْ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه

د شعبان د مياشتي څخه پرته په بله مياشت کي د قضاء راوړلو توان نه درلودئ ، يحيى بن سعيد راوي وايي ، حضرت عائشة د رسول الله ﷺ په خدمت کي زياته بوخته وه له دې کبله د روژې د مياشتي هغه روژې چي د حيض له کبله به پاته سوي وې هغې به تر لسو مياشتو پوري نه سوې نيولای او په شعبان کي به هغې ته د نيولو موقع په لاس ورتلل . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۸۹\۴، رقم: ۱۹۵۰. ومسلم ۸۰۲\۲- ۸۰۳، رقم: ۱۵۱- ۱۱۴۶

**تشريح** : بي بي عائشي ﷺ د رمضان هغه روژې چي د حيض په وجه به قضا کېدې د شعبان څخه پرته په يو بله مياشت کي د نيولو فرصت نه و تر لاسه کړی ځکه چي په نورو ورځو کي به د رسول الله ﷺ په خدمت کي هر وخت بوخته وه او همداسي به تياره اوسيده چي رسول الله ﷺ يې

کوم وخت د خدمت او صحبت لپاره وبولي او دا حاضره سي ، رسول الله ﷺ به د شعبان په میاشتو کې اکثره روژې نیولې ځکه په دغه میاشت کې به بي بي عائشې رضي الله عنها ته مهلت وو نو د هغې په ذمه چي به د رمضان کومي روژې پاته وې د هغو قضا به یې راوړل.

## د ښځي نفلي روژه

﴿۱۹۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَصُومَ وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ. رواه مسلم

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د خاوند په شتون کي د هغه د اجازې پرته ښځي ته نفل روژې نیول جائز نه دي او ښځي ته پکار دي چي د خاوند د اجازې څخه پرته څوک کور ته نه پرېږدي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۷۱۱، رقم: ۸۴-۱۰۲۶.

**تشریح**: د لومړني حکم مطلب دادی چي د کومي ښځي خاوند د هغې سره موجود وي نو د هغه د اجازې څخه پرته ښځي ته نفلي روژې نیول جائز نه دي اجازه که دلالة وي یا صراحتا، او ددې منع وجه داده چي په دې صورت کي سړی د صحبت او داسي نورو په اړه په تکلیف او پریشانه کیږي.

ددغه حدیث څخه مطلقا د نفلي روژو نیولو منع معلومیږي دا حدیث د امام شافعي رحمة الله علیه د مذهب نفي کوي، شوافع حضرات وایي چي ښځه د عرفات او عاشورا روژې د خپل خاوند د اجازې څخه پرته هم نیولای سي.

د دوهم حکم مطلب دادی چي د یو ښځي لپاره دا جائز نه دي چي د خپل خاوند د اجازې څخه پرته یو سړی خپل کورته را دننه کړي که څه هم هغه قریب وي یا پردی وي، تر دې که چیري یو ښځه راسي نو هغه دي هم د خپل خاوند د اجازې څخه پرته دننه نه راولي په دې باره کي ددې خبري خیال ساتل پکار دي چي د خاوند د رضا علم هم د هغه د اجازې حکم کي وي یعني د چا په باره کي که خاوند په خوله سره اجازه نه وي ورکړې مگر ښځه په دې پوهیږي چي د هغه سړي په راتلو به خاوند ته څه ناخوښي نه وي نو په دې صورت کي هغه سړی کور ته دننه کولای سي ځکه دا هم دلالة اجازه ده.

## د ښځې د روژو قضاء

﴿۱۹۳۴﴾: وَعَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ اَنَّهَا قَالَتْ لِعَائِشَةَ مَا بَالُ الْحَائِضِ تَقْضِي

د حضرت معاذة العدوية (رض) څخه روايت دئ چي ما د بي بي عائشې ﷺ څخه پوښتنه وکړه دا څه وجه ده چي حائضه ښځه قضائې روژې نيسي .

الصَّوْمَ وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ يُصِيبُنَا ذٰلِكَ فَنُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّوْمِ وَلَا نُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلَاةِ. رواه مسلم

او قضاء لمونځ نه كوي، هغې وفرمايل : د رسول الله ﷺ په زمانه كي به موږ ته دا (حيض) پيښېدئ موږ ته به د روژو د قضاء حكم وو او د لمانځه د قضاء راګرځولو حكم به راته نه وو . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۲۶۵، رقم: ۶۹ - ۳۳۵.

**تشريح** : سوال كوونكي د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه د حائضې ښځي په باره كي د لمانځه او روژو د تفريق وجه و پوښتل، مګر بي بي عائشې رضي الله عنها د هغې وجه بيانولو پر ځاى پورتنى جواب وركړ ، دا دې ته اشاره ده چي د هري مسئلې وجه پوښتل يا د هغه د علت لټول يو اعلى مقصد نه دى بلكه د شان عبوديت غوښتنه يوازي دا كيدل پكار دي چي شارع كوم حكم وركړى دى د هغه علت پوښتلو څخه پرته پر هغه عمل كول پكار دي ، دا ممكن ده چي بي بي عائشې رضي الله عنها د سوال سره سم دا فرمايلي دي كه د لمانځه د قضا حكم يې وركړى دى نو حائضه ښځه به ډيره زياته په مشقت او تكليف كي اخته كيدل ځكه چي د حيض په ورځو كي ډير زيات لمونځونه پريښودل كيږي هغه ټول به هره مياشت قضا كول پر ښځه ډيره زيات تكليف واى ځكه په هغه كي د آساني سوې ده چي د حيض د ورځو لمونځونه د حائضې په حق كي معاف كړل سول ، او روژه په كال كي يوازي يو وار راځي او د هغه په قضا كي دومره زيات تكليف او پرواه نه وي ځكه پر حائضې باندي د هغې قضاء واجب وګرځول سوه مګر بي بي عائشې رضي الله عنها ددغه جواب څخه پرهيز كولو سره پورتنى طريقه اختيار كړل او د بحث مباحثې لار يې بنده كړل ځكه كيداى سي چي پوښتنه كونكې دا علت اورېدو سره ويلي واى چي زه خو د لمانځه په قضا كي څه تكليف او حرج نه محسوس كوم بيا ولي دلمانځه قضا راوړل واجب نه دي .

## د مړي له طرفه روژې

﴿۱۹۳۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ . متفق علیه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چې رسول اللهﷺ وفرمایل : څوک چې مړ سي او د هغه پر ذمه قضائي روژې وي نو د هغه د لوري دي وارث روژې ونیسي یعني فدیه دي ورکړي .بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\۱۹۲، رقم: ۱۹۵۲، ومسلم ۲\۸۰۳، رقم: ۱۵۳– ۱۱۴۷.

**تشریح** : کوم سړی چې وفات سي او د هغه پر ذمه روژې واجب وي نو د هغه په باره کي هم د علماؤ اختلافي مذهب دی اکثر علماء چې په هغو کي امام اعظم رحمة الله علیه ، امام مالک رحمة الله علیه او امام شافعي رحمة الله علیه هم شامل دي فرمایي چې د داسي سړي د لوري دي بل سړی روژې نه نیسي بلکه د هغه وارثان دي د هغه د هري روژې په بدله کي یو مسکین ته فدیه ورکړي ، ددغه حضراتو د لوري ددغه حدیث دا تاویل کیږي چې دلته د روژې څخه مراد فدیه ورکول دي ځکه چې فدیه ورکول هم په منزله د روژې نیولو ده او مخکي حدیث ددې توجیه او تاویل بنیاد دی .

د مړي د لوري د روژې نه نیولو ځکه منع کیږي چې په یو حدیث کي چې ددې باب په آخر کي راځي په وضاحت سره ددې منع فرمایل سوې ده ، امام احمد رحمة الله علیه د حدیث پر ظاهري مفهوم باندي په عمل کولو فرمایي چې د مړي د طرفه دي د هغه وارثان روژې ونیسي .

د پورتنۍ مسئلې په اړه د حنیفه مذهب دادی که مړ کیدونکی د فدیې په باره کي وصیت وکړي نو پر وارث باندي د مړي د لوري څخه د پورتنۍ فدیې ادا کول واجب دي بلکه هغه فدیه د مړي د دریمي برخي د مال څخه ورکول کیدای سي که د فدیې مقدار د هغه د مال د مقدار څخه زیات وي نو پر وارث باندي به د فدیې د هغه مقدار ادا کول واجب نه وي کوم چې د دریمي برخي مال څخه زیات وي ، هو که وارث هغه زیات مقدار هم ادا کړي نو نه یوازي دا چې د وارث دا عمل به جائز سي بلکه پر مړي به د هغه احسان هم وي مګر دا خبره دي په خیال کي وي چې دا پوره مسئله په هغه صورت کي ده کله چې د مړي پر ذمه هغه روژې وي چې د هغه قضا د هغه د مرګ څخه مخکي ممکن وي مثلاً د رمضان د میاشتي د تېرېدو څخه وروسته په یو داسي

میاشت کي هغه وفات سو چي په هغه کي د مرګ څخه مخکي د رمضان یو څو روژې قضا سوي وي (مثلاً د رمضان په میاشت کي هغه وفات سوی وي او د وفات څخه مخکي څو روژو نیولو څخه پاته سوی وي) چي د هغه قضا ممکن نه ده نو بیا نه خو د هغه تدارک یعني د هغه روژو په بدله کي فدیه ورکول لازم دي او نه پر مړ کېدونکي باندي د قضاء سوو روژو ګناه به وي ، د ټولو علماؤ دا مذهب دی البته طاوس رحمۃ اللہ علیہ او قتاده رحمۃ اللہ علیہ وایي چي د هغه روژو تدارک او فدیه به هم لازم وي چي د هغه د قضا ممکن کېدو څخه مخکي هغه وفات سوی وي.

د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی که مړ کیدونکی وصیت وکړي یا ونه کړي د هغه د فوت سوو روژو بدله د هغه د ټول مال څخه فدیه ادا کول ضروري دي ، په پورتنی مسئله کي د امام احمد رحمة الله علیه چي کوم مذهب دی هغه د لومړني حدیث په تشریح کي بیان سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۹۳۶﴾: عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

د حضرت نافع ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم وفرمایل : څوک چي

مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامُ شَهْرٍ فَلْيُطْعَمْ عَنْهُ مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينٌ . رواه الترمذي و قال والصحيح انه موقوف علي ابن عمر .

مړ سي نو پکار دي چي د ده د طرف څخه د هري روژې په بدل کي مسکین ته ډوډۍ ورکړي. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۹۶/۳، رقم: ۷۱۸.

**تشریح** : د هري روژې په بدله کي په مسکین ډوډۍ خوري : ددې مطلب دادی چي د هري روژې په بدله کي به پاو کم دوه سیره غنم یا درې نیم سیره اوربشي یا ددې قیمت ادا کړل سي او دا مقدار د لمانځه د فدیې هم دی چي د هر لمانځه په بدله کي دي دومره فدیه ادا کړل سي.

دا حدیث د جمهورو علماؤ دلیل دی د هغوی مذهب دادی که د یو مړ کیدونکي پر ذمه د رمضان روژې وي نو د هغه د لوري دوهم سړی دي روژې نه نیسي بلکه وارثان دي د هغه په بدله کي فدیه ادا کړي ، ددې څخه مخکي چي کوم حدیث تیر سوی دی غالب امکان دی چي هغه منسوخ وي او دا حدیث ناسخ وي مګر څرنګه چي پورته ښودل سوي دي چي دا حدیث په

منسوخ نه گرځولو سره ددې چي کوم تاویل کیږي د هغه بنیاد دا حدیث دی.
دا روایت که څه هم موقوف دی لکه څرنګه چي امام ترمذي رحمة الله علیه وفرمایل مګر په حکم کي مرفوع دی ځکه چي دا ډول تشریعي امور هیڅ صحابي د خپل عقل څخه نسي بیانولای، نو ابن عمر رضي الله عنه به دا مضمون خامخا د رسول الله ﷺ څخه اوریدلی وي ځکه نو هغه نقل کړ.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ابن عمر رضي الله عنه وینا

《۱۹۳۷》: عَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُسْأَلُ هَلْ يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ أَوْ

د حضرت مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د ابن عمر رضي الله عنه څخه به دا ډول پوښتني کېدلې چي څوک دي د چا پر ځای ژوژې ونیسي؟

يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ فَيَقُولُ لَا يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ وَلَا يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ. رواه في الموطا.

د چا پر ځای دي لمونځ وکړي؟ هغه به ددې په جواب کي ویل چي نه دي څوک د چا پر ځای روژې نیسي او نه دي د چا پر ځای لمونځ کوي. مؤطا.

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۳۰۳، رقم: ۴۳.

**تشریح**: د حضرت امام مالک، امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه او امام شافعي رحمة الله علیهم مذهب دادی چي لمونځ او روژه د مړي د لوري ادا کول صحیح نه دي هو د حنیفه په نزد دا جائز دي چي یو سړی د یو عمل ثواب بل چا ته وبخښي.

===========

# بَابُ صِيَامِ التَّطَوّعِ (د نفلي روژو بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ نفل روژې

﴿۱۹۳۸﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ حَتَّى

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به پرله پسې روژې نيولې تر دې چې

نَقُولَ لَا يُفْطِرُ وَيُفْطِرُ حَتَّى نَقُولَ لَا يَصُومُ وَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ

موږ به ويل چې اوس به رسول الله ﷺ روژې نه پرېږدي او كله چې به يې روژې نيول پرېښودل نو موږ به ويل اوس به رسول الله ﷺ روژې نه نيسي ، او ما نه دي ليدلي چې رسول الله ﷺ

اسْتَكْمَلَ صِيَامَ شَهْرٍ قَطُّ إِلَّا رَمَضَانَ وَمَا رَأَيْتُهُ فِي شَهْرٍ أَكْثَرَ مِنْهُ صِيَامًا فِي

د رمضان د روژو پرته د يوې مياشتې روژې پوره نيولې وي او د شعبان څخه پرته يې په بله مياشت كې زياتې روژې نه دي نيولې ،

شَعْبَانَ، و في رواية قَالَتْ كَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ كُلَّهُ وَكَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ إِلَّا قَلِيلًا . متفق عليه .

په يوه روايت كې دا الفاظ دي چې بي بي عائشې رضي الله عنها وويل: رسول الله ﷺ به د شعبان د پوره مياشتې روژې نيولې او په شعبان كې به يې روژې نيولې مګر څو ورځې به يې پرېښودلې . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۱۳، رقم: ۱۹۶۹، ومسلم ۲\۸۱۰، رقم: ۱۷۵- ۱۱۵۶.

**تشريح** : د حديث د لومړنيو جملو مطلب دادی چې رسول الله ﷺ به هميشه نفلي روژې نه نيولې بلكه په دې اړه د رسول الله ﷺ معمول مبارك دا وو چې كله به يې پرله پسې تر څو ورځو پورې روژې نيولې تر دې چې د رسول الله ﷺ د روژو كثرت او تسلسل ليدو سره به خلكو دا ګمان كوی چې اوس شايد رسول الله ﷺ د روژو نيولو لړۍ ختم نه كړي ، او كله به داسې وو چې رسول الله ﷺ به پرله پسې تر څو ورځو پورې روژې نه نيولې تر دې چې خلكو به فكر كوی چې

کیدای سي اوس به رسول الله ﷺ هیڅکله روژې نه نیسي.

د دوهم روایت الفاظ: (کان یصوم الخ) کي اخري جمله یعني دوهم لفظ کان د جملې اول وضاحت مقصود دی چي د شعبان پوره میاشت څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ به د شعبان د اکثرو ورځو روژې نیولې د ځینو حضراتو په نزد مراد دادی چي رسول الله ﷺ په یوه کال کي د شعبان پوره میاشت او په دوهم کال کي د شعبان اکثري ورځي روژې ونیولې.

﴿۱۹۳۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَقِيقٍ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ أَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت عبد الله بن شقیق رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د عائشي رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي ایا رسول الله ﷺ به

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ شَهْرًا كُلَّهُ قَالَتْ مَا عَلِمْتُهُ صَامَ شَهْرًا كُلَّهُ إِلَّا رَمَضَانَ

د یوې میاشتي پوره روژې نیولې؟ هغې وویل: زه نه پوهیږم چي رسول الله ﷺ د کومې میاشتي پوره روژې نیولي دي پرته د رمضان څخه،

وَلَا أَفْطَرَهُ كُلَّهُ حَتَّى يَصُومَ مِنْهُ حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ. رواه مسلم

او هیڅ یوه میاشت داسي نه ده تیره سوې چي په هغه کي دي رسول الله ﷺ روژې نه وي نیولې، ترڅو چي رسول الله ﷺ وفات سو، مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۸۱۰، رقم: ۱۷۳- ۱۱۵۶.

## د کوچني اختر وروسته دوې روژې

﴿۱۹۴۰﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سَأَلَهُ

د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه

أَوْ سَأَلَ رَجُلًا وَعِمْرَانُ يَسْمَعُ فَقَالَ يَا أَبَا فُلَانٍ أَمَا صُمْتَ سُرَرَ هٰذَا الشَّهْرِ

او یا رسول الله ﷺ د بل چا څخه پوښتنه وکړه او عمران واوریدل چي اې د فلاني پلاره! ایا تا د آخري شعبان روژې نه ونیولې.؟

قَالَ أَظُنُّهُ قَالَ يَعْنِي رَمَضَانَ قَالَ الرَّجُلُ لَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ فَإِذَا أَفْطَرْتَ

فَصُمْ يَوْمَيْنِ . متفق عليه

هغه عرض وکړ : یا ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هر کله چي ته د رمضان د روژو څخه فارغ سېنو دوې روژې نوري ونیسه (یعني د کوچني اختر وروسته) . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۳۰، رقم: ۱۹۸۳صحيح مسلم: ۲\۸۲۰، رقم: ۱۹۹- ۱۱۶۱.

**د لغاتو حل**: سُرر: ای آخره (په آخر کي).

**تشريح**: د کوم چا څخه چي د رسول الله ﷺ د شعبان د آخري روژو په باره کي پوښتنه کړې وه هغه عمران وو یا بل سړی هغه د عذر په توګه پر خپل ځان باندي د هري میاشتي آخري دوو ورځو روژې واجب ګرځولي وې ، یو وار د شعبان آخري دوو ورځو کي هغه روژې ونه نیولې نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل کله چي د رمضان میاشت ختمه سي نو د شعبان آخري دوو ورځو په بدله کي دوې روژې ونیسه .

ځیني حضرات وایي چي د هغه عادت دا وو چي په هره میاشت کي به یې آخري دوې ورځي روژې نیولې ، یو وار په اتفاق سره هغه د شعبان دوې آخري ورځو کي روژې ونه نیولې نو رسول الله ﷺ هغه ته د استحباب په توګه وفرمایل چي د رمضان روژې ختمېدو سره ددغه دوو ورځو په بدله کي دوې روژې ونیسه .

## په محرم کي د روژو فضیلت

﴿۱۹۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَفْضَلُ الصِّيَامِ بَعْدَ رَمَضَانَ شَهْرُ اللهِ الْمُحَرَّمُ وَأَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْفَرِيضَةِ صَلَاةُ اللَّيْلِ .رواه مسلم

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د رمضان د روژو څخه وروسته تر ټولو غوره روژې د محرم دي او تر فرض لمانځه وروسته تر ټولو غوره لمونځ د شپې لمونځ دئ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۸۲۱، رقم: ۲۰۲- ۱۱۶۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي د محرم په میاشت کي نفلي روژې نیول د لوی فضیلت او سعادت خبره ده ، ځیني حضرات وایي چي دلته د محرم دمیاشتي څخه مراد یوم عاشوره ده چي د هغه روژې نیول ډېر زیات فضیلت لري ، او د هغو تائید ددې څخه وروسته راتلونکي حدیث څخه

هم معلومیږي ، د حدیث ځیني حافظان وایي چي د رجب د میاشتي د روژو نیولو په باره کي حدیثونه منقول دي چي په هغو کي اکثر د ځان څخه جوړ سوي یعني د نورو اختراع ده .

په دې حدیث کي د محرم د میاشتي نسبت الله تعالی ته سوی دی ، علماء لیکي چي دا نسبت د تخصیص په وجه نه دی چي ددې مطلب به دا وي چي یوازي محرم د الله تعالی میاشت ده بلکه ټولي میاشتي د الله تعالی دي ځکه په دې موقع په خاصه توګه د الله تعالی لور ته د محرم د میاشتي نسبت ددغه مبارکي میاشتي د شرف او فضیلت د اظهار په توګه دی .

د حدیث د دوهمي برخي څخه دا معلومیږي چي د شپې لمونځ (تهجد) د سنت مؤکده د لمونځو څخه هم غوره دی حال دا چي داسي نه ده ځکه ویل کیږي چي دلته پوره عبادت داسي دی فرض لمونځ او د هغه سنت مؤکده لمونځ څخه وروسته تر ټولو غوره لمونځ د شپې لمونځ دی یا ددې تاویل به دا کیږي چي په دې اعتبار خو د تهجد لمونځ د سنت مؤکده د لمانځه څخه افضل دی چي په تهجد کي مشققت او تکلیف زیات وي او دا چي تهجد د ریا او ځان ښوونی څخه هم پاک وي او سنت مؤکده لمونځ په دې اعتبار سره افضل دي چي د هغه د کولو ډیر زیات تاکید فرمایل سوی دی او دا چي هغه د فرض لمونځو تابع دي ، په آخر کي په دې خبره باندي هم پوه سئ چي وتر لمونځ هم په فرض لمونځو کي داخل دی .

## د عاشورا په ورځ روژه

﴿۱۹۴۲﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما نبي کریم ﷺ نه دئ لیدلئ چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَحَرَّى صِيَامَ يَوْمٍ فَضَّلَهُ عَلَى غَيْرِهِ إِلَّا هٰذَا الْيَوْمَ يَوْمَ عَاشُورَاءَ وَهٰذَا الشَّهْرَ يَعْنِي شَهْرَ رَمَضَانَ . متفق علیه

د یوې ورځي د روژې نیولو اراده کوي او د نورو ورځو تر روژو نیولو یې غوره ګڼي مګر ددې ورځي د روژې یعني د عاشورا د ورځي او ددې میاشتي د روژې یعني د رمضان . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۴۵، رقم: ۲۰۰۶. ومسلم ۲\۷۹۷، رقم: ۱۳۱- ۱۱۳۲.

**تشریح**: مطلب دا دی چي رسول الله ﷺ به د یوې ورځي روژه د بلي ورځي تر روژو افضل نه ګڼځول البته د عاشورې روژه به یې د نورو ورځو پر روژو فضیلت ورکوی همداسي د رمضان د

میاشتي روژو ته به يې پر تولو روژو فضیلت ورکوی .

علماء لیکي چي دا د ابن عباس رضی الله عنهما فهم او گمان دی چي هغه د رسول الله ﷺ د احوال او اقوال څخه داسي پوه سوی دی کنه تر څو پوري چي د حقیقت تعلق دی نو یوم عرفه او ددې ورځي روژې د یوم عاشورې او ددې ورځو د روژو څخه افضل دي .

﴿۱۹۴۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ حِيْنَ صَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَاشُوْرَآءَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي کله رسول الله ﷺ د عاشورا د ورځي روژه ونیول

وَ اَمَرَ بِصِيَامِهِ قَالُوا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ انه يوم يعظمه اليهود والنصارى فَقَالَ

او خلکو ته يې ددې ورځي د روژې حکم وکړنو خلکو وویل اې د الله رسوله ! په دې ورځ خو یهود او نصارا عظمت کوي،

رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَئِنْ بَقِيتُ إِلَى قَابِلٍ لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ . رواه مسلم

رسول الله ﷺ وفرمایل :که زه تر راتلونکي کال پوري ژوندی پاته سوم نو په نهم تاریخ به هم روژه نیسم . مسلم

**تخريج**: صحیح مسلم: ۲\ ۷۹۸، رقم: ۱۳۳- ۱۱۳۴.

**تشريح** : د عاشورې په ورځ د روژو نیولو لړۍ څنګه پیل سوه ؟ ددې وضاحت به ددې باب د دریم فصل په لومړني حدیث کي راسي او د هغه خلاصه داده چي نبي کریم ﷺ د مکې څخه مدیني ته په هجرت راغلی نو یهودیان يې د عاشورې په ورځ په روژه نیولو ولیدل د هغوی څخه يې پوښتنه وکړه چي ددې ورځي څه ځانګړتیا ده چي تاسو روژې نیسي ؟ هغوی وویل : دا ډېره عظیمه ورځ ده په دغه ورځ الله تعالی موسی علیه السلام او د هغه قوم ته نجات ورکړ او فرعون او د هغه قوم يې غرق کړل ، موسی علیه السلام د شکر په توګه په دغه ورځ روژه نیولې وه ځکه موږ هم روژه نیسو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ستاسو په نسبت موږ موسی علیه السلام ته زیات نژدې یو ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د عاشورې په ورځ روژه ونیول او صحابه کرامو ته يې د روژې نیولو حکم ورکړ .

دا واقعه د هجرت په لومړنیو ورځو کي ده ګویا هغه وخت رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته د عاشورې د ورځي د روژې نیولو حکم ورکړی وو او هغه د وجوب په توګه وو ، دلته چي کوم

صورت ذکر سوی دی هغه د رسول الله ﷺ د دنیا ژوند په آخري کال کي سوی دی دلته چي رسول الله ﷺ کوم حکم ورکړ هغه د استحباب په توګه دی ځکه په دې باره کي د وجوب حکم منسوخ سوی دی او د هغه ځای استحباب ونيوی دلته صحابه کرامو وويل د هغه په جواب کي رسول الله ﷺ و فرمايل که زه په راتلونکي کال په دنيا کي پاته سم نو په نهم تاريخ به روژه نيسم.

اوس په دې کي احتمال دی چي يا خو د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي د محرم د لسم تاريخ (عاشورا) پر ځای يوازي پر نهم تاريخ به روژه نيسم يا دا چي لسم او نهم تاريخ به روژه نيسم، لومړنی احتمال زيات صحيح معلوميږي او ددې څخه مقصد دا وو چي د يهود او نصارای مخالفت وکړل سي مګر الله تعالی ته چي څه منظور وه هغه وسول او رسول الله ﷺ په راتلونکي کال کي پاته نسو بلکه په هغه کال د ربيع الاول په مياشت کي په حق ورسيدی، همداسي که څه هم رسول الله ﷺ د مياشتي په نهم روژه ونه نيول مګر علماء ليکي چي د رسول الله ﷺ عزم او ارادې په وجه د امت لپاره د محرم په نهم تاريخ روژه نيول سنت ګرځول سوې ده.

محقق علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمايي چي د عاشورې په ورځ روژه نيول مستحب دي مګر ددې سره د عاشورې څخه يوه ورځ مخکي يا يوه ورځ وروسته هم روژه نيول مستحب دي ددې مطلب دا دی چي يوازي د عاشورې په ورځ روژه نيول مکروه دي ځکه چي په دې سره د يهودو سره مشابهت لازميږي.

## د عرفات دورځي روژه

﴿۱۹۴۴﴾: وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّ نَاسًا تَمَارَوْا عِنْدَهَا يَوْمَ عَرَفَةَ فِي

د حضرت ام فضل بنت حارث (رض) څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ د عرفات د ورځي

صِيَامِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ هُوَ صَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ

د روژې په اړه د هغوی ﷺ په شتون کي د خلکو په منځ کي اختلاف سو، ځينو وويل نن د رسول الله ﷺ روژه ده او ځينو ويل

لَيْسَ بِصَائِمٍ فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَهُوَ وَاقِفٌ عَلَى بَعِيرِهِ بِعَرَفَةَ فَشَرِبَهُ. متفق عليه

روژه يې نه ده، ما رسول الله ﷺ ته د شېدو يو لوښی وليږئ، رسول الله ﷺ په دغه وخت کي پر

اوبنں سپور د عرفات په میدان کي ولاړوو ، رسول الله ﷺ د شېدو پیاله واخیستل او وه یې
چېښلې . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري)، ۲۳۶/۴، رقم: ۱۹۸۸، ومسلم ۷۹۱/۲، رقم: ۱۱۰- ۱۱۲۳.

**تشریح**: بي بي ام فضل رضي الله عنها د حضرت عباس رضی الله عنه زوجه محترمه او د نبي کریم ﷺ اکا ماینه وه ، ددې حدیث څخه معلومه سوه چې د عرفات په ورځ روژه نیول د حج کونکو لپاره مسنون نه ده البته د نورو خلکو لپاره مسنون ده .

## د عرفات دورځي روژه

﴿۱۹۴۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَائِمًا فِي الْعَشْرِ قَطُّ . رواه مسلم

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چې ما رسول الله ﷺ هیڅکله (د لوی اختر په لومړي ) لسیزه کي په روژو نیولو نه دئ لیدلئ . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۸۳۳/۲، رقم: ۹- ۱۱۲۳.

**تشریح**: د عشره څخه د ذي الحجې لسیزه یعني د اول څخه تر لسم پوري مراد ده، ددې حدیث څخه خو په ظاهره دا معلومېږي چې رسول الله ﷺ په دغه لسیزه کي هیڅ کله روژه نه ده نیولې او حال دا چې په یوه روایت کي منقول دي چې په غه لسیزه کي هره ورځ (پرته د لسم یعني د اول څخه تر نهم پوري) د روژو ثواب د یوه کال د روژو برابر دی او ددغه لسیزي هره شپه کي د الله تعالی د عبادت لپاره بیداره کېدل په شب قدر کي د عبادت لپاره د بیداره کېدو د ثواب برابر دی، نو د بي بي عائشې رضي الله عنها د پورتني روایت د مراد په باره کي علماء لیکي چې دلته بي بي عایشې رضي الله عنها د خپل علم نفي کړی دی چې ما رسول الله ﷺ پر روژو نیولو نه دی لیدلی او څرګنده ده چې د بي بي عائشې رضي الله عنها نه لیدل ددې خبري دلیل نه دی چې رسول الله ﷺ روژه نه ده نیولې، کیدای سي چې رسول الله ﷺ په دغه عشره کي روژه نیولې وي او بي بي عائشې رضي الله عنها ته خبر نه وي ، یا په آخري درجه کي دا احتمال کیدای سي چې رسول الله ﷺ ددغه لسیزي د روژو پورتنی ثواب خو بیان کړ مګر خپله رسول الله ﷺ ته په دغه لسیزه کي د روژو نیولو اتفاق نه وي سوی .

## غوره نفلي روژې

﴿۱۹۴۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّ رَجُلاً اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَيْفَ

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ تاسو څنګه

تَصُومُ فَغَضِبَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مِنْ قَوْلِهِ فَلَمَّا رَأَى عُمَرُ رضي الله عنه غَضَبَهُ قَالَ

روژه نيسئ؟ د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ په غضب سو، حضرت عمر رضي الله عنه چي د رسول الله ﷺ غصه وليدل نو دا کلمات ويل يې پيل کړه:

رَضِينَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا نَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ غَضَبِ اللّٰهِ

(رضينا .....) موږ د الله په رب کېدو، د اسلام په دين کېدو، او د محمد ﷺ په نبي کېدو راضي يو، موږ د الله جل جلاله څخه د الله د غضب

وَغَضَبِ رَسُولِهِ فَجَعَلَ عُمَرُ رضي الله عنه يُرَدِّدُ هٰذَا الْكَلَامَ حَتّٰى سَكَنَ غَضَبُهُ فَقَالَ

او د هغه د رسول د غضب څخه پناه غواړو، حضرت عمر رضي الله عنه څو واره دا جملې وويلې تر څو چي د رسول الله ﷺ غصه پای ته ورسيده، بيا حضرت عمر رضي الله عنه وويل:

عُمَرُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ بِمَنْ يَصُومُ الدَّهْرَ كُلَّهُ قَالَ لَا صَامَ وَلَا أَفْطَرَ أَوْ قَالَ

اې د الله رسوله! د هغه چا څه حال دئ چي هميشه روژه نيسي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه نه روژه ونيول او نه يې وخوړل، يا يې داسي وفرمايل:

لَمْ يَصُمْ وَلَمْ يُفْطِرْ قَالَ كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمَيْنِ وَيُفْطِرُ يَوْمًا قَالَ وَيُطِيقُ

هغه روژه هم نه ونيول او روژه ماتي يې هم نه وکړ، بيا حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړه د هغه سړي څه حال دئ چي دوې دوې ورځي روژه نيسي او يوه ورځ يې خوري؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک د دې توان لري،

ذٰلِكَ أَحَدٌ قَالَ كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا قَالَ ذَاكَ صَوْمُ دَاوُدَ عَلَيْهِ

بيا حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړه: څوک چي يوه ورځ روژه نيسي او يوه ورځ يې خوري؟ رسول الله ﷺ

وفرمايل :دا د داؤد عليه السلام روژه ده،

السَّلَام قَالَ كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمَيْنِ قَالَ وَدِدْتُ أَنِّي طُوِّقْتُ ذٰلِكَ

بيا حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړه څوک چي يوه ورځ روژه نيسي او دوې ورځي يې خوري ؟
رسول الله ﷺ وفرمايل: زه غواړم چي زما ددې توان په برخه سي ،

ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ ثَلَاثٌ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَرَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ فَهٰذَا

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : درې روژې د هري مياشتي او د رمضان څخه تر رمضان پوري دا

صِيَامُ الدَّهْرِ كُلِّهِ صِيَامُ يَوْمِ عَرَفَةَ أَحْتَسِبُ عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي

د ټول کال يعني د ټولي زمانې روژې دي ، او د عرفات د ورځي د روژې زما د الله جل جلاله څخه اميد
دئ چي دا روژه به د هغه کال ګناهونه چي

قَبْلَهُ وَالسَّنَةَ الَّتِي بَعْدَهُ وَصِيَامُ يَوْمِ عَاشُورَاءَ أَحْتَسِبُ عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُكَفِّرَ

السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ . رواه مسلم

تر دې دمخه سوي وي او او د هغه کال ګناه چي ددې وروسته دئ ټولي ليري کړي او د عاشورا د
ورځي روژه د الله څخه اميد لرم چي د يوه کال مخکي ګناهونه به ليري کړي . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم ۲\۸۱۸ – ۸۱۹، رقم: ۱۱۶۲.

**تشريح** : سوال کوونکي ته خو دا پکار وه چي د رسول الله ﷺ څخه يې په خپل باره پوښتنه کړې واى چي زه نفلي روژې څرنګه او کله ونيسم چي رسول الله ﷺ د هغه د احوال او کوائف سره سم جواب ورکړی واى مګر هغه د ځان په باره کي د پوښتني کولو پر ځاى د نبي کريم ﷺ په باره کي پوښتنه وکړه ، څرګنده ده چي دا نه يوازي د اداب نبوت خلاف وه بلکه دا تر يو حده پوري بې ادبي هم وه ځکه پر رسول الله ﷺ د غصې آثار څرګند سول يا دا چي د رسول الله ﷺ احوال او کوائف بالکل د دوهم نوعيت وه، د رسول الله ﷺ افعال او عبادات کي د کثرت او قلت هم اسرار او مصالح وه او ظاهره ده چي اسرار او مصالح د هر سړي په افعال او عبادت کي نسي کيداى ، رسول الله ﷺ ديري روژې نه نيولې ځکه چي رسول الله ﷺ به د مسلمانانو د مسائلو او مصالحو او د ازواجو مطهراتو د حقوقو د ادا کولو او د دباندي څخه د راتلونکو ميلمنو په

کارو کي بوخت وو په داسي صورت کي دا ممکن نه ده چي رسول الله ﷺ نقلي روژې ډيري نيولای.

(من يصوم الدهر) : کوم څوک چي هميشه روژې نيسي د هغه په اړه څه حکم دی ؟ پوښتنه کونکي په اصل کي د رسول الله ﷺ څخه دا پوښتنه کول مگر هغه غلط طرز اختيار کړ ځکه حضرت عمر رضي الله عنه د هغه سوال په داسي انداز کي په ډير ادب او عاجزي سره وپوښتی چي کوم سړی هميشه روژې نيول غواړي د هغه په باره کي د شريعت څه حکم دی ؟ ايا داسي سړی د خپل دغه عمل په وجه د شريعت په نظر کي غوره دی يا نه ؟ ددې سوال په جواب کي رسول الله ﷺ چي کومه جمله (لاصام ولا افطر) وفرمايل په دې باره کي علماء ليکي چي دا جمله يا خو د داسي سړي لپاره د تنبيه په توگه ده يا دا چي د هغه سړي د حال خبر دی چي نه خو يې روژه ونيول ځکه چي داسي روژه نيول د شريعت د حکم مطابق نه ده او نه هغه بېله روژې پاته سو ځکه چي هغه خوراک او څښاک او ټول شيان پرېښودل.

امام شافعي رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه فرمايي چي دا ارشاد هغه سړي په اړه دی کوم چي منعه سوي روژې هم نيسي يعني ټول کال روژې نيسي حتی چي د اخترو او ايا تشريق روژې هم نه پرېږدي، هو که يو سړی په دغه منع ورځو کي روژې نه نيسي نو دا ارشاد به د هغه په حق کي نه وي او هغه ددغه ورځو څخه پرته په نورو ټولو ورځو کي روژې نيسي نو څه پرواه نسته، ځه چي ابوطلحه انصاري رضي الله عنه او حمزه بن عمرو اسلمي رضي الله عنه ددغه منع ورځو څخه پرته په نورو ټولو ورځو کي روژې نيولې، او رسول الله ﷺ هغوی نه منع کول، يا دا چي د هميشه روژو نيولو د منع علت دادی چي داسي روژې نيول انساني بدن ضعيف او کمزوری کوي چي د هغه په وجه داسي سړی جهاد او د نورو حقونه نه ادا کوي نو هميشه روژه نيول که يو سړی په ضعف او کمزوری کي اخته نه کړ نو د هغه لپاره هميشه روژې نيول پرواه نه لري، حنفي محقق علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمايي چي هميشه روژې نيول مکروه تنزيهي دي ځکه چي په دې سره ضعف او ناتواني لازميږي، همداسي په فتاوی عالمگيري او درمختار کي هم دا ليکلي دي چي صوم دهر (يعني هميشه روژې نيول) مکروه دي.

(ويطيق ذالک احد) : يعني څوک ددې توان لري : ددې مطلب دادی که يو سړی پر دوو ورځو روژې نيولو او يوه ورځ خوړلو باندي قادر وي او په هغه کي دومره قدرت وي چي داسي روژې ونيسي نو د هغه لپاره څه پرواه نسته يا ددې جملې مطلب دادی چي داسي روژه نيول افضل دي.

(ذالک صوم داؤد) : يعني دا د حضرت داؤد عليه السلام روژه ده: ددې مطلب دادی چي د روژو

نیولو دا طریقه ډیره معتدله او درمیانه ده او په دې کې د عبادت او عادت رعایت دی ، اسلام د ټولو آسماني مذهبو یو ښکلی مقام دی ځکه په مذاهب سره توازن او د اعتدال لار ښودلې ده د هغه په نظریاتو او اعمالو کې نه افراط سته او نه تفریط ، ځکه ځیني مفکرین اسلام دا کلیه بیان کړې ده چې د علم په تر لاسه کولو کې په دومره اندازه سره کوښښ کول پکار دي چې د هغه په وجه د عمل لار بنده نسي او په اعمالو کې هم په داسي طریقه سره بوختیا نه وي چې د هغه په وجه د علم رڼا تر لاسه نه کړل سي د دغه کلیې حاصل دادی چې د علم تر لاسه کول باید انسان د زیات سعي او کوښښ په وجه د عمل څخه منع نه کړي .

او په عمل کې ډېره بوختیا یې د علم څخه د باندي نه کړي بلکه اعتدال او په توازن سره دواړي لاري خپلي کړل سي ځکه ویل سوي دي چې خیر الامور اوسطها و شرها تفریطها او افراطها ، یعني د یو شي خیر او غوره والی د هغه په میانه لاره کې دی او د هغه خرابي د حد څخه زیاتوب او د حد څخه کمتوب کې ده ، ځکه فرمایل سوي دي :

(افضل الصیام صوم داؤد علی نبینا وعلیه السلام) :

ژباړه : په نفلي روژو کې تر ټولو غوره روژه د حضرت داؤد علیه السلام روژه ده .

(وددت اني طوقت) : یعني زه دا خوښوم چې په ما کې دومره طاقت راسي یعني دا زما خوښ دی چې حق تعالی ما ته دومره طاقت او قوت راکړي چې په هره ځلورمه ورځ روژه ونیسم یعني یوه ورځ خو روژه ونیسم او دوې ورځي روژه وخورم ، او په دې اړه د نورو حقوق او د مسلمانانو په مصالح کې بندیز رانسي ګویا د دې ارشاد څخه دې ته اشاره ده چې زه د دې طاقت نه لرم خو دا چې د الله تعالی د لوري ما ته دا طاقت او قوت راکړل سي ، حاصل دا چې رسول الله ﷺ د نفلي روژو نیولو په اړه دا صورت هم خوښ کړ که څه هم د رسول الله ﷺ په سبب د عدم طاقت په دغه عمل ونه کړ .

په هره میاشت کې د درو درو روژو څخه مراد د ایام بیض یعني د هري میاشتي د دیارلسم ، څوارلسم او پنځلسم تاریخ روژې دي ، مګر ځیني حضرات وایي چې د هري میاشتي د هر درو تاریخو روژې د پورتني ثواب سبب دي او دا قول صحیح معلومیږي لکه څرنګه چې د بي بي عائشې رضي الله عنها یوه روایت چې مخته راځي د دې وضاحت کړی دی .

## د دوشنبې دورځي روژه

﴿۱۹۴۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَوْمِ

الِاثْنَيْنِ فَقَالَ فِيهِ وُلِدْتُ وَفِيهِ أُنْزِلَ عَلَيَّ . رواه مسلم

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه د دوشنبې د ورځي د روژې په اره پوښتنه وسول، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : زه په دې ورځ پيدا سوى يم او په دې ورځ قرآن نازليدل پيل سول . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۸۲۰، رقم: ۱۹۸- ۱۱۶۲.

**تشريح** : د پوښتني كولو مقصد يا خو د رسول الله ﷺ د روژو نيولو سبب معلومول وو او يا دا مقصد وو چي د دوشنبې په ورځ روژه نيول مستحب ولي دي ؟ په هر حال د دوشنبې په ورځ د روژې نيولو او ددې د فضيلت سبب دادى چي په دغه ورځ رسول الله ﷺ پيدا سوى دى او په دغه ورځ دين فطرت په دنيا كي نازليدل پيل سول او په همداسي توګه نړيوالو ته يو عظيم نعمت ترلاسه سو ځكه نو د دغه د شكرانې په توګه د دوشنبې په ورځ روژه نيول كيږي .

## په هره مياشت كي درې روژې

﴿۱۹۴۸﴾: وَعَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت معاذة العدوية رضي الله عنها څخه روايت دئ چي هغې د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وكړه

وَسَلَّمَ أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ

ايا رسول الله ﷺ به په هره مياشت كي درې روژې نيولې ،

قَالَتْ نَعَمْ فَقُلْتُ لَهَا مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ كَانَ يَصُومُ قَالَتْ لَمْ يَكُنْ يُبَالِي مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ يَصُومُ . رواه مسلم

هغې وويل : هو، ما بيا پوښتنه وكړه چي د مياشتي په كومو ورځو كي به يې روژې نيولې ؟
هغې وويل :رسول الله ﷺ ددې پروا نه كول په كومو ورځو كي چي به يې غوښتل روژې به يې نيولې . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۸۱۸، رقم: ۱۹۴- ۱۱۶۰.

**تشريح** : ددغه حديث څخه معلومه سوه چي په هره مياشت كي درې ورځي روژې نيول كافي دي په كومه ورځ چي غواړي روژه دې ونيسي ، د ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاريخ شرط نه

دی ، په اکثرو حدیثو او آثارو کي دغه درې تاریخونه ذکر سوي دي ځکه په دغه درو تاریخو کي روژې نیول افضل دي ، په هره میاشت کي د درو روژو نیولو نور صورتونه هم سته چي مخته به راسي .

## د ټولي زمانې روژه

﴿۱۹۴۹﴾: وَعَنْ اَبِي اَيُّوبَ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ اَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ كَانَ كَصِيَامِ الدَّهْرِ . رواه مسلم

د حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د رمضان د میاشتي روژې ونیسي بیا په شوال کي شپږ روژې ونیسي نو لکه هغه چي د ټولي زماني لپاره روژې ونیولې . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۸۲۲، رقم: ۲۰۴- ۱۱۶۴.

**تشریح** : لکه څرنګه چي د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي د رمضان د روژو څخه وروسته د شوال په میاشت کي شپږ روژې نیول د لوی ثواب او فضیلت باعث دي ، د دغه روژو په اړه د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد غوره داده چي د رمضان څخه سمدستي وروسته یعني د دوهم تاریخ څخه تر اوووم تاریخ پوري پرله پې دا روژې ونیول سي او د امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه په نزد په متفرقه توګه سره دغه روژې نیول غوره دي یعني په ټوله میاشت کي کله چي وغواړي شپږ روژې دي ونیسي .

## منع روژې

﴿۱۹۵۰﴾: وَعَنْ اَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَوْمِ يَوْمِ الْفِطْرِ وَالنَّحْرِ . متفق علیه

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د کوچني اختر او لوی اختر په ورځ د روژې نیولو څخه منع فرمایلې ده . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري)، ۴\۲۳۹، رقم: ۱۹۹۱. ومسلم ۲\۸۰۰، رقم: ۱۴۱- ۸۲۷.

**تشریح** : د نحر څخه جنس یعني د نحر ټولي ورځي مراد دي او دلته دا لفظ تغلیبا ذکر سوی دی ځکه چي په ایام تشریق کي هم روژې نیول حرام دي ، د دې مسئلې وضاحت دادی چي د نحر

(قرباني) درې ورځې دي او د تشريق هم درې ورځې دي مګر د ټولو مجموعه څلور ورځې کيږي په داسي توګه چي د ذي الحجي لسم تاريخ يوازي د نحر ورځ ده او ددې څخه وروسته دوې ورځې يعني يوولسم او دوولسم تاريخونه ايام نحر هم دي او ايام تشريق هم دي او ددغه دواړو تاريخونو څخه وروسته يوه ورځ يعني ديارلسم تاريخ يوازي يوم تشريق دی ، خلاصه دا چي دا پنځه ورځي داسي دي چي په دې کي روژې نيول حرام دي :

۱. د کوچني اختر ورځ .

۲. د لوی اختر ورځ .

۳. د لوی اختر څخه وروسته يعني يوولسم، دوولسم او ديارلسم تاريخ.

﴿۱۹۵۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ صَوْمَ فِيْ يَوْمَيْنِ الْفِطْرِ وَالأَضْحٰى . متفق عليه

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په دوو ورځو کي روژې نسته يعني کوچنی اختر او لوی اختر . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۷۰، رقم: ۱۱۹۷، ومسلم ۲\۷۹۹، رقم: ۱۴۰– ۸۲۷.

## د تشريق ورځي

﴿۱۹۵۲﴾: وَعَنْ نُبَيْشَةَ الْهُذَلِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيَّامُ التَّشْرِيقِ أَيَّامُ أَكْلٍ وَّذِكْرِ اللّٰهِ . رواه مسلم .

د حضرت نبيشة الهذلي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د تشريق ورځي (يعني د ذي الحجې يوولسم، دوولسم او ديارلسمي نېټې) د خوراک، څښاک او د الله د يادولو ورځي دي . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم ۲\۸۰۰، رقم: ۱۴۴– ۱۱۴۱.

**تشريح** : ايام تشريق درې ورځي دي: د ذي الحجې يوولسم، دوولسم او ديارلسم تاريخونه، دلته د ايام تشريق لفظ تغليبا ذکر سوی دی ځکه چي يوم نحر (د قرباني ورځ) هم د خوراک او څښاک ورځ ده بلکه اصل خو هغه ورځ ده او دا درې ورځي د هغه تابع دي نو په دغه څلورو

ورځو کي روژې نیول حرام دي.

ابن همام رحمة الله علیه فرمایي چي په نوروز او مهرجان کي روژه نیول مکروه دي ځکه چي په دغه ورځو کي روژه نیولو سره ددغه ورځو تعظیم لازمیږي کوم چي په اسلامي شریعت کي منع دي ،هو که یو سړی د خپل معمول سره سم د مخکي څخه روژې نیولي وي او په اتفاق سره دا ورځ هم د هغه د معمول په مینځ کي راسي نو بیا ددغه ورځو روژې پرواه نه کوي.

(و ذکر الله): ددغه جملې څخه خبرتیا مقصد ده چي دغه ورځي که څه هم د خوراک،څښاک او خوشحالۍ ورځي دي مګر په دغه کارو کي د بوختیا سربیره د الله تعالی د یاد او عبادت څخه غافل کېدل نه دي پکار ګویا ددغه آیت کریمه په لور اشاره سوې ده:

وَاذْكُرُواْ اللّهَ فِي أَيَّامٍ مَّعْدُودَاتٍ

ژباړه: او د شمېر په ورځو کي الله تعالی یادوی.

او د ذکر الله څخه مراد په ایام تشریق کي د لمونځو څخه وروسته ویونکي تکبیرات، د قربانۍ کولو وخت او تکبیرات او د حج کونکو لپاره رمي جمار (د شیطانانو ویشتل) او داسي نور دي.

## د جمعې په ورځ روژه

﴿۱۹۵۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَصُوْمُ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِلَّا أَنْ يَصُومَ قَبْلَهُ أَوْ يَصُومَ بَعْدَهُ. متفق عليه

د حضرت ابو هریرة ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چي څوک د جمعې د ورځي روژه نیسي نو داسي دي یې نیسي چي د هغه څخه یوه ورځ مخکي یا یوه ورځ وروسته دي هم روژه نیسي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۳۲،رقم: ۱۹۸۵. ومسلم ۲\۸۰۱،رقم: ۱۴۷- ۱۱۴۴.

**تشريح**: مطلب دا چي یوازي د جمعې په ورځ دي روژه نه نیسي بلکه د جمعې د ورځي د روژې سره دي د پنجشنبې یا شنبې په ورځ هم روژه نیسي او که په دواړو ورځو یعني شنبې او پنجشنبې کي او د هغه سره د جمعې په ورځ روژه ونیسي نو غوره ده، په حدیث کي یوازي د جمعې په ورځ د روژې نیولو څخه منع ذکر سوې ده چي د نهي تنزیهي په توګه ده ، علامه ابن همام رحمة الله علیه فرمایي چي د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله

عليه په نزد يوازي د جمعې په ورځ روژه نيولو کي هيڅ پرواه نسته.

﴿۱۹۵۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَخْتَصُّوا لَيْلَةَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مه خاصوئ شپه د

الْجُمُعَةِ بِقِيَامٍ مِنْ بَيْنِ اللَّيَالِي وَلَا تَخُصُّوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِصِيَامٍ مِنْ بَيْنِ

جمعې د عبادت لپاره او د جمعې ورځ د روژې لپاره

الْأَيَّامِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي صَوْمٍ يَصُومُهُ أَحَدُكُمْ. رواه مسلم

مګر نه هغه وخت چي ستاسو د روژې ورځ جمعه راسي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲/۸۰۱، رقم: ۱۴۸- ۱۱۴۴.

**تشريح**: يهودو د شنبې ورځ د عبادت لپاره خاص کړل او هغوی يوازي ددغه ورځي تعظيم کوی او همداسي عيسايانو د يکشنبې ورځ د عبادت لپاره خاصه کړل او هغوی يوازي ددغه ورځي تعظيم کوی او په دغه ورځ په عبادت کي بوخت وي، رسول الله ﷺ د مسلمانان ددغه غلطي طريقې څخه منع کړل چي تاسو ددغه دواړو ډلو په ډول يوازي د جمعې شپه او د جمعې ورځ د تعظيم او عبادت لپاره مه خاصوئ تر څو په معامله کي ددغه دواړو ډلو مشابهت رانسي، هو شريعت چي د جمعې د ورځي کوم فضيلت او ارزښت بيان کړی دی هغه خو پر حق دی او ددغه ورځي دومره اهميت او عظمت ساتل پکار دي که څه هم په دې کي د يوې ډلي مشابهت هم نه وي مګر د خپل لوري ددغه ورځي په تعظيم او تخصيص کي زياتوب مه کوئ، او يا ددغه مخالفت مقصد دادی چي بنده ته پکار دي چي په خپل ټولو وختو کي په عبادت او طاعت کي بوخت وي او هر وخت د الله تعالی د رحمت اميدوار وي يو خاص وخت د عبادت لپاره خاصول او په پاته وختونو کي غافل او سيدل نه دي پکار.

د حديث آخري الفاظ: (الا ان يکون في صوم...الخ) ددې مطلب دادی چي د مثال په توګه د يو سړي معمول وو چي هغه په هره لسمه يا يوولسمه ورځ روژه نيول او په اتفاق سره پر هغه جمعه راغله، يا يو سړي نذر ومنی چي زه به په هغه فلاني تاريخ روژه نيسم او هغه تاريخ د جمعې په ورځ راغلی نو ددغه عذرونو په وجه يوازي د جمعې په ورځ روژه نيول منع نه دي، امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چي د تهجد د لمانځه لپاره د جمعې شپه خاصول په دغه

حديث كي په صراحت سره منع سوې دې او پر دې باندي د ټولو علماؤ اتفاق دی، او علماء صلوة الرغائب په بدعت او مكروه ګرځولو كي دا حديث د دليل په توګه اختيار كړی دی، صلوة الرغائب: هغه لمانځه ته ويل كيږي چي په خاصه توګه د رجب د مياشتي څخه مخكي د جمعې په شپه به كول كيدی، علماؤ د دغه لمانځه د بدعت او خرابۍ او د دغه لمانځه د اختراع كونكو د ګمراهۍ او ضلالت د وضاحت لپاره ځانګړي كتابونه هم ليكلي دي.

مولانا اسحاق رحمة الله عليه به فرمايل چي د دغه حديث په اړه شارحينو چي كوم پورتني توجيهات بيان كړي دي نو دا د هغه حضراتو د مذهب سره سم دي چي د هغوی په نزد يوازي د جمعې په ورځ روژه نيول مكروه دي مګر د حنفي مذهب سره سم د دغه حديث د دغه توجيهاتو هيڅ ضرورت نسته.

ځكه د حنفيه په نزد يوازي د جمعې په ورځ روژه نيول مكروه نه دي، په فتاوی عالمګيري كي ليكلي دي چي يوازي د جمعې په ورځ روژه نيول جائز دي بلكه په درمختار كي خو دا مستحب بيان سوي دي، په دې اړه د حنفيه دليل هغه حديث دی چي د عبد الله ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی او په دوهم فصل كي به راسي، نو كيدای ي چي د عبد الله بن مسعود ﷺ حديث د ټولو حديثو لپاره ناسخ وي چي د هغه څخه د جمعې په ورځ روژه نيول منعه معلوميږي.

## د الله ﷻ په لاره كي روژه

﴿۱۹۵۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ بَعَّدَ اللّٰهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ سَبْعِينَ خَرِيفًا. متفق عليه

د حضرت ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله په لاره كي يوه ورځ روژه ونيسي الله تعالی هغه د دوږخ څخه د اويا كاله په فاصله ليري ساتي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٤٧/٦، رقم: ٢٨٤٠، ومسلم ٨٠٨/٢، رقم: ١٦٨- ١١٥٣.

## په اعمالو كي ميانه روي

﴿۱۹۵۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دئ چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ أَلَمْ أُخْبَرْ أَنَّكَ تَصُومُ النَّهَارَ وَتَقُومُ اللَّيْلَ

اې عبدالله ! زه خبر سوی يم چي ته هره ورځ روژه نيسې او د شپې عبادت کوې،

فَقُلْتُ بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ فَلَا تَفْعَلْ صُمْ وَأَفْطِرْ وَقُمْ وَنَمْ فَإِنَّ لِجَسَدِكَ

ما عرض وکړ هو، اې د الله رسوله ! رسول الله ﷺ وفرمايل : داسي مه کوه ، روژه نيسه هم او پرېږده يې هم، د شپې عبادت هم کوه او د شپې خوب هم کوه، ځکه چي ستا د بدن هم

عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِزَوْرِكَ

پر تا حق دئ ، ستا د سترګو هم پر تا حق دئ او ستا د ښځي هم پر تا حق دئ او ستا د ميلمه هم

عَلَيْكَ حَقًّا لا صام من صام الدهر صوم ثلثة ايام من كل شهر صوم

پر تا حق دئ ، چا چي هميشه روژه ونيول نو هغه روژه نه ونيول ، په مياشت کي درې ورځي روژې نيول

الدهر كله صُمْ كُلَّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَاقْرَإِ الْقُرْآنَ فِي كُلِّ شَهْرٍ قَالَ قُلْتُ

د ټول عمر د روژو نيولو سره سم دي ، او په مياشت کي يو وار قرآن کريم وايه ، ما عرض وکړ :

أُطِيقُ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ صُمْ أَفْضَلَ الصَّوْمِ صَوْمَ دَاوُدَ صِيَامَ يَوْمٍ وَإِفْطَارَ

زه تر دې زيات توان لرم ، رسول الله ﷺ وفرمايل : نو بيا غوره روژه نيسه يعني د داؤد عليه السلام روژه،

يَوْمٍ وَاقْرَأْ فِي كُلِّ سَبْعِ لَيَالٍ مَرَّةً وَلَا تَزِدْ عَلٰى ذَالِكَ . متفق عليه

يوه ورځ روژه نيول او يوه ورځ نه نيول، او په اوو شپو کي يو قرآن کريم (ختموه) او تر دې زيات نه . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۱۷\۱۴، رقم: ۱۹۷۵، ومسلم ۸۱۲\۲، رقم: ۱۸۱- ۱۱۵۹.

**تشريح** : شريعت په اعمالو کي پر ميانه روی او اعتدال باندي ډېر زور ورکړی دی ، په نفلي عباداتو او اعمالو کي نه دومره کمي او کوتاهي کول پکار دي چي په هغه سره په روحاني ترقی کي کمزوري او د لوړو درجو په ترلاسه کولو کي خنډ پيداسي او نه دومره زياتوب کول پکار

دی چي په هغه سره بدني توان بالکل ختم سي ، او په دنیوي مباح کارونو کي بندیز څرګند سي ځکه رسول الله ﷺ حضرت عبد الله رضی الله عنه منع کړ چي نه خو دومره زیاتي روژې نیسه او مه دومره د شپې ویښیږه چي د هغه په وجه نور ضروري او فرض عباداتو کي خلل واقع سي او نه نور انساني او ټولنیز حقوق تر پښنو لاندي سي ، په هره میاشت کي دري دري روژې نیولو سره د همیشه روژو ثواب ځکه لیکل کیږي چي د هري نیکۍ بدله لس نیکۍ لیکل کیږي څرنګه چي په څو ځایو کي ښودل سوي دي په دې حساب سره دري روژې په اعتبار د ثواب او جزا د دیرشو روژو برابر سوې او په میاشت کي دري روژې نیونکی ګویا د پوره میاشت روژه نیونکی سو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د دوشنبې او پنجشنبې روژې

﴿۱۹۵۷﴾ : عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُوْمُ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ . رواه الترمذي والنسائي .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به د دوشنبې او پنجشنبې د ورځي روژې نیولې . ترمذي او نسائي .

**تخريج** : سنن الترمذي ۳\۱۲۱، رقم: ۷۴۵، والنسائي ۴\۲۰۲، رقم: ۲۳۶۰.

**تشريح** : د بندګانو چي کوم اعمال دي ملائکي هغه هر سهار او ماښام پورته کوي او بیا هغه د الله تعالی په دربار کي په دوو ورځو کي وړاندي کیږي ، د دغه وضاحت سره سم په دغه حدیث او هغه حدیث کي چي تعارض پاته نه سو چي د هغه څخه ثابته سوې وه چي د بندګانو د سهار اعمال د شپې د اعمالو څخه مخکي پورته وړل کیږي او یا دا به وویل سي چي هره ورځ هر عمل په تفصیلي توګه سره وړاندي کیږي او بیا په دغه دواړو ورځو کي ټول اعمال په اجمالي توګه سره وړاندي کیږي .

### د بندګانو عملونه

﴿۱۹۵۸﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ تُعْرَضُ الْأَعْمَالُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ فَأُحِبُّ أَنْ يُعْرَضَ عَمَلِي وَأَنَا صَائِمٌ . رواه الترمذي

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله (په دربار کي) د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ عملونه وړاندي کيږي نو زه دا خوښوم چي زما عملونه وړاندي کړل سي او زما روژه وي . ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۳\ ۱۲۲، رقم، ۷۴۷.

## د ايام بيض روژې

﴿۱۹۵۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا ذَرٍّ اِذَا

د حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې ابوذره !

صُمْتَ مِنَ الشَّهْرِ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ فَصُمْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ وَاَرْبَعَ عَشْرَةَ وَخَمْسَ عَشْرَةَ . رواه الترمذي والنسائي .

هر کله چي ته روژې نيول وغواړې نو په مياشت کي درې ورځي روژه نيسه يعني د هري مياشتي په ديارلسم، څورلسم او پنځلسم باندي . ترمذي او نسائي

**تخریج**: سنن الترمذي ۳\ ۱۳۴، رقم: ۷۶۱. والنسائي ۴\ ۲۲۳، رقم: ۲۴۲۳.

**تشریح**: په هره مياشت کي درې ورځي د نفلي روژو نيولو په اړه څو طريقې نقل سوي دي مګر غوره طريقه داده چي په پورتنيو درو تاريخو کي چي ايام بيض ورته ويل کيږي روژې ونيول سي .

## د جمعې په ورځ روژه

﴿۱۹۶۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د

يَصُومُ مِنْ غُرَّةِ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ وَقَلَّمَا كَانَ يُفْطِرُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ . رواه الترمذي والنسائي و رواه ابوداؤد الى ثلثة ايام .

هري مياشتي په پيل کي درې ورځي روژې نيولې، او داسي به ډير کم کيدل چي د جمعې په ورځ به يې روژه نه وه . ترمذي، نسائي او ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داؤد ۲\ ۸۲۲، رقم: ۲۴۵۰. والترمذي ۳\ ۱۱۸، رقم: ۷۴۲. والنسائي ۴\ ۲۰۴، رقم: ۲۳۶۸.

**تشريح** : مخکي يو څو حديثونه تير سوي دي چي د هغو څخه معلوميږي چي يوازي د جمعې په ورځ نفلي روژه نيول نه دي پکار او حال دا چي دغه حديث د هغه حديثو برعکس معلوميږي، ددې حديث تاويل دادی چي رسول الله ﷺ به د جمعې سره يوه ورځ مخکي يا يوه ورځ وروسته هم روژه نيول يا دا چي يوازي د جمعې په ورځ روژه نيول د رسول الله ﷺ سره خاص وه، لکه څرنګه چي د وصال روژې يوازي د رسول الله ﷺ لپاره خاص وې مګر دا تاويل د هغه حضراتو د مذهب سره سم دی چي د جمعې په ورځ روژه نيول جائز بولي ځکه د حنفيه په نزد ددې تاويل څه ضرورت نسته بلکه هغوی د جمعې په ورځ ذ روژې جواز ددغه حديث څخه ثابتوي.

## د نفلي روژو پيل

﴿۱۹۶۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَصُومُ مِنَ الشَّهْرِ السَّبْتَ وَالْأَحَدَ وَالِاثْنَيْنِ وَمِنَ الشَّهْرِ الْآخَرِ الثُّلَاثَاءَ وَالْأَرْبِعَاءَ وَالْخَمِيسَ. رواه الترمذي

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په مياشت کي د شنبې، يکشنبې او دوشنبې په ورځ روژې نيولې او په بله مياشت کي به يې د سه شنبې، چهارشنبې او پنجشنبې په ورځ روژې نيولې. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۱۲۲، رقم: ۷۴۶.

**تشريح** : په لومړني حديث کي د جمعې په ورځ د روژې نيولو يادونه وه او په دغه حديث کي د اونۍ د پاته ورځو په باره کي ذکر سوی دی، معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د اونۍ په ټولو ورځو کي روژه نيول، ټولي ورځي د الله تعالى دي ځکه رسول الله ﷺ دا مناسب نه ګڼل چي په ځينو ورځو کي روژه ونيسي او په ځينو کي روژه ونه نيسي، ګويا په دې اړه هم رسول الله ﷺ د عدل او اعتدال لار اختيار کړې وه.

﴿۱۹۶۲﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَأْمُرُنِي أَنْ أَصُومَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ أَوَّلُهَا الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د ام سلمة (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به ما ته فرمايل چي : په هره مياشت کي

دري ورځي روژه نيسه او دا روژې د دوشنبې او پنجشنبې د ورځي ځخه پيل کوه. ابوداؤد او نسائي

**تخريج:** سنن ابي داود ۲\۸۲۲، رقم: ۲۴۵۲. والنسائي ۴\۲۲۱، رقم: ۲۴۱۸.

**تشريح:** په لفظ (والخميس) کي واو د او په معنی دی، ددې مطلب دادی چي په هره مياشت کي درې روژې نيسه په داسي توګه چي لومړی روژه د دوشنبې په ورځ او دوهمه او دريمه روژه د سه شنبې او چار شنبې په ورځ وي، يا لومړی روژه د پنجشنبې په ورځ وي او پاته دوې روژې د جمعې او شنبې په ورځ وي.

په طبراني کي او يعني او الخميس لفظ ذکر دي، په هر حال د روژه نيونکي اختيار دی چي شروع د دوشنبې د ورځي ځخه وکړي يا د پنجشنبې د ورځي ځخه دواړي ورځي مبارکي دي.

## د هميشه روژو نيولو منعه

﴿۱۹۶۳﴾: وَعَنْ مُسْلِمِ الْقَرَشِيِّ قَالَ سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت مسلم القرشي رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي ما يا بل چا د رسول الله ﷺ ځخه پوښتنه وکړه

وَسَلَّمَ عَنْ صِيَامِ الدَّهْرِ فَقَالَ إِنَّ لِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا صُمْ رَمَضَانَ وَالَّذِي

د هميشه لپاره د روژې په اړه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: پر تا ستا د کورنی هم حق دئ، ته د رمضان د مياشتي روژې نيسه

يَلِيهِ وَكُلَّ أَرْبِعَاءَ وَخَمِيسٍ فَإِذَا أَنْتَ قَدْ صُمْتَ الدَّهْرَ. رواه ابوداؤد والترمذي

او د رمضان ځخه وروسته شپږ روژې او د هري چارشنبې او پنجشنبې په ورځ روژه نيسه، (ددې په نيولو سره) لکه تا چي د ټول عمر لپاره روژه ونيول. ابوداؤد او ترمذي

**تخريج:** سنن ابي داود ۲\۸۱۲، رقم: ۲۴۳۲. والترمذي ۳\۱۲۳، رقم: ۷۴۸.

**تشريح:** مطلب دادی چي د هميشه روژو نيولو ځخه کمزورتيا رامينځته کيږي چي د هغه په وجه نه يوازي دا چي د حقوقو په ادا کولو کي خلل لويږي بلکه په نورو عباداتو کي هم تاوان او حرج واقع کيږي، ځکه نو هميشه روژې نيول مکروه دي، هو کوم سړي ته چي د ضعف او کمزورتيا بيره نه وي نو د هغه لپاره هميشه روژې نيول مکروه نه دي بلکه مستحب دي، همدارنګه د هميشه روژو نيولو د منع په اړه نقل سوي حديثونه او د هغه مشائخو او سلفو عمل کي چي هميشه يې روژې نيولې پوره تنی وضاحت سره تطبيق هم کيږي او کيدای سي چي دلته

کوم حدیث ذکر سوی دی هغه به رسول الله ﷺ ددغه حدیث څخه مخکي فرمایلی وي چي په هغه کي ښودل سوي وه چي په هره میاشت کي درې روژې نیولو سره د همیشه روژو ثواب حاصلیږي.

په یوه بله خبره باندي هم پوه سئ: په تېرو مخونو کي د تشریق په څنګ کي علامه ابن همام رحمة الله علیه هغه اقوال نقل کړي وه چي د هغو څخه دا ثابت کیدل چي د همیشه روژو نیول مستقلا مکروه دي او په در مختار کي هم دا منقول دي چي همیشه روژې نیول مکروه تنزیهي دي، او حال دا چي دلته دا خبره ښودل سوې ده چي همیشه روژې نیول هغه وخت مکروه دي کله چي د روژه دار ضعف او کمزوري کي د اخته کېدو بیره وي که چیري د ضعف او کمزوری بیره نه وي نو بیا مکروه نه دي، په دغه ټولو اقوالو کي مطابقت پیدا کړي چي د کومو قولو څخه د همیشه روژو مطلقا مکروه کیدل ثابتیږي او په حقیقت د هغه محمول هم خوف ضعف دی یعني ددغه اقوال مطلب هم دادی که د ضعف بیره وي نو همیشه روژې نیول مکروه دي او که دا بیره نه وي نو بیا مکروه نه دي.

## د عرفات په ورځ روژه

﴿۱۹۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ. رواه ابوداؤد

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د عرفات په میدان کي د عرفات د ورځي د روژې نیولو څخه منع فرمایلې ده. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\۸۱٦، رقم: ۲۴۴۰.

**تشریح**: حج کوونکی که چیري د عرفات په ورځ روژه ونیسي نو کیدای سي چي دده په بدن کي ضعف او کمزوري راسي چي د هغه په وجه په عرفات کي نور افعال او ارکانو کي تاوان او خلل واقع سي ځکه د داسي سړي لپاره د عرفات د روژې نیولو منع وفرمایل سول مګر دا منع د نهي تحریمي په توګه نه ده بلکه دا نهي تنزیهي ده.

## د شنبې دورځي روژه

﴿۱۹۶۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ عَنْ أُخْتِهِ الصَّمَّاءِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

عبد الله بن بسر د خپلي خور بي بي صماء څخه روایت کوي چي هغې وویل: رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَصُومُوا يَوْمَ السَّبْتِ إِلَّا فِيمَا افْتَرَضَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ فَإِنْ

وفرمايل : د شنبې په ورځ روژه مه نيسئ پرته د هغه روژو څخه چي پر تاسو فرض سي، كه

لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا لِحَاءَ عِنَبَةٍ أَوْ عُودَ شَجَرَةٍ فَلْيَمْضُغْهُ. رواه احمد وابوداؤد والترمذي وابن ماجة والدارمي

تاسو د روژه ماتي لپاره شي پيدا نه كړئ نو د انګورو پوست يا د درختي لرګي دي وځيېني، احمد، ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجة او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\ ٣٦٨، وابوداؤد ٢\ ٨٠٥، رقم: ٢٤٢١. والترمذي ٣\ ١٢٠، رقم: ٧٤٤، وابن ماجه ١\ ٥٥٠، رقم: ١٧٢٦. والدارمي ٢\ ٣٢، رقم: ١٧٤٩.

**تشريح**: كه په دغه ورځ روژه نيول ضروري واى : ددې مطلب دادى كه چيري يو ضروري روژه واى مثلا فرضي يعني د رمضان روژې واى يا كفاره او نذر يا قضائي، همداسي سنت مؤكده روژې لكه د عرفات، عاشورا روژې چي دا هم د ضروري روژو په حكم كي دي او يا بله يو مسنون او مستحب روژه وي كه په دغو كي يو روژه د شنبې په ورځ راسي نو هغه به د شنبې په ورځ نيول منعه نه وي.

(فان لم يجد احدكم الخ) ددې مطلب دادى كه يو سړى د شنبې په ورځ روژه ونيسي نو هغه ته پكار ده كه چيري هغه څه تر لاسه نه كړي نو د انګورو د تاک پوستكي يا د درختي لرګي ځوېښلو سره دي روژه ماته كړي او كه دا ډول هيڅ شى هم تر لاسه نه كړي نو بيا هم په يو طريقې سره دي روژه ماته كړي.

د شنبې په ورځ روژه نيول ځكه منع دي چي په داسي كولو سره ددغه ورځي تعظيم لازميږي او د يهودو مشابهت كيږي كه څه هم يهود په دغه ورځ روژه نه نيسي ځكه چي د هغوى په نزد دا د اختر ورځ ده هغوى ددغه ورځي ډير تعظيم كوي مګر د اكثرو علماؤ په نزد د شنبې په ورځ د روژې منع د نهي تنزيهي په توګه ده.

## د الله ﷻ په لار كي يوه روژه

﴿١٩٦٦﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَامَ

د حضرت ابو امامة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي روژه ونيسي

يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ جَعَلَ اللّٰهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّارِ خَنْدَقًا كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ. رواه الترمذي

يوه ورځ د الله ﷻ لپاره يوه نو الله تعالی د هغه او د دوږخ په منځ کي يوه کنده جوړه کړي څنګه چي د آسمان او مځکي تر منځ ده. (يعني ډير ځيني ليري سي) ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۴۳، رقم: ۱۶۲۴.

**تشريح**: في سبيل الله: د دې مطلب دادی چي په جهاد کي يا د حج په لاره کي يا په عمره کي يا د علم تر لاسه کولو په وخت کي يا صرف د الله تعالی د رضا او خوښۍ په خاطر يوه ورځ روژه ونيسي، د خندق څخه مراد ډير سخت خنډ دی.

## د يخ روژه

﴿۱۹۶۷﴾: وَعَنْ عَامِرِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عامر بن مسعود ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

الْغَنِيمَةُ الْبَارِدَةُ الصَّوْمُ فِي الشِّتَاءِ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث مرسل و ذكر حديث ابي هريرة ما من ايام احب الى الله في باب الاضحية.

يخ غنيمت (په ژمي کي د روژې نيول دي. احمد او ترمذي، ترمذي ويلي دي دا حديث مرسل دئ د ابو هريرة ﷛ حديث ما من ايام احب الى الله، د اضحيې په باب کي تير سو

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۳۳۵. والترمذي ۳\۱۶۲، رقم: ۷۹۷.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

## د عاشورا د ورځي روژه

﴿۱۹۶۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَ

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ

الْمَدِينَةَ فَوَجَدَ الْيَهُودَ صِيَامًا يَوْمَ عَاشُورَاءَ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

مدینې ته نو یهودیان یې ولیدل چې د عاشورا د ورځې روژه یې ده، رسول الله ﷺ د هغوی څخه پوښتنه وکړه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هَذَا الْيَوْمُ الَّذِي تَصُومُونَهُ فَقَالُوا هَذَا يَوْمٌ عَظِيمٌ أَنْجَى اللهُ

تاسو په دې ورځ روژه نیسئ؟ دا ورځ څنګه ده؟ یهودیانو وویل: دا ډیره د عظمت ورځ ده په دې ورځ خلاصون ورکړل سو

فِيهِ مُوسَى وَقَوْمَهُ وَغَرَّقَ فِرْعَوْنَ وَقَوْمَهُ فَصَامَهُ مُوسَى شُكْرًا فَنَحْنُ

حضرت موسی علیه السلام او د هغه قوم ته او فرعون او د هغه قوم یې غرق کړ، نو حضرت موسی علیه السلام په دې ورځ د شکر په ډول روژه ونیول او موږ هم

نَصُومُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَحْنُ أَحَقُّ وَأَوْلَى بِمُوسَى

روژه نیسو، د دې په اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: د موسی علیه السلام په پیروي کي موږ زیات حقداره یو

مِنْكُمْ فَصَامَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ . متفق عليه

تر تاسو، نو رسول الله ﷺ خپله هم روژه ونیول او نورو خلکو ته یې هم د روژې نیولو حکم ورکړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۴۴، رقم: ۲۰۰۴، ومسلم ۲\۷۹۵، رقم: ۱۲۷– ۱۱۳۰.

## د شنبې او یکشنبې روژې

﴿۱۹۶۹﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به کله روژه نیول

يَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ أَكْثَرَ مَا يَصُومُ مِنَ الْأَيَّامِ وَيَقُولُ إِنَّهُمَا يَوْمَا عِيدَا

نو زیات وخت به یې د شنبې او یکشنبې په ورځ روژه نیول او فرمایل به یې: دا دواړي ورځي د

الْمُشْرِكِينَ فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أُخَالِفَهُمْ . رواه احمد

د اختر ورځي دي مشرکانو زه غوارم چي په دې ورځو کي د هغو مخالفت وکړم. احمد.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۶\ ۳۲۳- ۲۳۴.

**تشریح** : د مشرکینو څخه مراد یهود او نصارا دي او هغوی ته یې مشرک ځکه وفرمایل چي یهود خو حضرت عزیر علیه السلام ته د الله تعالی زوی وایي او نصارا (عیسایان) حضرت عیسی علیه السلام ته د الله زوی وایي.

مخکي یو حدیث تیر سوی دی چي په هغه کي د شنبې په ورځ د روژې نیولو څخه منع فرمایل سوې ده او دا حدیث د هغه څخه بالکل برعکس دی نو په دغه دواړو حدیثو کي تطبیق دادی چي ددغه حدیث تعلق خو یوازې د رسول الله ﷺ د ذات سره دی یعني دا د رسول الله ﷺ د ځانګړتیاوو څخه دی او د تیر حدیث تعلق یوازې د امت سره دی یعني هغه منع د امت د ځانګړتیاوو څخه نه ده یا دا به وویل سي چي کومي روژې منع سوي دي هغه روژې دي چي د هغه ورځي د تعظیم په توګه ونیول سي او غوره روژه هغه ده چي د یهودو او نصارا د مخالفت له کبله ونیول سي.

## د عاشورا د روځي روژه

﴿۱۹۷۰﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به

يَأْمُرُنَا بِصِيَامِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ وَيَحُثُّنَا عَلَيْهِ وَيَتَعَاهَدُنَا عِنْدَهُ فَلَمَّا فُرِضَ

موږ ته د عاشورا په ورځ د روژې نیولو حکم راکوئ او ترغیب به یې راکوئ، او د عاشورا د ورځي په نژدې راتلو سره به یې زموږ پوښتنه کول، بیا چي کله فرض سوې

رَمَضَانُ لَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا وَلَمْ يَتَعَاهَدْنَا عِنْدَهُ. رواه مسلم

د رمضان روژې نو نه یې موږ ته د عاشورا د ورځي د روژې نیولو حکم راکوئ او نه یې منع کولو او نه یې زموږ خبر اخیستئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\ ۷۹۵. رقم: ۱۲۵- ۱۱۲۸.

**تشریح** لفظ د (یامرنا) د مشکوة په اکثرو نسخو کي د (نا) څخه پرته یعني یوازې (یامر) دی مګر په صحیح مسلم کي (یامرنا) منقول دی.

## سنت مؤكده روژې

﴿۱۹۷۱﴾: وَعَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ أَرْبَعٌ لَمْ يَكُنْ يَدَعُهُنَّ النَّبِيُّ ﷺ صِيَامَ عَاشُورَاءَ وَالْعَشْرَ وَثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَرَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ. رواه النسائي.

د حضرت حفصة (رض) څخه روایت دئ چي څلور شیان دي چي رسول الله ﷺ به هیڅکله نه پرېښودل. یو د عاشورا روژې، دوهم نهه روژې د ذي الحجې، دریم درې روژې د هري میاشتي او څلورم دوه رکعته د سهار څخه ترمخه. نسائي. (د عشر څخه مراد نهه ورځي دي ځکه د قرباني په ورځ روژه نیول حرام دي).

**تخريج**: سنن النسائي ۴\۲۲۰، رقم: ۲۴۱۵.

## د ایام بیض روژې

﴿۱۹۷۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُفْطِرُ أَيَّامَ الْبِيضِ فِي حَضَرٍ وَلَا سَفَرٍ. رواه النسائي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به هیڅکله د ایام بیض روژې نه پرېښودلې، نه په کور کي او نه په سفر کي (د ایام بیض څخه مراد د هري میاشتي دیارلسم، څورلسم او پنځلسمي نېټې دي). نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۴\۱۹۸، رقم: ۲۳۴۴.

**تشريح**: د ایام بیض څخه مراد د سپوږمۍ د شپو ورځي دي یعني د قمري میاشتي دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخونه، نو په ایام بیض کي بیض سپین والي ته وایي، یعني د دغه شپو صفت دی چي د هغه ورځو ته ایام بیض ویل کیږي، دغه شپو ته بیض ځکه ویل کیږي چي په دغه شپو کي د سپوږمۍ رڼا پوره وي، ګویا پوره شپه ځلانده او روښانه وي، یا به دا ویل کیږي چي د دغه ورځو روژې د ګناهونو تیارۍ لیري کوي او زړونه روښانه کوي، یا دغه ورځو ایام بیض ځکه ویل کیږي چي حضرت آدم علیه السلام د جنت څخه ځمکي ته راکښته کړل سو نو د هغه ټول بدن تور سوی وو او کله چي د هغه توبه قبوله سوه نو حکم ورته وسو چي په دغه ورځو کي درې روژې ونیسه او هغه په دیارلسمه ورځ روژه ونیول نو دریمه برخه بدن یې سپین

او روښانه سو ، په څورلسمه ورځ چي يې روژه ونيول نو دوهمه برخه بدن يې سپين او روښانه سو او په پنځلسم تاريخ چي يې روژه ونيول نو ټول بدن يې سپين او روښانه سو .

## په هره مياشت كي د درو روژو نيولو ترتيب

دلته په دې خبره پوهيدل پكار دي چي هغه درې روژې چي په هره مياشت كي يې نيول مسنون دي په اړه دوولس شيان منقول دي :

۱. غير متعين يعني په ټوله مياشت كي كله چي و غواړي درې روژې دي ونيسي .
۲. د مياشتي په لومړنيوو ورځو كي يعني په اول، دوهم او دريم تاريخ .
۳. د مياشتي د شنبې، يكشنبې او دوشنبې په ورځو كي .
۴. د مياشتي د سه شنبې، چار شنبې او پنجشنبې په ورځو كي .
۵. په ايام بيض كي يعني په ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاريخ كي .
٦. لومړۍ روژه د دوشنبې په ورځ او دوې د سه شنبې او چار شنبې په ورځ .
۷. لومړۍ روژه د پنجشنبې په ورځ او دوې روژې د جمعې او شنبې په ورځ .
۸. لومړۍ روژه د نوي مياشتي د دوشنبې په ورځ او دوې روژې په دوو پنجشنبو كي .
۹. لومړۍ روژه د نوي مياشتي په پنجشنبه كي او دوې په دوشنبه كي .
۱۰. د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ او بيا د راتلونكي اونۍ د دوشنبې په ورځ .
۱۱. په هره لسيزه كي يوه ورځ .
۱۲. د مياشتي په آخري درو ورځو كي .

دا خبره مخكي ښودل سوې ده چي غوره داده چي په ايام بيض يعني ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاريخ بايد دا روژې و نيول سي هسي خو اختيار دی چي كله هم او څرنګه وغواړي روژې نيولای سي ثواب په هر حال حاصليږي .

په ټول كال كي د سنت روژو شمېر يو پنځوس دی ، درو ديرش روژې خو دادي يعني په حساب د درو روژو په هره مياشت كي ، نهه روژې د ذي الحجي د مياشتي په لومړنۍ تاريخ څخه تر نهم تاريخ پوري ، يوه ورځ د عاشورا ، يوه ورځ د عاشورا څخه مخكي يا وروسته ، يوه ورځ د شعبان د پنځلسم تاريخ او شپږ روژې د شوال كوم چي د شش عيد روژې هم ورته ويل كيږي.

## د بدن زكات

﴿۱۹۷۳﴾: وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ

شَيْءٍ زَكَاةٌ وَزَكَاةُ الْجَسَدِ الصَّوْمُ . رواه ابن ماجة .

د حضرت ابو هريرة ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هر شي زکوة سته او د بدن زكات روژه ده . ابن ماجة .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۵۵۵، رقم: ۱۷۴۵.

**تشريح** : د زكوة معنى زياتېدل او طهارت دی ، ځکه نو د هر شي لپاره زكوة دی ، ددې مطلب به دا وي چي د هر شي لپاره زياتوب دی چي د هغه شي څخه په يو څه برخه وركولو سره تر لاسه كيږي يا دا چي د هر شي لپاره پاكي او دطهارت يوه ذريعه تاكل سوې ده چي د هغه په وجه هغه شي پاک او طاهر كيږي ، د بدن زكوة يعني د بدني د روغتيا او صحت او د بدن د روحاني پاكي او طهارت ذريعه روژه ده چي د روژې په وجه كه څه هم په ظاهره د بدن د طاقت او قوت يو څه برخه ويلي كيږي او ناقص كيږي مګر په حقيقت كي روژه د بدن د نشو او نما او صحت كي د بركت او زياتوب يوه ذريعه جوړيږي او ددې په وجه بدن د ګناهونو څخه پاكيږي نو زكوة عبادت ماليه دی او روژه طاعت بدنيه دی .

**د مسلمانانو په خپل منځ كي ناراضګي**

﴿۱۹۷۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَصُومُ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسَ

د ابو هريرة ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ روژه نيول،

فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّكَ تَصُومُ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسَ فَقَالَ إِنَّ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ

د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله ! تاسو د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ روژه نيسئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :هو، د دوشنبې

وَالْخَمِيسَ يَغْفِرُ اللّٰهُ فِيهِمَا لِكُلِّ مُسْلِمٍ إِلَّا مُهْتَجِرَيْنِ يَقُولُ دَعْهُمَا حَتَّى يَصْطَلِحَا . رواه احمد وابن ماجة

او پنجشنبې په ورځ الله تعالى د هر مسلمان ګناهونه معاف كوي خو د هغه خلكو ګناهونه نه معافوي چي په خپل منځ كي ملاقات پريږدي او د هغوی په نسبت فرمايي : دوی پريږدئ تر څو چي صلح وكړي . احمد او ابن ماجة .

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۳۲۹، وابن ماجه ۱\۵۵۳، رقم: ۱۷۴۰.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د سوال په مرسته ددغه دواړو ورځو بزرګي او فضیلت څرګند کړ چي زه ددې بزرګۍ او فضیلت سره سم او د الله تعالی د رحمت عام او د هغه د لوري د مغفرت او بخښني د لوی نعمت د شکر په توګه ددغه دواړو ورځو روژه نیسم.

## د الله ﷻ د رضا لپاره روژه

﴿۱۹۷۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَامَ يَوْمًا ابْتِغَاءَ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د الله ﷻ د رضا لپاره یوه ورځ روژه ونیسي

وَجْهِ اللّٰهِ تَعَالٰى بَعَّدَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ جَهَنَّمَ كَبُعْدِ غُرَابٍ طَارَ وَهُوَ فَرْخٌ حَتّٰى مَاتَ هَرِمًا. رواه احمد و روي البيهقي في شعب الايمان عن سلمة بن قيس

الله تعالی هغه د دوږخ څخه دومره لیري کوي څومره چي د کارګه یو بچی په هوا والوزي او په دې حال کي سپین ږیری سي او مړ سي. احمد او بیهقي په شعب الایمان کي د سلمه بن قیس څخه روایت کړئ دئ.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۵۲٦.

**تشریح**: ویل کیږي چي د کارګه عمر زر کاله وي، نو وه یې فرمایل که چیري کارګه د خپل عمر د پیل څخه د عمر تر آخري برخي پوري والوځي نو فکر وکړه چي هغه به څومره لار ووهي، همداسي الله تعالی روژه دار د دوږخ څخه لیري ساتي، د بیهقي رحمة الله علیه څخه منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د روژه دار خوب عبادت دی، د هغه پټه خوله والی تسبیح دی او د هغه عمل په څو څو چنده دی، د هغه دعاء مقبوله ده او د هغه ګناهونه بخښل سوي دي.

د بیهقي رحمة الله علیه څخه دا هم منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی د بني اسرائیلو نبي ته دا وحي راولیږل چي خپل قوم خبر کړه چي کوم بنده زما د رضا تر لاسه کولو په خاطر یوه ورځ روژه ونیسي نو زه نه یوازي دا چي د هغه بدن روغ او توانا کوم بلکه هغه ته ډیر زیات ثواب هم ورکوم.

د خطیب رحمة الله علیه څخه منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړی چي په دغه طریقه روژه ونیسي چي دده د روژو څخه څوک خبر نسي نو الله تعالی دده لپاره ثواب د جنت

څخه پرته په بل شي نه راضي کیږي یعني دده ثواب دادی چي دی به جنت ته داخل کړي، د عبراني رحمة الله علیه څخه منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله تعالی سره یو ستر خوان دی چي پر هغه داسي نعمتونه دي چي نه یو سترګي لیدلي دي ، نه یو غوږ اوریدلي دي او نه د چا په زړه کي د هغه خیال تیر سوی دی او پر دغه دسترخوان به یوازي روژه نیونکی کښیني .

==========

# بَابُ فِي الْاِفْطَارِ مِنَ التَّطَوّعِ

## د نفلي روژو ماتول

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نفلي روژې نیت

﴿۱۹۷۶﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ یوه ورځ ما ته راغلی

فَقَالَ هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ فَقُلْنَا لَا قَالَ فَإِنِّي إِذَنْ صَائِمٌ ثُمَّ أَتَانَا يَوْمًا آخَرَ

او وه یې فرمایل ایا ستا سره د خوراک یو شی سته؟ موږ وویل :یا، نو رسول الله ﷺ وفرمایل : بنه دئ، ما د اوس څخه روژه کړه، بیا همداسي بله ورځ رسول الله ﷺ راغلئ او پوښتنه یې وکړه

فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ أُهْدِيَ لَنَا حَيْسٌ فَقَالَ أَرِينِيهِ فَلَقَدْ أَصْبَحْتُ صَائِمًا فَأَكَلَ . رواه مسلم

موږ عرض وکړ اې د الله رسوله زموږ کره په تحفه کي حیس (چکښده) راغلې ده ، رسول الله ﷺ وفرمایل : ما ته یې وښیاست نن سهار ما د روژې نیولو اراده کړې وه بیا رسول الله ﷺ هغه وخوړل. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۸۰۹\۲،رقم: ۱۷۰- ۱۱۵۴.

**د لغاتو حل**: حَيسُ: تمر يخلط بسمن ودقيق: (خرما چي اوړه او غوړي ورسره ګډ سي).

**تشریح** : ما اوس روژه نیولې ده : ددې مطلب دادی چي ما د روژې نیت کړی دی ، ددې څخه

معلومه سوه چي د نفلي روژې نيت په ورځ كي كول جائز دي ، د اكثرو امامانو دا مذهب دی مگر امام مالک رحمه الله فرمايي چي روژه هر ډول وي يعني فرض ، سنت يا نفل وي د هغه نيت د شپې څخه كول واجب دی، ددې مسئلې پوره تفصيل په تيرو صفحو كي بيان سوی دی .

(حيس) د يو خوراک نوم دی چي د ماليدې په ډول وي او د خرما ، غوړو او كرت څخه هم جوړيږي، په هر حال د حديث د آخري الفاظو مفهوم دادی چي رسول الله ﷺ د روژې په حالت كي د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه حيس په اخيستلو سره وخوړی ، ددې څخه معلومه سوه چي بېله عذره نفلي روژه ماتول جائز دي، د اكثرو علماؤ مذهب دادی مگر امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه او د هغوی پيروان علماء فرمايي چي نفلي روژه په پيل كولو سره د هغه څخه وروسته پوره كول واجب دي او ماتول يې جائز نه دي، هو د يو عذر په وجه مثلاً د مېلمه په وجه يا داسي بل عذر وي نو بيا يې ماتولای سي مگر په دې صورت كي هم د هغه قضا واجب كيږي ، دا حديث په دې باره كي د حنيفه د مذهب خلاف دی ځكه ددې تاويل دا كيږي چي رسول الله ﷺ بېله عذره روژه نه وه ماته كړې بلكه رسول الله ﷺ ته يو داسي عذر وړاندي سوی وو چي د هغه په وجه يې روژه ماته كړه چي هغه دلته ذكر سوی نه دی ، په دغه مسئله كي د حنيفه دليل مخته را روان دی .

## د نفلي روژې ماتول

﴿۱۹۷۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أُمِّ سُلَيْمٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ بي بي ام سليم ته تشريف يووړ ،

فَأَتَتْهُ بِتَمْرٍ وَسَمْنٍ قَالَ أَعِيدُوا سَمْنَكُمْ فِي سِقَائِهِ وَتَمْرَكُمْ فِي وِعَائِهِ فَإِنِّي

هغې د رسول الله ﷺ په خدمت كي خرما او غوړي وړاندي كړل ، رسول الله ﷺ وفرمايل : غوړي په ژی كي واچوه او خرما وي په لوښي كي ځكه چي زما

صَائِمٌ ثُمَّ قَامَ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ الْبَيْتِ فَصَلَّى غَيْرَ الْمَكْتُوبَةِ فَدَعَا لِأُمِّ سُلَيْمٍ وَأَهْلِ بَيْتِهَا . رواه البخاري

روژه ده ، بيا رسول الله ﷺ د خوني يو كونج ته تشريف يووړ نفل لمونځ يې ادا كړ او بي بي ام سليم او د هغې د كورنۍ لپاره يې دعاء وكړل . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۲۸، رقم: ۱۹۸۲.

**تشريح**: په څرګنده دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د ام سليم ﷺ د ميلمستيا سربيره څکه روژه ماته نه کړه چي رسول الله ﷺ پوهيدی چي په دې سره ام سليم ﷺ نه خفه کيږي.

په دې اړه چي آيا ميلمستيا د نفل روژه نيونکي لپاره عذر دی که يا، که څه هم د مشائخو په نزد اختلاف دی مګر صحيح خبره داده چي د ميلمه او کوربه دواړو لپاره ميلمستيا عذر دی، په شرط ددې چي کوربه صرف د ميلمه په راتلو او د ځان سره د خوراک نه خوړلو په وجه نه يوازي دا چي خوشحاله نسي بلکه ناراضه هم سي همداسي په خوراک کي د کوربه نه ګډون سره د ميلمه زړه ماتيږي او يا د هغه د خفه کېدو بيره وي نو په داسي حالت کي ميلمستيا عذر دی، او که دا معلومه سي چي د هغه زړه نه خفه کيږي نو روژه ماتول نه دي پکار، دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د روژه نيونکي ميلمه لپاره دا مستحب دي چي هغه د کوربه او د هغه د کورنۍ په حق کي د خير دعاء وکړي.

﴿۱۹۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دُعِيَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي بلنه ورکړل سي

أَحَدُكُمْ الى طعام وهو صائم فليقل اني صائم و في رواية قال إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ

په تاسو کي يو چا ته د خوراک او د هغه روژه وي نو دا دي ووايي: چي زما روژه ده او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي هر کله تاسو ته بلنه درکړل سي

فَلْيُجِبْ فَإِنْ كَانَ صَائِمًا فَلْيُصَلِّ وَإِنْ كَانَ مُفْطِرًا فَلْيَطْعَمْ . رواه مسلم

نو هغه د بلونکي بلنه ومني او که روژه يې وي نو دوه رکعته لمونځ دي وکړي او که روژه يې نه وي نو هغه ډوډۍ دي وخوري. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۸۰۵، رقم: ۱۵۹- ۱۱۵۰.

**تشريح**: که روژه نيونکی ميلمه د خوراک نه کولو په وجه کوربه په پريشانۍ کي اخته سي يا د خوراک نه کولو په وجه د دښمنۍ او نفرت پيدا کېدو بيره وي نو په دغه صورت کي د نفلي روژې ماتول واجب دي او که ميلمه په دې پوه سي چي کوربه د ډوډۍ خوړلو په وجه خوشحاله خو سي مګر د ډوډۍ نه خوړلو په صورت کي پريشاني نه رامنځته کيږي نو په دغه صورت کي

نفلي روژه پوره كول مستحب دي او كه د هغه په نزد دواړي خواوي برابري وي نو د هغه لپاره غوره داده چي هغه ووايي چي (اني صائم) يعني زما روژه ده ، كه څه هم بلونكي ته ورسي يا ور نسي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۱۹۷۹﴾: عَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْفَتْحِ فَتحِ مَكَّةَ جَاءَتْ فَاطِمَةُ

د حضرت ام هانئ (رض) څخه روايت دئ چي د مكې د فتح په ورځ كله چي مكه مكرمه فتحه سوه نو بي بي فاطمة (رض) راغلل

فَجَلَسَتْ عَلٰى يَسَارِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَأُمُّ هَانِئٍ عَنْ يَّمِيْنِهِ فَجَاءَتِ الْوَلِيْدَةُ

او د رسول الله ﷺ چپه خوا ته كښېنستل او بي بي ام هانئ د رسول الله ﷺ راسته خوا ته كښېنستل ، نو يوه مينځه راغلل

بِإِنَاءٍ فِيْهِ شَرَابٌ فَنَاوَلَتْهُ فَشَرِبَ مِنْهُ ثُمَّ نَاوَلَهُ أُمَّ هَانِئٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ

او د هغې سره د څښلو يو شی وو مينځي هغه لوښی رسول الله ﷺ ته ورکړ ، رسول الله ﷺ لږ اوبه و څښلې او بيا يې ام هانئ ته ورکړ ، ام هانئ اوبه وڅښلې

فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ لَقَدْ أَفْطَرْتُ وَكُنْتُ صَائِمَةً فَقَالَ لَهَا أَكُنْتِ تَقْضِيْنَ

او بيا يې وويل اې دالله رسوله ! زما روژه وه او ما وڅښلې، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه ايا تا يو قضائي روژه نيولې وه ؟

شَيْئًا قَالَتْ لاَ قَالَ فَلاَ يَضُرُّكِ إِنْ كَانَ تَطَوُّعًا . رواه أبو داود والترمذي

هغې وويل :نه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : كه دا نفلي روژه وه نو هيڅ پروا نسته . ابوداؤد. ترمذي

والدارمي وفي رواية لأحمد والترمذي نحوه وفيه فقالت : يا رسول الله أما

دارمي ، احمد او د ترمذي په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي ام هانئ وويل : اې دالله رسوله !

إني كنت صائمة فقال : " الصائم أمير نفسه إن شاء صام وإن شاء أفطر .

زما روژه وه، رسول الله ﷺ وفرمایل: نفل روژه نیونکی د خپل نفس خاوند دئ که روژه ونیسي او که یې وخوري.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٣٤١، وابوداود ١٢\٨٢٥، رقم: ٢٤٥٦. والترمذي ١٣\١٠٩، رقم: ٧٣١.

**تشريح**: د خپل نفس مالک دی: ددې مطلب دادی چې نفلي روژه نیونکی خود مختاره دی که غواړي نو روژه دې ونیسي یعني د روژې نیت دې وکړي او که غواړي روژه ماته کړي یعني روژه نه نیول اختیار کړي، یا ددې مطلب به دا وي چې نفلي روژه نیونکی د روژې نیولو څخه وروسته هم مختار دی که غواړي روژه پوره کړي او که غواړي ماته یې کړي، په دې صورت کې به ددې تاویل دا وي چې نفلي روژه نیونکي ته ددې خبري اختیار دی که د هغه سره یو مصلحت وي مثلا یو څوک یې میلمستیا وکړي یا یو داسي مجلس ته ورسي چې د هغه په باره کې دا معلومه وي که په روژه ماتولو سره د هغوی سره خوراک او څښاک ونه کړي نو خلک به پریشانه سي نو په دغه صورت کې هغه روژه ماتولای سي چې په خپلو کې د میني او قرابت فضا برقراره وي نو په دغه الفاظو او معنی سره ا استدلال نسي کیدای چې د نفلي روژې ماتولو څخه وروسته د هغه قضا ضروري نه ده حال دا چې ددې څخه وروسته راتلونکی حدیث په ډېر وضاحت سره د قضا روژې کېدل ثابت کړي دي.

د بي بي ام هاني رضي الله عنها ددغه روایت په اړه د محدثینو په نزد کلام دی، امام ترمذي رحمة الله علیه فرمایي چې ددې اسناد محل بحث دي او منذري رحمة الله علیه ویلي دي چې دا ثابت نه دی او ددې په اسناد کې ډېر اختلاف دی.

﴿۱۹۸۰﴾: وَعَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ

حضرت زهري د عروة څخه او هغه د حضرت عائشې ﷺ څخه روایت کوي چې زما او د حفصې

صَائِمَتَيْنِ فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ فَقَالَتْ حَفْصَةُ يَا رَسُولَ

روژه وه، موږ ته خوراک وړاندي سو چې د هغه په خوشبویي سره زموږ خواهش زیات سو او موږ د هغه څخه خوراک وکړ، بي بي حفصې رسول الله ﷺ ته بیان وکړ چې

اللهِ إِنَّا كُنَّا صَائِمَتَيْنِ فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ قَالَ اقْضِيَا

زموږ دواړو روژه وه او موږ ته خوراک وړاندي کړل سو نو موږ وخوړل، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ددې روژې

يَوْمًا آخَرَ مَكَانَهُ. رواه الترمذي و ذكر جماعة من الحفاظ رووا عن

بله قضائي راوړئ، ترمذي، دا حديث د حفاظو يو ډلي د زهري څخه

الزهري عن عائشة مرسلا ولم يذكروا فيه عن عروة وهذا اصح و رواه

ابوداؤد عن زميل مولى عروة عن عروة عن عائشة.

او زهري د بي بي عائشې څخه مرسلا روايت کړئ دئ چي په هغه کي د عروة يادونه نسته دا صحيح ده ، ابوداؤد دا د عروة د آزاد کړي غلام زميل څخه او زميل د عروة څخه او عروة د بي بي عائشې څخه روايت کړئ دئ . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۱۱۲، رقم: ۷۳۵، وابوداؤد ۲\۸۲۶، رقم: ۲۴۵۷.

**تشريح** : د حنفيه مذهب دادی که يو سړی خپل نفلي روژه ماته کړي نو د هغه قضا ضروري ده ددغه حضراتو دليل دغه حديث دی ځکه چي رسول الله ﷺ دا حکم کړی دی چي ددې په بدله کي د قضا په توګه يوه روژه ونيسئ او دا حکم د وجوب په توګه ثابتيږي مګر د شوافع په نزد د نفلي روژې قضا واجب نه ده ځکه د هغوی په نزد دا حکم د استحباب په توګه دی ، د روايت آخري خبري زهري د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه دارسال په توګه نقل کړي دي په دې کي لفظ د ارسال د اسناد څخه نه بلکه سقوط راوي په معنی کي دی ، د هغه مطلب دادی چي انقطاع واسطه يعني د لومړني روايت د اسناد په لړۍ کي د زهري او د بي بي عائشې په مينځ کي چي د عروه په واسطه وه هغه په دغه روايت کي نسته که څه هم دغه اصطلاح په دغه معنی کي هم استعماليږي مګر مشهوره داده چي مرسل هغه حديث ته وايي چي تابعي يې د صحابي د واسطې ذکر کولو پرته نقلي کړي .

## د روژې دار په مخکي خوراک کول

﴿۱۹۸۱﴾: وَعَنْ أُمِّ عُمَّارَةَ بِنْتِ كَعْبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ

د حضرت ام عمارة بنت کعب (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زموږ کورته راغلی

عَلَيْهَا فَدَعَتْ لَهُ بِطَعَامٍ فَقَالَ لَهَا كُلِي فَقَالَتْ إِنِّي صَائِمَةٌ فَقَالَ اِنَّ الصَّائِمَ

هغې خوراک ورته راوغوښتئ ، رسول الله ﷺ ام عمارة ته وفرمايل : ته يې هم وخوره، هغې

وويل زما روژه ده ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل كله چي د روژاتي په مخكي خوراك كيږي

إِذَا أُكِلَ عِنْدَهُ صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ حَتّٰى يَفْرَغُوْا . رواه احمد والترمذي و ابن ماجة والدارمي

نو ملائكي تر هغه وخته پوري پر هغه باندي رحمت ليږي تر څو چي خوراك كونكى د خوراك څخه فارغ سي . احمد ، ترمذي، ابن ماجة او دارمي .

**تخريج:** الامام احمد في مسنده ٦\ ٣٦٥، والترمذي ٣\ ١٥٣، رقم: ٧٨٥، وابن ماجه ١\ ٥٥٦، رقم: ١٧٤٨، والدارمي ٢\ ٢٨، رقم: ١٧٣٨.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۱۹۸۲﴾ : عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ دَخَلَ بلال على رسول الله ﷺ وهو يتغدى فقال

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سهار ډوډۍ خوړل چي بلال رضي الله عنه د ده مبارك په خدمت كي حاضر سو ،

رسول الله ﷺ الغداء يا بلال قال إني صائم يا رسول الله فقال رسول الله

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې بلاله ! د سهار خوراك حاضر دئ ، بلال عرض وكړ اې د الله رسوله ! زما روژه ده ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

ﷺ نأكل رزقنا وفضل رزق بلال في الجنة أشعرت يا بلال أن الصائم

موږ خپل رزق خورو او د بلال رزق په جنت كي دئ بيا يې وفرمايل : اې بلاله ايا تا ته څرګنده ده چي د روژاتي

نسبح عظامه وتستغفر له الملائكة ما أكل عنده . رواه البيهقي في شعب الإيمان

هډوكي تسبيح وايي او تر څو چي د هغه په مخكي خوراك كيږي د هغه لپاره ملائكي بخښنه غواړي . بيهقي په شعب الايمان كي

**تخريج :** البيهقي في شعب الايمان ٣\ ٢٩٧، رقم: ٣٥٨٦.

# بَابُ لَيْلَةِ الْقَدْرِ (د شب قدر بيان)

په دغه باب کي د ليلة القدر عظمت ، فضيلت او هغه وختونه بيانيږي چي په هغو کي ددغه مقدس ساعت د راتلو قوي اميد وي، دغه شپې ته ليلة القدر ځکه ويل کيږي چي د بندګانو د رزق ، د هغوی د ژوند او مرګ او هغه واقعات او کارونه چي په ټول کال کي کيدونکي دي هغه ټول په دغه شپه کي ليکل کيږي ، ځيني حضرات وايي چي ددغه شپې د عظمت په وجه ددې نوم ليلة القدر دی .

ددغه شپې په ټاکنه کي ډېر زيات اقوال دي ، د اکثرو حديثو څخه دا خبره ثابتيږي چي دا مقدسه شپه د رمضان المبارک په مياشت کي راځي په خاصه توګه د رمضان د آخري لسيزي په طاقو شپو کي او په خاصه توګه اووه ويشتمه شپه ليلة القدر وي او اکثر علماء اووه ويشتمه شپه ليلة القدر مني .

د ليلة القدر سعادت په خاصه توګه د امت محمدي لپاره مخصوص سوی دی چي ددغه امت خلک د خپل لږ عمرونو سربيره زيات ثواب تر لاسه کړي، په دې اړه يو روايت هم منقول دی چي د هغه خلاصه داده کله چي رسول الله ﷺ ته د مخکنيو امتونو د زيات عمرونو په باره کي معلومه سوه نو رسول الله ﷺ افسوس وکړ چي زما د امت خلک به په دغه لږ عمرونو کي د هغه خلکو په ډول زيات نيک کار نسي کولای نو الله تعالی د رسول الله ﷺ په واسطه دده امت ته د ليلة القدر عظيم سعادت ورکړ کوم چي تر زرو مياشتو غوره ده.

په يو بل روايت کي چي د ابن ابي حاتم رحمه الله څخه منقول دی بيان سوی دی چي يوه ورځ نبي کريم ﷺ د بني اسرائيلو د څلورو کسانو ذکر وکړ چي هغوی تر اتيا اتيا کالو پوري د الله تعالی عبادت وکړ او د هغوی يوه لحظه هم د الله تعالی په نافرماني کي تيره نه سوه او هغه کسان دا وه :

۱. حضرت ايوب عليه السلام .
۲. حضرت زکريا عليه السلام .
۳. حضرت حزقيل عليه السلام .
۴. حضرت يوشع ابن نون عليه السلام .

د دې په اورېدو سره صحابه کرامو ډېر تعجب وکړ او آرزو يې وکړه چي کاش زموږ هم دومره عمرونه وای چي موږ هم دومره اوږد وخت پوري د الله تعالی په عبادت کي بوخت وای ،

بيا حضرت جبرائيل عليه السلام رسول الله ﷺ ته تشريف راوړ او هغه وويل اې محمد ﷺ ! ستا امت ته دې د هغه خلكو د اتيا اتيا كالو په عبادت كې تعجب نه وي الله تعالى خير او ښېگڼه عطا كړل ، نو هغه د رسول الله ﷺ په وړاندې (انا انزلناه في ليلة القدر) پوره سورت ووايه چې د هغه په ذريعه دا عظيم زيرى وركړل سوى دى چې ليلة القدر ستاسو او ستاسو امت ته وركړل سوې ده او د هغه شيانو څخه غوره ده چې هغه لپاره تاسو او ستاسو امت ارزو كوي ، پر دغه عظيم زيرى او خوشبختۍ باندې رسول الله ﷺ ډېر زيات خوشحاله سو.

دلته دا خبره هم په ذهن كې ساتل پكار دي چې د زرو كالو څخه درو اتيا كاله او څلور مياشتي جوړېږي ځكه يې وفرمايل چې : (خير من الف شهر ) يعني ليلة القدر د زرو مياشتو څخه غوره ده چې درو اتيا كاله او څلور مياشتي سوې.

په ليلة القدر كې د الله رب العزت د رحمت خاص تجلي د دنياپر آسمان باندې د لمر لوېدو د وخت څخه تر سهار پوري وي په دغه شپه كې ملائكې او ارواح طيبة، علماء او عابدين سره ملاقات لپاره راكښته كيږي په دغه مقدسه شپه كې د قرآن كريم نزول وسو دا هغه شپه ده چې په دې كې د ملائكو پيدائش وسو ، په دغه شپه كې د حضرت آدم عليه السلام ماده جمع كېدل پيل سول ، په دغه شپه كې د جنت درختي ولگول سوې ، په دغه شپه كې د عبادت ثواب د نورو وختونو د عبادت څخه ډېر زيات وي او دا هغه مقدسه شپه ده چې په هغه كې بنده د ژبې او زړه څخه وتلې دعاء د الله تعالى په دربار كې په قبوليت سره نازول كيږي.

شريعت په واضحه توگه سره يوه شپه په ټاكنې سره نه ده ښودلې چې ليلة القدر په فلانۍ شپه كې ده، دا شپه پټه ساتل سوې ده ، ددې وجه داده كه چيري دا څرگنده سي نو د عبادت او طاعت په لور به د خلكو ميلان نه واى بلكه هغوى به يوازې ددغه شپې په عبادت كولو سره دا گڼلاى چې موږ د پوره كال عبادت څخه هم زيات ثواب تر لاسه كړ ځكه نو دا شپه ټاكل سوې نه ده چې خلك هر وخت په عبادت او طاعت كې بوخت وي يوازې پر يوه شپه باندې په اعتماد كولو سره نه كښېني.

علماء ليكي كوم څوک چې ټول كال د الله تعالى د عبادت لپاره د شپې بيداري اختيار كړي نو انشاء الله تعالى هغه ته به د شب قدر سعادت خامخا تر لاسه سي ځكه ويل سوي دي : (من لم يعرف قدر ليلة لم يعرف ليلة القدر ) كوم سړى چې د شپې قدر ونه پيژني يعني د الله تعالى د عبادت لپاره يې د شپې بيداري ونه كړه نو هغه به د ليلة القدر عظمت او سعادت څه وپيژني ، ځيني علماء وايي چې ددغه شپې يو څه داسي نښې سته چې د حديثو او آثارو څخه منقول دي

او ځيني نبني اهل كشف خلكو پيژندلي دي ، طبري رحمة الله عليه د يو ډلي څخه نقل كړي دی چي په دغه شپه كي درختي الله تعالی ته سجده كوي او پر مځكه لويږي او بيا بيرته خپل حالت ته راسي همداسي په دغه شپه كي هر شی سجده كوي.

مگر صحيح خبره داده چي ددغه شپې د تعين په اړه دا شيان ليدل شرط نه دي ځكه چي اكثر خلك دا مقدسه شپه تر لاسه كړي مگر هغه درختي پر سجده نه ويني او نه ټول شيان ورته په سجده كولو معلوميږي ځكه كيدای سي چي په يو ځای كي دوه خلك موجود وي او هغه دواړه شب قدر تر لاسه كړي او په هغوی كي يوه ته دا نبني معلومي سي مگر دوهم ته هيڅ محسوس نه سي ، په هر حال‌تر ټولو لويه نبنه داده چي په دغه مقدسه شپه كي د الله تعالی عبادت، ذكر او مناجات ، خشوع او خضوع او اخلاص او توفيق تر لاسه كيږي نو پوه دي سي چي دا عظيم سعادت تر لاسه سو .

په دغه شپه كي د بيداري كولو لپاره صحيح مسئله داده چي د شپې په اكثره برخه كي د الله تعالی د عبادت لپاره بيداره كېدل معتبر دي ، هو كه يو سړی ټوله شپه بيداره وي نو غوره ده په شرط ددې چي په داسي كولو سره په يو ناروغی او تكليف كي اخته نسي كنه‌نو د شپې په كومه برخه كي چي د بيداره كېدو او عبادت او ذكر كي د بوختيا توفيق ورته تر لاسه نسي نو انشاء الله تعالی مقصد به يې تر لاسه سي : وليس للانسان الا ما سعی و كان سعيه مشكورا. رزقنا الله. آمين.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د شب قدر شپې

«۱۹۸۳» : عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْوِتْرِ مِنْ الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ . رواه البخاري

د عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شب قدر د روژې د آخري لسيزي په طاقو نيټو كي لټوئ . (يعني يو ويشتم، درويشتم، پنځه ويشتم، اووه ويشتم او نهه ويشتم كي) . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۴\۲۵۹، رقم: ۲۰۱۷.

**تشريح** : د رمضان په آخري لسيزه كي د طاق شپو څخه مراد : يوويشتم، درويشتم ، پنځه ويشتم، اووه ويشتم او نهه ويشتم شپې دي .

﴿۱۹۸۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ أَنَّ رِجَالًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ ځينو اصحابو ته
وَسَلَّمَ أُرُوا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْمَنَامِ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى
شب قدر د روژې په آخري اووه شپو كي په خوب كي وښودل سو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل:
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَى رُؤْيَاكُمْ قَدْ تَوَاطَأَتْ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ فَمَنْ كَانَ
ستاسو خوبونه په آخري اوو شپو متفق سول، نو څوک چي
مُتَحَرِّيهَا فَلْيَتَحَرَّهَا فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ. متفق عليه
شب قدر لټوي هغه دي يې په آخري اوو شپو كي و لټوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴ \ ۲۵۶، رقم: ۲۰۱۰. ومسلم ۲ \ ۸۲۲، رقم: ۲۰۵- ۱۱۶۵.

**تشريح**: احتمال دی چي د آخري شپو څخه هغه شپې مراد وي چي د شلو څخه سمدستي وروسته دي يعني د يوويشتمي څخه تر اووه ويشتمي شپې پوري يا تر ټولو آخري اووه شپې هم مراد كيداى سي يعني د درويشتمي شپې څخه تر نهه ويشتمي شپې پوري او نهه ويشم تاريخ يقيني وي ځكه ددې مطابق دي حساب وكړل سي په دې باره كي آخري احتمال يعني دا چي د درويشتمي شپې څخه تر نهه ويشتمي شپې پوري مراد دي.

﴿۱۹۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْتَمِسُوهَا فِي
د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: لټوئ
الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي تَاسِعَةٍ تَبْقَى فِي سَابِعَةٍ تَبْقَى فِي خَامِسَةٍ تَبْقَى. رواه البخاري
شب قدر د روژې په آخري لسيزه كي. يعني په يوويشتم، اووه ويشتم او پنځه ويشتم كي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴ \ ۲۶۰، رقم: ۲۰۲۱.

**تشريح**: د ليلة القدر تر لاسه كولو لپاره د رمضان د آخري لسيزي د يو څو شپو دلته ذكر سوی

دی چي په دغه شپو کي عبادت او ذکر کي بوختيا اختيار کړل سي چي ليلة القدر په دغه شپو کي په يوه شپه کي راسي نو د هغه سعادت به تر لاسه سي ، په حديث کي د شپو د ترتيب په اړه چي کوم طرز اختيار کړل سوی دی د هغه وضاحت په ترجمه کي سوی دی چي په دغه ترتيب سره مراد يوويشتمه، درويشتمه، پنځه ويشمه شپه ده مگر په دې اړه په حديث کي ذکر سوي شپې همداسي د آخر څخه هم شميرل کيدای سي چي ليلة القدر و لټوئ د شلمي شپې څخه وروسته په نهمه شپه کي چي هغه يو کم ديرشمه شپه ده او د شلمي شپې څخه وروسته په اوومه شپه کي چي هغه اووه ويشتمه شپه ده او د شلمي شپې څخه وروسته پنځمه شپه کي چي هغه پنځه ويشتمه شپه ده ، دا وضاحت زيات صحيح معلوميږي مگر علامه يحيى رحمة الله عليه فرمايي چي په حديث کي کومي شپې ذکر سوي دي د هغو څخه مراد دادی چي درويشتمه، څليرويشتمه شپه او شپږ ويشتمه شپه ده

﴿۱۹۸۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَكَفَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ اعتکاف وکړ

الْعَشْرَ الْأَوَّلَ مِنْ رَمَضَانَ ثُمَّ اعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ فِيْ قُبَّةٍ تُرْكِيَّةٍ ثُمَّ

د روژې په لومړی لسيزه کي ، بيا يې په منځنۍ لسيزه کي په يوه ترکۍ خيمه کي بيا

أَطْلَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ إِنِّي اعْتَكَفْتُ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ أَلْتَمِسُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ اعْتَكَفْتُ

(يوه ورځ يې) د خيمې څخه سر راوايستئ او وه يې فرمايل : ما په لومړۍ لسيزه کي شب قدر لټولو لپاره اعتکاف کړئ وو ، بيا ما

الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ ثُمَّ أُتِيْتُ فَقِيْلَ لِيْ إِنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ فَمَنْ كَانَ اعْتَكَفَ

په منځنۍ لسيزه کي اعتکاف وکړ نو ما ته يوه ملائکه راغلل او هغې راته وښودل چي شب قدر د روژې په آخري لسيزه کي دئ نو څوک چي زما سره اعتکاف کول غواړي

مَعِيْ فَلْيَعْتَكِفِ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ وَقَدْ أُرِيْتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ أُنْسِيْتُهَا وَقَدْ

نو هغه دي په آخري لسيزه کي اعتکاف وکړي ، ما ته شب قدر په خوب کي ښودل سوی وو خو زما څخه هير سو ،

رَأَيْتُنِي أَسْجُدُ فِي مَاءٍ وَطِينٍ مِنْ صَبِيحَتِهَا فَالْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ

ما په خوب كي خپل ځان په داسي حال كي وليدئ چي زه د شب قدر په سهار كي په اوبو او خټه كي سجده كوم، تاسو شب قدر په آخري لسيزه كي لټوئ

وَالْتَمِسُوهَا فِي كُلِّ وِتْرٍ فَمَطَرَتِ السَّمَاءُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ وَكَانَ الْمَسْجِدُ عَلَى عَرِيشٍ

او په هر طاق شپه كي يې لټوئ، د راوي بيان دئ په كومه شپه چي رسول الله ﷺ شب قدر ليدلى وو په هغه شپه باران سوى وو او د مسجد بام د خرماوو د لښتو څخه وو

فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ فَبَصُرَتْ عَيْنَايَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَبْهَتِهِ

او په هغه باران سره مسجد و څڅېدئ ، ما د رسول الله ﷺ پر مخ مبارك

أَثَرُ الْمَاءِ وَالطِّينِ مِنْ صَبِيحَةِ إِحْدَى وَعِشْرِينَ، متفق عليه في المعنى

د خاورو او اوبو نښې وليدلې او دا د يوويشتمي ورځي سهار وو . بخاري او مسلم

واللفظ لمسلم الى قوله فقيل لي انها في العشر الاواخر و الباقي للبخاري و

في رواية عبدالله بن انيس قال ليلة ثلث و عشرين . رواه مسلم

. د امام مسلم په يوه روايت كي يوازي تر عشر اواخر پوري ذكر دئ او پوره حديث د امام بخاري څخه نقل دئ او د عبدالله بن انيس په روايت كي د دروېشتم لفظ نسته . مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۵۶، رقم: ۲۰۱۶، ومسلم ۲\۸۲۴، رقم: ۲۱۳- ۱۱۶۷.

**تشريح** : تركي خيمه د يو ډول خيمې نوم وو چي په نمده نامي ځاى كي جوړېدل او په سايز كي كوچنى وه ، دغه خيمې ته په فارسي كي خرګاه وايي ، د روايت په آخر كي لفظ د من صبيحة كي من د معنى په اعتبار د في پر ځاى استعمال سوى دى او دا د بصرت متعلق دى .

په هر حال د روايت په آخر كي چي څه بيان سوى دى د هغه خلاصه داده چي رسول الله ﷺ په كومه شپه كي ليلة القدر په خوب كي ليدلى وو نو په خوب كي يې دا هم وليدل چي زه د ليلة القدر په سهار كي په اوبو او خاورو كي سجده كوم او هغه شپه باران سوى وو ، رسول الله ﷺ چي سهار په مسجد كي لمونځ كړى وو نو په دغه حال كي يې سجده وكړه چي د مسجد مځكه د

بام ځڅېدو په وجه ختمې وه چي د هغه نښه د رسول الله ﷺ پر مخ مبارک څرګنده وه، ګویا راوي هغه باران د رسول الله ﷺ د خوب د شپې نښه وګرځول او دا واقعه د یوویشتمي یا درویشتمي شپې وه ځکه راوي ددغه نښې په ذریعه دا معلومه کړه چي لیلة القدر په یوویشتمه یا درویشتمه شپه کي دی ځکه په دغه شپه کي رسول الله ﷺ لیلة القدر ولیدی.

## د شب قدر نښه

﴿۱۹۸۷﴾: وَعَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ سَأَلْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَقُلْتُ إِنَّ أَخَاكَ ابْنَ

د زر بن حبیش رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د ابی بن کعب رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي ستا (دیني) ورور

مَسْعُودٍ يَقُولُ مَنْ يَقُمِ الْحَوْلَ يُصِبْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ فَقَالَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَرَادَ أَنْ لَا

ابن مسعود رضي الله عنه وایي څوک چي د کال په ټولو شپو کي عبادت وکړي نو هغه شب قدر تر لاسه کوي، ابی بن کعب وویل: الله دي پر هغه رحم وکړي هغه له دې کبله ویلي دي چي داسي نه وي

يَتَّكِلَ النَّاسُ أَمَا إِنَّهُ قَدْ عَلِمَ أَنَّهَا فِي رَمَضَانَ وَأَنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ وَأَنَّهَا

چي خلک پر دې شپه باور وکړي، حال دا چي ابن مسعود رضي الله عنه ته څرګنده وه چي شب قدر په روژه کي وو او د روژې په آخري لسیزه کي دئ او هغه

لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ ثُمَّ حَلَفَ لَا يَسْتَثْنِي أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ فَقُلْتُ

اووه ویشتمه شپه ده، ابی بن کعب رضي الله عنه قسم واخیستی چي هغه اووه ویشتمه شپه ده، او انشاء الله یې نه وویل، ما پوښتنه وکړه چي

بِأَيِّ شَيْءٍ تَقُولُ ذٰلِكَ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ قَالَ بِالْعَلَامَةِ أَوْ بِالْآيَةِ الَّتِي أَخْبَرَنَا رَسُولُ

ته په څه دلیل سره داسي وایې؟ هغه وویل: په هغه نښو سره چي موږ ته رسول الله ﷺ ښودلي دي

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا تَطْلُعُ يَوْمَئِذٍ لَا شُعَاعَ لَهَا. رواه مسلم

یعني ددې شپې په سهار چي لمر راخیږي نو په هغه کي رڼا نه وي (یعني ډېره کمه رڼا یې وي) مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۱ \ ۵۲۵، رقم: ۱۷۹- ۷۶۲.

**تشریح**: (ان لا یتکل الناس) یعني چي خلک په باور کولو سره نه کښیني، ددې مطلب دادی چي که څه هم دا قول صحیح دی چي لیلة القدر په اووه ویشتمه شپه کي دی او د غالب ګمان په

اعتبار پر دې فتوا هم ده مګر ابن مسعود ﷛ دا ځکه متعين نه ګڼل چې خلک په دغه قول باور ونه کړي او په دې ګڼلو سره چې ليلة القدر په اووه ويشتمه شپه کې ده يوازې په دغه شپه کې د عبادت لپاره د شپې بيداري کوي او په پاته شپو کې يې پرېږدي نو هغه په زياتو شپو کې خلک د بيدارۍ په لور راغب کولو لپاره وويل چې ليلة القدر د کال په يوه شپه کې راتلای سي.

اووه ويشتمه شپه د ليلة القدر ګرځولو په اړه د ابی بن کعب ﷛ قسم اخيستل د غالب ګمان په وجه وو ځکه هغه په قسم کولو سره انشاء الله ونه ويل، که يو سړی په قسم کولو سره انشاء الله هم ووايي نو نه يوازې دا چې قسم يقيني نه سو بلکه په شرعي توګه سره هغه منعقد کيږي هم نه، نو ابی بن کعب ﷛ قسم وکړاو انشاء الله يې ونه ويل چې قسم جزما وي.

په دغه حديث کې د ليلة القدر يوه نښه دا ښودل سوې ده چې کومه شپه ليلة القدر وي د هغې په سهار کې لمر راخيږي نو تر يو څه وخته پورې په هغه کې شعاوې نه وي ځيني د نظر خاوندان فرمايي چې دا نښه داسې ده چې د هغه په واقع کيدو کې څه شک او شبه نسته او ددې مشاهده کيدای سي.

## د روژې په آخري لسيزه کې

﴿۱۹۸۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مَا لَا يَجْتَهِدُ فِي غَيْرِهِ. رواه مسلم

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به د روژې په آخري لسيزه کې دومره هڅه کول چې په بله لسيزه کې به يې دومره نه کوئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۸۳۲، رقم: ۸- ۱۱۷۵.

**تشريح**: مطلب دادی چې رسول الله ﷺ به د رمضان په آخري لسيزه کې عبادت او طاعت ډېر کوی ځکه چې په دغه لسيزه کې د ليلة القدر عظيم سعادت تر لاسه کيږي.

﴿۱۹۸۹﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ شَدَّ مِئْزَرَهُ وَأَحْيَا لَيْلَهُ وَأَيْقَظَ أَهْلَهُ. متفق عليه

د عائشې (رض) څخه روايت دئ چې کله به د روژې آخري لسيزه راغلل نو رسول الله ﷺ به خپل لونګ ټېنګ وتړئ د شپې به ولاړېدئ او خپل کورنی به يې هم پورته کول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۶۹، رقم: ۲۰۲۴، ومسلم ۲\۸۳۲، رقم: ۷- ۱۱۷۴.

**تشريح** : لونګ ټينګ تړل : دا په اصل کي ددې خبري کنايه ده چي رسول الله ﷺ به په آخري لسيزه کي د خپل عادت او معمول څخه هم ډېر زيات عبادت او مجاهده کول ، يا ددې خبري څخه هم کنايه کيداى سي چي په دغه لسيزه کي به رسول الله ﷺ د خپلو بيبيانو څخه بيل اوسيدى يعني صحبت او مباشرت څخه به يې پرهيز کوى .

د شپې رونولو : مطلب دادى چي رسول الله ﷺ به د شپې په اکثره برخه کي يا په پوره شپه کي لمونځ، ذکر او د قرآن کريم په تلاوت کي بوختوو .

دلته ددې خبري خيال ساتل پکار دي چي په يوه روايت کي دا منقول دي چي : (انه عليه السلام ما سهر جميع الليل كله) : يعني رسول الله ﷺ به ټوله شپه بيداري نه کول، ددې څخه مراد دادى چي رسول الله ﷺ به هميشه يا اکثر ټوله شپه نه وېښيد ، نو يوه يا دوې شپې ټوله شپه وېښ کېدل ددغه روايت خلاف نه دي ، او خپل کورنى به يې بيداره کول : يعني رسول الله ﷺ به خپلو بيبانو مبارکانو، لوڼو ، مينزو او غلامانو ته د آخري لسيزي په ځينو شپو کي د بيدارى تلقين کوى او هغوى به يې د الله تعالى په عبادت کي بوخت ساتل تر څو د ليلة القدر سعادت د هغوى په برخه سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شب قدر دعاء

﴿۱۹۹۰﴾ : عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ عَلِمْتُ اَيُّ لَيْلَةٍ لَيْلَةَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي ما د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله ! که ما ته شب قدر څرګند سي

الْقَدْرِ مَا أَقُولُ فِيهَا قَالَ قُولِي اللَّهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّي . رواه احمد وابن ماجة والترمذي و صححه .

نو زه په هغه کي څه ووايم ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دا کلمات وايه: (اللهم ...) اې الله ته عفوه کونکى يې عفه کول خوښوې نو ما معاف کړې . احمد ، ابن ماجة او ترمذي دې حديث ته صحيح ويلي دي .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۶\۱۷۱، والترمذي ۵\۴۹۹، رقم: ۳۵۱۳. وابن ماجه ۲\۱۲۶۵، رقم: ۳۸۵۰

**تشريح** : علماء ليکي چي دغه دعاء د دنيا او آخرت د ټولو ښېګڼو لپاره جامع ده ځکه چي د الله تعالى د لوري د بنده په معامله کي عفو، معافي، بخښنه تر ټولو لوی عظيم سعادت دی چي د هر خير او ښېګڼي د عروج نقطه ده، په يوه روايت کي فرمايل سوي دي چي د بنده د لوري د الله تعالى په دربار کي هيڅ سوال د عافيت او بخښني څخه غوره نه دی.

﴿۱۹۹۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابوبکره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي

اَلْتَمِسُوهَا يعني ليلة القدر فِي تِسْعٍ يَبْقَيْنَ أَوْ فِي سَبْعٍ يَبْقَيْنَ أَوْ فِي خَمْسٍ يَبْقَيْنَ أَوْ فِي ثَلَاثٍ أَوَاخِرِ لَيْلَةٍ. رواه الترمذي

شب قدر په يوويشتم، دروېشتم، پنځه وېشتم او اووه وېشتم شپو کي لټوئ يا په آخري شپه کي يې لټوئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۱۶۰، رقم: ۷۹۴.

## شب قدر په هره روژه کي وي

﴿۱۹۹۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ فَقَالَ هِيَ فِي كُلِّ رَمَضَانَ. رواه ابوداؤد و قال رواه سفيان و شعبة عن ابي اسحاق موقوفا على ابن عمر.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه د شب قدر په اړه پوښتنه وسول نو رسول الله ﷺ وفرمايل: دا په هره روژه کي وي، ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۱۱۱، رقم: ۱۳۸۷.

**تشريح** : د هر رمضان دوې معناوي دي: يوه معنا خو داده چي هيڅ رمضان د شب قدر څخه خالي نه وي يعني هر کال چي رمضان راځي نو په هغه کي ليلة القدر هم راځي، دوهمه معنى داده چي شب قدر د رمضان په پوره مياشت کي په يوه شپه کي راتلای سي او د آخري لسيزي څه خاصوالى نسته، مګر ددې معنى سره سم به دا تاويل کيږي چي مخکي خو رسول الله ﷺ ته

معلومه سوې وه چي ليلة القدر په ټول رمضان کي يوه شپه راتلای سي مګر وروسته دا ثابته سوه چي ددغه مقدسي شپې لرونکي يوازي آخري لسيزه ده د آخري لسيزي څخه پرته په بله يو برخه کي ليلة القدر نه راځي.

## د يو صحابي تجربه

﴿۱۹۹۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ اُنَيْسٍ قَالَ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ اِنَّ لِيْ بَادِيَةً اَكُوْنُ

د حضرت عبد الله ابن انيس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! زما کور په ځنګل کي دئ زه هلته اوسېږم

فِيْهَا وَاَنَا اُصَلِّيْ فِيْهَا بِحَمْدِ اللهِ فَمُرْنِيْ بِلَيْلَةٍ اَنْزِلُهَا اِلٰى هٰذَا الْمَسْجِدِ فَقَالَ

او هلته لمونځ کوم د الله جل جلاله شکر دئ نو ما ته يوه شپه وښياست (يعني شب قدر) چي په هغه کي زه د عبادت لپاره مسجد نبوي ته حاضر سم، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل:

اَنْزِلْ لَيْلَةَ ثَلٰثٍ وَّعِشْرِيْنَ قِيْلَ لِابْنِهٖ كَيْفَ كَانَ اَبُوْكَ يَصْنَعُ قَالَ كَانَ يَدْخُلُ

په درويشتمه شپه راسه، د عبد الله د زوی څخه پوښتنه وسول چي ستا پلار به څه کول؟ هغه وويل: هغه به ننوتئ

الْمَسْجِدَ اِذَا صَلَّى الْعَصْرَ فَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ لِحَاجَةٍ حَتّٰى يُصَلِّيَ الصُّبْحَ فَاِذَا صَلَّى

په درويشتم تاريخ د ماز ديګر د لمانځه وروسته مسجد نبوي ته او د مسجد څخه به د يو کار لپاره نه وتئ تر څو چي د سهار لمونځ به يې وکړ بيا

الصُّبْحَ وَجَدَ دَابَّتَهٗ عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ فَجَلَسَ عَلَيْهَا فَلَحِقَ بِبَادِيَتِهٖ. رواه ابوداؤد.

د سهار د لمانځه وروسته به د مسجد څخه راووتئ او پر خپل سپرلي به چي د مسجد د باندي به ولاړ وو سپور سو او خپل ځنګل ته به تلئ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۰۸/۲، رقم: ۱۳۸۰.

**تشريح**: دلته يو اشکال پيدا کيږي چي ددغه روايت سره د ليلة القدر تعين لازميږي او حال دا چي هغه متعين نه دی، نو ددې جواب دادی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم عبد الله رضي الله عنه ته په کوم کال دا خبره

نبودلې وه په هغه كال به ليلة القدر په درويشتمه شپه راغلى وي چي د هغه علم به رسول الله ﷺ ته سوى وو ، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل چي درويشتمي شپې ته مسجد نبوي ته راسه مګر عبدالله رضي الله عنه د هغه څخه دا وګڼل چي شب قدر هر كال په دغه تاريخ كي وي او كوم چي ددې خبري تعلق دى چي رسول الله ﷺ ته هم شب قدر متعين معلوم نه وو نو ددې څخه مراد دادى چي رسول الله ﷺ ته د هر كال د شب قدر تعين معلوم نه وو نو رسول الله ﷺ ته كله د شب قدر متعين كېدل ددې خلاف نه دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ څخه د شب قدر هيريدل

﴿۱۹۹۴﴾: عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ راووتئ د كور څخه

لِيُخْبِرَنَا بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنْ الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ

موږ ته د شب قدر د خبر راكولو لپاره ، نو دوه مسلمانان يې په جګړه وليدل ، رسول الله ﷺ وفرمايل : زه تاسو ته د شب قدر د خبر دركولو لپاره راوتلى وم

بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ فَرُفِعَتْ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ

چي فلانى او فلانى مي په جګړه وليدل ، د شب قدر خبر زما څخه پورته كړل سو ، كيداى سي ستاسو لپاره په دې كي خير وي

فَالْتَمِسُوهَا فِي التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ . رواه البخاري

نو تاسو يې په نهه ويشتمه ، اووه وېشتمه او پنځه وېشتمه شپه كي و لټوئ . بخاري .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۴\۲۶۷، رقم: ۲۰۲۳.

**د لغاتو حل**: نتلاحى: اى تخاصم وتنازع (په خپلو كي جګړه يې وكړه).

**تشريح** : ځيني حضرات فرمايي چي دوه كسان چي په هغه ځاى كي په جګړه سوي وه په هغو كي د يوه نوم عبدالله ابن ابي حذروا او د دوهم نوم كعب ابن مالک وو .

د ليلة القدر تعين پورته كړل سو : ددې مطلب دادى چي د هغه دواړو د جګړې په وجه د

ليلة القدر د تعين علم زما د ذهن څخه محوه كړل سو ، ددې څخه معلومه سوه چې په خپلو كې جګړه كول او منافرت او دښمني اختيارول ډېره خرابه خبره ده په دې وجه سړى د ډېرو بركتو او خير څخه محروم كيږي .

كيداى سي ستاسو لپاره دا غوره وي : د دې مطلب دادى چې د ليلة القدر په باره كې چې كوم تعين ما ته ښودل سوى وو نو اوس را څخه هير سوى دى كه تاسو ته ما ښودلى واى نو تاسو به يوازې په هغه شپه په باور كولو سره ناست واى اوس د هغه د تعين د علم نه كېدو په صورت كې نه يوازې دا چې تاسو خلک به د هغه په لټولو كې ډېر زيات كوښښ كوئ بلكه په عبادت او طاعت كې به هم زياتوب كوئ چې ظاهره ده ستاسو په حق كې غوره او د خير خبره ده .

## د شب قدر فضيلت

﴿۱۹۹۵﴾: وعن أنس قال : قال رسول الله ﷺ : " إذا كان ليلة القدر نزل

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چې شب قدر راسي نو

جبريل عليه السلام في كبكبة من الملائكة يصلون على كل عبد قائم أو

جبرائيل عليه السلام د ملائكو د ډلې سره راځي او پر هر هغه بنده رحمت ليږي يا د هغه د بخښنې لپاره دعاء غواړي چې په ولاړه يا

قاعد يذكر الله عز وجل فإذا كان يوم عيدهم يعني يوم فطرهم باهى

په ناسته د الله ذكر او عبادت كوي ، بيا چې كله د مسلمانانو د اختر ورځ سي نو الله تعالى د

بهم ملائكته فقال : يا ملائكتي ما جزاء أجير وفى عمله ؟ قالوا : ربنا

خپلو بندګانو په سبب په ملائكو فخر كوي او فرمايي : اې زما ملائكو ! د هغه مزدور څه مزدوري ده كوم چې خپل كار پوره كړي ؟ ملائكې عرض كوي اې الله!

جزاؤه أن يوفى أجره . قال : ملائكتي عبيدي وإمائي قضوا فريضتي عليهم

د هغه مزدوري داده چې پوره بدله وركړل سي ، الله تعالى فرمايي : اې زما ملائكو زما غلامانو او زما مينځو فرض ادا كړل

ثم خرجوا يعجون إلى الدعاء وعزتي وجلالي وكرمي وعلوي وارتفاع مكاني

بیا هغوی د کورو څخه د دعاء لپاره عید ګاه ته وو تل زما دي په خپل عزت، جلال، کرم، علو او

**لأجيبنهم . فيقول: ارجعوا فقد غفرت لكم وبدلت سيئاتكم حسنات .**

لوړ منزلت قسم وي چي زه به د دوی دعاء قبوله کړم بیا الله تعالی فرمایي : خپلو کورو ته ستانه سئ ما تاسو و بخښلاست او ما ستا سو ګناهونه په نیکیو بدل کړل .

**قال: فيرجعون مغفورا لهم** " . رواه البيهقي في شعب الإيمان

رسول الله ﷺ و فرمایل : نو مسلمانان د عید ګاه څخه په داسي حال کي ستنیږي چي د هغوی ګناهونه بخښل سوي وي . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳\ ۴۳۴، رقم: ۳۷۱۷.

**د لغاتو حل**: كبكبة: اى جماعة (ډله).

=========

# بَابُ الْاِعْتِكَافِ (**د اعتکاف بیان**)

د اعتکاف معنی په لغت کي په یو ځای کي پاته کېدل او په یو ځای کي بند او سیدل دي او د شریعت په اصطلاح کي د اعتکاف مفهوم دادی چي د الله تعالی د رضا او خوښی لپاره د اعتکاف په نیت سره په یو مسجد کي کښیني .

د اعتکاف لپاره نیت د هغه مسلمان او مسلماني معتبر دی چي عاقل وي او د جنابت ، حیض او نفاس څخه پاک وي ، د رمضان په آخري لسیزه کي اعتکاف کول سنت مؤکده دی ځکه نبي کریم ﷺ به د رمضان په آخري لسیزه کي همیشه اعتکاف کوی، په در مختار کي لیکلي دي چي سنت مؤکده علی الکفایه دی یعني که یو سړی هم اعتکاف وکړي نو د ټولو له لوري حکم ادا کیږي او په دې صورت کي نور اعتکاف نه کونکو باندي هیڅ ملامتیا نسته،

د اعتکاف لپاره په ژبه سره نذر منلو باندي اعتکاف واجب کیږي که هغه في الحال وي لکه یو څوک ووایي چي زه د الله تعالی لپاره پر خپل ځان د دومره ورځو اعتکاف لازم کوم ، او که معلق وي لکه یو څوک ووایي چي زه دا نذر منم که زما دا کار وسي نو زه به دومره ورځي اعتکاف کوم .

د اعتکاف دوه ډولونه دي: یعني سنت مؤکده کوم چي د رمضان په آخري لسیزه کي دی او

دوهم واجب چي د هغه تعلق د نذر سره دی ، ددغه دواړو ډولو څخه پرته دریم قسم اعتکاف مستحب دی ، یعني د رمضان د آخري لسیزي څخه پرته په یو بله میاشت کي اعتکاف کول مستحب دي

د مستحب اعتکاف لپاره د زیات وخت مقدار متعین نه دی که یو سړی د ټول عمر اعتکاف نیت وکړي نو هم جائز دی البته د لږ وخت په باره کي د علماؤ اختلافي اقوال دي ، د امام محمد رحمه الله په نزد د مستحب اعتکاف لپاره کم وخت متعین نه دی د ورځي او شپې په یو لږ برخه کي د یوې دقیقې لپاره هم بلکه ددې څخه هم په کم وخت کي د اعتکاف نیت کیدای سي ، د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه ظاهري روایت هم دادی او د حنفیه په نزد پر دغه قول فتوا ده ، نو دهر مسلمان لپاره مناسب داده چي هغه کله هم مسجد ته داخلیږي که دلمانځه لپاره وي یا د یو بل مقصد لپاره نو هغه ته پکار ده چي د اعتکاف نیت وکړي چي زه د اعتکاف نیت کوم تر څو پوري چي په مسجد کي یم .

په داسي کولو سره بېله تکلیفه په ورځ کي څو واره د اعتکاف سعادت او فضیلت تر لاسه کیږي ، د امام ابویوسف رحمة الله علیه په نزد د اعتکاف کم وخت د ورځي زیاته برخه یعني نیمائي ورځي څخه زیاته برخه ده او د امام اعظم رحمة الله علیه یو بل قول دادی چي د اعتکاف کم وخت یوه ورځ ده ، دا قول د امام اعظم رحمة الله علیه د پورتني ظاهري روایت څخه پرته دی پر کوم چي فتوا نسته .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ښځو اعتکاف

﴿۱۹۹۶﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ اعْتَكَفَ أَزْوَاجُهُ مِنْ بَعْدِهِ. متفق علیه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به د روژې په آخري لسیزه کي اعتکاف کوئ تر څو چي الله تعالی دده مبارک روح قبض کړ، بیا د رسول الله ﷺ وروسته د هغو ازواجو هم اعتکاف کوئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۲۷۱، رقم: ۲۰۲٦، ومسلم ۲\۸۳۱، رقم: ۵- ۱۱۷۲.

**تشريح** : د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د

رسول الله ﷺ بیبیانو مبارکانو به په خپلو کورو کي اعتکاف کوی نو په دې وجه فقهاؤ لیکلي دي چي د ښځو لپاره مستحب داده چي په مسجد البیت (د کور په مسجد) کي اعتکاف وکړي، که چیري مسجد البیت (یعني د کور مسجد نه وي) نو د کوریو برخه په مسجد گرځولو سره دي په هغه کي اعتکاف کوي بېله ضرورته د هغه برخي څخه د باندي دي نه وځي د کور هغه برخه به د هغوی په حق کي د مسجد په حکم کي سي، ښځو ته په مسجد کي اعتکاف کول مکروه دي.

## په روژه کي سخاوت

﴿۱۹۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ النَّاسِ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ تر ټولو خلکو زیات سخي وو

بِالْخَيْرِ وَكَانَ أَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ كَانَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام يَلْقَاهُ كُلَّ

د خلکو سره د ښېگڼي کولو او گټي رسولو په اعتبار، په خاصه توگه د روژې په میاشت کي به یې سخاوت ډیر زیات سو،

لَيْلَةٍ فِي رَمَضَانَ يَعْرِضُ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنَ فَإِذَا لَقِيَهُ

جبرائیل علیه السلام به د روژې په هره شپه د رسول الله ﷺ سره لید نه کول، رسول الله ﷺ به د هغه په مخکي قرآن کریم وایه کله چي به

جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام كَانَ أَجْوَدَ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ. متفق عليه

ورسره جبرائیل علیه السلام ملاقات کوئ نو د رسول الله ﷺ سخاوت به د باران راوړونکي هواء څخه هم زیات تیزېدئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۳۰، رقم: ٦، ومسلم ۴\۱۸۰۳، رقم: ۵۰ - ۲۳۰۸.

**تشريح**: اجود الناس بالخير: ددې مطلب دادی چي نبي کریم ﷺ به د الله تعالی مخلوق ته د نورو په نسبت ډیره زیاته گټه رسول، او د خلکو سره به یې ډېره زیاته ښېگڼه کول، په خاصه توگه د رمضان په مقدسه میاشت کي د رسول الله ﷺ دا وصف د معمول څخه هم زیات وو، ځکه چي دغه میاشت د برکت ورځي دي او په دې کي هره نیکي د نورو ورځو په مقابله کي د ډېر زیات اجر او ثواب باعث دي.

د هوا د څپو څخه مراد هغه هوا ده چې د باران سره راځي ، ددې جملې خلاصه داده چې د باران راوستونکي هوا ګټه عام وي او ډیره وي مګر د جبرائیل علیه السلام د ملاقات په وخت به نورو ته د خیر او ګټې رسولو لپاره د رسول الله ﷺ دا جذبه او عمل د هغه خوا څخه هم زیات وو ، دا حدیث دې خبرې ته اشاره کوي چې په برکتناک او افضل وختو کې او د نیک او مقدسو خلکو د صحبت په وخت کې انسان ته په ښیګڼې کولو کې زیات کوښښ کول پکار دی .

په ظاهره خو دا حدیث د باب الاعتکاف سره اړوند نه معلومیږي مګر په دغه باب کې دا حدیث ځکه نقل سوی دی چې رسول الله ﷺ به په رمضان کې اعتکاف هم کوی چې د یو لوی درجې نیکي ده او ددې حدیث خلاصه داده چې رسول الله ﷺ به په رمضان کې ډېره زیاته نیکي او ښیګڼه کول .

## دوفات د کال حال

﴿۱۹۹۸﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ يَعْرِضُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنَ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چې قرآن کریم به هر کال (د جبرائیل علیه السلام په واسطه) رسول الله ﷺ ته یو وار وړاندې کېدئ ،

كُلَّ عَامٍ مَرَّةً فَعَرَضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ وَكَانَ يَعْتَكِفُ

او په کوم کال چې رسول الله ﷺ وفات سو نو په هغه کال دوه واره وویل سو ، او رسول الله ﷺ به اعتکاف کوئ

كُلَّ عَامٍ عَشْرًا فَاعْتَكَفَ عِشْرِينَ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ . رواه البخاري

هر کال لس ورځې او په کوم کال چې وفات سو په هغه کال یې شل ورځې اعتکاف وکړ . بخاري .

**تخریج** : صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۴۳، رقم: ۴۹۹۸.

**تشریح** : ددې مخکې حدیث څخه خو معلومه سوه چې رسول الله ﷺ به د جبرائیل علیه السلام مخکې قرآن کریم وایه او دا حدیث دا ښیي چې جبرائیل علیه السلام د رسول الله ﷺ په مخکې قرآن کریم وایه ، مګر په دغه دواړو حدیثو کې څه ټکر نسته ځکه چې یو وار به جبرائیل علیه السلام قرآن کریم وایه بیا به د هغه وروسته رسول الله ﷺ وایه ، لکه څرنګه چې دوه حافظان دور کوي، ددې څخه دا خبره ثابته سول چې دور کول هم سنت دی .

رسول الله ﷺ د خپل ژوند په آخري کال کي د معمول خلاف دوه واره د قرآن کریم دور وکړ او شل ورځي یې اعتکاف وکړ ځکه چي د الله تعالی په دربار کي د حاضرۍ وخت نژدې وو او د شوق منزل مخته بیا د عشق هغه تهولي بې تابۍ او د وصاف محبوب شوق ولي به نه زیاتیدی ، یو چا څه ریښتیا ویلي دي :

وعده وصل چون شود نزدیک آتش شوق تیز تر گردد

یعني د محبوب سره د ملاقات وعده چي پوره کیږي نو د شوق اور نور هم زیاتیږي .

د رسول الله ﷺ په دغه عمل کي د امت لپاره یوه خبرتیا هم ده چي د هر انسان لپاره ضروري ده چي کله د هغه ژوند آخري دور ته ورسیږي نو د خیر او نیکۍ په لار کي د معمول څخه زیات کوښښ باید وکړي او د الله تعالی ملاقات او د هغه مخکي پیشي لپاره د طاعت او فرمانبردارۍ او د نیکو کارو په ذریعه پوره پوره تیاري وکړي.

## د عتکاف ادبونه او شرطونه

﴿۱۹۹۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِذَا اعْتَكَفَ يُدْنِي إِلَيَّ رَأْسَهُ وهو في المسجد فَأُرَجِّلُهُ وَكَانَ لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ . متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ اعتکاف کوئ نو د مسجد دننه به یې ما ته سر را وایستئ نو ما به سر وربږمونځ کړئ ، د اعتکاف په وخت کي به رسول الله ﷺ یوازي د انساني حاجت لپاره کور ته راتلی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\ ۲۷۳، رقم: ۲۰۲۹. ومسلم: ۱\ ۲۴۴، رقم: ٦ – ۲۹۷.

**تشریح** : دا حدیث ددې خبري دلیل دی که چیري اعتکاف کونکی خپل یو اندام د مسجد څخه د باندي کړي نو اعتکاف نه باطلیږي او دا خبره هم ثابته سوه چي د معتکف لپاره ژمونځ کول هم جائز دي . علامه ابن همام رحمه الله فرمایي که معتکف د خپل بدن یو اندام په مسجد کي دننه په یو لوښي کي پریولي نو څه پروا نسته په شرط ددې چي په هغه سره مسجد چټل نسي.

د حاجت انساني په ضمن کي د امام اعظم رحمة الله علیه مذهب ادی که معتکف بېله حاجته د یوې دقیقې لپاره هم د اعتکاف د ځای څخه ووځي نو د هغه اعتکاف فاسدیږي.

د حاجت یعني ضرورت دوه ډولونه دي : (۱) : طبعي : یعني تشي او ډکي بولي، د جنابت غسل ، البته د جمعې د غسل په باره کي یو صریح حدیث منقول نه دی مګر په شرح اوراد کي

ليکلي دي چي د غسل لپاره د معتکف د باندي وتل جائز دي که غسل واجب وي لکه د جنابت غسل او که نفل وي لکه د جمعې د ورځي غسل او داسي نور.

دوهم ضرورت شرعي دی لکه د اخترو د لمونځو لپاره ، اذان يعني که چيري د آذان کولو ځای د مسجد څخه د باندي وي نو هلته تلل هم په حاجت کي داخل دي او په دې سره اعتکاف نه باطليږي ، او بيا دا چي د صحيح روايت په موجب په دغه حکم کي مؤذن او غير مؤذن شامل دي ، د جمعې د لمانځه لپاره د باندي وتل هم په حاجت کي داخل دي مگر په دې اړه باندي دا خبره معلومه وي چي د جمعې د لمانځه لپاره د اعتکاف د ځای څخه د لمر د زوال پر وخت دي ووځي که چيري جامع مسجد ليري وي نو داسي وخت دي ووځي چي جامع مسجد ته په رسيدو سره د جمعې لمونځ ، تحية المسجد او د جمعې سنت وکړل سي ، د لمانځه څخه وروسته سنت کولو لپاره په جامع مسجد کي پاته کېدل جائز دي ، که يو سړی د لمانځه څخه زيات وخت په جامع مسجد کي تير کړي نو که څه هم د هغه اعتکاف نه باطليږي مگر مکروه تنزيهي دی ، همداسي که يو معتکف سره خادم وغيره نه وي نو د خوراک راوړلو لپاره کور ته تلل هم په ضرورت کي داخل دي .

که چيري مسجد ونړيږي يا يو څوک يې په زور د مسجد څخه وباسي او معتکف د هغه مسجد څخه په وتلو سره سمدستي بل مسجد ته داخل سي نو د هغه اعتکاف نه فاسديږي همداسي که يو معتکف د ځان او مال د بيري څخه بل مسجد ته ولاړ سي نو د هغه اعتکاف نه فاسديږي .

که چيري يو معتکف د تشو يا ډکو بولو لپاره يا د يو بل شرعي عذر لپاره د مسجد څخه ووتي او هلته پوروړی ورسره يو ځای سو چي هغه ودروی نو د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد د هغه اعتکاف فاسد سو او صاحبين يعني امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما فرمايي چي نه فاسديږي .

يو سړی په اوبو کي ډوبيږي يا په اور کي سوځي او معتکف د هغه د ژغورني لپاره دباندي ووتی يا د جهاد لپاره چي اعلان وسي يا د شهادت ورکولو لپاره د اعتکاف ځای پريښودو سره د باندي ووځي نو په دغه صورتو کي اعتکاف فاسديږي ، مطلب دا چي د شرعي حاجت او ضرورت سره سم پورتني کوم عذورنه چي بيان سوي دي ددې څخه پرته که يو معتکف د يوې دقيقې لپاره هم د باندي ووځي که څه هم هغه وتل سهوا وي نو د هغه اعتکاف فاسديږي البته د صاحبينو په نزد دومره آساني ده چي د هغه اعتکاف هغه وخت به فاسديږي کله چي هغه د ورځي اکثره برخه د باندي ووځي .

د پورتني حديث څخه يوه دا مسئله هم اخيستل کيږي چي د معتکف لپاره په مسجد کي حجامت کول جائز دي په شرط د دې چي په مسجد کي وينښتان وغيره ونه غورځوي .

## د عمر رضي الله عنه د جاهليت د زمانې نذر

﴿۲۰۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ سَأَلَ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ كُنْتُ نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْ أَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ قَالَ فَأَوْفِ بِنَذْرِكَ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي د اسلام راوړلو څخه مخکي ما نذر اېښی وو چي يوه شپه به په مسجد حرام کي اعتکاف کوم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خپل نذر پوره کړه . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\ ۲۷۴، رقم: ۲۰۳۲. ومسلم ۳\ ۱۲۷۷، رقم: ۲۷- ۱۶۵۶.

**تشريح** : جاهليت هغه حالت ته وايي چي په هغه کي اهل عرب د رسول الله ﷺ د نبوت څخه مخکي وه ، ځيني حضرات وايي چي د جاهليت څخه مراد هغه حالت دی چي د اسلام د تبليغ عام او د هغه د ظهور څخه مخکي وو، حاصل دا چي د رسول الله ﷺ د پيغمبری او د اسلام د ظهور څخه مخکي په عربو کي چي کومه تهولنه وه هغه ته جاهليت او هغه وخت چي کوم دور وو هغه ته د جاهليت زمانه ويل کيږي . خپل نذر يې پوره کړ: دا حکم د استحباب په توګه وو، که چيري حضرت عمر رضي الله عنه د اسلام قبلولو څخه مخکي نذر منلی وو او که د اسلام قبلولو څخه وروسته يې دا نذر منلی وو نو بيا دا حکم د وجوب په توګه وو .

د علامه طيبي رحمة الله عليه سره سم دا حديث پر دې خبره دلالت کوي که چيري د جاهليت په حالت کي منل سوی نذر د اسلام د احکامو موافق وي نو د اسلام قبلولو څخه وروسته هغه نذر پوره کول واجب دی ، د امام شافعي رحمة الله عليه دا مذهب دی مګر امام ابوحنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي هغه نذر به صحيح نه وي او د هغه د اسلام څخه وروسته پوره کول ضروري نه دي ، د امام اعظم رحمة الله عليه دليل د فقهي په کتابونو کي مذکور دی د دغه حديث هغه معنی مراد اخلي کوم چي پورته ذکر سوې ده .

## د واجب اعتکاف لپاره روژه شرط ده

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث د دې خبري دليل دی چي د اعتکاف صحيح کيدو لپاره روژه شرط نه ده لکه څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دی مګر د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په روايت سره ظاهر دا دی چي د نفل اعتکاف لپاره خو روژه

شرط نه ده مګر د واجب اعتكاف لپاره روژه واجب ده، د صاحبينو هم دا قول دی ، او د حنفيه په نزد پر دې فتوا ده ، د امام مالک رحمة الله عليه او ديو بل روايت سره سم امام اعظم رحمة الله عليه هم دا فرمايي چې مطلقا د اعتكاف لپاره روژه نيول شرط ده كه هغه واجب وي يا نفل.

د حنفيه له لوري ددغه حديث په اړه دا ويل كيږي چې د حضرت عمر ﷺ د اعتكاف په اړه ددې څخه پرته چې نور روايتونه منقول دي په هغه كي اعتكاف سره د روژې ذكر هم دی ، ابوداؤد، نسائي او دارقطني چې كوم روايتونه نقل كړي دي هغه حاصل دادی چې حضرت عمر ﷺ د جاهليت په زمانه كي پر ځان دا لازم كړی وه چې يوه شپه به په كعبه كي دننه اعتكاف وكړي بيا هغه په دې اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اعتكاف وكړه او روژه ونيسه ، دا خو ګوياد هغه حديث جواب وو او كوم چې د حنفيه د دليل تعلق دی نو اوس مخته د بي بي عائشې رضي الله عنها يو حديث : ولااعتكاف الا بصوم را روان دی او د هغه څخه دا خبره په وضاحت سره ثابتيږي چې واجب اعتكاف بېله روژې نه صحيح كيږي كه يو سړی په نذر منلو سره يوازي د شپې د اعتكاف نيت وكړي نو هغه به لغو ګڼل كيږي ځكه چې شپه د روژې محل نه دی هو كه يو سړی دا نذر ومنی چې زه به په رمضان كي اعتكاف كوم نو د رمضان روژې د اعتكاف صحيح كيدو لپاره كافي كيږي ، همداسي كه يو سړی نفلي روژه ونيسي او بيا په هغه ورځ د اعتكاف نذر وكړي نو دا به صحيح نه وي.

كه يو سړی نذر ومني چې په فلاني رمضان كي به اعتكاف كوم مګر هغه په ټاكلي رمضان كي اعتكاف ونه كړ نو اوس د هغه لپاره ضروري ده چې د قضا په توګه په نورو ورځو كي اعتكاف وكړي او په ځانګړې توګه سره د اعتكاف لپاره روژې ونيسي دا قضا به په بل رمضان كي صحيح نه وي او نه به په داسي ورځو كي صحيح وي چې په هغه كي قضا روژې نيسي يا بل شی كوي.

كه يو سړی د څو ورځو اعتكاف نيت وكړي نو د هغه ورځو د شپو اعتكاف هم لازميږي همداسي د دوو ورځو د اعتكاف نذر منلو سره د هغه دو شپو اعتكاف هم لازميږي مګر د امام ابويوسف رحمة الله عليه په نزد په دغه صورت كي يوازي د يوې شپې اعتكاف لازميږي.

كه يو سړی نذر ومني چې زه به يوه مياشت اعتكاف كوم نو پر هغه د يوې مياشتې اعتكاف على الاتصال لازميږي كه څه هم هغه د نذر منلو پر وخت على الاتصال نه وي ويلي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شلو ورځو اعتكاف

﴿۲۰۰۱﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِي الْعَشْرِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په آخري لسيزه كي اعتكاف كوئ

الْاَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ فَلَمْ يَعْتَكِفْ عَامًا فَلَمَّا كَانَ فِي الْعَامِ الْمُقْبِلِ اعْتَكَفَ

عِشْرِينَ. رواه الترمذي و روى ابوداؤد وابن ماجة عن ابي بن كعب.

د روژې مګر يو كال يې اعتكاف ونه كړ، بيا چي دوهم كال راغلئ نو شل ورځي اعتكاف يې وكړ، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجة د ابی بن كعب څخه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۱٦٦، رقم: ۸۰۳. و سنن ابي داود ۲\ ۸۳۰، رقم: ۲٥٦۲، وابن ماجه ۱\ ٥٦۲، رقم: ۱۷۷۰.

**تشريح**: غالبًا دغه حديث د تير روايت وضاحت دی كوم چي د ابوهريره رضي الله عنه څخه منقول دی او په هغه كي ښودل سوي دي چي رسول الله ﷺ د خپل ژوند په آخري كال كي شل ورځي اعتكاف وكړ، د علامه طيبي رحمة الله عليه د قول سره سم دا حديث پر دې خبره دلالت كوي كه سنت مؤكده فوت سي نو د هغه دي قضاء هم راوړل سي څرنګه چي د فرضو قضا راوړل كيږي مګر په دې باره كي دا خيال ساتل پكار دي چي دا تشبيه يوازي د قضا په باره كي ده كنه د فرضو قضا هم فرض ده او د سنت مؤكده قضا هم سنت ده فرض يا واجب نه ده.

### د اعتكاف ځای ته ننوتل

﴿۲۰۰۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الْفَجْرَ ثُمَّ دَخَلَ فِيْ مُعْتَكَفِهِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د اعتكاف اراده وكړل نو د سهار لمونځ به يې ادا كړ او بيا به خپل د اعتكاف ځای ته تلئ. ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۸۳۰، رقم: ۲٤٦٤، وابن ماجه ۱\ ٥٦۳، رقم: ۱۷۷۱.

**تشريح**: امام اوزاعي رحمة الله عليه او امام ثوري رحمة الله عليه دا حديث د خپل مذهب

دليل گرځولى دى چي د اعتكاف پيل د روځي د پيل ځخه كېدل پكار دى ، او د ځلورو امامانو مذهب دادى كه يو سړى يوه مياشت يا د يوې لسيزي او داسي نور اعتكاف وكړي نو د اعتكاف پيل دي د ورځي د آخري برخي يعني لمر لوېدو ځخه مخكي كوي او د اعتكاف په آخري ورځ دي د لمر لوېدو ځخه وروسته د اعتكاف ځخه راووځي ځكه ددې حديث تاويل كيږي چي رسول الله ﷺ به د اعتكاف نيت سره د لمر لوېدو ځخه مخكي مسجد ته راتلى ټوله شپه به په مسجد كي وو ددې ځخه وروسته چي د سهار لمونځ به يې وكړ نو د مسجد هغه برخي كي به داخل سو چي د هغه ځخه د يو شي په چاپيره كولو سره د حجرې په شكل كي به جوړېدى تر ځو د خلكو ځخه بيل سي ، نو د رسول الله ﷺ د اعتكاف پيل خو به د ماښام د وخت ځخه كيدى او د اعتكاف په ځاى كي به سهار داخليدى .

## په اعتكاف كي د ناروغ پوښتنه

﴿۲۰۰۳﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُ الْمَرِيضَ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَيَمُرُّ كَمَا هُوَ فَلَا يُعَرِّجُ يَسْأَلُ عَنْهُ. رواه ابوداؤد وابن ماجة

د حضرت عائشې (رض) ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په اعتكاف كي د ناروغ پوښتنه كول نو د مسجد ځخه به سيده تلئ او نه به كيږيدى د ناروغ پوښتنه به يې وكړه . ابن ماجه او ابواؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۸۳۶، رقم: ۲۴۷۲، وابن ماجه ۱\۵۶۵، رقم: ۱۷۷۶.

**تشريح** : رسول الله ﷺ چي به ځنګه وو هم هغسي به تيريدى : ددې مطلب دادى چي رسول الله ﷺ به پر كوم اعتكاف باندي وو هم هغسي به يې د مريض پوښتنه كول نه دا چي رسول الله ﷺ بلي خوا ته ميلان كوئ او نه به دريدى بلكه پوښتني كولو ته به سيده تلى .

فلا يعرج : دا د ماقبل د اجمال وضاحت دى ددې لفظ معنى داده چي نه خو به د مريض سره دريدى او نه به د خپل لاري ځخه په آخوا كېدو سره بلي خوا ته متوجه كيدى ، همداسي لفظ د يسال په طريقه د استيناف بيان دى د لفظ يعود . (استيناف د نوي سره پيل كوي) .

حسن رحمة الله عليه او نخعي رحمة الله عليه وايي چي د جمعې د لمانځه او د ناروغ د پوښتني لپاره د معتكف د باندي وتل جائز دي مګر د ځلورو امامانو په نزد په دې اړه مسئله داده كه چيري د يو طبعي يا شرعي ضرورت لپاره د باندي ووځي او په دغه دوران كي كه د ضرورت دفع كولو ځخه مخكي يا وروسته د يو ناروغ پوښتنه وكړي يا د جنازې په لمانځه كي

شريک سي نو څه پرواه نسته په شرط ددې چي ددغه کارونو په وخت کي نه خو د خپل لاري څخه بيل سي او نه تر لمانځه زيات ودريږي ، که چيري ددغه کارو لپاره خپل لار پريږدي يا تر لمانځه زيات ودريږي نو اعتکاف به باطل سي .

همدارنګه په خاصه توګه يوازي د ناروغ د پوښتني لپاره ياد جنازې د لمانځه لپاره د اعتکاف څخه ووځي نو اعتکاف به ختم سي هو که يو سړی د اعتکاف نذر داسي مشروط کړي چي زه به د اعتکاف په حالت کي د ناروغ پوښتني ، د جنازې لمانځه او د نصيحت مجلس ته د حاضرۍ لپاره د اعتکاف د ځای څخه وځم نو بيا وتل جائز دي .

## د اعتکاف ادبونه

﴿۲۰۰۴﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ السُّنَّةُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ أَنْ لَا يَعُودَ مَرِيضًا وَلَا يَشْهَدَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د اعتکاف کونکي لپاره سنت طريقه داده چي هغه د يو ناروغ پوښتنه ونه کړي او ولاړ نه سي

جَنَازَةً وَلَا يَمَسَّ امْرَأَةً وَلَا يُبَاشِرَهَا وَلَا يَخْرُجَ لِحَاجَةٍ إِلَّا لِمَا لَا بُدَّ مِنْهُ وَلَا

د جنازې دلمانځه لپاره ، ښځي ته لاس ور نه وړي، او نه مباشرت وکړي او د يو ضرورت لپاره د باندي ولاړ نه سي مګر د داسي ضرورت لپاره وتلای سي چي د هغه څخه چاره نه وي ،

اعْتِكَافَ إِلَّا بِصَوْمٍ وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ . رواه ابو داؤد .

او اعتکاف د روژې څخه پرته نه صحيح کيږي او اعتکاف په لوی مسجد کي صحيح دئ (يعني داسي مسجد چي په جماعت سره لمونځ پکښي کيږي ) ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۸۳٦، رقم: ۲۴۷۳.

**تشريح** : د مباشرت څخه مراد هغه شيان دي چي د جماع ذريعه جوړيږي لکه مچه اخيستل، بدن سره مښلول، غاړه تر غاړه کېدل او دا ډول نور حرکات، نو دا شان د کوروالي او مباشرت د معتکف لپاره حرام دي ، فرق يوازي دومره دی چي په کوروالي سره اعتکاف باطليږي که په قصد سره وکړل سي يا بېله قصده ، که د ورځي وي يا د شپې وي ، او په مباشرت سره هغه وخت اعتکاف باطليږي چي کله انزال وسي که چيري انزال ونسي نو اعتکاف نه باطليږي .

د معتکف لپاره په مسجد کي خوراک، څښاک او بيده کېدل جائز دي ، همدارنګه رانيول

او پلورل هم جائز دي په دې شرط چي د رانيولو او پلورلو شيان مسجد ته را نه وړل سي ځکه چي د رانيولو او پلورلو شيان مسجد ته راوړل مکروه تحريمي دي او دا چي معتکف رانيول او پلورل يوازي د خپل ذات او خپل کورنۍ د ضرورت لپاره کوي نو جائز به وي او که د تجارت لپاره وي نو بيا جائز نه دی.

دا خبره هم په ذهن کي راوستل پکار ده چي په مسجد کي رانيول او پلورل د غير معتکف لپاره هم په هيڅ ډول جائز نه دی، د اعتکاف په حالت کي پټه خوله کښېنستل هم مکروه تحريمي دي، هو خرابي خبري، درواغ، غيبت او داسي نور شيان دي دخولې څخه نه باسي بلکه د قرآن کريم تلاوت، نيک کارونه، حديث، تفسير او د انبياؤ او صالحينو پر قصو باندي مشتمل کتابونه يا دا ډول نور ديني کتابونو مطالعه او د الله تعالی د ذکر يا د ديني علم زده کولو يا ښودل، تصنيف او تاليف او ژباړه کي دي خپل وخت تېر وي.

خلاصه دا چي پټه خوله کېدل عبادت نه دی، او مباح خبري هم بېله ضرورته مکروه دي او که د ضرورت لاندي وي نو بيا پروا نسته، په فتح القدير کي ليکلي دي چي په مسجد کي بېله ضرورت خبري کول حسنات (نيکۍ) داسي خوري لکه اور چي وچ لرگي خوري.

د حديث الفاظ: (د اعتکاف لپاره روژه ضروري ده): دا خبره په وضاحت سره ثابته سوه چي اعتکاف بېله روژې نه صحيح کيږي په دې باره کي د حنفيه د مذهب دليل دا حديث دی.

د جامع مسجد څخه مراد هغه مسجد دی چي په هغه کي پنځه وخته لمونځ په جماعت سره کيږي، د امام احمد رحمة الله عليه هم دا قول دی، د امام مالک رحمة الله عليه، امام شافعي رحمة الله عليه او صاحبينو په نزد په هر مسجد کي اعتکاف کول صحيح دی، او که چيري د جامع مسجد څخه هغه مسجد مراد سي په کوم کي چي د جمعې لمونځ کيږي نو بيا د دې مفهوم به دا وي چي اعتکاف په هغه مسجد کي غوره دی په کوم کي چي د جمعې لمونځ کيږي، علماء ليکي چي غوره اعتکاف هغه دی چي په مسجد حرام کي وي او بيا د هغه وروسته په مسجد نبوي کي او بياد هغه وروسته په مسجد اقصی يعني بيت المقدس کي او بيا د هغه وروسته په جامع مسجد کي وي، او بيا په هغه مسجد کي چي په هغه لمونځ کونکي زيات وي .(په کوم مسجد کي چي پنځه وخته لمونځونه په جماعت سره کيږي او د جمعې لمونځ هم پکښي کيږي په هغه کي اعتکاف کول غوره دی).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ اعتكاف

﴿۲۰۰۵﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا اعْتَكَفَ طُرِحَ لَهُ فِرَاشُهُ أَوْ يُوضَعُ لَهُ سَرِيرُهُ وَرَاءَ أُسْطُوَانَةِ التَّوْبَةِ. رواه ابن ماجة.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ اعتكاف كوئ نو فرش به ورته وغوړول سو يا د توبې د ستني (ميل) شاته به كټ واچول سو. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۵۶۴، رقم: ۱۷۷۴.

**تشريح**: په مسجد نبوي كي د يوې ستني نوم توبه دى ددې وجه تسميه داده چي د يو صحابي ابولبابه انصاري رضي الله عنه څخه يو كوتاهي سوې وه او د هغه په وجه هغه خپل ځان په دغه ستن پوري تړلى وو او تر څو ورځو پوري همداسي تړلى وو كله چي هغه توبه قبوله سوه نو رسول الله ﷺ هغه د ستني څخه خلاص كړ.

### د معتكف اعمال

﴿۲۰۰۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الْمُعْتَكِفِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د معتكف په اړه فرمايلي دي چي

هُوَ يَعْكِفُ الذُّنُوبَ وَيُجْرَى لَهُ مِنَ الْحَسَنَاتِ كَعَامِلِ الْحَسَنَاتِ كُلِّهَا. رواه ابن ماجة.

هغه د ګناهو څخه ساتلى وي او د هغه لپاره نيكۍ جاري وي داسي نيكۍ لكه د كونكي د ټولو نيكو كارونو. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۵۶۷، رقم: ۱۷۸۱.

**تشريح**: د ګناهونو څخه خوندي وي: يعني كوم سړى چي د نيكو او غوره مقصدو لپاره په مسجد كي پاته سي نو د هغه شان داډى چي هغه د اكثر ګناهو څخه خوندي كيږي، لفظ د يجرى په راء مهمله سره د مجهول صيغه ده او ځينو حضراتو ويلي دي چي دا صيغه معروفه ده ددې مطلب دادى چي كوم سړى د اعتكاف په حالت كي وي او هغه د اعتكاف په وجه د نيكو اعمالو

مثلا د ناروغ پوښتنه، د جنازې لمونځ او داسي نورو نیکو کارو څخه منع وي نو د هغه لپاره د هغه نیکو اعمالو د ثواب لړۍ جاري کیږي لکه څرنګه چي د هغه نیکي کونکو لپاره وي، او د مشکوة شریف په یوه صحیح نسخه کي دا لفظ په راء معجمه سره د معروف په صیغه یجری منقول دی او د هغه معنی داده چي اعتکاف کونکی د خپل اعتکاف په وجه د کومو نیکو اعمالو مثلا د ناروغ پوښتنه ، د جنازې لمونځ، د جنازې سره تلل، د مسلمانانو سره لیدنه، نیک معاملات یا دا ډول نور نیک کارونه نو هغه ته ددغه نیکو اعمالو داسي ثواب ورکول کیږي لکه څرنګه چي د هغه اعمالو کونکو ته ورکول کیږي ، په هر حال یوازې د الفاظو فرق دی او مفهوم د دواړو یو دی .

د اعتکاف برکتونه او ګټې دادي چيٍ د معتکف زړه د دنیا د کارو د چټلیو څخه پاک وي، هغه خپل نفس الله تعالی ته سپارلی وي، په پرله پسې عبادت کي اوسي، د الله تعالی قرب هغه ته ډیر زیات تر لاسه کیږي، د الله تعالی رحمت پر هغه نازلیږي، هغه د الله تعالی په قلعه او پناه کي اوسي او د شیطان د مکر او چم څخه خوندي وي .

د معتکف مثال د هغه سړي په ډول دی چي د پاچا پر دروازه درېږي او د خپل حاجت درخواست وړاندي کوي همداسي معتکف هم په ژبه سره وایي چي اې زما مولی! اې زما پروردګاره! زه ستا په دروازه کي پروت یم ددغه ځای څخه به تر هغه وخته پوري نه لیري کیږم تر څو پوري چي ته زما بخښنه ونه کړې ، زما مقصد پوره نه کړې او زما دیني او دنیوي غم را څخه لیري نه کړې .

==============